# توضیحات

د مشکوٰة شریف پښتو شرح

تالیف

حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم

استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فیض الهادي "حقاني"

سابق مدرس مدرسه تعلیم القرآن والحدیث

چارسده روډ پښاور

مکتبة الاصلاح

محله جنگی پشاور

0314-0797200

0345-1977797

# توضیحات مشکوٰۃ شریف
پښتو شرح

(جلد دوم)

الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فیض الهادی حقاني

د توضیحات پښتو شرح مشکوة خصوصیات :

- په اول جلد کې د اصول حدیث يوه مفیده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په تیبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حدیث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوة المصابیح د احادیثو تخریج د صحاح سته وغیره کتابونو نه کول
- د مشکوة المصابیح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر یو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بیان
- د مذاهبو دلائل بیانول
- د احنافو د مذهب د ترجیح وجوهات بیانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بیان
- بین القوسین په اضافي قیوداتو سره مزید وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذریعه حل کول
- د جدید او قدیم بعضې مسائلو استنباط
- په آحادیثو کې د تعارض په صورت کې بهترین مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوة المصابیح د حدیثو د راویانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحیح نه علاوه د چهاپ کولو او جلد سازئي په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار اخستلې شوی دی خو بیا هم انسان کمزوری دی.
که ددې احتیاط باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړئ ان شاء الله په راتلونکي چهاپ کښې به ئې تصحیح اوکړو.

د کتاب نوم: توضیحات مشکوة شریف

مؤلف: الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی حفظه الله دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچي

ترجمه: مولوي فیض الهادي حقاني

کمپوزنګ: مولوي فیض الهادي حقاني

ناشر: مکتبة الاصلاح محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

د ملاویدو پتې:

| پاکستان | افغانستان |
|---|---|
| شبقدر | جلال آباد |
| اکوړه خټک | کابل |
| صوابی | خوست |
| شیوه اډه | ګردیز |
| مردان | غزني |
| مینګوره | قندهار |
| تیمرګره | کوندوز |
| باجوړ | کنړ |
| ټل هنګو | مزار شریف |
| دوآبه | لغمان |
| ډیره اسماعیل خان | |
| بلوچستان | |
| چمن | |



بسم الله الرحمن الرحيم
اللهم صل على محمد
وعلى آل محمد كما صليت
على إبراهيم وعلى آل إبراهيم
إنك حميد مجيد
اللهم بارك على محمد وعلى
آل محمد كما باركت على
إبراهيم وعلى آل إبراهيم
إنك حميد مجيد

# عرض حال

بسم الله الرحمن الرحيم

**الحمد لله رب العالمين . و الصلاة و السلام على أشرف الأنبياء و المرسلين سيد الأولين و الآخرين ، وعلى آله و أصحابه الطيبين الطاهرين و الحمد لله رب العالمين .**

**امابعد!** د الله تعالى لاكهـ لاكهـ شكر دى چې هغه دې كمزوري بنده ته صرف په خپل فضل و كرم سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احاديثو مقدسو د تشريح او د توضيح توفيق وركړو .

بهر حال د الله تعالى په مدد او نصرت سره د مشكوة شريف د شرحې دوه (٢) جلدونه مكمل شو ، او منظر عام ته راغلل ، او د دريم جلد د ليكلو شروع الحمد لله نن په دولسم شعبان ١٤٢٣ه كې وشوه.

توضيحات پښتو شرح د مشكوة وړومبى جلد د مشكوة شريف ابتدائي ( وړومبى ) حصې سره متعلق دى چې هغه د " **كتاب الايمان** "، " **كتاب العلم** " او " **كتاب الطهارة** "په توضيحاتو او تشريحاتو باندې مشتمل دى .

د دې نه پس ما دا مناسبه وګڼله ، چې د مشكوة شريف د دويمې حصې : "**كتاب النكاح**" نه زر تر زره يو جلد تيار شي چې د مشكوة ثاني د زده كوونكو او ښوونكو د پاره آسانتيا شي نو د ډير محنت نه پس الحمد لله هغه تيار شو چې هغه په "**كتاب النكاح**" ، "**كتاب العتق**" ، "**كتاب القصاص**" ، "**كتاب الحدود**" او "**كتاب الامارة و القضاء**" باندې مشتمل دى ، او د ترتيب په اعتبار سره څلورم جلد شميرلې شي .

دې نه پس ضروري وه چې د "**كتاب الصلاة**" نه په توضيحات او تشريحاتو كار شروع شي ، الحمد لله نن د ډيرو مصروفياتو باوجود مې په هغې كار شروع كړو ، زه د خپل رب نه ډير په عاجزۍ سره د توفيق او تكميل دعاء غواړم او بيا د دې د قبوليت عامه او خاصه دعاء كوم .

ما د توضيحات د اولنى جلد په شروع كې د دې شرحې خصوصيات ، امتيازات ،مراجع او مصادر ، طرز وطريقه د تحرير او تقرير او انداز بيان او ترتيب بيان كړې دى چې د هغې د اعادې ضرورت نشته هلته دې وكتلې شي .

د مشکوة شريف د ښودلو په وخت کې ما د اسلامي مياشتو مطابق چې کومه مياشت کې په کوم تاريخ کوم سبق ښودلې دی هغه تاريخ ما په دې شرح کې ليکلې دی چې هر مُدرس ته دا اندازه وي چې هغه په کوم رفتار کتاب ښائي .

نو ددې جلد اول درس په لسم (۱۰) ربيع الاول ۱۴۱۰ھ کې ښودلی وو ، نو لهذا ددې نه به شروع کولی شي .

و الله ولي التوفيق وهو يهدي السبيل

و صلى الله على نبيه الكريم

فضل محمد يوسفزئي

۱۲ شعبان ۱۴۲۳ھ

راشنگ الائي ضلع بټګرام صوبه سرحد پاکستان

۱۰ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

# كِتَابُ الصَّلَاة
## د مونځ بيان :

قال الله : ﴿ رَبِّ اجْعَلْنِي مُقِيمَ الصَّلَاةِ وَمِن ذُرِّيَّتِي رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاء ﴾.(سورة ابراهيم :۳۰).
اى زما ربه ! ما او زما اولاد د مونځ قائمونكي جوړ كړي اى زمونږه ربه زما دُعا قبوله كړي .

و قال الله تعالى : ﴿ وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَّحْنُ نَرْزُقُكَ ﴾.(سورة طه :۱۳۲).
او خپل كور والاو ته د مونځ حكم كوه او په خپله هم په دې قائم اوسيږه مونږه ستا نه روزي نه غواړو بلكې مونږه تا ته روزي دركوو .

و قال الله تعالى : ﴿ فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴾ .
(سورة مريم :۵۹).
بيا ددوي نه پس داسې خلك راغلل چې هغوي مونځ ضائع كړو او خواهشاتو پسې ولګيدل پس زر به هغوي د ګمراهئ سزا ومومي .

وقال الله تعالى : ﴿ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ ﴾ . (سورة عنكبوت : ٤۵).
او د مونځ پابندي كوي يقينا مونځ منع كوي خلك د بې حيائي او د بدو كارونو نه او د الله يادول ډير لوي دى .

**د مخكې باب سره د كتاب الصلاة ربط** : د كتاب الصلاة د ماقبل بابونو سره ربط دارنګې دى چې صاحب مشكوة د ټولو نه مخكې كتاب الايمان كيښودو ځكه چې د ايمان نه بغير يو عمل هم قبول نه دى ، د كتاب الايمان نه پس كتاب العلم كښودى شو ځكه چې په علم باندې عمل موقوف دى د علم نه بغير يو عمل پيژندل او په هغې باندې عمل كول ممكن نه دي د علم نه پس د كتاب الصلاة درجه او مقام وو ځكه چې صلوة ټولو عباداتو لره جامع دى ځكه چې په صلوة كې قيام دى نو په كائناتو كې چې څومره ځيزونه ونې(بوټي)كانړي د قيام په حالت كې طبعي طريقې سره د الله په عبادت كې مصروف دي او څومره فرشتې چې د پيدائش نه واخلي تر اوسه پورې په قيام كې د الله تعالى په عبادت كې ولاړې دي ددې ټولو مشابهت د مونځ د قيام سره راځي ، دغسې په مونځ كې ركوع ده نو په كائناتو كې چې څومره

مخلوقات،حيوانات وغيره او فرشتې وغيره د ركوع په حالت كې دي ددې ټولو د عبادت نه د مونځ سره مشابهت راځي دغسې په مونځ كې سجده ده نو كائناتو كې چې څومره مخلوقات په طبعي طريقې سره د الله تعالى په وړاندې سر په سجده دي او كومې فرشتې چې د پيدائش نه واخلي تر اوسه پورې په سجده كې دي ددې ټولو د عبادت نه په مونځ كې مشابهت راځي دغسې په مخلوقاتو كې چې څومره څيزونه غرونه وغيره د قعدې په حالت كې طبعي طريقې سره د الله تعالى په عبادت كې مشغول دي او څومره فرشتې چې په حالت د ناستې كې په عبادت كې مصروفې دي ددې د ټولو د عبادت نه د مونځ سره مشابهت راځي. خلاصه دا چې مونځ جامع العبادات دى د ايمان او علم نه پس دده مقام دى ليكن مونځ چونكه په طهارت باندې موقوف دى او طهارت د مونځ د پاره شرط دى ځكه مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ طهارت په مونځ باندې مقدم كړو چې كله د طهارت د بيان نه فارغ شو نو اوس صاحب مشكوة اصل مقصود بيانول وغوښتل نو د **كتاب الصلاة** عنوان يې كيښودلو.

**د اركان خمسه عجيبه ترتيب** :حقيقي عاشق او مجازي عاشق دواړه هر وخت د خپل محبوب د حاصلولو كوشش كوي :(۱) نو چې كله مجازي عاشق د خپل محبوب د حاصلولو كوشش كوي نو د ټولو نه مخكې هغه د خپل معشوق ، تعريف او مدح او توصيف كوي ، ددې د پاره چې د قصيدې په ويلو خپل محبوب ته ځان ورسوي ، بهر حال د عربو او د عجمو د عاشقانو او شاعرانو هغه ټولې قصيدې چې دوي هغه د خپلو محبوبانو باره كې ويلي دي هغه ددې مقصد د حاصلولو د پاره ويلي شوې دي د امرء القيس ، زُهير ، طرفه ، لبيد ابوتمام او د ابوطيب متنبي قصيدو ته چې تاسو وګورئ نو تاسو ته به دا حقيقت په واضح طريقې سره په نظر راشي .د غسې چې يو حقيقي عاشق كله الله راضي كوي نو هغه د ټولو نه اول په ژبه باندې د كلمه شهادت اقرار كوي او د الله تعالى عظمت او شان بيانوي چې د هغې طرف ته په يو حديث كې داسې اشاره شوې ده : **بني الاسلام على خمس شهادة ان لا اله الا الله و ان محمدًا رسول الله و اقام الصلاة و ايتاء الزكوة و صوم رمضان و حج البيت** .

(۲) چې كله مجازي عاشق د قصيدو په ويلو سره خپل محبوب حاصل نه كړي نو په دويمه مرحله كې هغه د محبوب مخكې عاجزي شروع كړي ، دده په تعظيم كې كله ودريږي او كله د هغه مخكې ټيټيږي ، د ادب او تعظيم او عاجزئ او تواضع دغه ټول صورتونه يو ښكاره حقيقت دى چې هر چا ته معلوم دى . شريعت مطهره د حقيقي عاشق د پاره د محبوب د حاصلولو او د هغه د راضي كولو د پاره په دويمه مرحله كې مونځ كيښودى دى چې په هغې كې د الله تعالى د راضي كولو د پاره حقيقي عاشق د ټولو نه مخكې دواړه لاسونه تر غوږونو پورې اوچت كړي او د تسليم او د رضا مظاهره كوي ، او لاس تړلى د تعظيم د پاره ولاړ وي بيا دير د عاجزئ په حالت كې ركوع كوي او بيا د محبوب په قدمونو كې په سجده پريوځي او د جسم د ټولو نه قابل احترام اعضاء تندى او پوزه په ځمكه مږي د محبوب په حاصلولو كې

دا د عاجزئ آخري حد دی .(۳) او چې کله مجازي عاشق د قصيدې په ويلو او تعظيم او ادب په دواړو مرحلو کې د محبوب په حاصليدو کې کامياب نه شي نو بيا د مال په لګولو باندې شروع وکړي د معشوقې په حاصليدو عاشق کله هم شومتيا او کنجوسي نه کوي په دې ميدان کې هر عاشق سخي ګرځي لهذا لکونه روپۍ خرچ کول په دې کې ده ته ډير آسان وي تر څو معشوقه لاس ته ورشي .شريعت مقدسه کې د محبوب د حاصلولو د پاره په دې مرحله کې حقيقي عاشق د پاره زکوة ورکولو قانون مقرر کړی شوی دی ، عاشق حقيقي د محبوب حاصلولو د پاره او دده د رضا کولو د پاره خپل مال کې معين او مقرره حصه مال د الله په لار کې خرچ کوي تر څو چې محبوب راضي شي .(۴) عاشق مجازي چې کله دې دريو مرحلو کې کامياب نه شي بيا خوراک څکل بند کړي او د لوږې هړتال (احتجاج) کوي دغه رنګ د محبوب زړه نرم شي او د هغه لاس د عاشق په لاس کې راشي بهر حال ټول عاشقان دغه رنګ مجاهده اومظاهره کوي ځينې په کې مړه شي او ځينې خپل مقصد ته ورسيږي. شريعت مطهره د عاشق حقيقي د پاره په دې کې روژه ايښې ده که ګرمي وي يا يخني د رمضان روژې به پوره کوي چې د هغه محبوب خوشحاله شي او عاشق حقيقي کامياب شي .(۵) کله چې مجازي عاشق په دې څلور مراحلو کې خپل معشوق حاصل نه کړي ، بيا هغه کور ، بچي ، ښار آبادي پريږدي بې سامانه بغير کپړو او خپې ابله او سر تور دشت بيابان او ځنګل صحرا طرف ته ځي چې د معشوقې نښې نښانې وګوري او خپل نزدي خپلوانو نه جدا شي چې د معشوقې په تلاش کې کامياب شي ځکه چې د مجنون او ليلى قصې او د هغوي د يو بل په کوڅو او صحراګانو کې د ليونو په شان ګرځيدل پټ نه دی .يو ځل مجنون يو سپی په خپل څادر کينولو او خلکو دې ملامت کوو نو مجنون وويل چې ما مه ملامته کوئ دا سپی ما د خپلې معشوقې په کوڅه کې ليدلی وو ځکه مې په خپل څادر باندې کينولو چې دده خپې زما په څادر راشي ددې منظر نقشه په اشعارو کې داسې ده :

رأى المجنون في البيداء كلب ❁ فجر اليه للاحسان ذيلا

فلاموه على ما كان منه ❁ فقالوا لم منحت الكلب نيلا

فقال دعوا الملامة ان عيني ❁ رأته مرة في حي ليلى

شريعت مطهره د حقيقي عاشق د پاره په دې مرحله کې حج د بيت الله فريضه ايښودې ده د محبوب حاصلولو او راضي کولو د پاره حقيقي عاشق کفن واچوي او خپې ابله او سر توره ښځه ، بچي او کلي خپلوان کور هر څه پريږدي او د الله کور طرف ته ځي بيا منى ته ځي بيا عرفات ته لاړ شي ژاړي د مزدلفې نه راکوز شي په چغو ژاړي بيا منى کې کاڼي ولي بيا د محبوب د کور نه ګير چاپيره طوافونه کوي په آخر کې محبوب راضي شي او د ګناهونو نه پاک شي او وطن ته واپس راشي . بره حديث کې کوم روايت چې ما نقل کړې دی په هغې کې د ارکان خمسه ترتيب داسې ذکر دی او چې په کوم انداز سره ما د ترتيب

وضاحت كړې دى ددې طرف ته فتح الملهم كې شيخ الاسلام علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللّٰهُ اجمالي اشاره كړې ده . ( فتح الملهم ).
ما ددې متعلق د خپل استاذ حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللّٰهُ نه ددې تشريح اجمال ويلى دى دا تشريح او تفصيل به د كتاب الحج په شروع كې بيانوم خو د زندګۍ پته نه لګي نو ځكه دا فائده ما دلته وليكله ، او كه الله تعالى موقع راكړه نو هلته به هم اشاره وكړم.

**د صلوة لغوي او اصطلاحي تحقيق** :د صلوة اصطلاحي تعريف علماو داسې ذكر كړې دى : **هي اركان معهودة و افعال مخصوصة في اوقات مخصوصة بكيفية مخصوصة** . يعنې مخصوص وخت كې په مخصوص طريقې سره مخصوص افعال اداء كول مونځ دى. **صلوة** منقول شرعي دى يعنې شريعت دې ته دا حيثيت او تعارف وركړى دى په دې كې د چا هم اختلاف نشته .خو په دې كې د هر چا اختلاف دى چې صلوة چې منقول شرعي دى ددې منقول عنه څه څيز دى يعنې داد كوم څيزنه منقول شوې راغلې دې اوددې ماده اشتقاق څه ده توجه ورته وكړئ:(۱) د اكثرو علماو خيال دادى چې **صلوة** په لغت كې د دعاء په معنى كې دى بيا دا مخصوص عبادت ته وويلى شو ( يعنې بيا ددې اطلاق په عبادت باندې وشو )ځكه چې په دې كې هم دعاء ده ( **كما في قوله عليه السلام : اذا عيحا احدكم فليجب فأن كان مفطرا فليطعم و ان كان صائما فليصل ، ابوداؤد ۱/۳۳۴**). (۲) صاحب قاموس ليكلي دي : صلوة په لغت كې : دعاء ، رحمت ، او استغفار په معنى دى .(۳) بعضې علماو ليكلي دي ، صلوة په لغت كې **تحريك الصلوين** ته ويلى شي او مونځ كوونكي هم كوناټو ته حركت وركوي .(۴) بعضې علماء وايي چې صلوة د **صلى الفرس** نه ماخوذ دى ځكه چې د آسونو په منډه كې چې كوم آس مخكې شي هغې ته مجلى ويلي شي او د هغې د كوناټو سره چې متصل كوم آس دويم وي هغې ته مصلي ويلي شي ځكه چې د هغې سر د مخكني آس د كوناټو سره برابر دى دغه رنګ مونځ كوونكي هم چې په جمعې سره مونځ كوي نو د يو بل نه وروستو ولاړ وي .بعضې علماو ليكلي دي : **صلى يصلى** سمع د باب نه هم دى او د باب تفعيل نه هم دى چې يو څيز لره په اور كې اچولو او سوزولو ته ويلى شي كله چې كونتي ( امـــا ) په اور كې د نيغولو د پاره واچوي نو وايي : **صليت العصا في النار** ، په دې اعتبار سره مونځ ته ځكه صلوة ويلى شي چې مونځ كوونكى نيغ شي او ګناه يې وسوزي او ختمه شي .په ټولو معانو كې ډيره واضحه او راجحه معنى داده:صلوة په اصل كې د دعاء په معنى كې ده بيا اركان مخصوصه طرف ته منتقل شو. (الكاشف عن حقائق السنن ۲/۱۷۱، و في عمدة القاري ۲/۲۶۵).

**د مونځ فرضيت**: د ټولو نه مخکې د تهجد و مونځ فرض شوی دی بيا د تهجد حکم منسوخ شو او د سحر او ماښکر مونځ فرض شو لکه څنګه چې په قرآن کريم کې ورته اشاره شوې ده: ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ﴾ (پاره ۲۴) (شرح النقاية ۱/۱۰۸).
بيا د هجرت نه دوه کاله مخکې د معراج په شپه پنځه مونځونه فرض شو اوس هم فرض دي دډې نه انکار کوونکی کافر دی ددې خصوصيت دادی چې دا مونځونه د اسمانونو د بره په عرش باندې فرض شوې دي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ژبه مبارکه باندې د امت د پاره آخري وصيت د مونځ متعلق داسې وو: **الصلاة و ماملکت ايمانکم**. د مونځ پابندي کوئ او خکته خلکو باندې ظلم مه کوئ. بيا د هجرت نه پس په دويم کال زکوة او روژه فرض شول او په پنځم (۵هـ) يا په (۶هـ) يا (۹هـ) کال د هجرت باندې حج فرض شو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

## نيک عملونو سره واړه ګناهونه معاف کيږي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې څوک د |
| «الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ وَ الْجُمُعَةُ إِلَى الْجُمُعَةِ وَ رَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ |
| غټو ګناهونو نه بچ شي نو پنځه مونځونه او د جمعې نه د جمعې پورې او د رمضان نه د رمضان پورې |
| مُكَفِّرَاتٌ لِمَا بَيْنَهُنَّ إِذَا اجْتُنِبَتِ الْكَبَائِرِ». (رواه مسلم) (۱) |
| دده هغه ګناهونه ختموي کوم چې دډې په مينځ کې شوې دي. |

**توضيح**: **الصلوة الخمس**: دا کلمه د خپل معطوفاتو سره مبتدا واقع شوې ده او "**مکفرات**" کلمه دډې خبر دی، "**مکفرات**" د تکفير نه دی د کفارې په معنی کې دی مراد د ګناهونو کفاره او معاف کول او ختمول دي، د حديث مطلب دادی چې د پنځه مونځونو په مينځ کې چې کوم واړه ګناهونه کيږي نو هغه په دې مونځونو سره ختميږي دغه رنګې د يوې جمعې نه د دويمې جمعې پورې کوم واړه ګناهونه کيږي دغه مونځونو کولو سره ختميږي او معاف کيږي همدا رنګې د رمضان نه بل رمضان پورې د ټول کال ګناهونه ددې روژو په نيولو سره معاف کيږي، دا بحث مخکې تير شوی چې نيک اعمال کولو سره بالاتفاق

---

(۱) أخرجه مسلم ۱ ۲۰۹ رقم الحديث ۱۶-۲۳۳، والترمذي ۱/۴۱۸ رقم الحديث ۲۱۸، وأخرجه أحمد في مسنده ۳۵۹/۲.

سره واړه ګناهونه معاف كيږي . د قرآن كريم د آيت : ﴿إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ (هود : ۱۱۴) نه همدا صغائر مراد اخستلې شوي دي اګرچې بعضې علماو د لوي ګناهونو قول كړى.ليكن د جمهورو علماو په نزد د لويو ګناهونو د معافۍ د پاره توبه ضروري ده ، همدارنګې د حقوق العباد دمعافي د پاره ضروري دي چې صاحب حق نه د معافۍ غوښتنه وشي ، خلاصه داده چې نيک عملونو سره واړه ګناهونه ختميږي او معاف كيږي او كه توبه يې وكړه نو غټ ګناهونه هم ختميږي او معاف كيږي او كه توبه يې ونه كړه نو په كبائرو كې تخفيف او سپک والى به ضرور راځي .

**لما بينهن** : ددې جملې يو مطلب دادى چې د يوې ورځې پنځه مونځونو نه واخله تر دويمې ورځې پنځه مونځونوپورې ددې دواړوپه مينځ كې چې كوم واړه ګناهونه دي هغه معاف كيږي.دويم مطلب يې دادى چې دهردويم مونځ په مينځ كې چې كومه ګناه وشي دغه مونځونودوجې هغه معاف كيږي. لمعات كې شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللَّهُ ليكي : دلته دادويم مطلب مراددى او احاديث په همدې دلالت كوي. (اشعة اللمعات ۲۹۸-۲۹۹).

**سوال** : چې كله يو مونځ سره يا روژې سره او د جمعې مونځ نه دويم مونځ پورې ټول واړه ګناهونه معاف كيږي نو بيا اودس كولو سره او جومات طرف ته تللو سره او دويم مونځ سره به څه معاف كيږي ؟ ځكه چې واړه ګناهونه خو ټول په ټوله مخكې معاف شو .

**جواب** : ددې جواب دادى چې نورو نيكو سره ددغه كس درجې بلندې شي او نورې نيكيانې دده په اعمال نامه كې جمع شي ، شيخ په لمعات كې ليكلي : چې د صغائرو د ورانيدو دغه صفت په هره نيكۍ كې موجود دى او كه يو نيكي ګناهونه ختم كړل نو ډيره خه ده او كه ټولو نيكو په جمع سره ختم كړل نو نور على نور به وي . (اشعة اللمعات ۲۹۹).

**آيا د صغائرو د معاف كيدو د پاره د كبائرو نه ځان بچ كول ضروري دي ؟اذا اجتنبت الكبائر** :دا اجتناب نه دمجهول صيغه ده اوس حديث كې دابحث دى چې آيادصغائرو د معافۍ د پاره اجتناب عن الكبائر شرط ضروري دى او كه شرط نه دى ؟په دې كې دا تفصيل دى چې دلته دري صورتونه دي: **اول صورت** : دادى كه چيرته د يو كس ګناهونه صرف صغائر وي او د غټو نه پاک وي په دې اتفاق دى چې دده ټول ګناهونه به معاف شي.**دويم صورت**: چې د يو كس ټول ګناهونه كبائر وي نو اتفاق دى چې د توبې نه بغير به دده هيڅ ګناه معاف نه شي توبې سره به معاف كيږي كه نه نو معاف كيږي إلا ما شاء الله .**دريم صورت** : د يو كس صغائر او كبائر دواړه ګناهونه وي.نو په دې كې د معتزلو مسلک دادى چې د كبائرو په موجودګۍ كې صغائر نه معاف كيږي او د كبائرو د معاف كيدو خو سوال نه پيدا كيږي هغوى وايي چې د صغائرو معاف كيدودپاره اجتناب عن الكبائر شرط ګرځولى شوى دى هغوى دمذكوره حديث نه

استدلال کوي. مګرجمهوراهل السنة و الجماعة فرمايي : چې د صغائرو د معافی د پاره اجتناب عن الکبائر شرط نه دی ، د کبائرو په موجودګی کې هم نیکو اعمالو سره صغائر معاف کیږي ځکه اکثر احادیثو کې مطلقا د کوم شرط لګولو نه بغیر صغائر د معاف کیدو ذکر راغلي دي (**کذا قال النووي**).

باقي معتزلو د مذکوره احادیثو نه چې کوم استدلال کړی دی هغه استدلال **صحیح** نه دی ځکه چې **اذا اجتنبت الکبائر** جمله د استثناء په ځای کې واقع ده یا ماقبل د پاره شرط نه دی نو مطلب دادی چې نیک اعمالو سره صغائر معاف کیږي او کبائر نه معاف کیږي.

## د پنځه مونځونو مثال د پاک نهر دی :

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی فرمايي چې نبي علیه الصلاة والسلام (صحابه کرامو ته مخاطب شو) |
| " أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهَرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ فِيهِ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسًا |
| او وي فرمایل تاسو ووایئ چې د چا د دروازې مخې ته نهر روان وي او هغه روزانه په هغې کې پنځه ځله |
| هَلْ يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ ؟ قَالُوْا : لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ ؟. |
| لامبي نو آیا هغه په بدن به خیرې باقي پاتي شي؟صحابه کرامو عرض وکړو چې نه بالکل به خیرې پاتې |
| قَالَ : فَذَلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ |
| نه شي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: تاسو پوهه شئ! چې دا مثال د پنځه مونځونو دی الله تعالی ټول |
| يَمْحُو اللّٰهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا " (متفق علیه). (۱) |
| (صغائر) ګناهونه د دغې مونځونو په برکت داسې ختموي لکه څنګه چې او به خیرې لرې کوي. |

**توضیح** : **ارأیتم** : اي اخبروني یعني ما ته ووایه . **لو ان نهرا اى لو ثبت ان نهرا** یعنې فرض کړئ که چیرې د چا دروازې سره د صفا اوبو نهر وي ، **هل یبقى** دا جمله په محل د استفهام کې ده یعنې د استفهام نه مقصود همدغه جمله ده . درن بدن کې خیرې میرې ته ویلې شي ، ددې جمع ادران ده ،

(۱) أخرجه البخاري ۱۱/۲،رقم الحدیث ۵۲۸، ومسلم ۳۶۲/۱ رقم الحدیث ۲۸۳ ۶۶۷ ، والنسائي ۲۳۰/۱، رقم الحدیث: ۴۶۲ ، والترمذي ۱۳۹/۵ رقم الحدیث ۲۸۶۸

فذلک دلته د فآء کلمه د شرط محذوف په جواب کې واقع ده عبارت داسې دی : **اذا اقررتم ذلک و صح عندکم فهو مثل الصلاة** (کذا قال الطيبي) (الکاشف عن حقآئق السنن ۲/۱۷۳).

دې حديث کې په بدن باندې ښکاره خيري سره دګناه تشبيه ورکړی شوې ده او داوبو تشبيه دمونځ سره ورکړی شوې ده چې څنګه ظاهري خيری ميری د اوبو سره ختميږي دغه رنګ د باطني ګناهونو خيری د مونځ سره ختميږي .

**سوال:** دلته په ظاهره داسوال کيږي چې په اوبو سره هرقسم ګندګي لرې کيږي هغه خفيفه وي او که غليظه حالانکه مونځ سره صرف صغيره ګناه لرې کيږي او کبيره نه لرې کيږي .

**جواب** : دلته تشبيه په ټولو اجزاو کې نه ده بلکې بعضې اجزاو کې ده او هغه ګناه صغيره ده څنګه چې خفيفه ګندګي صرف په اوبو سره لرې کيږي د مړلو ضرورت نشته دی همدا رنګې په مونځونو سره صرف صغائر معاف کيږي د توبې ضرورت نشته دی .

## په مونځ سره ګناه معاف کيږي :

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنِ اِبْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : إِنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنْ اِمْرَأَةٍ قُبْلَةً |
| د حضرت ابن مسعود رَضِيَاللهُعَنهُ نه روايت دی فرمايي چې : يو کس د يوې (پردي) ښځې نه چپه واخيسته |
| فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ |
| بيا (د احساس شرمندګۍ سره) د نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو قصه يې ورته ذکر کړه |
| (پيغمبر عَلَيهِالصَّلَاةُوَالسَّلَامُ جواب ورنه کړو ، د وحې په انتظار وو په دې مينځ کې دغه کس مونځ وکړو) |
| فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى : ﴿ وَ أَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَ زُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ |
| نو الله تعالى دا آيت نازل کړو (ترجمه) مونځ دورځې په شروع او آخرکې او دشپې په څه حصه کې کوئ څکه |
| الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ﴾ فَقَالَ الرَّجُلُ : يَا رَسُولَ اللهِ أَلِي هٰذَا ؟ |
| چې نيکي (يعنې مونځ) ګناهونه ختموي، پس هغه کس وويل اې دالله رسوله ! آيا دا حکم زما دپاره دی؟ |
| قَالَ : « لِجَمِيعِ أُمَّتِي كُلِّهِمْ » . وَ فِي رِوَايَةٍ : « لِمَنْ |
| نبي عَلَيهِالسَّلَامُ وفرمايل: د ټول امت د پاره دی ، او په يو بل روايت کې ذکر دي : چې د هغه چا د پاره دی چا |

| |
|---|
| عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِي » . (متفق عليه). (١) |
| چې عمل وکړو په دې باندې زما د امت نه . |

**توضیح** : ان رجلاً: شارحین لیکي چې دده نوم ابوالیسر دی وایي چې دده خواته دانصارویوه ښځه د کهجورو اخستو دپاره راغله دغه کس ډیر خوشحاله شو ورته یې وویل چې زما سره په کور کې ددې نه ښائسته کهجوري دي هغه ووینه چې کله دغه ښځه کورته راغله دغې ښځې ته غاړه ورکړه او چپه یې ترې واخیسته ښځې ورته وویل دالله نه وویرېږه چې دا یې واوریدل نو په خپل کار پښیمانه شو بهر راووتو . ابوبکرصدیق رضي الله عنه مخامخ را روان ؤ او خپل غلط حرکت تذکره یې ورته وکړه، ابوبکرصدیق رضي الله عنه ورته وفرمایل : توبه اوباسه بیا د پاره داسې ګناه مه کوه ، دا کس ددې نه پس نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغی او خپله قصه یې ذکر کړه .(الکاشف عن حقائق السنن ۲/۱۷۳، اشعة اللمعات ۲۹۹).

**طرفي النهار** : د ورځې د دوو طرفونو نه مراد د یو قول مطابق سحر او ماسپښین اول طرف دی او مازیګر او ماښام دویم طرف دی او **زلفا من اللیل** نه ماسخوتن مراد دی ددویم قول مطابق سحریو طرف دی او ماسپښین او مازیګردویم طرف دی او **زلفا من اللیل** نه مراد ماښام او ماسخوتن دی(**الکاشف ۱۷۳/۲**).

**زلفا** داد **زلفة** جمع ده په معنی د نزدې شره مراد ترې وختونه او ګینټې دي ځکه چې ګینټې هم یو بل ته نزدې وي . په دې حدیث کې **سیئات** او ددې نه مخکې حدیث کې **خطایا** چې کوم الفاظ راغلي دي ددې نه مراد صغیره ګناهونه دي همدارنګې ددې حدیث نه معلومه شوه چې د یوې ښځې نه صرف چپه اخیستل اګر چې ځای د فتنې دی مګر په کبائرو کې داخل نه دی ، خو که چیرته یې زنا وکړه نو بیا ټول چپې اخیستل او کتل او اوریدل کبائرو کې شمارل کیږي .

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی فرمایي چې یو کس د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو |
| فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا |
| او عرض یې وکړو یا رسول الله! ما نه داسې کار شوی دی چې په هغې حد واجب دی ، پس ته په ما باندې |

(١) أخرجه البخاري ٨/٢، رقم الحديث ٥٢٦، ومسلم ٢١١٥/٤ رقم الحديث ٣٩ ٢٧٦٣، والترمذي ٢٧٢/٥ رقم الحديث ٣١١٥ .

| |
|---|
| فَأَقِمْهُ عَلَيَّ قَالَ وَ لَمْ يَسْأَلْهُ عَنْهُ قَالَ |
| حد جاري کړه دراوي بيان دی وايي: پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دده نه د حد په باره کې تپوس ونه کړو فرمايي |
| وَ حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ |
| چې د مونځ وخت راغي نو دغه کس د پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره مونځ وکړو چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ نه |
| قَامَ الرَّجُلُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنِّي أَصَبْتُ |
| فارغ شو هغه کس اودريدو بيا يې عرض وکړو: يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! ما نه داسې کار شوی دی چې |
| حَدًّا فَأَقِمْ فِيَّ كِتَابَ اللهِ قَالَ |
| په هغې حد واجبيږي پس زما په باره کې د الله تعالى حکم نافذ کړه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل |
| أَلَيْسَ قَدْ صَلَّيْتَ مَعَنَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَإِنَّ اللهَ قَدْ غَفَرَ لَكَ ذَنْبَكَ |
| چې آيا تا زما سره مونځ ونه کړو؟ هغه ووېيل ولې نه، پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: الله تعالى ستا خطاء معاف |
| أَوْ قَالَ حَدَّكَ" (متفق عليه).(۱) |
| کړه يا يې داسې وفرمايل: ستا حد وبخښلى شو. |

**توضيح**: **اصبت حدا اى فعلت شيئاً يوجب الحد**: يعني ما داسې لويه گناه وکړه کومه چې حد شرعي واجبوي. (الكاشف ۲/۱۷۴).

**سوال**: دلته يو اشکال دی چې هغه کس په خپله اقرار وکړو چې ما د لويې گناه په شان د غلا او شرب خمر و غيره ارتکاب کړی او پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ ادا کولو سره د هغه د بخښنې اعلان وکړو، چې دې نه معلومه شوه چې مونځ وغيره نيک عملونو سره صغائرو نه علاوه کبائر هم معاف کيږي حالانکه معامله داسې نه ده.

**اول جواب**: چې د هغه کس گناه کبيره نه وه ليکن د هغه گمان دا وو چې زما گناه ډيره لويه ده د الله تعالى نه ويريدونکی کس وړه گناه هم لويه گناه گڼي. **دويم جواب**: دادی چې دې کس تعزير باندې د حد اطلاق وکړو دده گناه باعث د تعزير وه کومه چې وړه وه. **دريم جواب**: دادی چې دا کس پښيمانه شو او په اخلاص سره يې توبه وېستله د کوم سره چې دده لويه گناه معاف شوه په مونځ کولو سره صرف ده ته زيری ورکړی شو بهر حال احتمالات ډير دي لهذا اوس اشکال باقي پاتې نه شو. (الكاشف ۲/۱۷۴).

**سوال** : اوس دلته دويم اشكال دا دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغه كس د ګناه نوعيت معلومولو په باره كې تحقيق او تفتيش ولې نه فرمايلو كيدى شي چې د دغه كس ګناه لويه وه .

**جواب** :پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د وحي او الهام يا د كشف په ذريعه معلومه شوې وي چې د دغه كس ګناه صغيره ده كبيره نه ده كه چيرې واقعي دغه كس د حد مرتكب شوى وو نو د حد مقدمه(كيس) د حاكم عدالت ته د رسيدلو نه پس حد نه نافذولو نه بغير د يو حاكم كار هم نه دى چې معاف يې كړي .

**او حداً** :راوي ته شک دى چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ حداً لفظ فرمايلي وو يا ذنباً دې نه د محدثينو د احتياط اندازه كيږي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د رواياتو په نقل كولو كې څومره قدرې اهتمام كوي .

## د ټولو نه ښه عمل كوم يو دى ؟:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | | | | | | | |
| دحضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه تپوس وكړو | | | | | | | |
| أَيُّ | الْأَعْمَالِ | أَحَبُّ | إِلَى | اللهِ | قَالَ : | « الصَّلَاةُ | لِوَقْتِهَا » |
| چې الله تعالى ته كوم عمل ډير خوښ دى نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : په خپل وخت مونځ كول | | | | | | | |
| قُلْتُ | ثُمَّ | أَيُّ | قَالَ : | | | | |
| (يعنې په مكروه وخت كې مونځ نه كول) ما ووېل بيا كوم عمل غوره دى؟پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : | | | | | | | |
| « بِرُّ | الْوَالِدَيْنِ » | قُلْتُ : | ثُمَّ | أَيُّ | قَالَ : | | |
| مور او پلار سره نيكي كول ، ما عرض وكړو : بيا كوم عمل غوره دى؟ پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل : | | | | | | | |
| « اَلْجِهَادُ | فِيْ | سَبِيْلِ | اللهِ » | قَالَ | حَدَّثَنِي | بِهِنَّ | |
| د الله په لار كې جهاد كول ، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي : چې ما ته دا درې خبرې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ | | | | | | | |
| وَ لَوْ | اِسْتَزَدْتُهُ | لَزَادَنِيْ ( متفق عليه) . (١) | | | | | |
| فرمايلي ،كه ما نور تپوس نه هم كولى نو پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به د دې نه هم ډير بيان فرمايلى. | | | | | | | |

**توضيح** : **اى الاعمال احب الى الله** : يعنې عملونو كې افضل عمل كوم يو دى .دلته مشهور سوال دى د دې تذكره علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ كړې ده او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ هم كړې ده(مرقات ٢/٢٧١، الكاشف

(١) أخرجه البخاري ٩/٢،رقم الحديث ٥٢٧، ومسلم ٩٠/١ رقم الحديث ١٣٩-٨٥، والنسائي ٢٩٢/١، رقم الحديث:٦١٠ ، والترمذي ٣٢٥/١ رقم الحديث :١٧٣ .

۲/۱۷۵) په توضيحات جلد اول کې ددې تفصيل په يو ځای کې تير شوی دی مګر د ياد ساتلو د وجې ورته اشاره کوم.

**سوال** : سوال دادی ټولونه ښه او اوچت خو يو څيز کيدی شي ليکن احاديثو کې چې پيغمبر ﷺ نه کله هم د ښه عمل تپوس کړی شوی وي نو پيغمبر عليه السلام مختلف عملونه ښه خودلي دي مثلاً زير بحث حديث کې **الصلاة لوقتها** د ټولو نه ښه عمل خودل شوی دی .حضرت ابوذرغفاري رضي الله عنه په حديث کې **ايمان بالله وجهاد في سبيل الله** لره خه عمل ګرځولی دی، په يو حديث کې **اطعام الطعام** ته افضل عمل ويلی شوی دی ، يو حديث کې **ان يسلم المسلمون من يده ولسانه** ته بهتر عمل ويلی شي ، يو حديث کې ذکر الله ته خه عمل ويل شوی دي يو حديث کې **ان افضل الاعمال جهاد لا غلول فيه** ته افضل عمل ويلی شوی دی يو حديث کې **احب الاعمال الى الله ادومها** راغلی دی . د سوال مقصد دادی چې د پيغمبر ﷺ د ژبې مبارکې نه مختلف جوابونه ولې راغلي دي .

**اول جواب** : د حديث شارحين ددې سوال مختلفو وجوهاتو سره جواب ورکړی دی بنيادي طور باندې دا خبره پيژندل ضروري ده چې فضيلت کليه صرف ايمان ته حاصل دی په عملونو کې يو عمل ته هم کلي فضيلت حاصل نه دی . البته افضليت جزئي ضروري دی اعمال په باره کې مختلف جوابات راغلي دي يا خو د سوال کوونکو په اعتبار سره مختلف دی چې په کوم سوال کوونکو کې کومه کمزوري وي د هغې نشاندهي يې فرمايلې ده يعني ستا د پاره ا وستا مناسب خو د ټولو نه غوره عمل هغه عمل دی په کوم کې چې له تا نه سُستي کيږي .**دويم جواب** : دادی چې د زمانې او وخت په اعتبار سره يې يو عمل افضل ګرځولی دی مثلاً جهاد په زمانه کې جهاد افضل او د حج په موسم کې حج وغيره افضل ګرځولی دی اود تکليف په وخت کې تکليف والا ته خوراک ورکول افضل ګرځولې دی.**دريم جواب** : چرته چې هم افضل اسم تفضيل صيغه استعمال کړی شوې ده ددې نه مراد نفس فعل او مطلق فضيلت دی بل عمل باندې اوچتوالی مقصود نه دی . **څلورم جواب** : افضل يو نوع ده ددې يو فرد نه دی بلکې ډير افراد دي لهذا کوم عمل چې يې افضل خودلی دی نو ګويا هغه به ددغې نوع يو فرد وي ، او دا ډير ښه جواب دی .**پنځم جواب** : دادی چې دا افضيلت په مختلفو اعتباراتو سره دی مثلاً ابوبکرصديق رضي الله عنه ارحم امتيه په اعتبارسره افضل دی،عمر فاروق رضي الله عنه **اشدهم في امر الله عمر** په اعتبار سره افضل حضرت عثمان رضي الله عنه د حياء په اعتبار سره او حضرت علي رضي الله عنه د قضاء په اعتبار سره افضل دی يا مثلاً جهاد د اعلاء کلمة الله په اعتبار سره افضل دی او مونځ د ذکر الله په اعتبار سره افضل او غوره دی .او سلام د تواضع په اعتبار سره او صدقه د همدردی او سخاوت په اعتبار سره افضل ده ددې حديث د

نورو احادیثو سره هیڅ تعارض نشته دا جواب هم ښه او عمده دی.

**د ټولو نه ښه عمل کوم یو دی** ؟د ایمان تقابل د یو عمل سره نه شي کیدی لیکن په مونځ او جهاد في سبیل الله کې د فقهاو بحث شته چې کوم افضل دی یوه طبقه د علماء کرامو دې طرف ته تللي دي چې مونځ مطلقاً افضل دی مګر یوه طبقه د علماء کرامو دې طرف ته تللي دي چې جهاد افضل دی یاد ساتئ دا تقابل هغه وخت دی چې کله جهاد فرض کفایه وي لیکن چې کله جهاد فرض عین شي نو بیا د ایمان نه پس د ټولو نه افضل عمل جهاد دی.

**حدثني بهن**: ددې جملې نه ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث د سماع تاکید فرمایي چې دا خبرې ما ته په خپله پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان کړي دي او ما په خپله اوریدلي دي واسطه په کې نشته.

**ولو استزدته**: یعني که د افضلیت خبرې ما نورې معلومولې نو پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام به نور اعمال هم بیان کړې وو لیکن ما نور تپوس ونه کړو چې پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام ته تکلیف او مشقت نه وي.

## د مونځ پریښودل د کفر علامه ده:

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: « بَيْنَ الْعَبْدِ |
| د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمایي چې: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي: په مینځ د ایمان |
| وَ بَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ »[1]. |
| او کفر کې (دیوال غورځول) مونځ پرېښودل دی. |

**توضیح**: **بین العبد**: یعني د ایمان او کفر په مینځ کې پرده او منع والی مونځ دی.

**سوال**: ددې حدیث د ظاهري الفاظو نه اشکال پیدا کیږي هغه داسې چې د ظاهري الفاظو مطلب دادی چې د بنده او کفر په مینځ کې فرق کوونکي څیز پرېښودل د مونځ دي حالانکه د بنده او کفر په مینځ کې فرق کوونکي څیز مونځ کول دي پرېښودل نه دي. **جواب**: علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ وغیره جواب کړی دی په حقیقت کې دا جواب قاضي عیاض مالکي رَحِمَهُ اللهُ ورکړی دی هغه دادی چې د ترک لفظ د حد په معنی واخستلی شي نو مطلب به واضحه شي یعنې د ایمان او کفر په مینځ کې چې کوم حد فاصل دی هغه مونځ دی کوم کس چې ددې حد نه اوړي او مونځ نه کوي نو هغه د کفر په میدان کې داخل شي او کفر ته نږدې شي .قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ دویم جواب دا کوي چې دلته په حدیث کې چې د **بین** کوم لفظ راغلی

---

(۱) أخرجه مسلم ۸۸/۱ رقم الحدیث:۱۳۴-۸۲، والترمذي ۱۱/۵ رقم الحدیث ۲٦۱۸.

دی دا ظرف دی او هر ظرف ځان د پاره یو متعلق غواړي ددې ظرف متعلق محذوف دی چې هغه وصلة لفظ دی ، تقدیر د عبارت داسې دی: **ترک الصلاة وصلة بین العبد والکفر** ،یعنې مونځ پرېښودل سړي کفر ته رسوي په دې دواړو توجیهاتو کې اوله توجیه واضحه ده اګر چې په دې کې تاویل دی . (الکاشف ۲/۱۷۷).

شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې دریمه توجیه بیان کړې ده هغه هم خه ده فرمایي چې : کیدی شي چې په دې حدیث کې "**العبد**" نه مؤمن مراد وي او "**الکفر**" نه کافر مراد وي او معنی دې داسې شي چې د مؤمن او کافر په مینځ کې فرق کوونکي څیز دمونځ پرېښودل دی چاچې مونځ پرېښودلو هغه به کافروي او چاچې مونځ وکړو هغه به مسلمان وي.(اشعة اللمعات ۲۰۱).

**۱۱ ربیع الاول ۱٤۱۰هـ**

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ :

## په بندګانو باندې مونځ کول د الله تعالی حق دی :

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : | | | | | | | | | |
| د حضرت عباده ابن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمایي : چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چا | | | | | | | | | |
| خَمْسُ | صَلَوَاتٍ | افْتَرَضَهُنَّ | اللهُ | تَعَالٰی | | | | | |
| چې دې پنځه مونځونو د پاره کوم چې الله تعالی فرض کړي دی (فرائضو او مستحباتو په ادا کولو سره) | | | | | | | | | |
| مَنْ | أَحْسَنَ | وُضُوْءَهُنَّ | وَ | صَلَّاهُنَّ | لِوَقْتِهِنَّ | وَ | أَتَمَّ | رُكُوْعَهُنَّ | وَ خُشُوْعَهُنَّ |
| په ښه طریقې سره اودس وکړو او په خپل وخت یې وکړل همدارنګې په دې کې یې رکوع او عاجزي وکړه | | | | | | | | | |
| كَانَ | لَهُ | عَلَى | اللهِ | عَهْدٌ | | | | | |
| (یعنې مونځ یې په حضور قلبي سره وکړ) دده د پاره په الله تعالی باندې ذمه (یعنې د الله تعالی وعده) | | | | | | | | | |
| أَنْ | يَغْفِرَ | لَهُ | وَ | مَنْ | لَمْ | يَفْعَلْ | | | |
| داده چې هغه دده (واړه) ګناهونه وبخښي او چا چې داسې ونه کړل (یعنې په دې ذکر شوي طریقې سره | | | | | | | | | |
| فَلَيْسَ | لَهُ | عَلَى | اللهِ | عَهْدٌ | إِنْ | شَاءَ | غَفَرَ | لَهُ | وَ |
| یا یې مطلق مونځ ونه کړ) نو الله تعالی باندې دده ذمه نشته ، که الله وغواړي بخښش به ورته وکړي او | | | | | | | | | |

إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ » .(۱)
که چیرته وغواړي نو عذاب به ورته ورکړي .

**توضیح** : **احسن وضوء هن** : بهتر او ښائسته اودس دادی چې ددې د فرائضو . مستحباتو او سنتو پوره پوره خیال وساتلې شي ، **لوقتهن** دا لام کلمه په معنی د في سره ده یعنې افضل او مستحب وخت کې مونځ ادا کول ، **وخشوعهن** ممکن دی چې دلته د خشوع نه سجده مراد واخستلی شي رکوع او سجده یې ځکه خاص کړي دي چې دا په مونځ کې اهم ارکان دي ( مرقات ۲/۲۷۳ ).

**عهدا** دا دلته د وعدې په معنی کې اخستلی کیږي نو مطلب دا چې الله تعالی د بنده سره د احسان په شکل د مغفرت داسې وعده وکړه چې ددې پوره کول یقیني دي ( مرقات ۲/۲۷۳، الکاشف ۲/۱۷۹ ).
علامه تورپشتي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي : چې د کوم څیز في الحال او في المآل حفاظت او رعایت سره مکمل خیال ساتلو ته هم عهد ویلی شي ددې وجې نه چا سره پخې وعدې کولو ته عهد ویلی شي . شیخ نور هم فرمایي : چې دلته بطور اتساع او تشاکل د بنده طرف ته د عهد نسبت شوی دی،مجمع البحار کې لیکلي دي چې دعهد لفظ کله دوصیت په معنی کې استعمالیږي، احادیثو کې د عهد لفظ ددغه معانو نه یوه معنی کې استعمالیږي ( **کذا في اللمعات** )
شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې لیکي چې په دې حدیث کې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې مونځ پرېښودلو والا کافر نه دی خو د ګناه کبیره کوونکی دی بیا فرمایي چې د مرتکب کبیره په باره کې دا واجب او لازم نه دی چې الله تعالی ده ته سزا ورکړي دا خالص د الله مرضي ده چې ده ته عذاب ورکړي یا یې معاف کړي داد اهل سنت مسلک دی . همدارنګې دا هم پېژندل په کار دي چې د ګناه کبیره مرتکب همیشه دوزخي نه دی بلکې د ګناه مطابق سزا خوړلو نه پس به د جهنم نه وځي د خوارجو او معتزلو په دې کې اختلاف دی .د اهل السنة په نزد الله تعالی باندې د بنده د طرف نه هیڅ هم واجب نه دي که الله تعالی چیرته نیک مؤمن یا مجانین او ماشومانو ته عذاب ورکړي او په جهنم کې یې واچوي یا یو فاسق په ثواب او نعمت کې وساتي ، نو الله تعالی په دې پابند نه دی بهر حال مونځ کول د هر مسلمان ذمه داري ده کومه چې د الله تعالی د طرف نه په دې بنده باندې مقرر ده ، ددې ادا کول لازم دی برابره خبره ده که په دې کې ده ته مزه وي او یا نه .

---

(۱) أخرجه أحمد في مسنده ۳۱۷/۵، وأخرجه أبو داود في السنن ۲۹۵/۱ رقم الحدیث ۴۲۵ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۴۴۹/۱ رقم الحدیث ۱۳۰۱.

## په څلورو اعمالو باندې د جنت زيری :

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| د حضرت ابو امامه رَضِيَاللَّهُعَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې : نبي كريم صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل : ( مسلمانو ! ) |
| « صَلُّوا خَمْسَكُمْ وَ صُومُوا شَهْرَكُمْ وَ أَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ وَ |
| پنځه وخته خپل مونځ كوئ خپله د رمضان د مياشتې روژې نيسئ د خپل مال زكوة وركوئ او د خپل سردار |
| أَطِيعُوا ذَا أَمْرِكُمْ تَدْخُلُوا جَنَّةَ رَبِّكُمْ » . (رَوَاهُ أَحْمدُ وَ التِّرْمِذِيُّ). (۱) |
| (چې كله هغه د خلاف شرع څيزونو حكم نه كوي) تابعداري كوئ د خپل رب په جنت كې به داخل شئ. |

**توضيح : صلوا خمسكم** : يعنې هغه پنځه مونځونه كوئ چې د ورځې او شپې په تاسو فرض دي او چې كوم ستاسو سره خاص دی ، علامه طيبي رَحِمَهُاللَّهُ ليكي چې ددې اعمالو اضافت ددې امت افرادو ته ځكه شوی چې دا اعمال په خپلو طريقو او خصوصياتو سره دې امت سره خاص دي چې ددې وجې نه دا امت د نورو امتونو په مقابله كې په دې اعمالو كې ممتاز ګرځيدلی دی .

**شهركم**: ددې نه د رمضان روژې مراد دي چونكې د رمضان مياشت مشهوره ده نو ځكه تصريح ته ضرورت نشته دی ، زكوة ذكر د روژې نه پس وكړی شو كيدی شي چې دا تاخير د يو راوي د بيان د وجې نه شوی وي ، ملا علي قاري رَحِمَهُاللَّهُ فرمايي : د فرضيت په اعتبار سره زكوة د رمضان فرض كيدو نه پس فرض شوی وو ځكه وروستو ذكر كړی شو او قرآن او حديث كې مونځ سره ځكه يو ځای دی چې مونځ د عبادات بدني جرړه ده او زكوة د عبادات مالي اصل او جرړه ده په دې حديث كې د حج ذكر نشته ، علماء فرمايي : چې ددې حديث بيانيدو په وخت كې حج فرض شوی نه وو . ( مرقات ۲/۲۷۴ ).

**ذا امركم**: ملاعلي قاري رَحِمَهُاللَّهُ فرمايي چې ددې نه خليفه او بادشاه او ددوي وزيران مراد دي يا ددې نه علما مراد دي چې د شريعت په رڼا كې علماء چې كوم حكم نافذوي هغه حكم منئ او كوم حكمران چې د شريعت خلاف حكم صادر كړي هغه مه منئ بلكې د حكمران نافرماني ضروري ده (مرقات ۲/۲۷۵)

**تدخلوا جنة ربكم** : د مخكيني څلورو او امرو جواب دادی يعنې په دخول اولي سره به جنت ته داخل شي.
**سوال** : دلته يو سوال دی چې دخول جنت د پاره اصلي سبب او علت خو د الله تعالى رحمت او فضل دی دلته اعمال د علت او شرط په درجه كې ولې اينبودل شوي دي . **جواب** : د جنت داخليدو د پاره اصل

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲۵۱/۵، وأخرجه الترمذي في السنن ۵۱۶/۲، رقم الحديث ۶۱۶.

علت او سبب د الله تعالی رضا او فضل او کرم دی لیکن جنت د اوچتو درجاتو د حصول د پاره اعمال ضروري دي .علماء ددې اشکال دا جواب هم ورکوي چې د جنت داخلیدو د پاره نیک اعمال اسباب او د سبب په درجه کې دي کوم طرف ته چې نسبت په دې مناسبت سره کیږي .

## ماشوم دې په کوم عمر کې د مونځ پابند وګرځول شي ؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| حضرت شعیب د خپل پلار او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي فرمایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل |
| «مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِينَ وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِينَ |
| چې کله ستاسو اولاد د اوو (۷) کالو شي نو د مونځ حکم ورته وکړئ او چې د لسو کالو شي (نو په مونځ |
| وَ فَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ .[1] |
| پرینبودو باندې ) هغه ووهئ ، او جدا والی راولئ په مینځ ددوي کې د اوده کیدو په ځایونو کې . |
| وَ كَذَا رَوَاهُ فِيْ شرح السنة عَنهُ .( و في المصابيح عن سبرة بن معبد) |
| همدا رنګې شرح السنة کې عمرو نه او په مصابیح کې سبرة بن معبد نه دا روایت نقل کړی شوی دی. |

**توضیح : مروا :** دا دامر صیغه ده ابتداء نه یې همزه حذف کړی شوه چې کلمه سپکه شي .

**اولادکم :** دا کلمه هلکانو او جینکو دواړو ته شامل ده . **بالصلوة :** په مونځ سره ،سره ددې د شرائطو نه یعنې د مونځ شرائطو لحاظ ساتلو باندې هم . **وهم :** دا جمله حالیه ده او هلکان یې په جینکو باندې غالب کړل ځکه یې د مذکر ضمیر راوړی دی ، **سبع سنین :** داوو کالو د خاص کیدو وجه ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ او شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ دا لیکلي ده چې په دې عمر کې سړي کې دننه د قوت او طاقت یو نوی دور شروع کیږي دغه وجه ده چې دویم سبع یعنې څوارلس کالو نه پس د بلوغت وخت شروع کیږي ځکه ماشوم ته د اوو کالو په عمر کې د مونځ عادت کولو حکم شوی دی چې ماشوم د مونځ نه غافله نه شي .
همدا رنګې شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ دا هم وایي : چې لس کاله شمار په لسیزو کې اوله لسیزه ده په دې عمر کې په ماشوم کې یو داسې قوت پیدا کیږي چې بلوغت حدودو ته نزدې وي ددې وجې نه شرعي حکم کې سختي راځي او د حواسو کنټرول کولو د وجې نه هلک او جینۍ لره په دې عمر کې جدا اوده کیدو او د څملاستو نه منع کړی شوې ده او دا حکم چې څنګه د ورور او خور د پاره دی دغه شان دا حکم د نا

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۳۲۱/۱ رقم الحديث ۴۹۵ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲۵۹/۲، رقم الحديث :۴۰۸.

اشنا هلک او د جینئ د پاره هم دی بلکې ددوی د پاره دا حکم بطریق اولی دی.

**واضربوهم**: دې حدیث کې د ماشوم د پاره دوه حکمه دي یو بطور تادیب او دویم د تربیت د پاره چې مونځ پرېښودو سره ماشوم وهلی شي او د تربیت په بناء باندې دده بستره جدا کولی شي، د اول حکم تعلق د حقوق الله سره دی او د دویم حکم تعلق د حقوق العباد او د اصلاح د معاشرې سره دی، همدارنګې په دې حدیث کې د پوره دین تعلیم راغلی دی او په دې کې دا خبره هم راغله چې د دین د هر حکم په خلاف ورزی باندې ماشوم وهئ د افسوس خبره ده چې نن سبا خلک سکول نه ویلو باندې د ښځه کالو ماشوم وهلی شي مګر د مونځ پروا نه کوي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکي: که چیرته دوه سړي یا دوه ښځې سره د جامو یو بل سره داسې اوده شي چې پټ اعضاء په ښکاره کیدو سره یو بل سره نه یو ځای کیږي نو دا جائز دی. (مرقات ۲/۲۷۵).

## په مونځ سره د منافق مال او جان محفوظ کیږي:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «الْعَهْدُ الَّذِي بَيْنَنَا وَ |
| د حضرت بریده نه روایت دی وایي چې: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي: هغه عهد چې په مینځ زما او د |
| بَيْنَهُمُ الصَّلَاةُ فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه [1] |
| منافقینو کې دی هغه مونځ دی لهذا چا چې مونځ پرېښودو هغه کافر شو. |

**توضیح: بیننا و بینهم**: یعنې زمونږ او د منافقینو په مینځ کې د مال او جان د حفاظت چې کومه معاهده شوې ده چې مونږ د هغوي د مال او جان ته تعرض نه شو کولی بنیادي وجه داده چې هغوي په ظاهر کې په صحیح طریقې سره مونځ کوي چې د مسلمانانو سره یې مشابهت پیدا کیږي که چیرته هغوي مونځ پرېښودو چې د ټولو نه افضل ترین عبادت دی نو هغوي او کافر به په ظاهري طور باندې یو شان شي ځکه چې اعتقادي منافق خو د مخکې نه کافر دی مګر د مونځ کولو د وجې نه دده په کفر باندې پرده وه چې مونځ یې پرېښودو نو پرده ترې اوچته شوه. شارحین ددې حدیث د تشریح په پیش نظر د **"فقد کفر"** ترجمه کوي چې اوس هغوي کفر ښکاره کړو (مرقات ۲/۲۷۶).

ددې مضمون تائید ددې حدیث نه هم کیږي چې کله پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ نه د منافقینو د قتل کولو اجازت وغوښتلې شو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل: چې د مونځ کوونکو د قتل کیدو نه زه منع کړی شوی یم.

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ٣١٦/٥، وأخرجه الترمذي في السنن ١٥/٥، رقم الحديث ٢٦٢١، وأخرجه ابن ماجه في سننه ٣٤٢/١ رقم الحديث ١٠٧٩

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث

﴿۱۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی فرمایي چې یو کس نبي کریم ﷺ ته راغلو

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي عَالَجْتُ اِمْرَأَةً فِي أَقْصَى الْمَدِينَةِ وَ إِنِّي أَصَبْتُ مِنْهَا

او عرض یې وکړو یارسول الله ما د مدینې په یو طرف کې د یو زنانه سره غاړه ملاو کړه او ما وکړه د دې سره

مَا دُونَ أَنْ أَمَسَّهَا فَأَنَا هٰذَا فَاقْضِ فِيَّ مَا شِئْتَ.

په غیر د صحبت نه هر څه ، نو زه حاضر یم چې فیصله وکړئ تاسو زما په باره کې چې څه مو خوښه وي

فَقَالَ لَهُ عُمَرُ لَقَدْ سَتَرَكَ اللهُ لَوْ سَتَرْتَ عَلَى نَفْسِكَ.

حضرت عمر رضي الله عنه وویل: الله تعالی ستا د عیبونو پټ والی کړی وو که تا هم غیبت پټ کړی وي (نو ښه

قَالَ وَ لَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَيْهِ شَيْئًا

به وه ) حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ جواب ورنه کړو ( د الله د

فَقَامَ الرَّجُلُ فَانْطَلَقَ فَأَتْبَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

حکم په انتظار کې وو ) بهرحال هغه کس او دریدو او لاړو بیا پیغمبر ﷺ د هغه راغوښتلو د پاره

رَجُلًا فَدَعَاهُ وَ تَلَا عَلَيْهِ هَذِهِ الْآيَةَ : ﴿ وَ أَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ

یو کس ولیږلو چې هغه راولي پیغمبر ﷺ د هغه مخکې دا آیت ولوستو : دواړو څنډو د ورځې په اول او آخر کې

وَ زُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ ﴾ (سورة هود:۱۱۴)

او د شپې په څه حصه کې مونځ کوئ ځکه چې نیکي ګناهونه ختموي او دا نصیحت د نصیحت قبلوونکو

فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ يَا نَبِيَّ اللهِ هٰذَا لَهُ خَاصَّةً

د پاره دی د خلکو نه یو کس غرض وکړو ای د الله رسوله ! دا حکم خاص کړ د دې کس د پاره دی؟ پیغ

قَالَ : « بَلْ لِلنَّاسِ كَافَّةً » رَوَاهُ مُسْلِمٌ (۱)

علیه الصلاة والسلام وفرمایل : نه ، د ټولو خلکو د پاره دی .

**توضيح: عالجت امرأة:** عالج يعالج معالجة د لوبو او چېړ اخيستو نه كنايه ده،شارحين ليكي چې دا هغه كس دى چې دده قصه ددې باب په اولني فصل كې په حديث نمبر ۳ كې تيره شوې ده چې دده نوم ابو اليسر دى ليكن ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وغيره شارحين فرمايي چې دا قصه د يو بل كس ده اوس سوال دا پيدا كيږي كه چيرته داد يو بل كس قصه ده او ځانله قصه ده نو كوم ايت چې د اولني كس متعلق ويلى شوى دى نو دا آيت هم د اولني كس متعلق ويلي شوى دى نو څنګه دا دوه واقعې كيدى شي.

ددې جواب ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ دا وركړى دى چې كيدى شي چې دا آيت مكرر نازل شوى وي ، دويم جواب محققينو دا وركړى دى چې دا ضروري نه ده چې دا آيت مكرر نازل شوى دى او نه په دې حديث كې اشاره شته چې دا آيت دوباره نازل شوى دى بلكې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د مخكې نه نازل شوى آيت ددغه كس واقعه متعلق لوستلى دى او دا هم كيداى شي چې د يو آيت اطلاق په مختلفو واقعاتو وكړى شي.

**فقال رجل من القوم :** ددې جملې نه معلوميږي چې دا دواړه جدا جدا واقعات دي ځكه چې سوال كوونكي يا عمر فاروق رضى الله دى يا حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دى او هلته په اولني قصه كې دهغه حكم او فضيلت دخصوصيت سوال كوونكى هغه كس په خپله وو كوم چې صاحب دواقعې وو.

## په مونځ كولو سره ټول ګناهونه ريژيږي :

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَرَجَ زَمَنَ الشِّتَاءِ وَ الْوَرَقُ |
| دحضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې يو ځل نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتو دخزان په موسم كې چې پاڼې |
| يَتَهَافَتُ فَأَخَذَ بِغُصْنَيْنِ مِنْ شَجَرَةٍ قَالَ |
| غورځيدې نو پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د يوې ونې دوه ښاخونه ونيول ، راوي وايي چې : ( څنګه چې حسب |
| معمول پاڼې د غورځيدو موسم كې يو ښاخ په خوځولو سره پاڼي ډيرې غورځيږي دغه شان چې كله |
| فَجَعَلَ ذَلِكَ الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ قَالَ فَقَالَ : يَا أَبَا ذَرٍّ |
| پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ ښاخونه ونيول نو ) دهغې نه پاڼې وغورځيدې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ابوذره! |
| قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : إِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَيُصَلِّي الصَّلَاةَ |
| ماعرض وكړو اى دالله رسوله! زه حاضريم پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كله مؤمن بنده مونځ كوي |

| |
|---|
| يُرِيْدُ بِهَا وَجْهَ اللهِ فَتَهَافَتْ عَنْهُ ذُنُوْبُهُ كَمَا تَهَافَتَ هٰذَا الْوَرَقُ عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ . رَوَاهُ أَحْمَدُ[1] |
| خاص د الله د رضاد پاره نو د هغه گناهونه داسې غورځيږي لکه څنګه چې د دې ونې نه پاڼې غورځيږي . |

**توضيح** : **زمن الشتاء** : ژمې او د خزان موسم ته شتاء ويلې کيږي ، د بعضې ونو نه علاوه باقي د ټولو ونو پاڼې وچيږي او په دې موسم کې رژيږي او پريوځي د دې منظر تذکره کړې شوې ده او دلته د خزان موسم مراد دی. **يتهافت** : باب **تفاعل** نه **تهافت يتهافت** پرلپسې او مسلسل پريوتو په معنی راځي که چيرته د ونې ښاخونه وخوزولی شي نو بيا خو پاڼې په تيزۍ سره غورځيږي لهذا په دويمه جمله کې چې د **يتهافت** کوم ذکر راغلي هغه همدغې مقصد ښکاره کولو د پاره دی کله چې نبي کريم ﷺ دوه ښاخونه ونيول او حرکت يې ورکړو بيا خو به بې اختياره پاڼې غورځيدلې . **لبيک** : يعنې بار بار ستاسو په خدمت کې حاضر يم .**وجه الله** : مطلب دادی چې مونځ خالص د الله تعالی د پاره کوئ نه د بل څه مقصد د پاره وي او نه د ريا کارئ د پاره وي .

**فتهافت** په اصل کې **فتتهافت** دی او **ذنوبه** د دې فاعل دی د دغه ګناهونو نه هم د عام قاعدې مطابق صغائر مراد دي اګر چې احاديثو کې الفاظ مطلق راغلي دي کوم چې کبائرو ته هم شامل دی.

## د خاص قسم دوه رکعتونو سره ټول ګناهونه معاف کيږي :

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ زيد بن خَالِدِ الْجُهَنِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « مَنْ صَلَّى |
| دحضرت زيد بن خالد الجهني رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چا چې وکړو دوه |
| سَجْدَتَيْنِ لَا يَسْهُوْ فِيْهِمَا |
| رکعته مونځ (يعنې د غفلت په صورت کې نه بلکې د زړه حاضريدو سره) چې په هغې کې يې هيڅ غلطي |
| غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ » (رَوَاهُ أَحْمَدُ). (۲) |
| ونه کړه نو الله تعالی به د ده مخکني ټول ګناهونه معاف کړي . |

**توضيح** : **سجدتين** : د دې نه دوه رکعته مونځ مراد دی او ويل د سجدې او د رکوع او مراد ترې مونځ اخيستل په قرآن کريم او حديث کې بار بار راغلي دي .

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۷۹/۵.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۱۹٤/۵.

**لا یسهو فیهما** : یعني په دې دوو رکعتونو کې مونځ کوونکی د مونځ نه غافل نه وي ، علامه طیبي رَحِمَهُ الله فرمایي : چې مونځ ګذار په حاضر دماغۍ او حضور قلبي سره مونځ کوي یا داسې وګڼړي چې داسې عبادت کوي ګویا چې الله تعالی دا ویني . (الکاشف ۲/۱۸۳)

**غفر الله له** : یعني الله تعالی دده ټول مخکښي صغائر ګناهونه معاف کوي ، ملا علي قاري رَحِمَهُ الله فرمایي : چې علماو ذنوب په صغائرو سره یو ځای یا مقید کړي دي اګر چې د حدیث الفاظ صغائر او کبائرو دواړو ته شامل دي .(مرقات ۲/۲۷۹).

دوو رکعتو مونځ کول خو آسان دي مګر دې دوو رکعتو دپاره چې کوم شرط دی چې په زړه کې د الله تعالی نه علاوه بل خیال بالکل رانه شي دا آسان نه دی وایي :دوه رکعته مونځ په اصلي حالت سره کولو دپاره شاه اسماعیل رَحِمَهُ الله دوه سوه رکعته مونځ کړی ؤ لیکن دا کیفیت او حالت پوره نه شو بیا سید احمد شهید رَحِمَهُ الله چې د ځان سره اودرولو دوه رکعته مونځ یې ورته وښودو نو په دغه کیفیت باندې مونځ وشو .

## مونځ نه کولو والا به فرعون او هامان سره وي :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿١٤﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو بْنِ الْعَاصِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : أَنَّهُ | | | | |
| عبد الله ابن عمرو بن العاص د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې : یوه ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
| ذَكَرَ | الصَّلَاةَ | يَوْمًا | فَقَالَ : | |
| د مونځ ذکر وکړو (یعني د مونځ فضیلت او د اهمیت بیانولو اراده یې وکړه) نو پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل | | | | |
| « مَنْ | حَافَظَ | عَلَيْهَا | كَانَتْ | لَهُ |
| چې کوم کس په مونځ باندې محافظت کوي (یعني پابندۍ سره مونځ کوي ) نو ده د پاره دا مونځ د ایمان | | | | |
| نُوْرًا | وَ بُرْهَانًا | وَ نَجَاةً | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |
| رڼا ( د زیاتوالي سبب ) او ( د ایمان د کمال وضاحت ) دلیل به وي او د قیامت په ورځ به د نجات ذریعه | | | | |
| وَ مَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا | لَمْ يَكُنْ | لَهُ | نُوْرًا | وَلَا برهَانًا |
| وي او چې کوم کس د مونځ حفاظت نه کوي نو دهغه دپاره به نه د ایمان رڼا وي او نه ( د کمال ایمان ) دلیل | | | | |
| وَلَا نَجَاةً وَ كَانَ | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | مَعَ قَارُوْنَ | وَ فِرْعَوْنَ | وَ هَامَانَ |
| او نه (د قیامت په ورځ) به د مغفرت ذریعه وي بلکې داسې کس به د قیامت په ورځ د فرعون او هامان سره | | | | |

وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ » رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ. [1]

او ابي بن خلف سره (په عذاب کې مبتلا) وي.

**توضيح**: ذکر الصلاة: يعنې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ فضيلت او ددې شرافت بيان کړو.

**من حافظ عليها**: يعنې په دوام سره يې مونځ وکړو، ددې فرائض، ارکان او ددې واجبات او سنن او مستحبات او ددې اوقاتو يې پوره پوره خيال وساتلو. **نورا**: يعنې په ميدان حشر کې به دا مونځ د هغه مونځ گذار د پاره په کار راځي. **وبرهانا**: يعنې دده په ايمان باندې به واضح او ښکاره دليل وګرځي.

**قارون**: حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې د يو تباه حال او بد بخت کس نوم دی کوم چې په ځمکه کې ننيستلې شوی وو. **فرعون**: ديو داسې لعنتي کس نوم دی چې دخدائي دعوی يې کړې وه بيا په بحر قلزم کې تباه او غرق شو. **هامان**: داد هغه شيطان نوم دی چې دفرعون وزير او مشير ؤ او د فرعون سره غرق شو

**ابي بن خلف**: دې بدبخت کس پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته په مکه کې ډير تکليف ورکړی وو او بيا د کفارو سره د جنګ د پاره مدينې منورې ته راغلې وو او په احد کې يې د پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ شهيد کولو د پاره مخکې شوې وو او پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دغه کس په نيزې ووهلو او مردار يې کړو، کوم چې په انسانيت کې بدبخت انسان ګرځولې شوې وو. په دې حديث مبارک کې د مونځ پابندي نه کولو والا او سستي کولو د پاره دومره سخت عذاب خودل شوی دی چې دا ذکر شوي کسان په دوزخ کې ممتاز دي نو ددې سره به دا کسان هم په دوزخ کې وي او چې کوم مسلمان بالکل مونځ نه کوي نو ددوي انجام ددغه کسانو نه به هم بدتر وي. په دې حديث کې دا اشاره هم ده چې کله انسان د بادشاهت په نشه کې مونځ پريږدي، او کله د وزارت د وجې نه، او کله د ملازمت د وجې نه، او کله د مال د نشې د وجې نه، او کله د حق سره د دښمنۍ د وجې نه مونځ پريږدي دا قسم خلک او ددوي په شان نور خلک تولو د پاره دا سخته تنبيه ورکړی شوې ده او کوم خلک چې د مونځ پابندوي په دې حديث کې اشاره ده چې مونځ کوونکي او پابندي کوونکي د مونځ خلک به د نبيانو او صلحاو او شهداو سره وي.

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۶۹/۲، والدارمي في السنن ۲ ۳۹۰، رقم الحديث ۲۷۲۱، وأخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶۴/۳ رقم الحديث ۲۸۲۳.

## صحابه كرامو رضي الله عنهم به مونځ پرېښودونكي كافر گڼلو :

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيْقٍ قَالَ : كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَا يَرَوْنَ |
| د حضرت عبد الله ابن شفيق نه روايت دى وايي : چې د پيغمبر عليه الصلاة والسلام صحابه كرامو به نه ليدلو |
| شَيْئًا مِنَ الْأَعْمَالِ تَرْكُهُ كُفْرٌ غَيْرَ الصَّلَاةِ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). (۱) |
| يو عمل په ټولو افعالو او اعمالو كې چې پرېښودل به يې كفر گڼل كېدو په غير د مونځ نه . |

**توضيح: لا يرون:** دا كلمه د راى نه اخيستل شوې ده ددې نه مراد عقيده ساتل دي يعنې د صحابو دا عقيده وه چې مونځ نه كولو والا كافر كېږي . (الكاشف ۲/۱۸۴، المرقات ۲/۲۸۱).
ددې قسم احكاماتو ذكر تغليظاً او تشديدا شوى دى ليكن دې الفاظو له په خپل ظاهر باندې پرېښودل ډير بهتر دي ځكه چې حكمت په دې كې دى ګينې مقصد د شارح به فوت شي ، علماء ليكي كه مونځ پرېښودل د انكار په صورت كې وي نو دې سره سرى كافر كېږي او كه مونځ پرېښودل د خندا يا د توهين يا د سپك والي د وجې نه وي نو هم دغه سړى كافر ګرځي او كه د سستۍ د وجې نه مونځ نه كوي نو د ګناه كبيرې مرتكب كيږي ، امام احمد رحمه الله فرمايي : كه قصدا يا عمدا مونځ نه كوي نو دغه كس مرتد دى او قتل به يې كړئ ، د امام مالک او امام شافعي رحمه الله په نزد دغه كس واجب القتل دى ، خو دا قتل د مرتد كېدو د وجې نه نه دى بلكې د زجر د وجې نه دى ، امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي : مونځ نه كوونكى هميشه د پاره په جيل كې واچوئ يا به توبه وكړي يا به په هغه حالت كې مړ شي ، سعدي بابا رحمه الله فرمايي : مونځ نه كوونكي ته قرض مه وركوئ ځكه چې څوک د الله تعالى قرض نه شي ادا كولى نو ستا قرض به څه ادا كړي ، بعضې علماء ليكي مونځ نه كوونكي د مسلمانانو په مقبره كې مه دفن كوئ بهر حال د اهل السنة والجماعة په نزد مونځ نه كوونكى كافر نه دى خو دلته حديث كې مونځ نه كوونكي دپاره دا حكم تغليظاً او تشديدا او د زجر او تنبيه د وجې نه دى .

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : أَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ |
| د ابودرداء رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې وصيت وكړو ما ته زما ملګري (نبي كريم صلى الله عليه وسلم) چې |
| أَنْ لَا تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَ إِنْ قُطِعْتَ وَ حُرِّقْتَ |
| تاسو د الله تعالى سره شريک مه جوړوئ اګر چې تاسو ټوټې ټوټې كړې شئ په اور وسوځولې شئ او |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵ رقم الحديث :۲۶۲۲.

وَلَا تَتْرُكْ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا فَمَنْ تَرَكَهَا مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ

قصدا مونځ مه پرېږدئ، او چا چې مونځ قصدا پرېښودو نو دده نه به ذمه خالي وي، همدارنګې کله هم

وَلَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ فَإِنَّهَا مِفْتَاحُ كُلِّ شَرٍّ.[1]

شراب مه څکئ، ځکه چې دا د هرې ګناه جرړه ده.

**توضیح:اوصاني خلیلي:** وصیت هغه تاکیدي اوضروري حکم ته ویلی شي کوم چې د مرګ په وخت کې د خپلو خپلوانو په باره کې کوي خلیل خاص ملګري ته ویلی شي دلته ترې مراد پیغمبر علیه السلام دی.

**لا تشرک:** د الله تعالی په ذات او صفاتو کې شریک جوړولو ته شرک ویلی شي.

**وان قطعت:** دا حکم د عزیمت په درجه کې دی یعنې ځان یې د هلاکت سره مخ کړو مګر شرک کلمه یې د ژبې نه، نه وي ویلي، اګر چې د ځان بچ کولو د پاره د کفر کلمه ویلو اجازت شته دی چې دا د رخصت په درجه کې دی چې کله یې په زړه کې ایمان موجود وي **الا من اکره وقلبه مطمئن بالایمان.**

**برئت منه الذمة:** علامه طیبي رحمه الله فرمایي: دې جملې نه کفر تغلیظا مراد شوی دی چې دا سړی کافر شو یا د ذمې نه مراد هغه امان دی چې ددې په ذریعه سره د انسان مال او ځان محفوظ کیږي یعنې مونځ پرېښودو په وجه سره اوس دغه کس ته د قتلولو سزا یا د تعزیر سزا ورکولی شي اوس امن اوچت شوی دی. (مرقات ۲/۲۸۱).



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۳۹ رقم الحديث . ۴۰۳۴.

۱۲ ربیع الاول ۱٤۱۰ھ

# بَابُ الْمَوَاقِيْت:
# د مونځ د وختونو بیان:

قال الله تعالى: ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا﴾ (سورة النساء: ۱۰۳).

و قال الله تعالى: ﴿فَسُبْحَانَ اللهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ﴾ (سورة الروم: ۱۷/۱۸).

**د مواقیت لغوي او اصطلاحي تحقیق**: مواقیت جمع د **میقات** ده بعضې اهل لغتو ویلې دي چې خلاف القیاس **مواقیت** د **وقت** جمع ده او **وقت** او **میقات** د دواړو معنی یوه ده دواړو کې ترادف دی "**المقدار من الدهر**" یعنې د زمانې یو متعین حصې ته وقت ویلی شي. (مرقات ۲/۲۸۲).

بعضې علماء وايي: چې وقت مطلق زمانې ته ویلي شي. او میقات د زمانې هغه حصې ته ویلی شي چې په هغې کې یو کار او عمل مقرر کړی شي او دلته همدغه مفهوم مراد دی د میقات اطلاق کله متعین زمانې نه علاوه په متعین ځای باندې هم کیږي لکه څنګه چې د حج احرام اچولو د پاره یو خاص ځای ته میقات ویلی شي. د مونځ فرض کیدو د پاره اصل علت او سبب خو د الله تعالی حکم او خطاب دی بیا د هر مونځ د پاره ددې وخت د هغې سبب دی. شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې د پنځه مونځونو د وختونو چې کوم حکمت بیان کړی دی د هغې خلاصه داده فرمایي چې انسان کله د شپې اوده کیږي نو د الله تعالی د ډیرو نعمتونو د شکر ادا کولو نه قاصره وي تر دې پورې چې د خپل سکون او امن او صحت د نعمت نه هم غافله او سیږي. همدارنګې هغه د خپلې ګټې او د معاش نه هم عاجزه شي او د مړي په حکم کې شي، شپې تیریدو نه پس چې کله ورځ راشي نو الله تعالی په ده باندې د سحر مونځ فرض کړو ترڅو چې د شپې د ټولو غلطیانو تلافي او ختموالې وشي او الله تعالی د مرګ نه پس چې ده ته کومه زندګي ورکړې فرمایلي دي چې ددې په شه طریقې سره شکر ادا کړی شي بیا چې دا انسان د الله تعالی ورکړی شوو طاقتونو نه د زندګې اسباب تلاش کوي او د ورځې په رڼا کې نیکې حاصلوي او حلاله روزي پیدا کوي چې کله دا نعمت انسان ته حاصل شو نو الله تعالی ددې نعمت شکر ادا کولو د پاره په دې انسان د ماسپښین مونځ فرض کړو بیا د انسانانو عام عادت دی چې د ماسپښین په وخت کې اوده کیږي چې آرام وکړي نو ددې خوب د وجې نه چې د الله تعالی په یادولو او عبادت کې کوم کموالی راغلی دی د هغې د پاره یې د مازیګر مونځ فرض کړو ترڅو چې ـ کموالي پوره والی راشي یا عام عادت دی چې د مازیګر په وخت کې انسان په خپل کار او ګټې او زندګۍ کې دومره مشغوله وي

چې په بازارونو کې د ګرځیدو سره غافله شي دغه رنګ د ټولې ورځې د نعمتونو پوره والی وشي ځکه ددې شکر ادا کولو د پاره او د تقصیراتو یعنې کم والي د ختمیدو د پاره الله تعالی د ماښام مونځ فرض کړو چې کله انسان د هر قسم آفت نه بچ شي او د ورځې ښې خاتمې ته ورسي نو ددې شکر ادا کول په ده باندې لازم شو ځکه الله تعالی د ماسخوتن مونځ فرض کړو تر څو چې د **ختامه مسک** مصداق جوړ شي (اشعة اللمعات ۳۰۴-۳۰۵).

## اَلْفَصْلُ الْأَول:

## د پنځو مونځونو د وخت بیان:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقْتُ الظُّهْرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ |
| دعبدالله ابن عمرو نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د ماسپښین وخت د زوال نه پس دی |
| وَ كَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُولِهِ مَا لَمْ يَحْضُرِ الْعَصْرُ |
| او ددې آخري وخت هغه دی چې د سړي سوری د هغه د اوږدوالي برابر نه شي د مازیګر وخت را تلو پورې |
| وَ وَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرِ الشَّمْسُ وَ وَقْتُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ |
| او د مازیګر وخت تر هغه وخته پورې دی چې کله لمر زیړ نه وي او د ماښام وخت تر هغه وخته پورې دی |
| مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ وَوَقْتُ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ الْأَوْسَطِ وَوَقْتُ صَلَاةِ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوعِ الْفَجْرِ |
| چې کله شفق غائب نه وي او د ماسخوتن وخت د نیمې شپې پورې دی او د سحر وخت د طلوع فجر نه تر |
| مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ فَأَمْسِكْ عَنِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهَا |
| هغه وخته پورې دی چې کله لمر را ونه خیژي او چې کله لمر راوخیژي نو مونځ مه کوئ ځکه چې لمر د |
| تطلع بَيْنَ قَرْنَي الشَّيْطَانِ » (رَوَاهُ مُسلم)(۱) |
| شیطان دواړو ښکرو په مینځ کې راخیژي. |

**توضیح :وقت الظهر**: لفظ د ظهر ماده اشتقاق ظهور دی او دا وخت هم د ورځې په مینځ کې ظاهریږي دې وخت ته هجیرة هم ویلي کیږي ځکه چې دا وخت هاجره یعنې د ماسپښین وخت ته بالکل نزدې وي. (مرقات ۲/۲۸۲).

---

(۱) أخرجه مسلم ۴۲۸/۱ رقم الحديث ۱۷۳-۶۱۲، وأبو داود ۲۸۰/۱ رقم الحديث :۳۹۶، والنسائي ۲۶۰/۱، رقم الحديث. ۵۲۲.

حدیث کې د سحر وخت بیانولو په ځای د ماسپښین وخت نه یې د وختونو د تعین ابتداء ځکه کړی شوې ده چې ماسپښین هغه اولنی مونځ دی کوم چې د معراج په شپه د سحر په وخت کې ادا شوی وو ځکه خو دې ته **الصلاة الاولى** ویلی شي. همدارنګې چې کله جبرائیل عَلَیْہِ السَّلَامُ د وختونو بیان کولو نو جبرائیل عَلَیْہِ السَّلَامُ هم د ماسپښین وخت نه شروع وکړه. **اذا زالت الشمس**: دلمر سوری چې کله رورو کمیږي نو پوهه شه چې لمر اوچتیږي او چې کله د سوري کم والی او دریږي نو پوهه شه چې لمر د نیمې ورځې په نقطه باندې ولاړ دی او چې کله سوری په ډیریدو شي نو د زوال وخت شروع شي او په دې هم ځان پوهه کړه چې مجموعي طور باندې د مونځ وختونه په درې قسمه دي: اول **اوقات الصحة والاداء** دي دا هغه وختونه دي چې په دې کې مونځ وکړی شي نو هغه به صحیح وي قضاء به نه وي بلکې په ادا کیدو کې شمارل کیږي په دې کې به د مکروهه کیدو شبه نه وي. دویم وخت مستحب دی داد صحیح وخت هغه حصه ده چې په دې کې مونځ کول اولی او بهتر دی اګر چې مخکې او وروستو مونځ کول هم جائز دی. دریم وخت مکروهه دی کوم کې چې مونځ کول مکروهه دی د موجوده باب په احادیثو کې د وخت د صحیح کیدو بیان دی. بیا ددې نه پس په ص ۹۴ کې په باب النهي کې د مکروهه وخت بیان دی چې په هغې کې مونځ کول مکروهه دی.

**د ماسپښین وخت**: د ماسپښین په شروع کې د چا اختلاف نشته د ټولو امامانو په نزد د زوال نه د ماسپښین وخت شروع کیږي د ختمیدو په وخت کې د فقهاو اختلاف دی چې د ماسپښین وخت د کوم وخت پورې دی ددې وجې نه د مازیګر په وخت کې هم اختلاف دی، بهر حال په ماسپښین کې اختلاف داسې دی:

**د فقهاو اختلاف**: امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمُ اللهُ او صاحبین یعنې د جمهورو مسلک دادی چې د اصلي سوري نه علاوه چې د هر څیز سوری ددې مثل شي نو د ماسپښین وخت ختمیږي او د مازیګر وخت شروع کیږي خو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د ماسپښین او د مازیګر په مینځ کې د لږ داسې وخت هم قائل دی کوم چې مشترک وي د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ نه د وخت په انتهاء کې د ماسپښین وخت متعلق څلور اقوال دی، درې قوله واضحه دي نو ځکه همدا بیانولی شي: (۱) اول قول دادی چې د دوو مثلینو نه د ماسپښین وخت شروع کیږي او مثل ثالث سره د مازیګر وخت شروع کیږي دا قول د احنافو په نزد مشهور دی اګر چې فتوی په دې باندې نه ده. (۲) امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دویم قول دادی چې مثل اول باندې د ماسپښین وخت ختمیږي او د مازیګر وخت شروع کیږي دا قول د جمهورو او د صاحبینو د مسلک موافق دی او فتوی په دې قول ده، درمختار کې د ډیرو کتابونو په حوالو سره دا مسلک راجح ګرځیدلی دی، فتاوی ظهیریه او خزانة المفتین کې د امام صاحب دې مسلک ته رجوع ثابت کړی شوې ده. (۳) امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه دریم قول دا رانقل دی چې د ماسپښین وخت په مثل اول

سره ختميږي خو د مازيګر وخت دوو مثلينو نه وروسته د مثل ثالث نه شروع کيږي او په مينځ کې څه وخت مهمل دی نه د مازيګر وخت دی او نه د ماسپښين وخت، په دې کې معذوره خلک مونځ کولی شي، حضرت شاه انور شاه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې په دې اقوالو کې تطبيق دادی چې مثل اول خاص د ماسپښين د پاره دی او مثل ثالث د مازيګر سره خاص دی او مثل ثاني مشترک دی مګر د ټولو د پاره نه دی بلکې صرف د معذورو ملګرو د پاره دی.

**دلائل**: جمهورو د زير بحث حديث نه استدلال کړی دی چې د لمر د زوال نه مثل اول پورې ماسپښين او مثل اول نه مازيګر شروع کيږي، د جمهورو دويم دليل امامت جبريل عَلَيْهِ السَّلَام دی چې په هغې کې تصريح موجود ده "**حين صار ظل كل شيء مثله**" يعنې مثل اول باندې د مازيګر وخت شروع کيږي.

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ اولنی دليل هغه احاديث دي چې په هغې کې د ماسپښين وخت لره يخولو تاکيد او ترغيب دی لهذا په بخاري شريف کې روايت دی: **عن ابي سعيد الخدري قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابردوا بالظهر فان شدة الحر من فيح جهنم**.

همدا رنګې په ترمذي کې روايت دی: **عن النبي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قال اذا اشتد الحر فابردوا بالصلوة فان شدة الحر من فيح جهنم**. د ابراد ددې رواياتو نه طريقه د استدلال داسې ده چې په ګرم ملکونو کې مثل ثاني په وخت ابراد راځي ددې نه مخکې وخت يخ کيدی نه شي نو ابراد لفظ ګويا اعلان دی چې د ظهر وخت مثلين پورې دی په مثل اول باندې نه ختميږي.

**د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دويم دليل**: د حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه روايت دی چې په دې کې د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام سره د سفر يوه قصه داسې بيان کړې ده: **عن ابي ذر قال كنا مع النبي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في سفر فاراد المؤذن ان يؤذن فقال له ابرد ثم اراد ان يؤذن فقال له ابرد ثم اراد ان يؤذن فقال له ابرد حتى رأينا فيء التلول فقال النبي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان شدة الحر من فيح جهنم فاذا اشتد الحر فابردوا بالصلوة**. (بخاري ج۱ ص ۷۷) دې حديث کې فئ لفظ راغلی دی چې د سوري په معنی دی او "**التلول**" د تا په ضمې سره د تل جمع ده چې د غونډۍ په معنی کې ده د غونډيو سوری ډير وروسته راځي خاص کر ګرم ملکونو کې سوری ډير په مشکله سره راځي د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا وينا چې ما د ماسپښين مونځ دومره په تاخير سره کړی دی او د ابراد تحقق هغه وخت وشو چې کله مونږ د غونډيو سوری وليدل دا معامله دوو مثلينو نه مخکې ممکن نه ده دا د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول د پاره واضح دليل دی.

**د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دریم دلیل** : د مخکنیو امتونو یهود او نصارا او باندې د پیغمبر عَلَیهِ السَّلَامُ امت د فضیلت والا حدیث دی کوم چې په مشکوة شریف کې د **باب ثواب هذه الامة** کې صاحب د مشکوة نقل کړی دی ددې مضمون او مفهوم داسې دی چې یهودو مثلا سحر نه د ماسپښین پورې کار وکړو هغوی ته الله تعالی یو قیراط مزدوري ورکړه بیا نصاری د ماسپښین نه د مازیګر پورې کار وکړو نو دوي ته الله تعالی یو قیراط مزدوري ورکړه دې باندې یهود او نصاری غوسه شو چې زمونږه کار او وخت ډیر دی او معاوضه کمه راکړی شوه او ددې امت د کار وخت کم دی او ثواب ورته ډیر ورکړی شو نو الله تعالی وفرمایل : چې ما تاسو ته څه درکړي آیا په تاسو مې ظلم کړی دی هغوي وویل : نه زمونږ حق خو مونږ ته راکړی شو خو هغوي ته ډیر ورکړی شو نو الله تعالی وفرمایل : دا خو زما فضل او کرم دی چې چا باندې یې زه کوم نو کولی یې شم. اوس په دې واقعه کې خبره واضحه شوه چې د ماسپښین نه د مازیګر پورې وخت ډیر دی او مازیګر نه د ماښام پورې وخت کم دی او دا صرف په هغه وخت کې دی چې د ماسپښین وخت دوو مثل پورې اوږد ومنلی شي که داسې نه وي نو په یو مثل باندې د ماسپښین وخت ختم شي نو بیا د ماسپښین نه د مازیګره پورې وخت اوږدیږي نه کوم چې د مازیګر نه د ماښام پورې وي دا په اشارة النص سره بهترین استدلال دی په شرط ددې چې دا صورت حال دغه شان وي .

**جواب** : جمهور علماو د حدیث د امامت د جبرائیل عَلَیهِ السَّلَامُ نه چې کوم استدلال کړې دی د هغې جواب دادی چې علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ دې ته منسوخ ویلی دي ځکه چې دا حدیث بالکل د ابتداء د زمانې دی دې نه پس ډیر احادیث داسې دي چې په هغې کې په دې وختونو کې اوږدوالی او تفصیل راغلې دی او په اولنې حکم کې بدل والی راغلی دی ددې حدیث په بعضې اجزاو باندې جمهور هم عمل نه کوي یا په کې تاویل کوي یا ددې جواب ورکوي. د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ روایت نه احناف دا جواب کوي چې دا په مستحب وخت او استحباب باندې محمول دی چې ددې نه احناف انکار نه کوي .بهر حال علماء احناف وایي چې احتیاط په دې کې دی چې د ماسپښین مونځ په مثل اول کې وکړی شي او د مازیګر مونځ د مثل ثاني نه پس وکړی شي چې د ټولو امامانو په نزد اختلاف ختم شي او دواړه مونځونه بغیر د اختلاف نه په خپلو وختونو کې اداء کړی شي ، د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په اقوالو کې چې کوم قول : جمهورو موافق وي فتوی په هغې قول باندې ده .

## د ماسپښین او مازیګر په مینځ کې د مشترکه وخت مسئله :

د ماسپښین او مازیګر د وخت متعلق احادیثو کې بعضې الفاظ داسې راغلي دي چې د هغې نه شبهه او شک پیدا کیږي چې یو وخت داسې هم دی چې هغه وخت د ماسپښین او مازیګر په مینځ کې مشترک دی او هر یو مونځ په هغې کې کیږي ددې وجې نه په دې مسئله کې د فقهاو اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف** : د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد وختونو

کې داسې يو وخت نشته چې په دوو مونځونو کې شريک وي هان د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه يو روايت شته چې د معذوره کسانو د پاره مثل ثاني مشترک وخت دی. د جمهورو په مقابله کې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې د مثل اول نه پس څلور رکعته وخت د ماسپښين او مازيګر د پاره مشترک دی چې په هغې کې د ماسپښين مونځ هم جائز دی او د مازيګر مونځ هم جائز دی.

**دلائل**: امام مالک او عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُ اللهُ د حديث جبرائيل د امامت نه استدلال کوي چې په هغې کې يې د دواړو وختونو د پاره دا الفاظ راغلي دي: **حين صار ظل كل شيء مثله او حين كان ظله مثله**.
ددې نه معلومه شوه چې د اولې ورځې د ماسپښين مونځ او د دويمې ورځې د مازيګر مونځ په يو وخت کې اداء کړی شوي دي چې ددې نه معلومه شوه چې د دواړو وخت مشترک دی. جمهورو د بحث کوونکي حديث نه استدلال کړی دی په دې کې **ما لم يحضر العصر** الفاظ موجود دي ددې واضحه مطلب دا دی چې څو پورې د مازيګر وخت نه راځي هغه وخته پورې د ماسپښين وخت موجود وي چې کله د مازيګر وخت راشي نو د ماسپښين وخت ختم شي په دې کې اشتراک نشته.

**جواب**: د مالکيه د دليل جواب دا دی چې د **حين كان ظله مثله** مطلب **حين كان قريبا من مثله** دی يعنې بعينه هم هغه وخت نه دی بلکه د يو مثل سوري نزدې وخت مراد دی.
دويم جواب دا دی چې علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: امامت جبرائيل حديث منسوخ دی وروستو بيا تفصيل راغلی دی په هغې کې اجمال دی.
داخبره يادساتئ احناف چې داخبره کوي چې يو مثل يا دوه مثله پورې د ماسپښين وخت دی ددې مطلب دا دی چې اصل سوری لرې کړې او باقي الاسوري ديو څيز برابر شي نو دا د ماسپښين وخت دی.

**د مازيګر وخت**: د ماسپښين وخت په ختميدو کې د امامانو اختلاف دی، نو د مازيګر وخت په شروع کيدو کې هم د ائمو اختلاف دی د مازيګر د شروع کيدو وخت څه دی آيا د مثل اول نه شروع کيږي لکه څنګه چې د جمهورو خيال دی يا د مثل ثاني نه وروسته شروع کيږي لکه څنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ رايه ده ددې تفصيل ذکر شوی دی، اوس د مازيګر د آخري وخت مسئله ده نو په موجوده حديث يعنې زير بحث کې دا الفاظ راغلي دي: **وقت العصر ما لم تصفر الشمس**. د جمهورو په نزد د مازيګر وخت د لمر پريوتلو پورې دی يعنې اصفرار الشمس نه مخکې مخکې مستحب وخت دی او ددې نه پس جائز وخت دی خو سره د کراهته، امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې اصفرار الشمس پورې د مازيګر وخت انتهاء وخت ده ددې نه پس نه دی هغه ددې حديث د برنۍ جملې نه استدلال کوي چې اصفرار څو پورې نه وي نو مازيګر دی، اصفرار راتلو سره د مازيګر وخت ختميږي جمهورو ددې حديث نه

استدلال کړی دی چې په دې کې دا الفاظ راغلي دي : **من ادرک رکعة من العصر قبل ان تغرب الشمس فقد ادرک العصر**، نو چې کله د لمر پريوتلو نه مخکې یو رکعت کولو سره د مازيګر مونځ ادا کیږي نو د اصفرار په وخت کې بطريق اولی ادا کیږي .د امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ د استدلال جواب دا دی چې په دې حدیث مبارک کې مستحب وخت بیان شوی دی .

**و وقت صلوة المغرب ما لم یغب الشمس** : نمر پريوتو نه پس ماښام شروع کیږي د ماښام په شروع کیدو کې د چا هم اختلاف نشته د ماښام اخري وخت کې هم دې خبره باندې اتفاق دی چې د شفق پريوتلو پورې د ماښام وخت دی البته د شفق په تفسیر او د دې په تعین کې اختلاف دی د دې وجې نه د ماښام په اخري وخت کې د فقهاو اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف** : د فقهاو بنیادي اختلاف د لفظ شفق په مصداق کې دی ، د جمهورو او صاحبینو په نزد د لمر د پريوتو نه پس په آسمان کې چې کوم سور والی راشي دغه سور والي ته شفق ویلی شي چې کله دغه سور والی ختم شي نو د ماښام وخت هم ختمیږي .د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد شفق د هغه سپینوالي نوم دی چې د سوروالي د ختمیدو نه وروسته په آسمان کې خوریږي تر څو پورې چې سپینوالی موجود وي نو ماښام به هم موجود وي .او د دې سپینوالي نه وروسته چې کوم تور والی خور شي نو هغه د ماخوستن وخت دی ، د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد دغه وخت یو ګینټه او لس منټه پورې وي ، نتیجه دا راووته چې چا په دې سپینوالي کې د ماخوستن مونځ وکړو نو د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد مونځ جائز نه دی .د جمهورو په نزد جائز دی او که چا د بیاض په وخت کې د ماښام مونځ وکړو نو د جمهورو په نزد جائز نه دی او د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد جائز دی . احتیاط په دې کې دی چې د ماښام مونځ د سور والي په موجودیت کې اداء کړی شي وروستو کوي یې مه ، د احنافو فتوی په دې باندې ده ، د احنافو اکثرو علماو ویلي دي چې امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د جمهورو قول طرف ته رجوع کړې ده (**کذا في النهر**).

**دلائل** : جمهور د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د روایت نه استدلال کړی دی چې الفاظ یې دا دی :**قالت : کانوا یصلون العتمة فیما بین ان یغیب الشفق الی ثلث اللیل** .د استدلال طریقه دا سې ده چې دلته د **شفق** نه مراد سوروالی دی که د دې نه مراد **بیاض** یعنې سپینوالی شي نو صحیح کیږي نه ځکه چې **شفق ابیض** د شپې دريمې حصې پورې په خپله باقي وي نو د دې په مینځ کې د ماخوستن مونځ کولو مفهوم په سوچ کې نه راځي ، نو معلومه شوه چې د **شفق** نه مراد **حمرة** دی بیاض نه دی .د جمهورو دویم

دليل په دار قطني کې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه روايت دی چې په هغې کې په ښکاره شکل باندې د **شفق** تفسير په **حمرة** سره شوی دی: **قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

**الشفق الحمرة**. د جمهورو دريم دليل د اهل لغتو تصريح ده چې د شفق نه مراد حمرة يعنې سوروالی دی چنانچه شيخ اصمعي او خليل بن احمد او فراء تصريح کړې ده چې د **شفق** نه مراد **حمرة** دی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ دلائل ډير زيات دي اولنی دليل د ابوداؤد روايت دی چې په دې کې **حين يسود الافق** الفاظ راغلي دي او دا تور والی دهغه بياض نه وروسته راځي کوم بياض چې د حمرة نه پس راځي، نو معلومه شوه چې ترڅو پورې بياض وي د ماښام وخت به موجود وي. ددې حضراتو دويم دليل د ترمذي شريف د حديث هغه تکړه ده چې په هغې کې دا الفاظ: **وان اول وقت العشاء الآخرة حين يغيب الافق**، راغلي دي او دا ظاهر دی چې د آسمان غاړې هغه وخت ورکيږي چې کله د شفق بياض ختم شي. دا قسم نور احاديث هم دي چې په هغې کې د بياض د ختميدو او د تيارې د خوريدو ذکر وي چې د هغې نه دا خبره ثابتيږي چې د **شفق** نه مراد **حمرة** نه دی بلکې **بياض** دی. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دريم دليل د لغت امامانو تشريح او تفسير هم دی چې **شفق** په لغت کې **بياض** ته ويلی شي چنانچه د لغت امام شيخ مبرد او شيخ زجاج فرمايي چې د شفق نه مراد بياض دی ددې په تللو سره د ماخوستن وخت راځي.

**جواب**: د احنافو سره د جمهورو رواياتو په مقابله کې کافي روايات دي او د اهل لغت په مقابله کې لوی لوی ملګري د لغت موجود دي، ليکن د احنافو په نزد فتوی د جمهورو او صاحبينو د قول مطابق ده، ياد ساتئ چې شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې ددې مسئلې چې کوم تحقيق کړی دی په هغې کې شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ سره ذکر کړی دی.

**يوه بله مسئله**: د ماښام په وخت کې په مضيق او موسع کيدو کې د فقهاو اختلاف دی، د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد د ماښام وخت ډير تنګ دی صرف او دس او درې رکعته فرض او دوه رکعته سنت کول پکې امکان لري، ددې نه وروسته د ماخوستن وخت شروع کيږي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او جمهورو په نزد د ماښام وخت د غروب شفق پورې پراخه دی. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ حديث امامت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ نه استدلال کړی دی په دې کې په دواړو ورځو کې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د ماښام مونځ په يو وخت کې کړی وو چې ددې نه معلوميږي چې په دې وخت کې د مخکې کيدو او وروسته کيدو امکان نشته.

جمهور و د **ما لم یغب الشفق** والا حدیث نه استدلال کړی دی، چې دې نه د وسعت یعنې اوږدوالي اندازه کیږي. همدارنګې **قبل ان یغیب الشفق** الفاظ چې د حضرت بریده رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په روایت کې دي ددې نه هم معلومیږي چې په وخت کې ابتداء او انتهاء ده او په دې کې د یو حده پورې وسعت دی .علامه نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي دي چې د شوافعو فتوی په دې ده چې د ماښام وخت د غروب شفق پورې وي او همدا امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ زوړ قول دی.

**وقت العشاء**: د اسلام نه مخکې په عربو کې خلکو ماخوستن په عتمة نوم سره یادولو ، نو اسلام ددې لفظ عادت ختم کړو او په عشاء یعنې ماخوستن سره یې مشهور کړ، عشاء اولی ته مغرب او عشاء آخر ته عشاء یعنې ماخوستن ویلی شي ، د عشاء په اول وخت او ددې په شروع وخت کې هغه اختلاف دی کوم چې د ماښام په آخري وخت کې دی . حضرت سفیان ثوري رَحِمَهُ اللّٰهُ ، عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُ اللّٰهُ او حضرت اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللّٰهُ او یو قول کې امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا ټول حضرات فرمایي چې د ماخوستن وخت د نیمې شپې پورې دی ددې نه پس جائز نه دی ، جمهور فقهاء فرمایي چې د ماخوستن وخت د صبح صادق پورې دی ، دا اختلاف څه بنیادي اختلاف نه دی چونکې احادیثو کې مختلف الفاظ دي څکه د فقهاو اقوال هم مختلف دي په بعضې احادیثو کې **الی نصف اللیل** الفاظ دي ، په بعضو کې **ثلث اللیل** الفاظ دي . په طحاوي شریف کې بعضې روایاتو کې **و آخره حین یطلع الفجر** الفاظ راغلي دي ، په بعضې روایاتو کې **الی ان یدخل وقت الاخری** الفاظ دي ، ددې وجې نه د فقهاو اقوال هم مختلف شو . لیکن ټول آحادیث فقهاو خپلې مخې ته راوستل او یو اجتماعي مسئله یې تریې واخسته او په ټولو احادیثو کې تطبیق داسې راغی چې د شپې دریمې حصې پورې د ماخوستن مستحب وخت دی ، او د نیمې شپې پورې د ماخوستن وخت جائز دی بغیر د کراهته ، او د صبح صادق پورې وخت وروسته کول جائز دی خو سره د کراهته.په حدیث شریف کې چې کوم **الاوسط** لفظ راغلی دی داد **لیل** صفت دی مطلب دادی چې شپه کله درمیانه وي نه ډیره وړه وي او نه ډیره اوږده وي ، همدارنګې درمیانه شپې نیموالی مراد دی یا دا لفظ نصف کلمې د پاره صفت دی او مطلب دادی چې ډیروالي او کموالي نه بغیر د شپې نیمې پورې ماخوستن دی ګویا دا یو قسم تاکید دی .

**وقت الفجر**: د سحر وخت د طلوع فجر نه د لمر ختلو پورې دی ، ددغه وخت په شروع او آخر: کې څه قابل ذکر اختلاف نشته دی ، البته امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ طرف ته دا قول منسوب دی دده په نزد سحر وخت اسفار او رڼا خوریدو پورې دی . د لمر ختلو پورې نه دی، امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ **وصل الفجر فاسفر** د

حدیث د الفاظ نه استدلال کوي، جمهور رو دابو هريرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مرفوع حديث نه استدلال کړی دی چې په دې کې داالفاظ دي: **من ادرک رکعة من الصبح قبل ان تطلع الشمس فقدادرک الصبح (مشكوة:٦١)** ددې روايت په نظر کې د امت اجماع په نظر کې نيولو د وجې دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ قول ناقابل التفات دی هغه حديث دامامت جبرائيل ديوې جملې نه بطور اجتهاد استدلال کړی دامامت جبرائيل ډيرواجزاو تعلق دمونځ بالکل شروع وخت سره دی ځکه دا روايت ټولو شارحينو منسوخ ګرځولی دی.

**بين قرني الشيطان:** قرني د تثنيه صيغه ده د قرن نه، او قرن ښکر ته ويلی شي مطلب دا چې لمر د شيطان د دوو ښکرو په مينځ کې راخيژي چې مراد ترې د سر دواړه طرفونه دی. د حديث ددې جملې مطلب دا نه دی چې لمر د شيطان د دواړو ښکرو مينځ نه راخيژي بلکې ددې حديث حقيقت د نورو احاديثو د تفصيل مطابق دا دی چې د شيطان عبادت په انسانانو کې هيڅوک نه کوي ليکن خبيث دا غواړي چې زما عبادت دې د الله تعالى د عبادت سره مشابه شي .ددې مقصد د پاره شيطان د لمر راختو په وخت کې لمر ته مخامخ داسې ولاړ وي چې دا لمر دده په سر باندې تيريږي نو دلته د نمر عبادت کوونکي مخامخ او دريږي او د نمر او سپوږمۍ عبادت کوي او شيطان هم مخامخ ولاړ وي، د هغه خيال دا وي چې دا خلک زما عبادت کوي او خپل اولاد ته ښائي چې اوګورئ څنګه زما عبادت کولی شي ددې وجې نه شريعت مسلمانان منع کړي دي چې د نمر راختو په وخت کې او د نمر پريوتو په وخت کې او د نصف النهار په وخت کې يو عبادت هم صحيح نه دی.

## د مونځ د وختونو بيان:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ وَقْتِ الصَّلَاةِ | | | | | |
| حضرت بريدة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت دی فرمايي چې يو کس د پيغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د مونځ د وخت پوښتنه | | | | | |
| فَقَالَ | لَهُ | : | « | صَلِّ | |
| وکړه (د مونځ د اول او آخر وخت په باره کې) نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل: چې ته مونځ وکړه د | | | | | |
| مَعَنَا | هٰذَيْنِ | » | يَعْنِي | الْيَوْمَيْنِ | فَلَمَّا | زَالَتِ | الشَّمْسُ |
| مونږ سره دا دوه ورځې (چې ته د مونځونو وختونه وپيژني) چې کله لمر زائله شو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ | | | | | |
| أَمَرَ | بِلَالًا | فَأَذَّنَ | ثُمَّ | أَمَرَهُ | |
| حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د آذان حکم وکړو حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ آذان وکړو بيا پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ ده ته د تکبير | | | | | |

ثُمَّ الظُّهْرَ فَأَقَامَ

بیانبي کریم ﷺ (او پیغمبر عَلَیْهِ السَّلَام مونځ ورکړو) حکم وکړو د ماسپښین د مونځ تکبیرې وکړو

ثُمَّ نَقِيَّةٌ بَيْضَاءُ مُرْتَفِعَةٌ الشَّمْسُ وَ الْعَصْرَ فَأَقَامَ أَمَرَهُ

بیا یې (او د مازیګر مونځ یې وکړو) حکم وکړو چې نمر اوچت او سپین صفا وو د مازیګر د مونځ د اقامت

ثُمَّ الشَّمْسُ غَابَتِ حِيْنَ الْمَغْرِبَ فَأَقَامَ أَمَرَهُ

بیا یې د ماخوستن د اقامت (او د ماښام مونځ یې وکړو) حکم وکړو چې لمر ډوب شوی وو د ماښام د اقامت

ثُمَّ الشَّفَقُ غَابَ حِيْنَ الْعِشَاءَ فَأَقَامَ أَمَرَهُ

بیا سحر کیدو سره د پیغمبر عَلَیْهِ السَّلَام (او د ماخوستن مونځ یې وکړو) حکم وکړو چې شفق ختم شوی وو

الْفَجْرُ طَلَعَ حِيْنَ الْفَجْرَ فَأَقَامَ أَمَرَهُ

د اقامت حکم وکړو (او مونځ یې وکړو ګویا چې په اوله ورځ یې ټول مونځونه د وخت په اول کې ادا کړه او

الثَّانِي الْيَوْمُ كَانَ أَنْ فَلَمَّا

بیا چې کله دویمه ورځ شوه نو پیغمبر عَلَیْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام حضرت دا یې وښودله چې د مونځ اول وخت دا دی.

بِهَا يُبْرِدَ أَنْ فَأَنْعَمَ بِهَا فَأَبْرَدَ بِالظُّهْرِ فَأَبْرَدَ أَمَرَهُ

بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د ماسپښین مونځ یخ کیدو حکم یې ورکړو او ښه په یخ کیدو کې یې د ماسپښین مونځ وکړو

الَّذِيْ فَوْقَ آخِرَهَا مُرْتَفِعَةٌ وَ الشَّمْسُ الْعَصْرَ وَ صَلَّى

او د مازیګر مونځ یې په هغه وخت کې وکړو چې نمر اوچت وو ولیکن پروني وخت نه یې وروسته د مازیګر

وَ الشَّفَقُ يَغِيبَ أَنْ قَبْلَ الْمَغْرِبَ صَلَّى وَ كَانَ

مونځ وکړو او د ماښام مونځ یې د شفق ختمیدو نه مخکې (یعني شفق ورکیدو ته نزدې) وکړو او د

بِهَا فَأَسْفَرَ الْفَجْرَ صَلَّى وَ اللَّيْلِ ثُلُثُ ذَهَبَ مَا بَعْدَ الْعِشَاءَ صَلَّى

ماخوستن مونځ یې د شپې دریمه حصه تیریدو په وخت کې وکړو او د سحر مونځ یې په ښه رڼا کې وکړو

الرَّجُلُ فَقَالَ الصَّلَاةِ وَقْتِ عَنْ السَّائِلُ أَيْنَ قَالَ ثُمَّ

بیا یې وفرمایل: د مونځ د وختونو پوښتنه کوونکی چیرته دی دغه کس مخې ته راغی او عرض یې وکړو

| |
|---|
| اَلَا یَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : « وَقْتُ صَلَاتِکُمْ بَیْنَ مَا |
| ای د الله رسوله ! زه حاضریم پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ ورته وفرمایل ستاد مونځونو وختونه دهغه وختونو په مینځ |
| رَأَیْتُمْ » (رَوَاهُ مُسْلِم) (۱) |
| کې دی کوم چې تا په دې دوو ورځو کې ولیده . |

**توضیح** : **ان رجلاً** : یعنې یو کس د مونځونو د وختونو په باره کې پوښتنه وکړه چې د مونځ اول وخت کوم دی او ددې آخري وخت کوم یو دی ، پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ مناسب وګڼله چې دغه کس ته زباني ویلو په ځای عملي طور باندې خودل فائده مند دي ددې وجې نه پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ مونځونه اول وخت کې وکړل او په دویمه ورځ یې بالکل آخري وخت کې ادا کړل او بیا یې دغه سائل ته وویل چې ددې دواړو وختونو په مینځ کې ستا د مونځ وخت دی. **فأنعم ان یبرد** : ډیر یخوالي د وجې نه لفظ انعم استعمال شوی دی .

**بین ما رأیتم** : یعنې دې دوو وختونو په مینځ کې ستا د مونځ وخت دی .

**سوال** : دلته یو سوال دی چې پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ د دوو وختونو په مینځ کې د مونځ وخت ګرځولی دی ددې نه معلومیږي چې د دواړو وختونو اول طرف او آخر طرف د دواړو وختونو د مونځ نه خارج دی حالانکه هغه په خپله د مونځ په وختونو کې داخل دی .

**جواب** : ددې جواب دادی چې د حدیث ددې جملې مطلب دادی چې پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ فرمایي چې په اوله ورځ ما د وخت په شروع کې چې کوم مونځ وکړو او په دویمه ورځ مې د وخت په آخره حصه کې وکړو ، دغه اول او آخر یو ځای کړه نو په مینځ کې ټول وخت د مونځ دی ، خلاصه دا شوه چې د مونځ د وختونو طرفونه د مونځ د وختونو نه خارج نه دي بلکې په دې کې داخل دي .(مرقات ۲/۲۸۶).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَمَّنِي جِبْرِيلُ |
| حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وایي چې پیغمبر عَلَیہِ السَّلَامُ فرمایي چې امام جوړ شو حضرت جبرائیل عَلَیہِ السَّلَامُ |
| عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ |
| (د مونځ صورت او وختونو خودلو د پاره) دخانه کعبې سره خوا ته یې ماته دوه پیرې (یعنې دوه ورځې) |

(۱) أخرجه مسلم ۴۲۸/۱ رقم الحديث ۱۷۶-۶۱۳، والنسائي ۲۵۸/۱، رقم الحديث ۵۱۹ .

فَصَلِّيْ بِيَ الظُّهْرَ حِيْنَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَ كَانَتْ

مونځ راكړو نو په اوله ورځ چې كله نمر زائله شو نو اول يې ما ته د ماسپښين مونځ را كړو او چې كله د

قَدْرَ الشِّرَاكِ وَ صَلّٰى بِيَ الْعَصْرَ حِين صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ وَ صَلّٰى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ

هر يو څيز سورى د هغې برابر وو نو د مازيگر مونځ يې راكړو او د ماښام مونځ يې راكړو چې په كوم وخت

أَفْطَر الصَّائِم وَ صَلّٰى بِي الْعِشَاء حِيْنَ غَابَ الشَّفَقُ

كې روژه دار روژه ماتى كوي او د ماخوستن مونځ يې راكړو په هغه وخت كې چې كله غائب شو شفق

وَ صَلّٰى بِيَ الْفَجْرَ حِيْنَ حَرُمَ الطَّعَامُ وَ الشَّرَابُ عَلَى الصَّائِمِ

او د سهر مونځ يې راكړو په هغه وخت كې چې روژه دار د پاره خوراك حرام شي (يعني صبح صادق شي)

فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ صَلّٰى بِيَ الظُّهْرَ حِيْنَ

نو بيا يې ما ته د سحر مونځ راكړو او چې كله بله ورځ شوه نو ما ته يې د ماسپښين مونځ په هغه وخت كې

كَانَ ظِلُّهٗ مِثْلَهُ وَ صَلّٰى بِيَ الْعَصْرَ حِيْنَ كَانَ ظِلُّهُ

وكړو چې كله سورى يو مثل ته ورسيدو ، او د مازيگر مونځ يې په هغه وخت كې وكړو چې كله سورى

مِثْلَيْهِ وَ صَلّٰى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ وَ

دوو مثلو ته ورسيدو او د ماښام مونځ يې راته په هغه وخت كې وكړو چې كله روژه دار روژه ماتوي او د

صَلّٰى بِيَ الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ وَ صَلّٰى بِيَ الْفَجْرَ فَأَسْفَرَ

ماسخوتن مونځ يې په هغه وخت كې وكړو چې دوه حصې شپه تيره وه او د سحر مونځ يې راته بنه په رڼاكې

ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ هٰذَا وَقْتُ

وكړو ، او بيا جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام زما طرف ته متوجه شو او وي فرمايل : اى محمد ! دا وختونه د مخكښو

الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ وَ الْوَقْتُ مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ » . [1]

پيغمبرانو د مونځ وختونه دي او د مونځ وخت ددې وختونو په مينځ كې دي .

**توضيح : عند البيت :** ددې نه بيت الله مراد دى ، داد هجرت نه مخكې قصه ده .

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳۳۳/۱، وأخرجه أبو داود في السنن ۲۷٤/۱ رقم الحديث :۳۹۳ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲۱۹/۱، رقم الحد[illegible] ٦٦٧، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۱۹/۱ رقم الحديث:٦٦٧

**قدر شراک:** ظاهره داده چې د بوټ د تسمې سره دا تشبیه د پلنوالي د وجې نه ورکړې شوې ده د اوږدوالي سره نه ده . بیا د ځای او وخت په اعتبار سره سوری اصلي مختلف کیږي بعضې ځای کې سوری اصلي ډیر وي بعضې کې کم وي او په بعضې ځای کې بالکل نه وي لکه په مکه مکرمه کې په نور لسم سرطان بالکل اصلي سوری نه وي .(الکاشف ۲/۱۹۰، المرقات ۲/۲۸۸).

**دامتونو د مونځونو وختونه : هذا وقت الانبیاء .**

**سوال :** دلته یو سوال دی چې مخکنیو پیغمبرانو سره د مشابهت معنی څه ده ؟.

**جواب:** دا مشابهت د جدا وختونو په اعتبار سره دی په غالب طور باندې د ماخوستن مونځ نه علاوه د هغوی او ددې امت په وختونو او مونځونو کې یو شان والي شته او د ماخوستن مونځ د امت محمدیه خصوصیت دی داسې هم کیدی شي چې مخکې امتونو باندې د ماخوستن مونځ نفلي طور باندې وو او په دې امت باندې د ماخوستن مونځ فرض دی نو دا تشبیه صحیح ده .(المرقات ۲/۲۸۹).

شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې د مختلفو امتونو د مونځونو مختلف وختونه ذکر کړي دي چې کله د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ توبه د سحر په وخت کې قبوله شوه نو بطور شکرانه به یې د سحر مونځ کولو . د ماسپښین په وخت کې د حضرت اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَامُ د ځان په بدله کې د ګډ قرباني قبوله شوه نو هغه به بطور شکرانه د ماسپښین څلور رکعته مونځ کولو ، حضرت عزیر عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله سل کاله پس ژوندی کړی شو نو د مازیګر وخت وو نو ددې وجې نه بطور شکرانه د مازیګر څلور رکعته به یې کول، حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې چې کله امتحان راغی بیا د معافۍ حکم راغی نو د ماښام وخت وو کله چې داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ څلور رکعته مونځ کول وغوښتل نو څلورم رکعت ډیر د ژړیدو د وجې نه او د ستړي کیدو د وجې نه یې پوره نه کړو نو ددې وجې نه دري رکعته پاتې شو .او د ماخوستن مونځ د ټولو نه مخکې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړی وو دا ددې امت یو خصوصیت وو .

**امني:** یعنې جبرائیل امین عَلَيْهِ السَّلَامُ دوه ځل ما ته مونځ راکړی وو .دلته دا خبره محل د بحث نه ده چې جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ مفضول وو او پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ ته یې مونځ څنګه ورکړو یا جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ متنفل وو او پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ مفترض وو ځکه چې کله جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د الله تعالی د طرف نه د مونځ کولو حکم ملاو شو نو جبرائیل امین عَلَيْهِ السَّلَامُ مفترض جوړ شو .

**بین هذین الوقتین :** ددې جملو وضاحت مخکې تیر شوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ اِبْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ أَخَّرَ الْعَصْرَ |
| حضرت شهاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې بیشکه حضرت عمربن عبدالعزیز (یوه ورځ) د مازیګر مونځ |
| شَيْئًا فَقَالَ لَهُ عُرْوَةُ : أَمَا إِنَّ |
| (وخت مختار نه) لږ ناوخته ادا کړو حضرت عروه (چې داولیدو) نو ورته ووېل چې واورئ او پوهه شئ چې |
| جِبْرِيلَ قَدْ نَزَلَ فَصَلَّى أَمَامَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام مخې ته ولاړو واو په اول وخت کې یې مونځ ادا کړو حضرت |
| فَقَالَ لَهُ عُمَرُ : اعْلَمْ مَا تَقُولُ يَا عُرْوَةُ فَقَالَ : |
| عمربن عبدالعزیز رَحِمَهُ الله ورته وفرمایل عروه لږ سوچ فکر سره وایه داڅه وایې عروه ووېل ما د حضرت |
| سَمِعْتُ بَشِيرَ بْنَ أَبِي مَسْعُودٍ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ |
| ابو مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زوي بشیر نه اوریدلي هغه وایې ما د حضرت ابو مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوریدلي دي هغه |
| يَقُولُ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « نَزَلَ جِبْرِيلُ |
| وایې ما د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام نه اوریدلي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام زما امام جوړ شو |
| فَأَمَّنِي فَصَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ |
| نو ما د هغه سره مونځ وکړو بیا ما د هغه سره مونځ وکړو بیا ما د هغه سره مونځ وکړو بیا ما د هغه سره مونځ |
| صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ » يَحْسُبُ بِأَصَابِعِهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ [1]. |
| وکړو بیا ما د هغه سره مونځ وکړو تردې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام پنځه مونځونه ګوتو په شمار لو سره وښودل. |

**توضیح :آخر العصر شیئاً:** یعنې په وخت مستحب کې لږ تاخیر شوی دی دا مطلب نه دی چې د مازیګر مکروه وخت پورې تاخیر نه دی. (المرقات ۲/۲۹۱).

**عروة:** حضرت عروه د شان والا تابعي دی داد حضرت اسماء بنت ابي بکر او د زبیر ځوی دی هغه دا

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۰۵/۶، رقم الحديث :۳۲۲۱، ومسلم في الصحيح ۴۲۸/۱ رقم الحديث:۱۶۶-۶۱۰، وابن ماجة ۲۲۰/۱، رقم الحديث:۶۶۸.

غوښتل چې حضرت عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ ته حديث د امامت جبرائيل واوروي چې په هغې کې د مونځ په اول وخت کې د کولو بيان دی د لته ځکه ده په حرف تنبيه اما سره د کلام شروع وکړو دې د پاره چې عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ خبره په غور سره واوري.

**اعلم ما تقول**: دا صيغه د امر ده حضرت عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ حضرت عروه ته وفرمايل: اى عروه ته په سوچ او فکر سره خبره کوه ته حديث بيانوي حالانکه ته صحابي نه يې ته د سند نه بغير څنګه حديث ذکر کوي، دې باندې حضرت عروه مکمل سند بيان کړو او وې ويل چې زه په ښه غور او سوچ سره دا حديث بيانوم د دې سند دا سې دی: په دې باندې حضرت عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ خاموش پاتې شو.

## حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلو واليانو (ګورنرانو) ته د مونځ حکم ور کوي:

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : أَنَّهُ |
| د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې روايت دی چې خط يې وليکلو خپلو کار کوونکو (يعني د اسلامي |
| كَتَبَ إِلَى عُمَّالِهِ إِنَّ أَهَمَّ أُمُوْرِكُمْ عِنْدِيْ اَلصَّلَاةَ |
| سلطنت حکامو) ته چې په هغې کې يې ليکلي وو چې په ټولو کارونو کې بهترين کار هغه مونځ کول دي |
| فَمَنْ حَفِظَهَا وَ حَافَظَ عَلَيْهَا |
| لهذا چا چې د مونځ حفاظت ذکړو (يعني په ارکانو او شرائطو سره يې وکړو) او د هغې يې خيال وساتو |
| حَفِظَ دِيْنَهُ وَ مَنْ ضَيَّعَهَا فَهُوَ لِمَا سِوَاهَا |
| نو ګويا چې ده د خپل دين (باقي کارونو) حفاظت وکړو او چا چې د غه ضائع کړو نو دا د مونځ نه علاوه کارونو |
| أَضْيَعُ ثُمَّ كَتَبَ أَنْ صَلُّوا الظُّهْرَ إِذَا كَانَ الْفَيْءُ ذِرَاعًا إِلَى أَنْ |
| لره ډير ضائع کوونکې دی. بيا يې دا وليکل: چې د ماسپښين مونځ د يو ګز سوري د زوال کيدو نه تر د |
| يَكُوْنَ ظِلُّ أَحَدِكُمْ مِثْلَهُ وَ الْعَصْرَ |
| يو مثل سوري پورې (علاوه د اصلي سوري نه) په هغه وخت کې کوئ او د مازيګر مونځ په داسې وخت |
| وَ الشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ نَقِيَّةٌ قَدْرَ مَا |
| کې کوئ چې کله لمر اوچت او سپين وي او لمر پريوتو کې د ومره وخت تيرشي چې څوک په دې وخت کې |
| يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فَرْسَخَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً قَبْلَ مَغِيْبِ الشَّمْسِ وَ الْمَغْرِبَ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ وَ |
| دوه يا دري ميله سفر وکړي مخکې د لمر د ډوبيدو نه او د ماښام مونځ د نمر پريوتو نه پس کوئ او د |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْعِشَاءَ | إِذَا | غَابَ | الشَّفَقُ | إِلَى | ثُلُثِ | اللَّيْلِ | فَمَنْ |

ماخوستن مونځ د شفق غائبیدو نه تر دشپې دریمې حصې پورې کوئ او څوک چې د ماخوستن مونځ ونه

نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ فَمَنْ نَامَ فَلَا نَامَتْ عَيْنُهُ وَ

کړي او اوده شي نو دده سترګو ته دې خوب نصیب نه شي درې ځله یې دا بد دعاء وکړه او وي ليکله او

الصُّبْحَ وَ النُّجُومُ بَادِيَةٌ مُشْتَبِكَةٌ (رَوَاهُ مَالِكٌ فِي الْمُوَطَّأ) (۱)

د سحر مونځ په داسې وخت کې کوئ چې کله ستورې په تیاره کې وي.

**توضیح**: **کتب الی عماله**: **عمال** جمع د **عامل** ده مراد ترې ګورنر او والي دی (المرقات ۲/۲۹۲).

حالانکه مونځ د دین ستن ده او ددین دبنیادي ارکانو نه ده او ددې خیال ساتل د مسلمانانو د خلیفه دبنیادي ذمه دارانو (مسؤلیتونو) نه ده ځکه حضرت عمر رضي الله عنه ددې حکم په سرکاري او تاکیدي طریقې سره وکړو او حق یې ادا کړو چې چا د مونځ حق ادا کړو یعني مونځ یې وکړو او ددې د فرائضو او مستحباتو او واجباتو او سنتو او وخت حفاظت او پابندي یې وکړه نو دا د ملک نورو کارونو او د حقوق الله او حقوق العباد پابندي هم کولې شي لیکن چا چې مونځ ضائع کړو چې کول یې پرېښودلو یا یې د وخت رعایت ونه کړو یا یې فرائض او واجبات په صحیح طریقې سره ادا نه کړل نو دغه کس د ملک د امورو او د نورو عبادتونو ډیر ضائع کوونکی دی، ګویا مونځ د مسلمانۍ یو معیار دی چنانچه سعدي بابا رحمه الله فرمایي: مونځ نه کوونکي ته قرض مه ورکوئ ځکه چې دا د الله تعالی قرض نه شي ورکولی نو دا به د بنده حق څنګه ورکړي، سلطان باهو فرمایي: مونځ نه کوونکي د مسلمانانو په مقبره کې مه دفن کوئ مسلمانانو. بادشاهانو لره دا حدیث د عبرت درس ورکوي چې حضرت عمر رضي الله عنه به خپل ماتحت ته د مونځ حکم ورکولو او د وختونو تفصیل به یې ورلیږلو او نن سبا حکمرانان د مونځ خبرې عار او شرم ګڼي ځکه دوي په ټوله دنیا کې ذلیله وي او د کافرانو غلامي کوي او د الله تعالی تعریف نه کوي بلکې د امریکې تعریف کوي.

**الفيء ذراعاً**: مخکې تیر شوي دي چې د هر ملک د سورې نظام جدا جدا دی ددې وجې نه د حضرت عمر رضي الله عنه دا فرمان د یو خاص مقام او د یو خاصې زمانې سره خاص دی.

**ما يسير**: دلته کلمه **ما** مصدریه ده، **فرسخ** درې میله یو فرسخ وي، شاعر وایي:

---

(۱) أخرجه مالك في الموطأ ۶/۱ رقم الحديث: ۶، كتاب وقوت الصلاة.

ان البرید من الفراسخ اربع ❁ و للفرسخ فثلاث امیال ضعوا

والمیل الف ای من الباعات قل ❁ و الباع اربع اذرع فتتبع

ثم الذراع من الاصابع اربع ❁ من بعدها العشر و لثم الاصبع

ست شعیرات فظهر شعیرة ❁ منها الی بطن لاخری توضع

ثم الشعیرة ست شعرات فقل ❁ من شعر بغل لیس فیها مدفع

**فمن نام**: په ظاهره دا حکم د ماخوستن سره متعلق دی ځکه چې ماخوستن د خوب وخت وي په روایتونو کې د ماخوستن مونځ نه مخکې خوب نه منع فرمایلي ده دلته هم حضرت عمر رضی الله عنه د ماخوستن مونځ نه مخکې خوب کوونکي د پاره بد دعاء او خیرې کوي ، ابن حجر رحمه الله فرمایي چې ددې حدیث نه معلومه شوه چې د ماخوستن مونځ نه مخکې خوب حرام دی لیکن د احنافو په نزد تفصیل دادی :که چیرته د مونځ وخت داخل نه وو نو خوب منع نه دی او که وخت داخل وي او د پاڅیدو انتظام یې وي نو اوده کیدل جائز دي او که انتظام یې نه وي او د خوب داسې غلبه وه چې د مونځ وخت ترې فوت کیږي نو بیا خوب کول جائز نه دي بلکې مکروه دی (**کذا في المرقات ۲/۲۹۳**)

بعضې شارحین د **فمن نام** نه د مونځ پرېښودل او غفلت او هیریدل مراد اخستی برابره خبره ده که خوب وي او که بله مشغله وي . (**اشعة اللمعات ۳۱۰**)

**النجوم بادیة** : **نجوم** د **نجم** جمع ده ستوري مراد دي،او د **بادیة** نه مراد ظاهریدل او واضح کیدل دي ، **مشتبکة** ددې تفصیل دی چې ګڼ ستوري موجود وي .

## د یو مشکل حدیث مطلب :

| |
|---|
| **﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : كَانَ قَدْرُ صَلَاةِ رَسُول الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الظُّهرَ فِي** |
| د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت دی فرمایي چې د نبي علیه الصلاة والسلام د ماسپښین مونځ اندازه په |
| **الصَّيْفِ ثَلَاثَةَ أَقْدَامٍ إِلى خَمْسَةِ أَقْدَامٍ وَ فِي الشِّتَاءِ خَمْسَةَ أَقْدَامٍ إِلى سَبْعَةِ أَقْدَامٍ**.(۱) |
| ګرمۍ کې د درې قدمونو نه تر پنځه قدمونو پورې وه او په ژمي کې د پنځه قدمونو نه تر اووه قدمونو پورې وه، |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۲۸۳ رقم الحدیث : ۴۰۰ ، وأخرجه النسائي في السنن ۱/ ۲۵۰ رقم الحدیث : ۵۰۳.

**توضیح** : **الى خمسة اقدام** : د حساب پوهیدونکو په اصطلاح کې قدم د هر څیز د قد اومې حصې ته ویلی شي په یخنۍ کې سوری اوږد وي ځکه د ماسپښین مونځ وخت کله اوه قدمه او کله پنځه قدمه په مقدار باندې وي .خلاصه دا شوه چې د **سبعة اقدام** مطلب پوره مثل دی او د **ثلاثة اقدام** مفهوم تقریبانیم مثل دی او **خمسة اقدام** مطلب تقریباً دیو مثل دوه نیم دی.(المرقات ۲/۲۹۴).

داخبره بار بار لیکلی شوې ده چې د سوري دا نظام د ټولو ملکونو او علاقو د پاره یو شان نه دی بلکې د علاقو بدلید و سره د سوري دا مقدار بدلیږي .الحمد لله دد ي حدیث مطلب واضحه شو زه په دې باندې د الله تعالى لاکهلاکه شکر ادا کوم او په دې هم شکر ادا کوم چې د حدیث خدمت په مکه مکرمه کې کوم.

فضل محمد نزیل مکة المکرمة

دار عمر عبدالحفیظ مکي

۹ رمضان ۱۳۲۳هـ



۱۲ ربیع الاول ۱۴۱۰ھ

# بَابُ تَعْجِيْلُ الصَّلَاةِ:

## په جلتۍ او تادۍ سره مونځ کولو بیان:

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

## د مونځ د مستحب وختونو تعین:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَيَّارِ بْنِ سَلَامَةَ قَالَ : دَخَلْتُ أَنَا وَ أَبِيْ عَلَى |
| د حضرت سیار بن سلامه نه روایت دی فرمایي چې: حاضر شوم زه او زما والد (مونږ دواړه) د حضرت |
| أَبِيْ بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ فَقَالَ لَهُ أَبِيْ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابو برزة اسلمي رضي الله عنه په خدمت کې زما پلار د هغه نه پوښتنه وکړه چې: څنګه به کولو پیغمبر علیه السلام |
| يُصَلِّي الْمَكْتُوْبَةَ فَقَالَ كَانَ يُصَلِّي الْهَجِيْرَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْأُوْلٰى حِيْنَ تَدْحَضُ الشَّمْسُ |
| فرض مونځ هغوي وویل: چې پیغمبر علیه السلام د ماسپښین چې اولنی مونځ ورته ویلې شي د لمر د زائله |
| وَ يُصَلِّي الْعَصْرَ ثُمَّ يَرْجِعُ أَحَدُنَا إِلٰى |
| کیدو په وخت کې کولو او د مازیګر مونځ (به یې داسې وخت) کې کولو چې واپس به راتلو د مونږ نه څوک |
| رَحْلِهٖ فِيْ أَقْصَى الْمَدِيْنَةِ وَ الشَّمْسُ حَيَّةٌ وَ نَسِيْتُ |
| ځای ته د مدینې غاړې ته او لمر به روښانه وو (یعنې د بدلیدو نه مخکې) او سیار وایي چې: ما هیر کړه |
| مَا قَالَ فِي الْمَغْرِبِ وَ كَانَ يَسْتَحِبُّ |
| هغه څه چې د ماښام د مونځ په باره کې ابو برزه چې څه ویلې وو او (ابو برزه وایي) چې بهتر به یې ګڼلو |
| أَنْ يُؤَخِّرَ الْعِشَاءَ الَّتِيْ تَدْعُوْنَهَا الْعَتَمَةَ وَ كَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ |
| نبي علیه السلام په تاخیر سره کول د ماخوستن مونځ کوم ته چې تاسو عتمة وایي او مکروه به یې ګڼلو خوب |
| قَبْلَهَا وَ الْحَدِيْثَ بَعْدَهَا وَ كَانَ يَنْفَتِلُ مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حِيْنَ |
| مخکې د ماخوستن د مونځ نه او خبرې کول پس د مونځ نه او د سحر مونځ نه به داسې وخت کې فارغیدل |
| يَعْرِفُ الرَّجُلُ جَلِيْسَهٗ وَ يَقْرَأُ بِالسِّتِّيْنَ إِلَى الْمِائَةِ. |
| چې هر یو کس به ځان سره ناست کس پیژندلو او لوستل به یې (مونځ کې) د شپیته آیتونو نه ترسل آیتونو |

وَ فِيْ رِوَايَةٍ : وَلَا يُبَالِيْ بِتَأْخِيرِ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ

پورې او په يو روايت کې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به سوچ نه کولو په وروسته کولو د ماخوستن مونځ تر دريمې

اللَّيْلِ وَلَا يُحِبُّ النَّوْمَ قَبْلَهَا وَ الْحَدِيثَ بَعْدَهَا. (متفق عليه)(۱)

حصې د شپې پورې او نه به يې خوښول خوب مخکې د ماخوستن مونځ نه او نه خبرې کول وروسته د مونځ نه

**توضيح**: صاحب مشکوة چې کله د مونځونو د وختونو د واجب کيدو بيان وکړو او دا يې وښودل چې د هر مونځ د وخت اولنۍ حصه د کوم ځاى نه ده او آخري حصه د کوم ځاى پورې ده نو اوس يې د مونځ د مستحب وخت بيان شروع کړو چې د دې وخت په کومه حصه کې مونځ کول افضل دي د دې مقصد د پاره

هغه د **باب تعجيل الصلاة** عنوان قائم کړو، اوس اصولي طور باندې د مونځونو په افضل وخت کې د شوافعو او د احنافو اختلاف دى، شوافع د ماخوستن مونځ نه علاوه باقي په ټولو مونځونو کې د تعجيل او د جلتۍ کولو ته افضل وايي ، او احناف د ماښام مونځ نه علاوه ټول مونځونو کې تاخير کولو ته افضل وايي ، ليکن د تاخير مطلب دا نه دى چې د وخت مکروهه پورې تاخير وشي بلکې مطلب دا دى چې په وخت مستحبه کې لږ تاخير وشي . د دې باب د احاديثو په ضمن کې به ټول تفصيل راشي .د بحث لاندې حضرت سيار بن سلامه په حديث کې د پنځوو مونځونو د وختونو ذکر دى مگر په دې کې صرف اشارات دي د دې وجې نه يې د سحر مونځ نه تر ماخوستن مونځ پورې په ترتيب سره مونځونو د وختونو مستحب والى بيان کړى دى چې لوستونکي په آسانه سره پوهه شي .

**د سحر مستحب وخت** : **حين يعرف الرجل جليسه** : يعني نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې کله د سحر مونځ نه فارغ شو نو خلکو به خپل نزدې ملگري پيژندل، د دې مطلب دا شو چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به د سحر مونځ په غلس او تياره کې شروع کولو ځکه چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به کله شپيتو نه تر سل ايتونو پورې د سحر مونځ کې تلاوت کوو او بيا به هم خلکو د يو بل سره نزدې کس نه پيژندلو ، نو معلومه شوه چې **غلس** کې به يې کولو ، دويم حديث کې دي مفهوم ته و **الصبح بغلس** الفاظو سره اشاره شوې ده نو دلته د **غلس** حکم وشو مگر د دې نه علاوه په ډيرو احاديثو کې راغلي دي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د سحر مونځ په اسفار (رڼا) کې حکم ورکړى دى .په روايتونو کې د دې اختلاف نه د فقهاو په مينځ کې د سحر مونځ د مستحب وخت کې اختلاف شو اگر چې په دې باندې اتفاق دى د طلوع فجر نه د لمر راختو

---

(۱) أخرجه البخاري ۲۶/۲،رقم الحديث ۵۰۵، ومسلم ۴۴۷/۱ رقم الحديث:۲۳۵-۶۴۷، وأبو داود ۲۸۱/۱ رقم الحديث ۳۹۸، والنسائي ۲۴۶/۱، رقم الحديث: ۴۹۵ ، وابن ماجة ۲۲۱/۱، رقم الحديث ۶۷۴

پورې ټول وخت د سحر د مونځ دی .

**د فقهاو اختلاف** : امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ یعني د جمهورو په نزد د سحر مونځ په غلس کښې کول افضل دی چې ابتداء هم په غلس کښې وي او ختمیدل هم په غلس کښې وي .د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ ، سفیان ثوري او امام ابویوسف رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د سحر مونځ په اسفار کښې شروع کول او په اسفار کښې ختمول یعني په رڼا کښې مستحب او افضل دی په داسې حال کښې که چیرته د سحر مونځ فاسد شي نو چې دوباره کولو د پاره په وخت کښې امکان ضرور وي . د امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ نه یو قول منقول دی چې امام طحاوي رَحِمَهُ اللَّهُ اخستې دی ددې دواړو په نزد شروع په غلس یعني (تیاره) کښې افضل ده مګر قرأت دومره اوږدول چې ختموالی په اسفار یعني په رڼا کښې راشي ، دغه رنګ په غلس او اسفار دواړو احادیثو مبارکو باندې عمل به راشي او احادیثو کښې تطبیق به هم راشي لیکن په دې مسلک کښې دروندوالی او لوي بوج دی .

**دلائل** : د جمهورو اول دلیل : مشکوة کښې ( ص ۴۵ باندې حدیث ۲ ) کښې محمد بن عمرو بن الحسن روایت دی په دې کښې دا الفاظ راغلي دي : **والصبح بغلس** ، او غلس د شپې اخري حصې هغه تیاره ده چې داد سحر رڼا سره یو ځای وي لهذا په تیاره کښې مونځ کول افضل دی نن سبا په جزیره عرب کښې په دې حدیث عمل کیږي .د جمهورو دویم دلیل : مشکوة کښې ( ص ۴۵ باندې حدیث ۱۱ ) کښې د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا روایت دی چې په دې کښې دا الفاظ دي:**قالت :کان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیصلي الصبح فتعرف النساء متلفعات بمروطهن ما یعرفن من الغلس. ( متفق علیه )**

د جمهورو دریم دلیل د حضرت ابومسعود انصاري روایت دی ددې دا الفاظ دي:**انه صلی الصبح بغلس ثم صلی مرة اخری فأسفر بها ثم کانت صلوته بعد ذلک في الغلس حتی مات ولم یعد الی ان یسفر** . یعني د ژوند معمول د غلس وو یو ځل نیم یې اسفار کړي بیا یې کله هم نه دی کړی جمهورو د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د ژوند دغه معمول او فعلي روایاتو نه استدلال کړی دی او د هغه روایت نه هم استدلال کوي کوم کښې چې په اول وخت کښې مونځ کول افضل ګرځول شوی دی ، او د مشکوة فصل ثالث کښې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ والا روایت نه هم استدلال کوي چې په دې کښې دا الفاظ دي : **والصبح و النجوم بادیة مشتبکة** یعني چې کله په آسمان کښې ډیر ستوري چمک پرق وهي نو هغه وخت تیاره وي ، نو معلومه شوه چې په تیاره کښې یې مونځ کړی دی ، په دې مسئله کښې د احنافو ډیر دلائل دي چې یو څو دلائل ذکر کولی شي :(۱) د احنافو اول دلیل موجوده حدیث د حضرت سیار والا روایت دی په دې کښې : **حین یعرف الرجل جلیسه** الفاظ راغلي ، طرز استدلال داسې دی چې کله یو کس خپل ملګري پیژني

خاص کړ چې کله جماعت تنګ وي نو دغه وخت بنه ډیره رڼا وي داد اسفار دلیل شو .(۲) د احنافو دویم دلیل بخاري او مسلم کې د ابن مسعود رضي الله عنه روایت دی دکوم الفاظ چې په اختصار سره دادي: **ما رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى صلوة بغير وقتها الا بجمع الى ان قال و صلى صلوة الصبح من الغد قبل وقتها** ، یعنې پیغمبر علیه السلام کله هم یو مونځ د خپل وخت معتاد نه مخکې نه وو ادا کړی . صرف په مزدلفه کې پیغمبر علیه السلام د وخت معتاد نه مخکې د سحر مونځ په **غلس** کې وکړو ددې نه معلومه شوه چې عام عادت یې په غلس کې نه وو . (۳) د احنافو دریم دلیل چې په خپل مدعا باندې واضحه دلیل دی چې په مشکوة کې په فصل ثاني کې د رافع بن خدیج رضي الله عنه حدیث نمبر ۲۶ دی الفاظ یې دادی : **اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر** (ترمذي ، ابوداؤد) دې واضح دلیل کې امام شافعي رحمه الله یو تاویل کړی چې په **کتاب الام** کې ذکر دي ،او هغه تاویل دا چې دې حدیث کې **اسفار** مراد نه دی بلکې د **اسفروا** مطلب دادی چې د سحر وخت خه یقیني معلوم شي بیا د سحر مونځ په کې کوئ داسې نه چې د طلوع فجر نه مخکې وشي لهذا چې تا ته واضحه اندازه وشي چې صبح صادق وخت شو نو دغه وخت کې د سحر مونځ کوئ ددې حدیث د اسفار سره هیڅ تعلق نشته او نه د **غلس** منافي دی .

ددې جواب احناف دا ورکوي چې دا تاویل صحیح نه دی ځکه چې دې سره دویمه جمله : **فانه اعظم للاجر** موجود دی او **اعظم** اسم تفضیل دی نو مطلب به داشي چې د سحر راختو وخت یقیني شي نو مونځ کوي ځکه چې دا په اجر او ثواب کې ډیر لوی دي او که د طلوع فجر نه یې مخکې مونځ وکړو نو جائز دی خو ثواب به کم ملاویږي دا مطلب بالکل غلط دی ځکه چې دې تاویل سره به د حدیث ټول مفهوم وران شي . همدارنګې دا تاویل هم ځکه صحیح نه دی چې په دې روایت کې **اسفروا** لفظ دی لیکن په نورو روایاتو کې **کلما اسفرتم** الفاظ دي ، هلته خو د یقین هغه مطلب نه شو اخستی کوم چې امام شافعي رحمه الله اخستی دی یو روایت کې **کلما اصبحتم بالفجر** دی یو روایت کې **لوروا بالفجر فانه اعظم للاجر** الفاظ دي ، یو روایت کې **حين اسفرت الارض** الفاظ دي یو روایت کې دا الفاظ دي : **يا بلال اسفر بالصبح حتى يبصر القوم موقع نبلهم من الاسفار** ، یعنې د سحر مونځ په داسې رڼا کې کوئ چې خلک غشي ولي چې د غشي لګیدو ځای معلوم وي ددې الفاظو او تفصیلاتو په موجودګۍ کې د حضرت امام شافعي رحمه الله تاویل قابل قبول نه دی بهر حال د احنافو دلائل ډیر دي او واضحه دي اګر چې جمهورو سره هم دلائل شته دی .

**جواب**: ائمه احناف د جمهورو دلائلو په باره کې وايي د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ مبارک فعل نه په کثرت سره ثابت دی چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د سحر مونځ په غلس(تياره) کې کړی دی ليکن هغه ټول فعلي روايات دي او مونږ چې د رافع بن خديج روايت **اسفروا بالفجر** راجح ګرځولی دی نو دا قولي روايت دی نو هر کله چې په قول او فعل کې تقابل راشي نو قولي راجح وي ځکه چې فعلي کې د خصوصياتو او امتيازاتو وغيره احتمالات وي نو لهذا دلته هم دا خصوصيات دي مثلاً : غلس کې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې وجې نه مونځ کړی چې صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ تهجد ګزار وو او سحر نه مخکې په جومات کې موجود وو ددې وجې نه تکثير جماعت(د غټې جمعې) د پاره انتظار ضروري نه دی چې کله صبح صادق شو نو جمع به ودريده چې سترې تهجد ګزار فارغ شي .همدارنګې په مسجد نبوي کې په جماعت کې به زنانه هم شريکې وې د هغوي د پردې مسئله به وه نو ځکه به په غلس کې مونځ کيدلو چې د ښځو بې پردګي نه وي ، همدارنګې چې کومې ښځې به په جماعت کې شريکيدلې نو د هغوي په کورونو کې به د ماشومانو د راپاڅيدو او د ژړا مسئله وه نو ځکه به مونځ زر کيدو چې زنانه فارغې شي نن سبا هم د چا د ډيوټۍ(وظيفې) مسئله وي نو په غلس کې مونځ کول ضروري دي څنګه چې په روژه کې خلک حاضريږي او په غلس کې مونځ کوي خلک په آرام سره نوکرو ته ځي حالانکه د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ فعل مونږ ته ډير غوره دی خو پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ چې امت ته کوم فرمان کړی دی نو هغه عملي کولو دپاره په دې فعل باندې مقدم دی .پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ به په خپله چې څنګه هم عمل کولو خو مونږ ته يې د اسفار حکم کړی دی او په دې کې دغټې جمعې فائده هم ده .باقي د جمهورو دليل:**ما يعرفن من الغلس** کې علماء فرمايي : چې د **من الغلس** لفظ مدرج دی دا يو راوي ذکر کړی دی ځکه چې ابن ماجه وغيره کتابونو کې ددې لفظ پته نه لګي يا دا چې په تنګ ځای کې چې کله زنانه په څادر کې را تاؤ شوې وي نو په **اسفار** کې يې هم پته نه لګي دليل تام نه شو پاتې د ابومسعود انصاري روايت علماو ضعيف ګرځولی دی . باقي چې په کوم رواياتو کې مونځ په اول وخت کې کولو فضائل راغلي دي د هغې مونږ هم قائل يو چې وخت مستحب مراد دی مستحب وخت کې مونځ کول افضل او اولی دی باقي امام طحاوي رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ د بعضې صحابو د معمول نه استدلال کړی دی او د ټولو احاديثو د جمع کولو کوشش يې کړی دی مګر په دې عمل کول مشکل دي پاؤ باندې يوې ګيټې پورې مونځ کولې شي .

**د ماسپښين مستحب وخت** : د ماسپښين مستحب وخت کې اختلاف دی ددې نه مخکې د ماسپښين د وخت متعلق اختلاف تير شوی دی هغه د ماسپښين وخت د مستحب په باره کې نه وو بلکې هغه د ماسپښين وخت په شروع او آخري سره متعلق وو بهر حال مستحب وخت کې اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف** : د شوافعو په نزد ماسپښين کې تعجيل افضل دی مزید نور تفصيل نشته ، د احنافو په نزد په دې کې تفصيل دی که موسم سخت ګرم وي نو **ابراد في صلوة الظهر** او تاخير مستحب دی او که موسم يخ وي نو تعجيل مستحب دی .

**دلائل** : فقهاو په خپلو مدعاو باندې دلائل راجمع کړي دي د شوافعو دلائل دادي :اولنی دليل د حضرت خباب رضي الله عنه روايت دی ددې الفاظ دادی: **شكونا الى رسول الله** صلى الله عليه وسلم حر الرمضاء **فلم يشكنا** . ددې حديث نه معلوميږي چې په سخته ګرمئ کې مونځ شوی دی دا په اول وخت کې د کولو او د تعجيل دليل دی .دويم دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها روايت دی ترمذي شريف کې موجود دی چې الفاظ يې دادي: **ما رأيت اشد تعجيلا للظهر من رسول الله** صلى الله عليه وسلم **ولا من أبي بكر ولا من عمر**.شوافعو ددې روايت نه هم استدلال کړی دی ددې الفاظ دادي :**كان يصلي الظهر بالهاجرة** . يعنې پيغمبر عليه السلام به د ماسپښين مونځ وختي کولو يعنې د غرمې لفظ راغلی دی. د احنافو ائمو دليل په بخاري کې حديث: **ابردوا بالظهر** نه استدلال کړی دی،همدارنګې د حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه په قصه کې چې کوم لفظ راغلي : **حتى رأينا فيئ التلول** دې نه هم د ماسپښين د تاخير استدلال کيږي ددې نه علاوه هم د ابراد او د تاخير کافي روايات موجود دي .

**جواب** : شوافعو چې د تعجيل د ماسپښين متعلق کومو رواياتو نه استدلال کړې دی په دې کې حضرت خباب رضي الله عنه روايت د مکي زمانې مونځونو سره تعلق لري او مدني ابراد والا روايت سره دا روايت موقوف شوی دی، همدارنګې زمکه ګرمه کيدل د مونځ د تعجيل علامه نه ده بلکې ګرم ملکونو کې د ماښام پورې زمکه ګرمه وي . د شوافعو د حضرت عائشې رضي الله عنها او دغه رنګ د ام سلمه رضي الله عنها روايت نه چې کوم استدلال کړی دی دا تعجيل په يخنئ موسم باندې محمول دی چې په يخنئ کې مونځ په جلتئ او تادئ سره کړی دی دا په خپله احاديثو کې موجود دی . باقي د حضرت جابر رضي الله عنه روايت کې چې لفظ د **الهاجرة** راغلی دی نو دا اول وخت سره خاص نه دي بلکې **هاجره** د ماسپښين نه تر ماز يګره پورې وخت ته ويلی شي .

**د مازيګر مستحب وخت**: زيربحث حديث کې:**و صلى العصر....والشمس حية**،الفاظ راغلي دي بعضې رواياتو کې **والشمس مرتفعة** الفاظ دي دې رواياتو نه د مازيګر مونځ د جلتئ او تادئ اندازه کيږي او بعضې رواياتو نه معلوميږي چې مازيګر کې تاخير شوی دی د رواياتو د اختلاف د وجې نه د مازيګر مونځ په مستحب وخت کې د فقهاو اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف** : دري ائمه د مازيګر مونځ تعجيل ته مستحب وايي او د احنافو ائمو په نزد تاخير مستحب دی ليکن دومره تاخير جائز نه دی چې په لمر کې اصفرار او تغير راشي بلکې مستحب وخت کې دننه لګ تاخير مستحب دی.

**دلائل** : د ائمه ثلاثه اولنی دليل همدغه زير بحث حديث دی چې په هغې کې مذکور دی چې د مازيګر مونځ نه پس زمونږ نه يو کس د مدينې په بهر اطرافو کې خپل کور ته تللو او لمر تازه يعنې اوچت ولاړ وو نو معلومه شوه چې د مازيګر مونځ په جلتۍ او تادۍ وخت کې کيږي .ائمه ثلاثه دويم دليل د مشکوة ص ۴۵ باندې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دويم روايت دی چې د مازيګر مونځ نه پس د مدينې لرې ته تللو او لمر هغه وخت پوره اوچت وو او بعضې عوالي د مدينې نه په څلور ميله فاصله کې وو ائمه ثلاثه د رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه استدلال کړی دی دا حديث د مشکوة ص ٦١ باندې حديث نمبر ۲۹ دی ، کوم کې چې دا فرمايي چې مونږ د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام سره د مازيګر مونځ کولو او ددې نه پس اوښ به مو ذبح کړو او په لسو حصو باندې به مو تقسيم کړو بيا به مو غوښه پخه کړه او بيا به مو وخوړله او لمر به تر دې وخته پورې پريوتې نه وو .جمهور فرمايي : ددې روايت نه واضح طور باندې معلوميږي چې د مازيګر مونځ په جلتۍ سره کولی شي لهذا زر مونځ کول افضل دی .د احنافو دليل د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت دی چې په مشکوة ص ٦٦ باندې حديث نمبر ۳۳ دی ددې الفاظ دادي :**قالت كان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشد تعجيلاً للظهر منكم و انتم اشد تعجيلا للعصر منه**. ددې حديث نه معلومه شوه چې د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام نه پس خلکو مازيګر کې تعجيل شروع کړو ، دې باندې ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خفګان اظهار وکړو .د احنافو دوهم دليل علي بن شيبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی کوم چې په ابوداؤد ( ج ۱ ص ۵۹) باندې موجود دی الفاظ يې دادي : **عن علي بن شيبان قال قدمنا على رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المدينة فكان يؤخر العصر ما دامت الشمس بيضاء نقية**.

د احنافو دريم دليل د حضرت رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې طبراني او احمد او دار قطني ذکر کړی دی الفاظ يې دادي :**عن رافع بن خديج ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يأمرنا بتاخير العصر ( كذا في معارف السنن)**.

د احنافو څلورم دليل د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل دی عبد الرحمن بن يزيد فرمايي چې هغه به د مازيګر مونځ ناوخته يعنې په تاخير سره کولو (**كذا في مصنف ابن ابي شيبة**) د ټولو رواياتو نه احنافو دا سبق واخيستو چې په مازيګر کې تاخير کول مستحب دی خو په شرط ددې چې مستحب وخت موجود وو.

**جواب**: ائمه ثلاثه د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغیره چې د کوم روایاتو نه استدلال کړی دی چې په هغې کې د مدینې نه د بهر تللو او څلور میله لاره وهل او نمر د موجود کیدو ذکر دی ددې جواب دادی عوالي د مدینې مختلف قسم باندې دي بعضې اته میله باندې، بعضې څلور میله او بعضې په درې میله فاصله باندې دي، او حدیث کې تعیین نشته دی چې کوم عوالي مراد دي، حالانکه د تللو والا پته هم نه لګي چې پیدل دی یا په سورلۍ باندې دی، دا هم معلوم نه دی چې ځوان دی یا بوډا، دغه رنګې دا هم علماء لیکي چې د مازیګر نه پس څلور یا اته میله فاصله وهل د محنتي عربو د پاره هیڅ نه دی، نن سبا د احنافو د مسلک مطابق د مازیګر مونځ نه پس خلک دومره فاصله ښه په آسانه وهي او لمر موجود وي.

**فتح الملهم کې علامه عثماني** رَحِمَهُ اللهُ لیکي: په دیو بند کې یو مدرس وو د زیارت په ورځ به چې کله چوټې وشوه نو د احنافو د وخت مطابق به یې د مازیګر مونځ وکړو او پیدل به منګلور ته تللو او هلته به یې د ماښام مونځ کولو، دیوبند نه د منګلوره پورې دولس میله فاصله ده. ائمه ثلاثه د رافع بن خدیج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی احناف د هغې جواب داسې ورکوي چې عربو خلکو اوښ ذبح کول او د هغې په جوړولو کې ماهر وو چې ماهر لس کسان اوښ ذبح کړي او بیا یې تقسیم کړي او نرمه نرمه غوښه زر پخه کړي دا کار ډیر زر کیږي دا د مازیګر د تعجیل دلیل نه دی بلکې دا کار د مازیګر نه پس هم کیږي یا داسې قسمه روایات د ګرمۍ په موسم باندې حمل کړی شي نو په هغې کې وسعت کیدی شي. بهر حال صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د مازیګر مونځ نه پس د وختونو اندازې ښودلې دي، دې نه د مازیګر تعجیل معلومیږي هیڅ تعین نشته دی که وخت مستحب کې که چیرته تاخیر وشي نو د احنافو مسلک ډیر مناسب دی او احادیثو نه په دې باندې استدلال کولی شي نن سبا غیر مقلد حضرات او په حجاز مقدس کې د مازیګر مونځ دومره وختي کولی شي چې د هغې نه پس خلک کاروبار شروع کوي حالانکه د مازیګر لغوي معنی نچوړدی نو دا وخت د ورځې نچوړ کنټرول په کار دي دا نه چې نیمه ورځ د مازیګر نه پس راشي او د ماسپښین نه پس لږ وخت پاتې شي د انصاف تقاضا داده چې نه ډیر ناوخته وکړی شي او نه ډیر مخکې وکړی شي.

**د ماخوستن مستحب وخت: وکان یستحب ان یؤخر العشاء**: د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ په نزد د ماخوستن مستحب وخت ثلث اللیل پورې دی، د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد ماخوستن کې تعجیل افضل دی، د شوافعو او مالکیو دلیل د حضرت نعمان بن بشیر روایت دی ددې الفاظ دادي: **کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یصلیها ای العشاء لسقوط القمر الثالثة (مشکوة ص ٦١)** دا حضرات فرمایي چې د دریمې شپې میاشت په جلتۍ سره ورکیږي معلومه شوه چې جلتي کول افضل دی. د شوافعو دوهم دلیل هغه عام روایات دي چې په

هغې کې په اول خت کې مونځ کول افضل ویلی شوې دي ۰ د احنافو او جمهور و اولني حديث زير بحث دی دې کې تاخیر مستحب دی دا واضحه دلیل دی . د جمهورو دوهم دلیل مشکوة ص ٦١ باندې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې الفاظ يې دادی : **لولا ان اشق على امتي لامرتهم ان يؤخر العشاء الى ثلث الليل** (رواه احمد وابوداؤد)

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : د دویمې شپې میاشت د غروب شفق سره نزدې ورکیږي حالانکه د دریمې شپې میاشت ډیر وخت پس ورکیږي ، ددې حضراتو استدلال مکمل نه دی باقي د اول وخت د فضیلت څومره روایات دي ددې ټولو جواب دادی د اول وخت نه مراد هغه وخت دی چې هغه مستحب او افضل وخت دی او هغه هلته دی چې کوم مونږه وایو .

**فائده:** د مونځ د مستحب وختونو په تعین کې چې د کومو فقهاو اختلاف دی هغه ټول په اولی او غیر اولی کې اختلاف دي ، د جواز او عدم جواز اختلاف نه دی لهذا دا اختلافات د جنګ او جګړې ځای نه دی جوړول په کار. احنافو د جماعت د ډیروالي په خاطر د ماخوستن مونځ وروسته کول افضل ګرځولی چې په راتلونکي حديث کې ذکر دي لهذا په اول وخت کې د مونځ کولو د فضیلت نه احناف انکار نه کوي.

**لا يحب النوم :** یعني د ماخوستن مونځ نه مخکې خوب کول صحیح نه ګڼړي ، ځکه چې د مونځ د قضاء کیدو خطره وي اکثر علماء يې مکروه ګڼړي ، بغضې حضراتو ورته جائز ویلي دي چنانچه حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماخوستن مونځ نه مخکې اوده کیدو .علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي : که چیرته چا باندې د خوب غلبه نه وي او د مونځ د قضاء کیدو ویره نه وي بیا مکروه نه دی د ماخوستن نه پس فضول خبرې کول مکروه دي خو علمي او دیني خبرې کول جائز دي مخکې تفصیل ذکر شوی دی .

## په شریعت کې د جماعت ډیروالی مطلوب دی :

| |
|---|
| ﴿٢﴾ وَعَنْ مُحَمَّد بن عَمْرٍو ابْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ : سَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِاللّٰهِ |
| د محمد بن عمرو بن حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمایي چې مونږ تپوس وکړو د جابر بن عبد الله |
| عَنْ صَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَ الْعَصْرَ |
| نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مونځ په باره کې نو هغه وویل نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د ماسپښین مونځ وختي کولو او د مازیګر |
| وَ الشَّمْسُ حَيَّةٌ وَ الْمَغْرِبَ إِذَا وَجَبَتْ |
| مونځ يې داسې وخت کې کولو چې لمر به ژوندی ؤ (رڼا) به وه او د ماښام مونځ به يې د نمر پریوتو نه پس کولو |
| وَ الْعِشَاءَ إِذَا كَثُرَ النَّاسُ عَجَّلَ وَ إِذَا قَلُّوْا أَخَّرَ |
| او د ماخوستن مونځ چې کله به خلک ډیر وو نو زر به يې کولو او چې کله به خلک کم وو نو تاخیر به يې کولو |

وَ الصُّبْحِ بِغَلَسٍ . (متفق عليه)[1]

او د سحر مونځ به يې په تياره کې کولو .

**توضيح** : **اذا قلوا أخر** : ددې حديث نه يوه قاعده مخې ته راغله چې د د جمعې زياتوالی د شريعت په نظر کې ډير اهم دی لهذا د مونځونو په وختونو کې ددې خاص خيال ساتل په کار دی ، ددې قاعدې نه د احنافو مسلک ته هر ځای کې فائده وي .

﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالظَّهَائِرِ

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی فرمايي چې : مونږ د پيغمبر عليه السلام پسې د ماسپښين مونځ کولو

سَجَدْنَا عَلَى ثِيَابِنَا اِتِّقَاءَ الْحَرِّ . (متفق عليه ولفظه للبخاري) .[2]

نو مونږ سجدې کولې په خپلو څادرو باندې د ګرمی نه د ځان بچ کولو د پاره .

**توضيح** : **بالظهائر** : دا لفظ د **ظهيرة** جمع ده دا غرمې ته ويلی شي ليکن دلته ظهر مراد دی هره ورځ د ظهر راتلو د پاره جمع راوړلی شوې ده .

**سجدنا على ثيابنا** : يعنې د ګرمی نه د بچ کيدو د پاره چې تندی ونه سوزي مونږه به په خپل څادر سجده کوله .امام شافعي رحمه الله وايي : دلته د کپړې نه مراد هغه کپړه ده چې اچولی نه شي بلکې جدا کپړه وي ځکه چې د اچولی شوې کپړې په هره حصه باندې سجده جائز نه ده .احناف فرمايي : چې د اچولی شوې متصل کپړې په هره حصه باندې سجده جائز ده او په حديث کې په دغه بدن باندې د اچولی شوې کپړې باندې د سجدې خبره کيږي ځکه چې صحابو رضي الله عنهم سر باندې اچولو د پاره به کپړه په مشکل ملاويده حالانکه د هغوي سره د جدا کپړې تصور نه وو .(المرقات ۲/۲۹۸).

## په زمکه باندې د لمر څه اثرات کيږي :

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی فرمايي چې: پيغمبر عليه السلام وفرمايل چې کله سخته وي ګرمي

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۷،رقم الحديث : ٥٦٥، ومسلم في الصحيح ١/٤٤٦ رقم الحديث:۲۳۳-٦٣٦، وأبوداود ١/٢٨١ رقم الحديث :٣٩٧، والنسائي ١/٢٦٤، رقم الحديث: ٥٢٧ .

(۲) أخرجه البخاري ۲/۲۲،رقم الحديث : ٥٤٢، ومسلم ١/٤٣٣و(٣٢)رقم الحديث:١٨٥-٢١٨،وأبوداود ١/٢٨٤ رقم الحديث :٦٠٤، والنسائي ١/٢٨٤، رقم الحديث: ٥٠٠ ، والترمذي ١/٢٩٥ رقم الحديث : ١٥٧ ، وابن ماجة ١/٢٩٦، رقم الحديث: ١٢٠٨.

فَأَبْرِدُوا بِالصَّلَاةِ ». وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ بِالظُّهْرِ
نو مونځ په یخ وخت کې کوئ ، د بخاري په یو حدیث کې د ابو سعید نه منقول دی دما سپښین مونځ په یخ
وخت کې کوئ (یعني دابو هریره رضي الله عنه روایت کې بالصلوة راغلي او د ابو سعید رضي الله عنه په روایت کې
فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ
بالظهر راغلي او په دې روایت کې دا الفاظ هم دي) ځکه چې د ګرمۍ سختوالی د دوزخ د دهوپ او ړاس
وَاشْتَكَتِ النَّارُ إِلَى رَبِّهَا فَقَالَتْ رَبِّ أَكَلَ بَعْضِيْ بَعْضًا
نه دی او د دوزخ اور خپل رب ته شکایت وکړې وو : ای ربه زما ! بعضې شغلې بعضې شغلو لره خوري نو
فَأَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ نَفَسٍ فِي الشِّتَاءِ وَ نَفَسٍ فِي الصَّيْفِ
الله تعالی ده ته د دوو ساګانو اجازت ورکړو نو یوه ساه په ګرمۍ کې اخلي او یوه ساه په ژمي کې اخلي ،
أَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الْحَرِّ وَ أَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الزَّمْهَرِيْرِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَ فِيْ رِوَايَةٍ
په ګرمۍ کې چې کوم وخت تا ته ډیره ګرمي معلومیږي ، او په ژمي کې چې کوم وخت تا ته ډیره یخني
معلومیږي (نو ددې سبب هم دا دی چې یوه ساه په ګرمۍ کې او یوه په ژمي کې اخلي) ، او په یو روایت
لِلْبُخَارِيِّ فَأَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الْحَرِّ فَمِنْ
د بخاري کې دي چې : کوم وخت تاسو د ګرمۍ سختوالی د لمر په دهوپ کې محسوسوي نو ددې سبب
سَمُوْمِهَا وَ أَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ مِنَ الْبَرْدِ فَمِنْ زَمْهَرِيْرِهَا.[1]
د دوزخ ګرمه ساه ده او چې کوم وخت تاسو د یخنۍ احساس کوئ نو دا د دوزخ یخه ساه ده.

**توضیح : من فیح جهنم : فیح** دوپ او ړاس ته ویلی شي په لمر کې د رابنکلو قوت او مقناطیسي کشش (جاذبیت) وي ځکه دا حرارت خپل طرف ته راکاږي او جمع کوي یې د لمر چې کومه طبقه دوزخ ته نزدې وي هغه طبقه د دوزخ نه حرارت په ډیر مقدار سره راکاږي بیا دا حصه کومو علاقو ته ډیره نزدې وي هغه علاقو کې ډیره ګرمي وي او چې د لمر کومه طبقه د دوزخ نه لرې وي په هغې کې حرارت کم وي بیا چې دا طبقه کومو علاقو ته نزدې وي په هغه علاقو کې یخني ډیره وي دا وجه ده چې کوم ملکونه په

(۱) أخرجه البخاري ۱۸/۲، رقم الحديث ۵۳۶، ومسلم ۴۳۱/۱ رقم الحديث ۱۸۵ ۶۱۸، وأبو داود ۲۸۴/۱ رقم الحديث :۴۰۲، والنسائي ۲۸۴/۱، رقم الحديث ۴۰۲، والترمذي ۲۹۵/۱ رقم الحديث ۱۵۷.

خط استواءکې واقع وي هلته ګرمي ډیره وي دلمرشعاګانې چې کوم ځای کې دڅه څیزسره نه لګیږي هلته حرارت نه ظاهریږي داسې هواګانو کې د ګرمۍ احساس نه کیږي او تنګ ځایونو کې د لمر شعاګانې لګي هلته حرارت ډیر ښکاره کیږي د زمکې نه د لمر فاصله نهه کروړه دیرش لکه میله خودلی کیږي .بهر حال د بخاري په روایت کې دا مضمون راغلی دی چې کوم وخت تاسو د ګرمۍ سختوالې د لمر په دهوپ کې محسوسوئ نو ددې سبب د دوزخ ګرمه ساه ده او چې کوم وخت تاسو د یخنۍ احساس کوئ نو دا د دوزخ یخه ساه ده .

**قول کال کې دوزخ دوه ساه ګانې اخلي** :اشتکت النار : دوزخ د الله تعالی په مخ کې شکایت وکړو زما بعضې شغلې بعضې نورې شغلو لره خوري مطلب دا چې د اور ډیر والی او د هغې حرارت دومره سخت او تیز دی چې دا شغلې یو بل کې ګډې وډې شي او یو بل فنا(ختمولو)کولو باندې راکوزیږي الله تعالی ورته د دوه ساګانو اجازت ورکړو یوه ساه بهر طرف ته وځي نو دننه ګرمي په دنیا کې خوره شي او چې کله ساه دننه راښکي نو په دنیا کې یخني خوره شي .

**سوال** :دلته دا اشکال پیدا کیږي چې دا خبره په خپل ځای باندې ثابته شوې ده چې د ګرمۍ ډیر والی او کموالې د زمکې د حرکت او د عرض البلد او د نمر د وجې نه دی نو دلته څنګه ویلی شو چې داد دوزخ د دهوپ وجه ده .

**جواب** :ددې جواب دادی چې یو نظام د اسباب ظاهره دې یو نظام د اسباب باطنه او د غیر ظاهره دې د خلکو نظر په اسباب ظاهره باندې دی لیکن د شریعت نظر په اسباب ظاهرو سره په اسباب باطنو باندې هم لګي دلته شریعت د نمر هغه پټ علت او سبب ذکر کړی دی چې د دوزخ دوپ او حرارت دې باقي د دوزخ شکایت د خپلې ژبې د حال مطابق وي چې کوم انداز کې تعبیر وشي دغه به د هغې ژبه وي . د ابراد دا حکم په ډیرو احادیثو کې راغلی دی او صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې عمل کړی دی .

امام شافعي رحمه الله وایي :که یو کس ډیر لرې نه جوماتته راځي او په لاره کې ډیره ګرمي وي نو د داسې کس د پاره په ابراد کې مونځ کول او تاخیر کول جائز دی، او چې کوم خلک په نزدې جوماتونو کې مونځ کوي یا یواځې مونځ کوي ددوی د پاره په تاخیر سره مونځ کول جائز نه دي .(اشعة اللمعات۲۱۳).

امام ترمذي د ابراد احادیث او په ګرمۍ کې د تاخیر سره د ماسپښین مونځ کول افضل او اولی دی .

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي الْعَصْرَ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې : پیغمبر علیه السلام د مازیګر مونځ په داسې وخت کې کولو |
| وَ الشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ فَيَذْهَبُ الذَّاهِبُ إِلَى الْعَوَالِي فَيَأْتِيهِمْ |
| چې لمر به اوچت اوژوندی ؤ (یعنې رڼا) به وه او څوک تلونکي به چې عوالي ته تللو او واپس چې به راتلو |

وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ وَبَعْضُ الْعَوَالِي مِنَ الْمَدِينَةِ عَلَى أَرْبَعَةِ أَمْيَالٍ أَوْ نَحْوِهِ (متفق عليه). (١)

نولمربه اوچت ولاړؤ او بعضې عوالي د مدينې نه په څلورميله يا د څلورميله نه زياتې فاصلې باندې وې

**توضيح : العوالي:** عوالي جمع د عالية ده مسجد قباء طرف ته د مدينې ښار نه بهر چې کوم اوچت کلي دي هغې ته عوالي ويلی شي ، مسجد بنو قريظه علاقه په عوالي کې داخل ده .

**و بعض العوالي:** شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې ليکي چې دا کلام ديو راوي طرف نه جوړشوی.

**(قال الشيخ في اللمعات: و اين قول زهري است که راوي از انس است ، ۳۱٤).**

**او نحوه:** په دې کې د مذکر ضمير مقدار طرف ته راجع کيږي ځکه يې مذکر راوړی دی ددې حديث نه دا معلومه شوه چې د مازيګر مونځ زر کړی شوی دی ليکن ددې دومره زر والې نه معلوميږي کوم چې غير مقلد او شوافع حضرات د مازيګر مونځ کوي .د هغوي مونځ د ورځې په څلورمه حصه کې کيږي دلته په حديث کې اجمال دی معلوم نه دی چې عوالي پيدل وو ، يا په سورلئ باندې وو يا عوالي کمزوري وو يا مضبوط وو او دا معلوم هم نه دی چې دا کس د عوالي په کوم طرف تللو يا دوه ميله والا طرف باندې يا درې يا څلور يا اته ميله طرف باندې .

## زر زر څلور ټونګې وهل او مونځ کول د منافق کار دی :

﴿٦﴾ وَعَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل دا (مازيګر مونځ ځوک آخر وخت

"تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ: يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ حَتَّى إِذَا اصْفَرَّتْ وَكَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ

کې کوي) د منافق مونځ دی چې هغه ناست وي او لمر ته ګوري چې کله لمر زيړ شي او د شيطان دوو ښکرو

قَامَ فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا ". (٢)

مينځ کې شي نو هغه او درېږي او زر زر څلور ټونګې ووهي او په دغه مونځ کې د الله ذکر هم لږ وکړي.

**توضيح : تلک:** دا اشاره ذهنيه ده او ددې نه د مازيګر هغه مونځ مراد دی چې په دې کې د مکروه وخت

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٢٨/٢،رقم الحديث . ٥٥٠، ومسلم في الصحيح ٤٣٣/١ رقم الحديث:١٩٢-٦٢١، وأبو داود ٢٨٥/١ رقم الحديث :٤٠٤، والنسائي ٢٥٢/١، رقم الحديث: ٥٠٧ ،وابن ماجة ٢٢٣/١، رقم الحديث:٦٨٢.

(٢) أخرجه مسلم في الصحيح ٤٣٤/١ رقم الحديث:١٩٥-٦٢٢، وأبو داود ٢٨٨/١ رقم الحديث :٤١٣، والنسائي ٢٥٤/١، رقم الحديث: ٥١١ ، والترمذي ٣٠١/١ رقم الحديث ١٦٠ .

پورې بغیر د څه شرعي عذر تاخیر وکړې شي.

**المنافق**: یا خو ددې نه حقیقي منافق مراد دی نودا دده د مونځ نقشه ده ځکه چې دادالله درضا دپاره مونځ نه کوي بلکې د ښودنې د پاره مونځ کوي ځکه چې په دې کې د ارکانو برابر والی او د مستحب وخت لحاظ نه وي، همدا رنګې په دې کې ذکردالله تعالی کم وي(اشعة اللمعات ۳۱۴، مرقات ۲/۳۰۰)

ګویادمنافق مونځ دظاهري ارکانوپه اعتبارسره هم ناقص دی اوباطني اذکاروپه لحاظ سره هم ناقص دي

دمنافقینوپه باره کې اعلان دی **لایذکرون الله الاقلیلا**، تونګې وهلو مطلب دادی چې منافق دښودلو دپاره زرزرمونځ کوي اوپه تیزئ سره په زمکه سجدې کوي ګویا چرګې په شان دزمکې نه دانې خوري.

**سوال**: دلته سوال پیدا کیږي چې په څلور رکعاتو کې اته سجدې دي دلته دڅلورو سجدو ذکر ولې وشو؟

**جواب**: دادی چې کله منافق داولنی سجدې نه صحیح طریقې سره سر اوچت نه کړو نو ګویا چې په څلور رکعاتو کې څلورتونګې ووهلې یادادسفرمونځ خبره ده په دې کې دوه رکعته وي یادهغه وخت خبره ده چې کوم وخت کې دماز یګردوه رکعته وو اولنی جواب راجح او واضح دی، بل دمازیګرمونځ خاص والی ددې وجې نه وشو چې دامونځ نهایت اهم دی اودصلوة وسطی دی ددې لوي فضیلت اوشان دی کوم کس چې په دې کې کوتاهي کوي هغه نهایت بدحرکت کوي اګرچې نورومونځونو کې هم دغه رنګ تیزي کول غلط کار دی. شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په دې حدیث کې د حقیقي منافق په ځای عملي منافق هم مراد اخستلی شي چې کله مراد عملي منافق شي نو بیا دغه منافق د مونځ کولو په صفت باندې وګرځولی شي، علامه مظهري رَحِمَهُ اللهُ فرمایي که یو کس د مازیګر مونځ د لمر اصفرار( زیړوالي) پورې وروسته کړو نو ده ځان منافق ظاهر کړو ځکه په مسلمانانو باندې لازم دی چې ځان د منافق د مشابهت نه وساتي د افغانستان او د کوئټې مسلمانان په دې حکم کې ډیر کوتاهي کوي. (اشعة اللمعات ۳۱۴).

## چا چې مونځ پریښودو د هغه کور وران او تباه شو:

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «الَّذِيْ تَفُوتُهُ صَلَاةُ الْعَصْرِ |
| د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمایي چې پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: چا چې د مازیګر مونځ قضاء کړو |
| فَكَأَنَّمَا وُتِرَ أَهْلَهُ وَ مَالَهُ». (متفق علیه)[1] |
| ګویا چې دده مال او اولاد ټول لوټ کړی شو. |

(۱) أخرجه البخاري ۲۰/۲، رقم الحدیث ۵۲۲، ومسلم ۴۳۵/۱ رقم الحدیث: ۲۰۰-۶۲۶، وأبو داود ۲۹۰/۱ رقم الحدیث: ۴۱۴، والنسائي ۲۳۷/۱، رقم الحدیث: ۴۷۸

**توضیح** : وتر اهله : وتر هلاک کیدو او غښ نقصان ته ویلي شي دا ماده د **ضرب یضرب** نه راځي د حدیث مطلب دا شو چې د ناراستئ د وجې نه چا د مازیګر مونځ قضاء کړو دا دومره لویه حادثه او مصیبت دی ګویا د کور ټول اولاد او مال یې تباه شو ، دغه رنګ هر یو کس خپله ښځه او بچي او مال او سامان د لوي حادثې نه هر وخت خپل ځان بچ کوي په کار ده چې د مونځ قضاء کیدو نه هم ځان بچ کړي د مازیګر مونځ تخصیص وجه ددې نور هم فضیلت دي ورنه دا حکم د نورو مونځونو متعلق دی ، بعضې احادیثو کې مطلق الفاظ راغلي دي: **من ترک صلوة مکتوبة حتی تفوته** ، یا داسې **من فاته الصلاة فکانما وتر اهله** (کذا في اللمعات)

ددې نه معلومه شوه چې دا وعید د ټولو مونځونو په باره کې دی دا هلاکت په دریو مرحلو کې کیدې شي که چیرته د وخت پوره مونځ پریخودلی شي دا پوره او مکمل هلاکت دی .که په وخت مکروه کې یې وکړو دا دویم هلاکت دی او که جماعت یې پریښودلو دا دریمې درجې هلاکت دی په دریواړو هلاکتونو کې د مونځ پریخودونکی به څه ناڅه داخل وي . (اشعة اللمعات ۳۱۴،مرقات ۲/۳۰۱).

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " مَنْ تَرَكَ |
| د حضرت بریده رضي الله عنه نه روایت دی فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : چا چې پریښودو د |
| صَلَاةَ الْعَصْرِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُه.[1] |
| مازیګر مونځ دده ټول نیک اعمال تباه شو . |

**توضیح** : **فقد حبط عمله : حبط د سمع او ضرب** دواړو نه راځي د عمل ضائع او باطل کیدو ته ویلی شي دلته حکم په سختئ والي او زجر او تنبیه باندې مبني دی ځکه چې د مسلمان ټول عمل مرتد کیدو نه پس باطل کیږي د کبیره ګناه د وجې داسې نه کیږي،داهل السنة والجماعة مسلک دی.دخوارجو او معتزلو په نزد کبیره ګناه کولو سره د سړي ټول نیک اعمال ضائع کیږي ددې حدیث نه خوارج او معتزله استدلال کوي.اهل السنة والجماعة داحدیث په تشدیداوسخت والې باندې حمل کوي ترڅوچې دنورو نصوصو سره یې تعارض رانه شي یا د همدغې ورځ اعمال مراد دي چې د کومې ورځې یې د مازیګر مونځ پریخی دی او د مونځ پریښودل د انکار او د استحقاق د وجې نه وي نو دا کس مرتد شو او دده ټول اعمال تباه شول .(المرقات ۲/۲۰۲،اشعة اللمعات ۳۱۵،الکاشف ۲/۲۰۰).

(۱) أخرجه البخاري ۳۱/۲،رقم الحدیث ۵۵۳، والنسائي ۲۳۶/۱، رقم الحدیث: ۴۷۴ ، وابن ماجة ۲۲۷/۱، رقم الحدیث: ۶۹۴.

﴿۹﴾ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: كُنَّا نُصَلِّي الْمَغْرِبَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د حضرت رافع بن خديج نه روايت دى فرمايي: مونږ د نبي عليه السلام سره د ماښام مونځ په داسې وخت کې

فَيَنْصَرِفُ أَحَدُنَا وَ إِنَّهُ لَيُبْصِرُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِ". (متفق عليه)(۱)

کولو چې د مونځ نه د فارغيدو نه پس به چا د خپل غشي پريوتو ځاى ليدلو.

**توضيح**: **مواقع نبله**: يعنې چې کله به د ماښام مونځ نه فارغ شو او بهر ته به راووتلو او يو چا به چې کوم طرف ته غشى ويشتلو نو غشى چې به کوم ځاى لګيدو هغه ځاى به د رڼا د وجې نه ښکاره کيدو.

ټول ائمه په دې باندې متفق دي چې د ماښام مونځ په اول وخت کې کول مستحب دى، البته د احنافو په نزد د ماښام مونځ وخت کې وسعت دى او د شوافعو په نزد د ماښام مونځ کې تنګوالې دى، تفصيل يې مخکې تير شوى دى. (مرقات ۲/۳۰۲، الکاشف ۲/۲۰۱).

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانُوْا يُصَلُّوْنَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دى فرمايي چې: پيغمبر عليه السلام او صحابه کرامو به مونځ کولو د

الْعَتَمَةَ فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ الْأَوَّلِ. (۲)

ماخوستن د شفق ورکيدو نه پس تر اولې دريمې حصې د شپې پورې.

**توضيح**: **العتمة**: د اسلام نه مخکې په جاهليت کې ماخوستن ته به عربو **عتمه** ويله، نبي عليه الصلاة والسلام د دې لفظ نه منع فرمايلې ده حضرت عائشه رضي الله عنها دا نوم کيدى شي د دې د وجې ذکر کړى وي چې تاسو ته او سه پورې معلومه نه شوه چې پيغمبر عليه الصلاة والسلام د دې نه منع فرمايلې ده.

د حديث مطلب دا دى چې اولنى شفق ختميدو سره د ماخوستن مونځ کيږي د شپې دريمې حصې پورې مستحب وخت دى او د نيمې شپې پورې جائز وخت دى او بيا د سحر پورې تاخير کول جائز دى سره د کراهت نه. (مرقات ۲۰۲-۲/۲۰۳، اشعة اللمعات ۳۱۵).

﴿۱۱﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَيُصَلِّي الصُّبْحَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دى فرمايي چې نبي عليه السلام به چې کله د سحر مونځ کولو نه فارغ شو

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۱۰، رقم الحديث ۵۵۹، ومسلم ۱/۴۴۱ رقم الحديث ۲۱۷-۶۳۷، وابن ماجة ۱/۲۲۴، رقم الحديث ۶۸۷.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۴۷، رقم الحديث ۸۶۴

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَتَنْصَرِفُ | النِّسَاءُ | مُتَلَفِّعَاتٌ | بِمُرُوْطِهِنَّ |
| نو هغه ښځې چې د پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره به يو ځای مونځ کولو نو په څادرو کې به پټې واپس راتلې نو | | | |
| مَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ. (متفق عليه)(١) | | | |
| د تيارې د وجې نه به څوک نه پېژندل کيدې. | | | |

**توضيح: متلفعات: تلفع** د بدن او مخ په څادر باندې پټولو په معنى راځي .(مرقات ۲/۳۰۳،اشعة اللمعات ۳۱۵، الکاشف ۲/۲۰۲).

**بمروطهن: مروط** جمع د **مرط** ده وړى يا ريښمي څادر ته ويلى شي مطلب دا دى چې كه چيرته زنانه په څادرو کې پټې نه وي نو په تيارو کې به پيژندل کيدې دغه شان به دا **تلفع** د **غلس** د پاره قيد او شرط وګرځي. (كذا في اللمعات)

**سوال**: دلته دا سوال پيدا كيږي چې د حضرت ابوبرزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روايت کې راغلي دي چې كله به پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ نه فارغ شو نو سړي به خپل ملګري لره پيژندلو او دلته په حديث کې دي چې ښځې به نه پيژندل كيدې دا تعارض دى.

**جواب**: ددې جواب لمعات کې دا ورکړى شوى دى چې د ابو برزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث تعلق نزدې سره دى سړي خپل ځان سره ناست کس پيژندلو او ددې حديث تعلق د لرې سره دى ، د لرې نه ښځې نه پيژندل کيږي نو هيڅ تعارض نشته دى.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ | | | | | | | | |
| حضرت قتادة د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت کړى چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زيد بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ | | | | | | | | |
| تَسَحَّرَا فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ سَحُورِهِمَا قَامَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصَّلَاةِ فَصَلَّى | | | | | | | | |
| (روژه نيولو د پاره) پيشمنى وکړو د پيشمنى نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ د پاره اودريدو او مونځ يې وکړو | | | | | | | | |
| قُلْنَا | لِأَنَسٍ | : | كَمْ | كَانَ | بَيْنَ | فَرَاغِهِمَا | مِنْ | سَحُورِهِمَا |
| (قتاده وايي) مونږ د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه د هغوي دواړو د پيشمني نه د فارغيدو نه پس | | | | | | | | |

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٣٤٩/٢،رقم الحديث ٨٦٧، ومسلم في الصحيح ٤٤٦/١ رقم الحديث:٢٣٢-٦٤٥، وأبو داود ٢٩٣/١ رقم الحديث ٤٢٣، والترمذي ٢٨٧/١ رقم الحديث ١٥٣

| |
|---|
| وَ دُخُولِهِمَا فِي الصَّلَاةِ ؟ قَالَ : قَدْرُ |
| او مونځ شروع کيدو په مينځ کې څومره وخت وو؟ حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دومره وخت وو |
| مَا يَقْرَأُ الرَّجُلُ خَمْسِينَ آيَةً .[1] |
| چې يو کس په کې پنځوس (۵۰) درميانه ايتونه ولولي. |

**توضیح : خمسين آية** : يعني پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د پيشمي نه د فارغيدو نه پس د صبح صادق پورې مونځ کې پنځوس (۵۰) درميانه آيتونو په اندازه به يې وخت تيرولو ، صاحب مشکوة ددې حديث مبارک نه د سحر د مونځ غلس (تياره) کې کول ثابتوي صاحب لمعات وايي : ددې نه غلس نه ثابتيږي دا يوه اندازه ده او د ايتونو د لوستلو انداز مختلف کيدی شي بيا جومات ته تلل او د سحر دوه رکعته سنت کول او د ايتونو واړه او اوږديدل دا هغه احتمالات دی .چې ددې په موجودګۍ کې ددغه وخت مقدار معلومول مشکل دي همدا وجه ده چې علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې دلته د وخت کومه اندازه بيان ده ، خلکو ته په دې عمل کول جائز نه دي ځکه چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په ديني احکاماتو کې دهرقسم غلطۍ نه محفوظ دی او نور خلک محفوظ نه دي .(اشعة اللمعات ۳۱۶، مرقات ۲/۳۰۴)

## ډير بد حکمران هغه دی چې په مونځونو کې سُستي کوي :

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " كَيْفَ أَنْتَ |
| د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې (يو ځل) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته وفرمايل: هغه وخت به تاسو څه |
| إِذَا كَانَتْ عَلَيْكَ أُمَرَاءُ يُمِيتُونَ الصَّلَاةَ أَوْ قَالَ : يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ عَنْ وَقْتِهَا؟ |
| کوئ چې کله ستاسو حکمران د وخت مختاره سره دوکه وکړي يا د هغې نه تاخير وکړي او مونځ وکړي |
| قُلْتُ : فَمَا تَأْمُرُنِي ؟ قَالَ : " صَلِّ الصَّلَاةَ |
| ما عرض وکړو داسې وخت د پاره به ماته تاسو څه حکم کوئ پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: ته مونځ کوه په خپل |
| لِوَقْتِهَا فَإِنْ أَدْرَكْتَهَا مَعَهُمْ فَصَلِّ فَإِنَّهَا لَكَ نَافِلَةٌ [2]. |
| وخت او که دهغوي سره وخت ملاؤشونو دهغوي سره هم مونځ وکړه دغه مونځ به ستا د پاره نفل شي. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۴/۲،رقم الحديث ۵۷۶، ومسلم ۱۷۰/۳.

(۲) أخرجه مسلم ۴۴۸/۱ رقم الحديث.۲۳۸-۶۴۸، وأبو داود ۲۹۹/۱ رقم الحديث .۴۳۱، والنسائي ۱۱۳/۲، رقم الحديث:۸۵۹ ، والترمذي ۳۲۲/۱ رقم الحديث ۱۷۶۰ ، وابن ماجة ۳۹۸/۱، رقم الحديث. ۱۲۵۶.

**توضیح** : **کیف الت** :یعنې هغه وخت به ستا څه حالت وي او یا به څه کوئ ؟(المرقات ۲/۳۰۴، اشعة اللمعات ۳۱٦).

**علیک الامراء**:یعنې چې په تاسو داسې حکمران مقرر شي اوحاکم وي دهغه تاسومخالفت نه شئ کولی(المرقات ۲/۳۰۴، اشعة اللمعات ۳۱٦).

شارحین لیکي : ددغې امراو نه مراد د بنو امیه بعضې حکمرانان دي او دا اولنی حکمران وو چې د مونځ واجبات او سنتو او تعدیل ارکانا ود وختونو وغیره کې یې سُستي شروع کړه (**کذا في اللمعات**) سفر السعادة کې لیکلي دي چې د ټولو نه اولني مونځ په قومه او جلسه کې سستي د بنوامیه حکمران کړې ده ، د حضرت ابوذر رضي الله عنه وفات په ۳۲ھ کې شوې وو .

**ویؤخرون الصلوة** : یعنې هغه خلک به مونځ کې تاخیر کوي او که تاسو د هغوي سره مونځ کوئ نو د افضل وخت نه به محرومه شئ او که ځانله مونځ کوئ نو ددوي د طرف نه به د تکلیف ویره وي او د جماعت نه د پاتې کیدو وعده هم ده دا پیغمبر د راتلونکو واقعاتو د پاره پیشنګوئي کړې ده مطلب دا نه دی چې ابوذر رضي الله عنه به خامخا داسې حکمرانان مومي دلته حدیث کې "او" لفظ د شک د پاره دی راوي ته شک شوې وو چې پیغمبر علیه السلام یمیتون لفظ استعمال فرمایلی وو یا یؤخرون لفظ وو او دا ممکن هم دی چې دا او د تنویع د پاره دی نو د اولني لفظ مطلب به دا شي چې مونځ به بالکل وهي یعنې دوخت جوازنه په خارج وخت کې به یې کوي او د دویم لفظ مطلب دادی چې په مونځ کې به تاخیر کوي . (المرقات ۳۰۴-۲/۳۰۵، اشعة اللمعات ۳۱٦).

**فما تأمرني** : حضرت ابوذر رضي الله عنه ته د خپل مونځ فکر شو او پوښتنه یې وکړه چې زمونږ د پاره څه حکم دی پیغمبر علیه السلام وفرمایل چې خپل مونځ ځان ته په مستحب وخت کې کوئ او که د هغوي سره د مونځ موقع ملاؤ شوه نو هغه به ستاسو د پاره نفل شي .تاسو ته به د وخت فضیلت هم ملاؤ شي او جماعت نه به محرومه هم نه شئ ددې حدیث نه دا خبره معلومه شوه که چیرته امام مونځ مکروه وخت پورې وروسته کوي نو مقتدیان دې په افضل وخت کې مونځ ځان ته ادا کړي ، علماء لیکي : د پیغمبر علیه السلام ددې فرمان مصداق د ماسپښین او ماخوستن دی ځکه چې د مازیګر او د سحر نه پس نفل منع دي ، همدارنګې د ماښام مونځ دري رکعاته دی او دري رکعاته نفل جائز نه دي لیکن شیخ عبدالحق رحمه الله وغیره شارحین فرمایي پیغمبر علیه السلام د ټولو مونځونو دا حکم ورکوي چې کوئ ځکه چې په نه کولو کې فتنه او د فساد د پیدا کیدو خطره ده لهذا ارتکاب د کراهت ددې نه بهتر دی چې فتنه واقع نه شي ، حالانکه د مجبورۍ په وخت کې اضطراري طور باندې مونځ کولو سره کراهت ختمیږي دا مفهوم

واضح دی اګر چې اجتهادي مسلک په خپل ځای دی ددې تفصيل مخکې راغلی . (المرقات ۲/۳۰۵، اشعة اللمعات ۳۱٦).

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي د ماښام مونځ هم کوئ مګر څلور رکعاته جوړ کړئ امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په مؤطا کې **الا الفجر و المغرب** د استثناء والا حديث راغلی . **يميتون** جملې متعلق دا بحث دی ايا ددې نه دا مراد دی چې خلک مونځ د خپل جائز وخت نه مؤخر کړي او خارج وخت کې يې وکړي يا د مستحب وخت نه يې مؤخر کړي .

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې دلته د مستحب وخت نه تاخير کول مراد دی ظالم حکمرانان مونځ په تاخير سره کولو او اوس مونځ نه کوي ليکن علامه ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : چې دلته خارج وخت کې مونځ کول مراد دي اولنۍ خبره ډيره واضحه او راجحه ده .دلته اوس يو فقهي مسئلې کې اختلاف دی هغه دا چې که يو کس د عذر يا مجبورۍ يا د غلط فهمۍ د وجې نه په کور کې مونځ وکړي او بيا يې په جومات کې جماعت وليدو نو دا به څه کوي ؟ د حديث ظاهري الفاظ دادي چې په جماعت کې دې شريک شي.

اوس د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد ټولو مونځونو کې شريک کېدای شي او د ماښام مونځ کې دې يو رکعات زيات کړي چې څلور رکعاته شي ليکن احناف او فقهاء وايي دا کس د ماسپښين او ماخوستن مونځ کې شريک کېدی شي خو د ماښام، مازيګر او سحر کې نه شي شريکېدی . ددې متعلق په صحيح احاديثو کې ممانعت راغلی او ماښام دري رکعاته نفل په شريعت کې منقول نه دي او ډير يا کم کولو سره د امام مخالفت راځي دا جائز نه دی ، احناف فرمايي : امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مؤطاء کې ددې حديث په ضمن کې يوه جمله نقل کړې ده .

**الا الفجر و المغرب** : بهر حال مخکې د شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ تشريح ياد ساتل په کار دی بعضې علماو د نافلة لفظ معنی په مزيد او اضافي سره اخيستې ده .

## د نمر د راختو او پريوتو په وخت کې مونځ کول څنګه دی ؟

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «مَنْ أَدْرَكَ |
| د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل : چاچې وموندلو يو |
| رَكْعَةً مِنَ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ . وَ مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ |
| رکعت د سحر د لمر راختو نه مخکې نو ده د سحر مونځ وموندلو او چا چې وموندلو يو رکعت د مازيګر |

قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الْعَصْرَ » .(متفق علیه)(۱)

مخکې د لمر پرېوتو نه ګویا ده د مازیګر مونځ وموندو (یعني دده مونځ به نه ضائع کیږي).

**توضیح : فقد ادرک الصبح** : د دې حدیث دوه اجزاء دي : د یو جزء تعلق د سحر مونځ سره دی او د دویم جزء تعلق د مازیګر مونځ سره دی، د دې حدیث یو ظاهري مفهوم دی چې په دې باندې د امت نه یو امتي هم عمل نه دی کړی هغه مفهوم مراد نه دی ، هغه مفهوم دا سې دی چې که چیرته یو کس د سحر او مازیګر مونځونو کې یو یو رکعت ومومي نو ده مکمل مونځ وموندو ، ګویا د دغه وخت یو رکعت مکمل مونځ وو، دویم مفهوم یې دا دی چې که یو کس ته د سحر او مازیګر یو رکعت ملاؤ شي نو دویم رکعت د وخت د وتو نه پس مثلاً نمر ختو په وخت کې یا د نمر پریوتو په وخت کې و کړي نو دا دې خیل مونځ پوره کړي .مطلب دا دی چې یو کس د مازیګر یا د سحر د مونځ د پاره آخري وخت کې اودریدو او یو رکعت یې وکړو چې نمر راوختو یا د مازیګر په وخت کې نمر پریوتو د دې حدیث په بناء سره دواړه مونځونه صحیح شول هغه کس د نمر راختو او پریوتو په وخت کې خپل مونځ پوره کولې شي اوس په دې کې د فقهاو اختلاف دی . (اشعة اللمعات ۳۱۶-۳۱۷، المرقات ۳۰۵-۲/۳۰۶).

**د فقهاو اختلاف** :امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَااللهُ فرمایي د سحر او مازیګر د دواړو وختونو یو حکم دی د مونځ شروع کیدو نه پس که چیرته نمر راختل یا پریوتل وشي نو دا دې خپل مونځ مکمل کړي مونځ یې صحیح دی. اکثر احناف فرمایي : که دغه رنګ واقعه(خبره) د مازیګر په وخت کې راغله نو مونځ صحیح دی لیکن د سحر په وخت کې مونځ فاسدیږي ګویا احناف د سحر او مازیګر مونځ کې فرق کوي دغه فرق کولو سره غیر مقلدینو ډیر شور جوړ کړې دی چې تاسو په نیم حدیث باندې عمل کوئ او دویمه حصه نه قبلوئ بلکې قیاس قبلوئ او جمهور هم شکایت کوي چې دا فرق مناسب نه دی . (اشعة اللمعات ۳۱۶، المرقات ۲/۳۰۵).

**په سحر او مازیګر کې د فرق وجه** : احناف علماء فرمایي چې د مونځ د پاره سبب مطلق وقت دی اوس مازیګر کې هغه جزء چې د مونځ سره متصل دی دغه جزء د مونځ د پاره سبب جوړ شو او دغه وخت ناقص دی چې کله د مونځ واجب کیدل ناقص شو که د دې ادا کیدل هم ناقص شي نو هیڅ پروا نشته د دې برعکس د سحر مونځ وخت کې یو جزء هم ناقص نشته که یو کس د لمر راختو وخت کې مونځ کوي دا ناقص وخت دی لهذا کامل واجب ناقص طور باندې ادا کیږي د دې وجې نه دا ادا کیدل صحیح نه دی.

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۶/۲،رقم الحديث : ۵۷۹، ومسلم ۴۲۴/۱ رقم الحديث.۱۶۳-۶۰۸، وأبو داود ۲۸۸/۱ رقم الحديث :۴۱۲، والنسائي ۲۵۷/۱، رقم الحديث: ۵۱۷ .

**اعتراض** : احناف ائمو باندې دا اعتراض دی چې دا خو قیاس دی او د نص صریح په مقابله کې قیاس راوړل ضروري او جائز نه دي لهذا سحر او مازیګر کې فرق ضروري نه دی .

**جواب**: اصل حقیقت دادی چې په مکروه وختونو کې د نهي عن الصلاة چې څومره احادیث په کثرت سره وارد دي دا حدیث د هغې سره متعارض دی د متن او سند او قوت په اعتبار سره ټول احادیث صحیح دي ځکه ابن الهمام او علامه صدر الشريعة فرمايي : د اصول فقه قواعد مطابق دغه تعارض ختمولو د پاره او احادیثو کې د تطبيق پیدا کیدو د پاره قیاس طرف ته رجوع کول په کار دی چې د قیاس په وجه یو طرف ته ترجیح ورکړی شي (المرقات ۲/۳۰۵).

نو قیاس دا فیصله وکړه چې د سحر وخت کامل دی نو واجب کامل دی نو ددې ادا ناقص وخت کې جائز نه ده نو مونځ به فاسد شي او د مازیګر په وخت ناقص کې مونځ واجب شوې دی لهذا ناقص ادا سره مونځ به صحیح شي نو احناف د قیاس په ذریعې سره **العیاذ بالله** حدیث رد کړی نه دی بلکې متعارض روایاتو کې تطبيق پیدا کولو د پاره یو له په بل باندې ترجیح ورکړې ده نو سحر کې فساد صلوة ته ترجیح ورکړې او مازیګر کې صحت صلوة ته ترجیح ورکړې دا یو تاویل او ترجیح ده او دا حدیث په خپل ظاهر باندې محمول نه دی ټولو تاویل کړی دی او اجتهادي عمل یې په کار راوستی دی او د حدیث د محمل په تعیین کې ټولو کوشش کړې دی چا باندې هم الزام لګول مناسب نه دي چې هغه زما توجیه نه ده قبوله کړې او اجتهاد ولې کوي.

**د مذکوره حدیث محمل** : امام بیهقي رَحِمَهُ اللهُ دا روایت داسې نقل کړې دی : **من ادرک من الصبح رکعة قبل ان تطلع الشمس و رکعة بعد ما تطلع الشمس فقد ادرک الصلوة** . امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب کې داسې نقل کړی دی: **من ادرک من العصر رکعة فلیتم صلوته** . دا خبره واضحه ده چې زیر بحث حدیث په ظاهر باندې محمول نه دی ټولو تاویل کړی دی د سحر او مازیګر مونځ د هیچا په نزد هم یو رکعت نه دی ، جمهورو دا محمل خودلی چې په وخت کې دننه یو رکعت تعلق د معذورو کسانو د پاره دی مثلاً یوه ښځه حائضه ده او مازیګر یا سحر په اخري وخت کې پاکه شوه صرف تکبیر تحریمه د ویلو وخت ورته ملاؤ شو نو ده باندې دا مونځ فرض دی یا نابالغ ماشوم په آخري وخت کې بالغ شو یا کافر به دغه وخت کې مسلمان شو یا لیونی سړی په دغه وخت کې عقلمند شو یا بې هوشه کس په آخري وخت کې په هوش کې راغلو په دې خلکو مونځ فرض شو ، اوس یو رکعت یا یو تحریمه یې په اصل وخت کې ادا کړو او دویم رکعت دویم وخت کې یعنې د نمر راختو یا پریوتو نه پس ادا کړي سحر مونځ هم صحیح او د مازیګر مونځ هم صحیح دی .د احنافو نه امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ هم ددې حدیث د امحمل بیان کړی دی،شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې په دې رد کړی دی چې په نورو روایاتو کې :

**من ادرک من الصبح قبل ان تطلع الشمس و رکعة بعد ما تطلع الشمس** الفاظ راغلي دي دا تاویل هلته نه چلیږي ځکه د جمهورو او طحاوي په دې محمل باندې حدیث لګول صحیح نه دي(لمعات ۳۱۷)
بعضې علماو دا حدیث منسوخ ګرځولی دی او د مکروه وختونو ټول احادیث دې د پاره ناسخ ګرځولی شوي دي دې باندې دا اشکال راځي چې د ناسخ او منسوخ دپاره ضروري دی چې په دې کې تعیین د تاریخ وي چې فلانکی حدیث مخکې او فلانکی وروستو دی او دا مؤخر او وروسته حدیث ددې د پاره ناسخ دی ، دلته دا څیز موجود نه دی ، بعضې ددې حدیث محمل دا ګرځولی دی په مکروه وختونو کې د مونځ ممانعت هغه خلکو د پاره دی چې د هغې عادت دا جوړ شوی دی چې همیشه مکروه وخت کې مونځ کوي،که یو کس داسې وي چې همیشه په پابندۍ سره په وخت کې دننه مونځ کوي مګر د مجبورۍ د وجې نه اضطراري طور باندې اتفاقاً مونځ کې تاخیر وکړي او ناوخته پاڅي که یو رکعت په وخت کې دننه وکړي او یو رکعت د وخت تیریدو نه پس وکړي خو داد عادت نه دی بلکې خلاف عادت کله نا کله داسې وشي نو دا صورت معاف دی دا خاص حکم دی عامه ضابطه او قاعده نه ده.

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «إِذَا أَدْرَكَ أَحَدُكُمْ |
| دحضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه راویت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: چې کله وموميیو کس دتاسې |
| سَجْدَةً مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلَاتَهُ وَ إِذَا أَدْرَكَ سَجْدَةً مِنْ |
| نه یو رکعت د مازیګر د مونځ مخکې د نمر پریوتو نه نو مونځ دې پوره کړي ، او که وموميیو رکعت د |
| صَلَاةِ الصُّبْحِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَلْيُتِمَّ صَلَاتَهُ»[1]. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ |
| سحر مخکې د لمر راختو نه نو هغه ته په کار دي چې مونځ پوره کړي. |

**توضیح** : **سجدة** : علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي سجدې نه مراد صرف سجده نه ده بلکې ددې نه مراد کامل رکعت دی چې په دې کې رکوع او سجده دواړه وي د سجدې اطلاق په رکعت ځکه شوی دی چې سجده د رکعت د تکمیل لوي رکن دی یا د قبیلې د **تسمیة الکل باسم الجزء** نه دی.(المرقات۲/۳۰۶)

## قضاء عمري :

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «مَنْ نَسِيَ صَلَاةً |
| دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمایل: د چانه چې مونځ کول هیرشي |

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۲/۳۷،رقم الحدیث ۵۵۶، ومسلم في الصحیح ۱/۴۲۴ رقم الحدیث:۱۶۴-۶۰۹.

| أَوْ | نَامَ | عَنْهَا | فَكَفَّارَتُهُ | أَنْ | يُصَلِّيَهَا | إِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یا د مونځ په وخت کې (غافله) او ده شي | | | (او مونځ پاتې شي) دده بدل دادی | چې اداء دې کړي کله چې | | |

ذَكَرَهَا » وَفِيْ رِوَايَةٍ : « لَا كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذٰلِكَ » . (متفق عليه).(۱)

ورته یاد شي ، يو روایت کې دا الفاظ دي چې ددې مونځ کولو نه غیر ددې بل بدل نشته.

**توضيح : فكفارتها : کفارة** لفظ نه دا اندازه ولګیده چې مونځ نه کول او قضاء کول په هر حال کې د ګناه کار دی برابره خبره ده که په غلطی سره وي او که په یرې سره وي یا بغیر اختیاره وي.

**ان یصلیها:** یعنې مونځ د څه وجې نه پاتې شي د هغې کفاره صرف او صرف د مونځ اعاده ده او فوراً کول په کار دي بله څه حیله ددې د پاره نشته ، نو ددې نه معلومه شوه چې د قضاء عمری هیڅ اصل نشته دا یو بدعت دی چا ایجاد کړی دی دې نه دا هم معلومه شوه چې لکه څنګه روژه پاتې شي نو فدیه ادا کولی شي داسې حکم دمونځ نه دی مونځ دپاره کفاره ولې نشته دی بلکې ددغې مونځ اعاده به کولی شي ، بعضې علماو د مونځ د فدیې خبره کړې ده چونکې د روژې نه مونځ افضل دی لهذا دغه ځای نه دا قیاس کړی دی چې د روژې فدیه ده د مونځ هم په کار ده قضاء عمري ځکه غلطه ده چې په دې کې اتحاد مکان هم نشته او اتحاد وخت او مونځ هم نشته بلکې د چا فرض مونځ دی او د چا نفل.

**اذا ذکرها :** شوافع حضرات فرمايي چې کله هم یاد شي هغه وخت دې وکړي دغه ددې اصل وخت دی برابره خبره ده که مکروه وخت وي یا د مازیګر نه پس یا د سحر نه پس ، ائمه احناف فرمايي : ټولو احادیثو کې مکروه وختونو کې د مونځ سخت ممانعت راغلی دی لهذا **اذا ذکرها** کې دا خبره پرته ده چې کله وخت د مونځ د پاره صحیح دی او که د مونځ د پاره صحیح نه وي نو په هغې کې مونځ نه دي کول په کار بلکې د وخت صالح انتظار په کار دی لکه څنګه چې په **لیلة التعریس** کې د سحر پیغمبر انتظار فرمایلی وو ځکه چې د لمر راختو او پریوتو او د زوال وخت **صالح للصلوة** نه دی.امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې په دې دریو منع شوې وختونو کې نفل هم منع دي او که څوک په دې وختونو کې فرض کول غواړي نو جائز دي ، احناف فرمايي چې په مکروه وختونو کې کوم ممانعت راغلی دی په دې کې د یو مونځ تخصیص هم نشته لهذا ددې ممانعت تقاضا داده چې په دې وختونو کې د نوافلو په شان د فرض

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۷۰/۲،رقم الحديث ۵۹۷، ومسلم في الصحيح ۴۷۷/۱ رقم الحديث ۳۱۵-۶۸۴، وابو داود ۱/[illegible] رقم الحديث ۴۴۲، والنسائي ۲۹۳/۱، رقم الحديث: ۶۱۳ ، والترمذي ۳۳۵/۱ رقم الحديث : ۱۷۸.

کولو نه هم ځان ساتل راغلي دي ليلة التعريس کې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ فرض د لمر راختو نه مؤخر کړي او بيا يې مونځ کړی دی.

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: "لَيْسَ فِي النَّوْمِ |
| د حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل نه دی شمار په اوده کيدو کې |
| تَفْرِيطٌ إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ فَإِذَا نَسِيَ أَحَدُكُمْ |
| د مونځ پاتې کيدل کوتاهي، بلکې کوتاهي په ويخه کې وي، لهذا چې کله هير شو په تاسو کې ديو کس |
| صَلَاةً أَوْ نَامَ عَنْهَا فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى |
| نه مونځ ياد مونځ په وخت کې غافله اوده شو نو مونځ دې وکړي چې کله هم وريادشي ځکه چې الله تعالى |
| قَالَ: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي﴾ رَوَاهُ مُسلم [۱]. |
| فرمايي: زما د يادولو په وخت کې مونځ کوئ. |

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

### په دريو ځيزونو (کارونو) کې تاخير مه کوئ:

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «يَا عَلِيُّ ثَلَاثٌ لَا تُؤَخِّرْهَا |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته وفرمايل: ای علي! درې کارونو کولو کې تاخير مه |
| الصَّلَاةُ إِذَا أَتَتْ وَ الْجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ وَ الْأَيِّمُ |
| کوه يو مونځ په خپل وخت کې کول دويم جنازه کې تادي کول چې کله تياره شي او دريم دبې خاونده زنانه |
| إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفُوًّا». [۲] |
| په نکاح کې تادي کول چې کله يې کفو ملاؤ شي. |

**توضيح**: **اذا اتت**: دا صيغه د **اتيان** نه ده د راتلو په معنی ده علامه توريشتي رَحِمَهُ اللهُ وايي: دا صيغه په ټولو نسخو کې داسې ده ليکن په دې کې تحريف شوی دی اصل صيغه د همزې د مد سره "آنت" ده چې

---

(۱) أخرجه مسلم ۴۷۲/۱ رقم الحديث ۳۱۱-۶۸۱، وأبو داود ۳۰۴/۱ رقم الحديث ۴۳۷، والنسائي ۳۲۴/۱، رقم الحديث ۱۷۷.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۲۰/۱ رقم الحديث ۱۷۱.

د **كالت** په وزن باندې ده ددې معنى څاننه ده يعنې چې كله نزدې كړى شي .(المرقات ۲/۳۰۸، الكاشف ۲/۲۰۷، اشعة اللمعات ۳۱۷).

مطلب دا چې كله مونځ نزدې كړى شي نو كارونه وروستو كول په كار دي او مونځ مستحب وخت كې كول په كار دي، ګويا مسلمان ته حكم دى چې خپل كار د الله تعالى د كار نه وروستو كړي، ددې عكس مه كوئ ورنه ګناه ده.

**والجنازة**: يعنې چې كله جنازه حاضره شي بيا ددې په جنازه او تدفين كې تاخير مه كوئ ځكه كه د مړي بدن وپرسيږي نورسوائي ده، علامه طيبي شافعي رَحِمَهُ اللهُ د علامه اشرف علي قول نقل كړى دى چې ددې حديث نه معلومه شوه چې د جنازې مونځ په مكروه وختونو كې كول مكروه نه دي خو كه چيرته ددې وختونونه مخكې جنازه راشي نو بيا په كې دغه وخت پورې تاخير مكروه دى او دا د سجدې تلاوت حكم هم دى ماز يګر او د سحر نه پس جنازه كول مكروه نه دى او سجده تلاوت هم مكروه نه دى.

**الايم**: ايم بې خاونده ښځې ته ويلى شي برابره خبره ده كه واده شوې نه وي يا واده شوې وي خو طلاقه شوې وي . مطلب دادى چې كله جينۍ بالغه شي او كفو كې رشته ملاؤ شي بيا ددې په نكاح كې تاخير مه كوئ كه نه نو ددېنه به د بد كارۍ او نورو ګناهونو دروازې خلاصې شي او په معاشره كې به فتنې او فسادونه جوړ شي ، كفو داد كفايت نه دى په معنى د برابر والي ، مطلب دا چې جينۍ او هلک په نيو څو څيزونو كې برابر وي: (۱) نسب (۲) اسلام (۳) آزادي (۴) ديانت (۵) مال (٦) پيشه .

مسلمانانو ته په كار دي چې د هندوانو د رسمونو د وجې نه د هلک او جينۍ په نكاح كې دې تاخير نه كوي ډير غلط اثر او نتيجه به يې وي ، اسلام د سړي په ذمه صرف مهر نكاح لازم كړى دى بل يو څيز هم لازم نه دى او په ښځه هم يو څيز لازم نه دى .

## په اول وخت كې مونځ كول افضل دى :

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «اَلْوَقْتُ الْأَوَّلُ مِنَ الصَّلَاةِ |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل : مونځ په اول وخت كې كول |
| رِضْوَانُ اللهِ وَ الْوَقْتُ الْآخِرُ عَفْوُ اللهِ »[1]. |
| د الله تعالى د خوشحالۍ سبب دى او په آخري وخت كې كول د الله تعالى د معافۍ سبب دى. |

**توضيح**: **رضوان الله**: يعنې اول وخت مختار كې مونځ كول د الله تعالى د رضامندۍ حاصلول دي

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۲۱ ، رقم الحديث : ۱۷۲.

مقصد دادی چې په کومو وختونو کې تاخير کول د يو خاص مقصد د پاره وي هغه ددې نه مستثنی دي ځکه چې ددې د عارضي حالاتو دوجې نه دهغې تاخير وخت مختار دی مثلاً ګرمئ کې د ماسپخين مونځ د ابراد په غرض سره تاخير افضل دی ، په سحر کې اسفار افضل دی ، همدارنګې د جماعت د کثرت د وجې نه تاخير افضل دی .

**الوقت الآخر** : ددې نه مراد مکروه وخت دی مثلاً د ماز يګر مونځ کې د **اصفرار شمس** (دلمر دزيړ والي) پورې تاخير کول مکروه دی او ماسخوتن کې د **نصف الليل** نه ډير تاخير مکروه دی ليکن ددې حديث مطلب دا نه دی چې دې تاخير سره فرض نه ادا کيږي فرض اداشو البته کراهت به الله تعالی معاف کړي . (المرقات ۲/۳۰۹، اشعة اللمعات ۳۱۸).

## د ټولو نه افضل عمل مونځ دی :

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ أُمِّ فَرْوَةَ قَالَتْ : سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| دحضرت ام فروه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی فرمايي چې د پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ نه پوښتنه وشوه (دثواب د زياتيدو |
| أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: الصَّلَاةُ لِأَوَّلِ وَقْتِهَا [1] |
| په اعتبار سره ) کوم عمل افضل دی پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل : مونځ په خپل اول وخت کې کول . |

**توضيح** : **الصلوة لوقتها** : يعنې مستحب او افضل وخت کې مونځ کول د ټولو اعمالو نه افضل عمل دی ، په آحاديثو کې مختلف څيزونو ته افضل عمل ويلی شوی دی ، علماء ليکي : مونځ مطلقاً افضل دی مګر جهاد چې کله فرض عين شي د ايمان نه پس هغه د ټولو نه افضل عمل دی ددې افضليت تفصيل د توضيحات په اول جلد کې مکمل ليکل شوی (اشعة اللمعات ۳۱۸).

ترمذي دې حديث ته د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وجې نه ضعيف ويلي دي ليکن نورحضرات فرمايي چې دا حديث صحيح دی . **کتاب العلم** کې د عبدالله ابن عمر عمري متعلق تفصيل موجود دی ، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې تفصيل ذکر کړی دی . (اشعة اللمعات ۳۱۸).

## په اول وخت کې مونځ کول افضل عمل دی :

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً لِوَقْتِهَا الْآخِرِ |
| دحضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې وايي : يو مونځ هم پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په آخري وخت کې |

(۱) أخرجه مسند أحمد ۳۷٤/٦، وأخرجه أبوداؤد في السنن ۲۹٦/۱ رقم الحديث ٤٢٦، والترمذي في السنن ۳۱۹/۱، رقم الحديث: ۱۷۰.

مَرَّتَيْنِ حَتّٰى قَبَضَهُ اللهُ تَعَالٰى .(۱)

دوه ځله نه دې کړې تر دې پورې چې الله تعالی پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفات کړو.

**توضیح**: لوقتها الآخر: یعني پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ به اول وخت مختار کې مونځ کولو مکروه وختونو کې به یې نه کولو صرف د جواز د وجې نه یو ځلې چیرته پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ په آخري وخت کې مونځ کړی وو چې د اول او آخري وخت تعین وشي. (المرقات ۲/۳۱۰، اشعة اللمعات ۳۱۸).

شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې لیکي: دا حدیث او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا کلام د هغه تاخیر متعلق دی د کوم نه پس چې اصل وخت نه وي ورنه په وخت جواز کې د ننه تاخیر خو څو ځله شوی دی تبوک کې د سحر مونځ کې تاخیر شوی وو چې عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړی وو، همدارنګې ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځل مونځ کول شروع کړه وروستو پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ تشریف راوړو، همدارنګې یو ځل نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې رب العالمین ولیدونو ماخوستن کې یې تاخیروکړو همدارنګې د امت د تعلیم د پاره او د جواز بیانولو د پاره کله نا کله تاخیر شوی دی. خلاصه داده چې دلته د تاخیر نه مراد د هغه وخت تاخیر دی چې د دې نه پس جائز وخت نه پاتې کیږي. (اشعة اللمعات ۳۱۸).

بهر حال د ماښام وخت کې د ټولو فقهاو اتفاق دی چې تعجیل افضل دی.

## په ماښام کې د ستورو انتظار کول نه دي په کار:

﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " لَا تَزَالُ أُمَّتِي بِخَيْرٍ

د حضرت ابوایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایي: زما امت به هیڅ کله د خیر نه محرومه نه

أَوْ قَالَ: عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ

شي او یا یې داوفرمایل چې د فطرت اسلام په طریقه باندې به وي ترڅو چې د ماښام مونځ د ومره وروسته

إِلٰى أَنْ تَشْتَبِكَ النُّجُومُ "(۲).

نکړي چې ستوري رڼا شروع کړي. دا روایت دارمي د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی.

**توضیح**: تشتبک النجوم: اشتباک د اختلاط په معنی دی مراد د ستورو ګڼوالی دی، د دې حدیث نه معلومه شوه چې ماښام صرف د ستورو په نظر راتلو سره وخت نه مکروه کیږي چې کله ستوري ګڼ شي بیا د ماښام وخت باقي نه وي، شیعه ګان (بیکاره خلک) هغه وخت پورې اذان نه کوي تر څو پورې چې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۲۸/۱ رقم الحدیث ۱۷۴، وأخرجه أحمد في مسنده ۹۲/۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲۹۱/۱ رقم الحدیث ۴۱۸

ستوري ليدلی شوې نه وي ، همدارنګې د حديث مخالفت هم دی او د امت محمديه د متفق اعمالو نه جدا لاره اختیارول دي څنګه چې د هغوي کوشش وي چې په يو شرعي عمل کې هم د مسلمانانو سره يو ځای پاتې نه شي ، **الفطرة** نه د دين اسلام نيغه لار مراد ده . (المرقات ۲/۳۱۱).

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَوْلَا |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی ، فرمايي چې : پيغمبر عليه السلام وفرمايل : چې که چيرته ما ته د |
| أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ أَنْ |
| خپل امت د تکليف ويره نه وي نو هغوي ته به ( د واجب کيدو په طريقه باندې ) دا حکم ورکړې وې چې |
| يُؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ . (۱) |
| د ماخوستن مونځ د شپې دريمې حصې پورې يا نيمې شپې پورې وروسته کوئ . |
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " أَعْتِمُوا |
| د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې پيغمبر عليه الصلاة والسلام وفرمايل تاسو په تاخير سره |
| بِهٰذِهِ الصَّلَاةِ فَإِنَّكُمْ قَدْ فُضِّلْتُمْ بِهَا عَلَى سَائِرِ الْأُمَمِ |
| کوئ دغه مونځ ( يعني د ماخوستن مونځ ) چې تاسو ته په نورو امتونو باندې د دغه مونځ دوجې فضيلت |
| وَ لَمْ تُصَلِّهَا أُمَّةٌ قَبْلَكُمْ (رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُد) . (۲) |
| حاصل دی تاسو نه مخکې چا هم دا مونځ نه دی کړی. |

**توضيح : اعتموا : ادخلوا هذه الصلوة في العتمة** . عتمه تيارې ته ويلی شي دلته يا صرف تياره مراد ده يا د **ثلث الليل** نه کنايه ده ددې حديث نه هم د تاخير د ماخوستن پته لګي .

**فانکم قد فضلتم** : ددې نه معلومه شوه چې د ماخوستن وخت او د ماخوستن مونځ صرف دې امت ته ورکړی شوی دی ددې تفصيل په مواقيت کې تير شوی دی ، بهر حال دې تاخير کې تکثير جماعت هم دی ، د انتظار کولو تکليف په کې هم دی او د ماخوستن اهتمام په کې هم دی دا ټول امور باعث د ثواب

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲٫۲۵۰ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۱۰ ، رقم الحديث ۱٦۷ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۲٦ رقم الحديث ٦۹۱

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۲۹۲ رقم الحديث ٤۱۹ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۰٦ ، رقم الحديث ۱٦٥

دي ، دې کې فائده هم ده چې د ناوخت پورې یو مسلمان انتظار کوي او بیا مونځ وکړي ددې نه وروسته بیا فوراً د خوب تیاري کوي او د ماخوستن د مونځ نه پس د فضول خبرو نه محفوظ شي او وخت نه ضائع کوي. (اشعة اللمعات ۳۱۹)

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ : أَنَا أَعْلَمُ بِوَقْتِ هٰذِهِ الصَّلَاةِ صَلَاةِ |
| د حضرت نعمان ابن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمايي چې : زه ښه پیژنم وخت ددې مونځ یعنې مونځ د |
| الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهَا لِسُقُوطِ الْقَمَرِ لِثَالِثَةٍ.(۱) |
| دویم عشاء (ماخوستن) پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام دا مونځ د دریم تاریخ میاشتې پټیدو په وخت کې کولو. |

**توضیح: العشاء الآخرة:** عشاء ته د ماښام د وجې نه دوهم عشاء ویلی شي ځکه چې ماښام ته عشاء اولی ویلی شي.

**سقوط القمر** : یعنې د دریمې شپې میاشت چې کله پریوځي په دغه وخت کې پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د ماخوستن مونځ کولو ، دې حدیث کې هم د ماخوستن د تاخیر طرف ته اشاره ده ځکه چې د دریمې شپې میاشت ثلث اللیل په وخت کې پریوځي ، چې د تجربې نه دا ثابت دی .(اشعة اللمعات ۳۱۹).

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ |
| د حضرت رافع بن خدیج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی فرمايي پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: د سحر مونځ په رڼا کې |
| فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَلَيْسَ عِنْدَ النَّسَائِيِّ: «فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ»(۲). |
| کوئ چې په رڼا کې مونځ کولو باندې ډیر ثواب ملاویږي. او نشته د نسائی په روایت کې فإنه أعظم للاجر |

**توضیح** : ددې حدیث متعلق اوږد مباحث او اختلافي اقوال مخکې تیر شوې دي او اسفار کې چې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ کوم تاویل کړی دی د هغې معقولي جواب مخکې تیر شوی دی .

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲۹۱/۱ رقم الحديث . ۴۱۹ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۰۶/۱، رقم الحديث . ۱۶۵

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۱۴۲/۴، وأخرجه أبو داود في السنن ۲۹۴/۱ رقم الحديث . ۴۲۴ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲۸۹/۱، رقم الحديث : ۱۵۴.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: «كُنَّا نُصَلِّي الْعَصْرَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ |
| د حضرت رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی ، فرمايي: مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره د مازيگر مونځ وکړو او |
| تُنْحَرُ الْجَزُورُ فَتُقْسَمُ عَشَرَ قِسَمٍ ثُمَّ تُطْبَخُ فَنَأْكُلُ لَحْمًا نَضِيجًا قَبْلَ مَغِيبِ الشَّمْسِ»[۱] |
| اوښان موذبح او په لسو حصو موتقسيم کړه بيا مو پخه کړه او دلمرپټيدو نه مخکې مو دغه غوښه وخوړه. |

**توضيح**: **الجزور**: جزور اوښ ته ويلي شي برابره خبره ده که نر وي او که ښځه البته ددې د پاره د مؤنث صيغه استعمالولی شي .(المرقات ۲/۳۱۴،الكاشف ۲/۲۱۱، اشعة اللمعات ۳۲۰).

**عشر قسم**: د عربو د عادت موافق په اوښ کې لس کسان شريک کيږي بيا غوښه په لسو کسانو تقسيم کړې دلته دا مراد دی .

**نضيجاً**: يعنې مکمل طور باندې پخه غوښه مونږه خوړله ددې حديث نه په ظاهره دا معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مازيگر مونځ په اول وخت کې يعنې مثل اول په راتلو سره کولو د جمهورو او صاحبينو مسلک همدا دی.

او يو قول د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ دا وو په مثل اول باندې د مازيگروخت شروع کيږي بلکې ستامشهورمسلک دا دی چې د مازيگروخت مثل ثاني نه شروع کيږي تفصيل يې مخکې ذکر شوی دی او د حضرت رافع بن خديج ددې روايت محمل دا ويلي شوې دی .

## په ماخوستن کې د تاخير واقعه :

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ : مَكَثْنَا ذَاتَ لَيْلَةٍ نَنْتَظِرُ |
| د حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي : چې يوشپه مونږ ناست وو چې انتظار موکولو د |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ فَخَرَجَ إِلَيْنَا حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ أَوْ بَعْدَهُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ماخوستن مونځ د پاره نو تشريف راوړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د شپې دريمې حصه يا ډيره شپه تيريدو |
| فَلَا نَدْرِي أَشَيْءٌ شَغَلَهُ فِي أَهْلِهِ |
| نه پس مونږ ته معلومه نه وه چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د کور په کار کې مشغول ؤ ( د عادت مطابق وختي يې |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۲۸/۵،رقم الحديث . ۲۴۸۵، ومسلم في الصحيح ۴۳۵/۱ رقم الحديث.۱۹۸-۶۲۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَوْ | غَيْرُ | ذٰلِكَ | فَقَالَ |

مونځ ته تشريف رانه وړو) يا ددې نه غير (نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته څه عذر پېښ شوې وُ) نو وي فرمايل نبي عَلَيْهِ السَّلَام

حِيْنَ خَرَجَ : « إِنَّكُمْ لَتَنْتَظِرُوْنَ صَلَاةً

چې کله يې تشريف راوړو تاسو انتظار کولو (او تاسو د پاره دا مناسبه هم وه څکه چې) د مونځ انتظار

مَا يَنْتَظِرُهَا أَهْلُ دِيْنٍ غَيْرُكُمْ وَ لَوْلَا أَنْ يَثْقُلَ عَلَى أُمَّتِيْ

تاسې خلک کوئ ستاسو نه غير يو دين والا د مونځ انتظار نه دی کړی او که ما باندې زما د امت د تکليف

لَصَلَّيْتُ بِهِمْ هٰذِهِ السَّاعَةَ » ثُمَّ أَمَرَ الْمُؤَذِّنَ

ويره نه وې نو ما به دا مونځ په دې وخت کې کولې ، بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام آذان کوونکي ته د تکبير حکم وکړو

فَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَ صَلّٰى . (رَوَاهُ مُسْلِم) (۱)

هغه تکبير وکړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونځ وکړو .

**توضيح : اشغله شغله :** ددې تاخير د وجې نه په دې حديث کې ده او نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه ويلي دي ، يو بل حديث مشکوة (ص ۷۱) کې دي په هغې کې ذکر دي چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام الله تعالی په خوب کې وليدو .(الکاشف ۲/۲۱۲).

**اهل دين غيرکم :** دا يې څکه وفرمايل : د ماخوستن مونځ يهوديان او نصارا او باندې يا په بل امت باندې فرض شوی نه وو .

**هذه الساعة :** يعنې د شپې دريمه حصه يا ددې نه هم څه وخت پس د ماخوستن مونځ مؤخر کول لازموالی خو امت باندې د رحمت او شفقت د وجې نه ثلث الليل پورې تاخير لازم نه کړو اګر چې تاخير افضل دی پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د مبارک عمل نه دا معلومه شوه چې د ماخوستن په وخت کې خلک ټول موجود وو نو مونځ به يې زر کولو او چې خلک به کم وو نو تاخير به يې کولو .

## پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام به مونځ کې سپکوالی کول :

**﴿۲۹﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ نَحْوًا مِنْ صَلَاتِكُمْ**

د حضرت جابر بن سمرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې :نبي عَلَيْهِ السَّلَام به ستاسو مونځو نو سره نزدې نزدې

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۴۴۲،رقم الحديث :۲۲۰-۶۳۹، وأبو داود ۱/۲۹۲ رقم الحديث :۴۲۰، والنسائي ۱/۲۶۷، رقم الحديث: ۵۳۷.

| |
|---|
| وَ كَانَ يُؤَخِّرُ الْعَتَمَةَ بَعْدَ صَلَاتِكُمْ شَيْئًا وَ كَانَ يُخَفِّفُ |
| (وختونو کې) مونځ کوه خو د ماخوستن مونځ به يې ستاسو مونځونو نه څه وخت پس کولو او سپکوالې |
| الصَّلَاةَ . (۱) |
| به يې کولو په مونځ کې، |

**توضيح** :العتمة: عتمة ماخوستن ته ويلى شي د جاهليت په زمانه کې د ماخوستن همدا نوم و پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام بيا ددې نوم داستعمال نه منع وفرمايله اودعشاء نوم يې خوركړلو سوال دادى چې جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دمنع كيدو باوجود لفظ عتمه ولې استعمال كړو؟(المرقات ۳۱۵-۲/۳۱۶،اشعة اللمعات ۳۲۲)
ددې جواب دادى چې كيدى شي حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په دغه وخت کې د منعه والې حديث نه وو رسيدلى ، يا د لفظ د شهرت د وجې نه يا مخامخ خلكو ته د آسانتيا د وجې نه او د مشهورې طريقې د ښودنې د پاره دا لفظ استعمال كړى وو چې په دې کې استمرار نه وو بلكې د يو وخت ضرورت وو .

**يخفف** : يعنې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام په مونځ کې واړه واړه سورتونه لوستل ددې وجې نه به په مونځ کې سپكوالې وو ددې تعلق د هغې سره هم كيږي چې هغه به خلكو ته سپک مونځ كوه او په خپله به يې اوږده مونځونه كول همدارنګې هغه به د ماښام مونځ کې سورة اعراف لوسته ددې وجه داده چې دپيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام په ژبه مباركه به چې كوم تلاوت راوتلو په هغې کې به په دې خلكوته خوشحالې ملاويده ددې وجې نه مونځ به يې سپک معلوميدو ، اوس امت ته دا تعليم دى چې په دې حديث کې مذكور دى.دويم حديث کې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وجه هم بيان كړې ده چې بعضې خلک كمزورې وي يعنې بوداګان ځينې مريضان وي او ځينې ملګرې د كار والا وي لهذا مونځ سپک كوئ .

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ : صَلَّيْنَا مَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى فرمايي چې: مونږ يو ورځ د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام سره جمعې ته د |
| صَلَاةَ الْعَتَمَةَ فَلَمْ يَخْرُجْ إِلَيْنَا |
| ماخوستن مونځ د پاره جومات ته تشريف يوړو ( اتفاقا په دغه ورځ ) نبي عَلَيْهِ السَّلَام تشريف رانه وړو د |
| حَتّٰى مَضٰى نَحْوٌ مِنْ شَطْرِ اللَّيْلِ فَقَالَ : « خُذُوا مَقَاعِدَكُمْ » |
| تردې چې تيره شو نيمه حصه د شپې ددې نه پس راغى او مونږ ته يې وفرمايل: چې تاسو په خپلو ځايونو كينئ |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۴۵،رقم الحديث :۲۲۷-۶۴۳، واخرجه أحمد في المسند ۵/۱۰۵.

فَأَخَذْنَا مَقَاعِدَنَا فَقَالَ : « إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَ أَخَذُوْا

مونږ په خپلو ځايونو ناست وو ددې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: نورو خلکو مونځ وکړو او پريوتل په خپلو

مَضَاجِعَهُمْ وَ إِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا فِيْ صَلَاةٍ مَا انْتَظَرْتُمُ

بسترو کې (نو تاسو ته معلوميدل په کار دي) چې تاسي به په مونځ کې يئ ترڅو چې تاسو انتظار کوئ د

الصَّلَاةَ وَ لَوْلَا ضَعْفُ الضَّعِيفِ وَ سَقَمُ السَّقِيمِ لَأَخَّرْتُ هٰذِهِ الصَّلَاةَ إِلٰى شَطْرِ اللَّيْلِ.[1]

مونځ او که د کمزورو او بيمارانو خيال نه وی نو ما به هميشه دا مونځ نيمې شپې ته رسولی او بيا به مې کولی

**توضيح**: **ان الناس قد صلوا**: دې نه د مسجد نبوي نه علاوه نورې محلې مراد دي چې د ماخوستن په اول وخت کې مونځ کړی وو بيا اوده شوي دي يا د نورو دينونو خلک يهود او نصارى مراد دي هغوي به د ما ښام مونځ وکړو بيا به اوده شول او کله نه چې تاسو د ماخوستن مونځ انتظار کوئ نو تاسو مونځ کې مشغول يې او برابر ثواب به يې تاسو ته ملاويږي او که د خلکو مجبوريانې نه وې نو ددې ثواب حاصلولو د پاره به ما په تاسو لازمي د ماخوستن مونځ کې تاخير کولو حکم درکولی.( المرقات ۲/۳۱۶، اشعة اللمعات ۳۲۲).

## د پيغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به د مازيګر مونځ ناوخته کيدو:

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا

حضرت ام سلمة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا (خلک مخاطب کړل) او ورته يې وفرمايل : نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به ډير مخکې کولو د

لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ وَ أَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلًا لِلْعَصْرِ

ماسپښين مونځ ستاسو نه (د ګرمۍ نه علاوه نورو مونځونو کې) او تاسي ډير مخکې والې کوئ د مازيګر

مِنْهُ .[2]

په مونځ کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه.

**توضيح** : دا حديث واضح طور باندې د احنافو دليل دی چې د مازيګر مونځ کې لږ تاخير کول مستحب دی. دومره جلتي هم مه کوئ لکه څنګه چې نن سبا غير مقلدين کوي . سعودي عرب کې د ماسپښين نه

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۱/۲۹۳ رقم الحديث ۴۲۲، والنسائي ۱/۲۶۸، رقم الحديث ۵۳۸، وابن ماجه في السنن ۱/۲۲۶ رقم الحديث: ۶۹۳، وأخرجه أحمد في مسنده ۵/۳

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۰۶ رقم الحديث ۱۶۱ ، وأخرجه أحمد في مسنده ۶/۲۸۹

واخله تر مازيګره پورې چې څومره وخت دی نو د مازيګر نه د ماښام پورې وخت يا خو ددې برابر دی يا د ماسپښين وخت ددې نه کم وي دومره زر د مازيګر مونځ چيرته کيږي.

## د موسم دوجې نه د مونځ وخت مخکې وروستو کيدی شي:

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ الْحَرُّ |
| د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام (د ماسپښين) مونځ په ګرمۍ موسم کې |
| أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ وَ إِذَا كَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ [1]. |
| په يخ والي کې کولو او د يخنۍ په موسم کې به يې زر کولو. |

**توضيح**: **ابرد بالصلاة** د ماسپښين وخت او ددې په مونځ کې چې کوم اختلاف په نظر راځي او په رواياتو کې چې کوم تعارض معلوميږي هغه ددې حديث سره ختم شو ځکه چې دلته تعجيل په يخنۍ موسم باندې حمل کړی دی او د ماسپخين ناوخته کيدو تعلق د ګرمۍ موسم سره دی لهذا د تعجيل او تاخير حکم د جدا جدا موسمونو د پاره دی هيڅ تعارض نشته دی. (اشعة اللمعات ۳۲۲).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّهَا سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ | | | | | |
| دحضرت عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ماته وفرمايل: نزدې به په تاسو | | | | | |
| بَعْدِي | أُمَرَاءُ | يَشْغَلُهُمْ | أَشْيَاءُ | | |
| باندې زمانه پس داسې خلک حاکمان مقرر شي چې هغوي به مشغولوي د دنيا څيزونه (يعنې د نفس | | | | | |
| عَنِ | الصَّلَاةِ | لِوَقْتِهَا | حَتَّى | يَذْهَبَ | وَقْتُهَا |
| خواهشات) د مونځ نه په (مستحب) وخت کې تر دې چې د مونځ وخت به ووځي (يعنې کراهت راشي) | | | | | |
| فَصَلُّوا الصَّلَاةَ | لِوَقْتِهَا ». | فَقَالَ | رَجُلٌ : | يَا | رَسُولَ اللهِ |
| نو تاسو مونځ کوئ په خپل وخت باندې (اګر که ځانله ولې نه وي) يو کس عرض وکړو: يا رسول الله! | | | | | |
| أُصَلِّي | مَعَهُم ؟ | قَالَ : | « نعم » . [2] | | |
| آيا بيا ددوی سره مونځ هم وکړم؟ پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل: آو د هغوي سره مونځ هم وکړئ (چې ثواب ډير ملاؤ شي او د بادشاه د مخالفت د وجې نه فتنه او فساد پيدا نه شي). | | | | | |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱/۲۴۸ رقم الحديث ۴۹۹

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۳۰۱ رقم الحديث ۴۳۲، وأخرجه أحمد في مسنده ۶/۷

**توضیح**: **انها** دا ضمیر قصه ده ، **امراء** ددې نه د پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د سنت نه جدا بادشاه مراد دي لکه حجاج بن یوسف او بنو امیه نور داسې بادشاهان مراد دي چې مونځ يې د مختار وخت نه مؤخر کولو او ځینې بادشاهان مونځ بالکل نه کوي لکه څنګه چې نن سبا دي دا خلک په هیڅ حساب کې نه دي . (المرقات ۲/۳۱۷).

**لوقتها** : ددې نه مراد مستحب وخت دی .

**قال لعمر**: چې کله د فتنې خطره وي نو مونځ ځانله په خپل ځای باندې مستحب وخت کې کولو او د ظالم بادشاهانو سره فتنه دُفع کول او د مجبورئ د وجې نه هغوي سره په مونځ کې شاملیږئ ددې تشریح مخکې تیره شوې ده .

| |
|---|
| ﴿۳٤﴾ وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَكُونُ عَلَيْكُمْ |
| دحضرت قبیصه بن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل: په تاسو به داسې |
| أُمَرَاءُ مِنْ بَعْدِي يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ فَهِيَ لَكُمْ وَ هِيَ |
| حکمرانان وي دما نه پس چې وروسته کوي به مونځ او دغه مونځ به ستاسو د پاره فائده مندوي او هغوي |
| عَلَيْهِمْ فَصَلُّوا مَعَهُمْ مَا صَلَّوُا الْقِبْلَةَ»[1]. |
| دپاره به عذاب (ګناه) وي ترڅو پورې چې هغوي قبلې ته مونځ کوي تاسو هم دهغوي سره مونځ کوئ. |

**توضیح** : **فهي لکم** : ددې جملې مطلب دادی چې که تاسو مستحب وخت کې مونځ وکړئ بیا د فتنې د دفع کیدو د وجې نه د ظالم حکمران سره شریک شئ دا دویم مونځ ستاسو د پاره فائده مند دی او ددې به تاسو ته ځانله او جدا ثواب ملاویږي .

دویم مطلب یې دادی چې تاسو د فتنې د دفع کیدو او د فساد نه د بچ کیدو د ویرې د هغوي سره مونځ وکړئ نو ستاسو مواخذه به نه کیږي د مجبورۍ د وجې نه به ستاسو نیول نه کیږي خو د ظالمانو حکمرانانو د پاره دا مونځ عذاب (ګناه) دی ځکه چې هغوي د مجبورۍ د وجې نه نه بلکې د سُستۍ د وجې نه په مکروه وخت کې مونځ وکړو او د دنیا په کارونو کې مشغول وو دا خو په تاخیر باندې بادشاه ته وعید دی او څوک چې مونځ بالکل نه کوي بلکې مني یې هم نه دا واجب القتل دی.(اشعة اللمعات ۳۲۳).

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۳۰۱ رقم الحديث :٤٣٤.

﴿۳۵﴾ وَ عَنْ عُبَيْدِاللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ : أَنَّهُ دَخَلَ عَلٰى عُثْمَانَ

حضرت عبید الله بن عدي بن خیار رضي الله عنه په باره کې نقل دی چې دا حاضر شو د حضرت عثمان رضي الله عنه

وَ هُوَ مَحْصُوْرٌ

په خدمت کې (چې کله هغه د خپل شهادت نه مخکې د بغاوت په ورځو کې په خپل کور کې) بند وو، نو

فَقَالَ : إِنَّكَ إِمَامُ عَامَّةٍ وَ نَزَلَ بِكَ مَا

عرض يې وکړو چې: تاسو زمونږ د ټولو امام يې او په تاسو باندې چې څومره مصيبتونه نازل شوي دي

تَرٰى وَ يُصَلِّيْ لَنَا إِمَامُ فِتْنَةٍ وَ نَتَحَرَّجُ

هغه تاسو هم وينئ (او زمونږ حال دادی) چې مونږ ته د فتنې او فساد يو امام مونځ راکوي (چې هغه

فَقَالَ : الصَّلَاةُ

پسې وروسته مونځ کول مونږ ګناه ګڼړو دا يې واوريدل) حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمايل: مونځ کول

أَحْسَنُ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ فَإِذَا أَحْسَنَ النَّاسُ فَأَحْسِنْ مَعَهُمْ

دخلکو په اعمالو کې ښه او افضل عمل دی لهذا چې کله خلک نيکي وکړي تاسو هم د هغوي سره نيکي کوئ

وَإِذَا أَسَاؤُوا فَاجْتَنِبْ إِسَاءَتَهُمْ [1].

او که هغوي ګناه وکړي نو تاسو د هغوي د ګناه نه ځان بچ کړئ.

**توضيح**: **وهو محصور**، حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه خلاف د عبد الله بن سبا په تحريک باندې د مصر خلک را اوچت شول او د دغه خلکو يوه مجموعه (ډله) مدينه منوره کې داخل شوله يا خو اکثر صحابه د دښمن په مقابله کې جهاد ته تلي وو يا د حج د پاره مدينې منورې نه مکې مکرمې ته تلي وو راغلي خلک حضرت عثمان رضي الله عنه څلويښت ورځو پورې په کور کې مدينه کې بند کړی وو ددې وجې نه مسجد نبوي ته نه شو راتللی، دې زمانه کې د فتنه ګرو او فساديانو امام مونځ ورکولو ددې نوم شارحين کنانه بن بشر خودلی دی حضرت عثمان رضي الله عنه نه تپوس کونکي تپوس وکړو چې د فساديانو مشر کوم چې مونځ ورکولو آيا ده پسې وروسته مونځ کيږي؟ (المرقات ۲/۳۱۸).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۸/۲، رقم الحديث: ۶۹۵.

**ونتحرج**: یعني مونږ هغه پسې وروسته مونځ کولو کې حرج محسوسوو او ګناه ګڼو د حضرت عثمان رضي الله عنه عدل او انصاف حلم او علم ته وګوری چې سخت تکلیف او پریشانی په حالت کې هم یوه جمله هم ونه ویله بلکې وې فرمایل: صحیح ده دا خلک ما پسې شا ته لګیدلي دي خو مونځ نیک عمل دی او چې څوک ښه عمل کوي تاسو هم په هغې کې شریک کیږئ ستاسو سخت دښمن ولې نه وي او چې څوک غلط کار کوي نو په غلطۍ کې د هغوي سره یو ځای کیږئ مه اګر چې ستاسو محبوب ولې نه وي.
بهر حال دغه مصیبت کې حضرت عثمان رضي الله عنه سنه ۳۵ اتلس (۱۸) ذوالحجه کې شهید کړی شو، ځان یې قربان کړو خو د مدینې احترام یې وساتلو، چې تفصیل یې ان شاء الله د توضیحات په آخري جلد کې راځي.



۱۴ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ فَضَائِلِ الصَّلَاةِ:

## د مونځ د فضائلو بيان:

قال الله تعالى: ﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ والصَّلاَةِ الْوُسْطَى﴾ (بقرة: ۲۳۸)

و قال الله تعالى: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللهِ وَأَقَامُوا الصَّلاَةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلاَنِيَةً يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّن تَبُورَ﴾ (سورة فاطر: ۲۸)

# الْفَصْلُ الأول:

## د ماز يګر او سحر د مونځ فضيلت:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَنْ يَلِجَ |
| دعمارة بن رويبة رضي الله عنه نه روايت دى وايي ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي چې: هيڅ كله به داخل نه شي |
| النَّارَ أَحَدٌ صَلَّى قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا» يَعْنِي الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ. (رَوَاهُ مُسلم)[1] |
| اورته هر هغه څوک چې د نمر راختو او پريوتو نه مخكې (دوه مونځونه) وكړي يعني د سحر او ماز يګر. |

**توضيح**: لن يلج: يلج ولوج نه د داخليدو په معنى كې دى يعني د عذاب وركولو په غرض به دوزخ كې نه داخليږي ورنه د تيريدو په غرض سره خو دا خبره بنكاره ده چې ټول انسانان به په دوزخ باندې تيريږي د قرآن آيت دى: ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلاَّ وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ (المرقات ۲/۳۱۹، اشعة اللمعات ۳۲۳).

**الفجر و العصر**: د نمر راختو نه مخكې چې كوم مونځ كيږي هغه د سحر مونځ دى او كوم مونځ چې د نمر پريوتو نه مخكې كيږي هغه د ماز يګر مونځ دى.

**سوال**: دې حديث نه دا معلومه شوه چې څوک د سحر او ماز يګر مونځ اهتمام كوي هغه به د يوې ګناه د وجې نه هم دوزخ ته نه ځي خواه د نورو كبائرو ارتكاب يې ولې نه وي كړى نور مونځونه پرې ولې نه پږدي دا دوه مونځونه د ټولو ګناهونو د پاره كفاره ده د الله تعالى رحمت اګر چې وسيع دى ليكن د جمهورو علماو په نزد دا خبره جوړه شوې ده چې د ګناه كبيره د بخښنې د پاره توبه ضروري ده او طاعات

او نیکي د صغائرو د پاره کفاره ده نه د کبائرو د پاره، نو بیاد عدم دخول حکم څنګه دی ؟
**جواب**: علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ دا سې جواب ورکړی څوک چې د سحر مونځ اهتمام کوي حالانکه د سحر وخت د آرام وخت دی دغه رنګ کوم کس چې د مازیګر وخت اهتمام او پابندي کوي حالانکه د مازیګر وخت ډیر د مشغولیدو او د مصروفیت وخت دی ظاهر دادی چې څوک دا دوه مشکل مونځونه کوي نو ددې نه علاوه نورمونځونه بطریقِ اولی کولی شي، شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په دې اشکال کوي که دا ومنو چې سړی د نورو مونځونو حفاظت کوي د هغې څه ضمانت دی چې دا کس د مونځ پریښودو علاوه بله ګناه نه کوي او دوزخ کې به نه داخلیږي. (الکاشف ۲/۲۱۵، المرقات ۲/۳۱۹، اشعة اللمعات ۳۲۳).
شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ بیا دا جواب ورکوي چې په دې حدیث کې در حقیقت ددې دوو مونځونو فضیلت او عظمت بیان دی ددې دوو ځایونو په بیان کې مبالغه ده، د دواړو مونځونو لوي شان دی څوک چې ددې پابندي کوي الله تعالی به دا دوزخ کې نه داخلوي او نور ګناهونه به په خپل فضل سره معاف کړي. (اشعة اللمعات ۳۲۳).

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوسٰى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى الْبَرْدَيْنِ |
| د حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي: چا چې وکړه د یخ وخت دواړه مونځونه |
| دَخَلَ الْجَنَّةَ». (متفق علیه) (۱) |
| (یعنې د سحر او ماسخوتن مونځونه) دا به جنت ته داخلیږي. |

**توضیح**: البردین قاموس کې لیکلي چې بردان دیخ وخت دوو مونځونو ته یعنې سحر او ماسخوتن ته ویلی شي لیکن اکثر علماء ددې نه مراد سحر او مازیګر اخلي ځکه چې دواړه مونځونه دورځې په دواړو طرفونو کې واقع دي او ددې په وختونو کې هوا یخه لګي ددې نه مخکې حدیث هم ددې حدیث تائید کوي په دې کې د مازیګر او سحر دغه فضیلت بیان کړی دی. (المرقات ۲/۳۳۰، اشعة اللمعات ۳۲۴).
ددې حدیث فضیلت او ددې نه ماقبل حدیث په فضیلت کې معمولي فرق وو ددې حدیث د لاندې مونځ کوونکي جنت ته به ځي خودا یې نه دي ویلي چې د نورو ګناهونو د وجې سزا نه پس به جنت ته ځي یا بغیر د سزا به ځي او س دې کې احتمال شته چې سزا خوړلو نه پس به جنت ته ځي، په دې باندې هم دخل الجنة صادق راځي لیکن ددې نه مخکې حدیث کې واضح طور باندې دا ویلي شوې دي چې دا کس به په هیڅ حالت کې نه داخلیږي.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۵۲، رقم الحديث ۵۷۴، ومسلم في الصحيح ۱/۴۴۰ رقم الحديث: ۲۱۵-۶۳۵.

## د کراما کاتبين د ډيوټۍ (وظيفې) طريقه:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَتَعَاقَبُونَ فِيكُمْ مَلَائِكَةٌ بِاللَّيْلِ |
| دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: راځي ستاسو خواته فرښتې په شپه او |
| وَ مَلَائِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَ يَجْتَمِعُونَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ وَ صَلَاةِ الْعَصْرِ |
| ورځ کې (ستاسو اعمال ليکي او د الله تعالى دربارته يې رسوي) او جمع کيږي تولې د سحر او مازيگر مونځ |
| ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِينَ بَاتُوا فِيكُمْ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ |
| کې بيا آسمان ته ځي هغه فرښتې چې ستاسو سره يې شپه تيره کړې وي نو تپوس کوي الله تعالى د خپلو |
| وَ هُوَ أَعْلَمُ بِهِمْ كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِي |
| بندګانو په حالاتو د پوهيدو باوجود د هغوي نه چې تاسو زما بندګان په کوم حالت کې پرېښودل هغوي |
| فَيَقُولُونَ تَرَكْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّونَ وَ أَتَيْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّونَ » (متفق عليه).[1] |
| وايي: مونږ ستا بندګان د مونځ په حالت کې پرېښودل او چې مونږ کله ورتلو نو هغوي په مونځ باندې وو. |

**توضيح: يتعاقبون** د باب **تفاعل** نه **تعاقب** د يو بل نه مخکې وروستو تلو راتلو په معنى کې دى يعني د فرښتو يوه ډله د انسانانو اعمال ليکلو د پاره چې کله راشي نو دويمه ډله د هغوي اعمال ليکلي واخلي او آسمان طرف ته يې وړي دا دواړه د فرښتو ډلې د سحر او مازيګر مونځ کې يو ځاى کيږي ددې وجې نه د دواړو مونځونو فضيلت واضح دى. (المرقات ۲/۳۲۰، اشعة اللمعات ۳۲۴).

**يتعاقبون** د جمع صيغه ده ددې نه پس فاعل اسم ظاهر فرښته ده د قواعدو مطابق دا صيغه د مفرد په کار ده جمع يې ولې راوړه، ددې يو جواب دادى **يتعاقبون** کې دا **واؤ** د راتلونکي فاعل د جمع کيدو باندې دلالت کولو د پاره راغلى يعنې دا صرف علامت د فاعل دى ضمير فاعل نه دى.

دويم جواب دادى: اسم ظاهر په ظاهره فاعل معلوميږي خو اصل کې فاعل نه دى بلکې د **يتعاقبون** د فاعل نه بدل دى.

دريم جواب: **يتعاقبون** خبر مقدم دى، **ملائكة بالليل** مبتداء مؤخره ده، د قرآن مجيد په دې آيت: ﴿وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ کې هم دا قسمه توجيهات دي.

---

(۱) اخرجه البخاري ۲/۳۳، رقم الحديث: ۵۵۵، ومسلم ۱/۴۳۹ رقم الحديث: ۶۱۰-۶۳۲، والنسائي ۱/۲۴۰، رقم الحديث: ۴۸۵.

**فیسالهم**:یعنې د شپې فرښتو نه الله تعالی تپوس کوي چې تاسو زما بندګان په کوم حالت کې پرېښي ددې تپوس په وجه الله تعالی د خپل انسانانو فضیلت ظاهروي چې زما بنده ګان څنګه ذکر کوي او څنګه د الله تعالی بزرګي او پاکي بیانوي حالانکه چې کله انسان یې پیدا کولو نو فرښتو وویل چې ای الله ! آیا تاسو داسې مخلوق پیدا کوئ چې فتنه او فساد به پیدا کوي .ای الله تعالی زمونږ د پوهي نه دا خبره لرې ده چې د شریر مخلوق د پیدا کیدو مقصد څه دی او که نیک وي نو زمونږ نه نیک بل څوک کیدی شي چې هغه د ورځې او د شپې په تسبیح ، تهلیل او پاکۍ کې لګیا وي ځکه الله تعالی په فرښتو باندې هره ورځ ظاهروي چې وګورئ دا مخلوق د فساد په ځای زما عبادت کوي او څومره په خوند باندې زما عبادت په حالت د تکلیف او مشقت سره کوي.بهر حال دې حدیث کې پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلاةُ وَالسَّلَامُ خپل امت ته د دوو مونځونو ترغیب ورکوي چې ددې بنه پابندي کوئ ځکه د انسان د اعمالو لیکلو د پاره د فرښتو دوه ډلې دي یوه د ورځې د پاره او دویمه ډله د شپې د پاره ، چې کله د ورځې والا فرښتې ډیوټي پوره کړي نو آسمان طرف ته ځي ، بیا د شپې والا فرښتې راځي ددوي نه تپوس کوي دا ددې خبرې ښکاره دلیل دی چې د شپې ډیوټي والا فرښتې د ورځې والا فرښتو نه افضل دي ، وجه داده چې د عبادت په اعتبار سره د شپې درجه د ورځې نه افضل ده ځکه چې په شپه کې سکون وي عبادت د ریاکارۍ نه پاک وي او عبادت د زړه په اطمینان سره کیږي لهذا د شپې فرښتې د ورځې فرښتو نه غوره او افضل دي ځکه الله تعالی ددوي نه تپوس کوي د خپلو بندګانو متعلق (کذا في اللمعات)

## د سحر مونځ کوونکي د الله تعالی په حفاظت کې وي :

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ جُنْدُبِ الْقَسْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ فَهُوَ |
| د جندب قسري نه روایت دی فرمایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل : چا چې د سحر مونځ وکړو هغه ( دنیا او |
| فِي ذِمَّةِ اللهِ فَلَا يَطْلُبَنَّكُمُ اللهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ |
| آخرت) کې د الله تعالی په امن کې دی داسې به نه وي چې الله تعالی په خپله وعده کې تا نه څه مواخذه وکړي |
| فَإِنَّهُ مَنْ يَطْلُبُهُ مِنْ ذِمَّتِهِ بِشَيْءٍ يُدْرِكُهُ ثُمَّ يَكُبُّهُ |
| او چا نه چې د الله تعالی په وعده او امن کې مطالبه وشوه نو الله تعالی به دا کس را ونیسي او ګوزار به |
| عَلَى وَجْهِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ». وَ فِي بَعْضِ نُسَخِ الْمَصَابِيحِ الْقُشَيْرِيُّ بَدَلَ الْقَسْرِيِّ.(١) |
| یې کړي دوزخ ته تور مخ (او په بعضې نسخو د مصابیح کې د قسری په ځای قشیري ذکر شوی دی). |

(١) أخرجه مسلم في الصحيح ٤٥٤/١ رقم الحديث ٦٢-٦٥٧، والترمذي ٤٠٤/٤ رقم الحديث ٢١٦٤ .

**توضیح**: **في ذمة الله**: ددې نه دالله تعالی وعده او امن مراد دی د حدیث مطلب دا شو چا چې د سحر مونځ وکړو داد الله تعالی په حفاظت او د هغه په وعده او امن کې راغی. پس مسلمانانو کې چا چې هم دې مونځ گزار ته نقصان ورکړو هر اعتبار سره ؤ نو ددې مطلب داشو چې دې کس د الله تعالی په وعده او په امن کې خلل واقع کړو او دالله تعالی حفاظت ته یې نقصان ورکړو ځکه به الله تعالی دې بدبخت مواخذه کوي. بعضې شارحینو یې دا مطلب بیان کړی دی چې ذمة الله یعنې د سحر مونځ په خپله وعده او امن دی د سحر مونځ کوونکي سره په خپله دالله تعالی دامن وعده ده د دنیا او د آخرت لهذا عام مسلمانانو ته په کار دي چې د سحر مونځ اهتمام ډیر کوي د سحر مونځ مه قضاء کوئ د الله تعالی کومه وعده ده چې هغه برقرار پاتې شي د مونځ قضاء کیدو سره هغه وعده ماته نه شي ځکه چې د ماتیدو سره به الله تعالی نیول کوي. (المرقات ۲/۳۲۱).

## د اول صف فضیلت:

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ |
| د حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي: که چیرته معلوم شي خلکو ته |
| مَا فِي النِّدَاءِ وَ الصَّفِّ الْأَوَّلِ ثُمَّ لَمْ يَجِدُوا إِلَّا أَنْ يَسْتَهِمُوا |
| ثواب د آذان کولو او په (مونځ کې د) اول صف کې د او دریدو نو دا به حاصل نه شي ورته په غیر د قرعې |
| عَلَيْهِ لَاسْتَهَمُوا وَ لَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي التَّهْجِيرِ |
| اچولو نه شي، نو هغه به پرې قرعه اندازي ضرور وکړي، او که چیرته ثواب ورته معلوم شي ماسپښین |
| لَاسْتَبَقُوا إِلَيْهِ وَ لَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِي الْعَتَمَةِ وَ الصُّبْحِ |
| مونځ ته په جلدئ سره د راتللو نو مونځ د پاره به په منډه راځي او که د ماسخوتن او د سحر فضیلت ورته |
| لَأَتَوْهُمَا وَ لَوْ حَبْوًا». (متفق علیه). (۱) |
| معلوم شي نو د کناتو په سرونو باندې به راشي. |

**توضیح**: **الا ان یستهموا**: استهام د سهم نه د قرعه اندازۍ په معنی کې دی، یعنې د آذان کولو او په اول صف کې د او دریدو ثواب چا ته معلوم شو او بیا ددې د فضیلت د پاره خلکو سره د قرعه اندازۍ موقع راشي نو د ثواب د حصول د پاره په قرعه اندازۍ وکړي لکه څنګه د یو څو کسانو په آذان کولو باندې

(۱) أخرجه البخاري ۲/۹۶، رقم الحديث ۶۱۵، ومسلم ۱/۳۲۵ رقم الحديث ۱۲۹-۴۳۷، والنسائي ۱/۲۶۹، رقم الحديث ۵۴۰.

جګړه شوه حضرت سعدبن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددوي په مینځ کې قرعه اندازي وکړه(المرقات ۲/۳۲۲، اشعة اللمعات ۳۲۵).

**تهجير** : هر یو ځیز طرف تـه جلدي او سبقت کولو تـه ویلی شي بیا د ماسپښین مونځ د پاره زر وتلو د وجې نه استعمال شوی دی ، ځینو د جمعې د پاره زر وتلو مطلب اغستی دی او ځینو د هر یو مونځ د پاره په جلتۍ ورتلو په معنی کې اخستی دی . **لاستبقوا** : د یو بل نه مخکې وتلو په معنی کې دی که دې خلکو ته د مونځ د پاره د جلتۍ کولو فضیلت معلوم شي نو دا خلک به د یو بل نه مخکې کیږي .

**العتمة** : ماسخوتن ته ویلی شي اسلام نه مخکې د ماسخوتن نوم عتمه وو اسلام ددې نوم ماسختون کیښوډو ، د عتمه په لفظ باندې پابندي ولګیده شاید دلته چې کوم اطلاق شوی دی دا د حرمت او مخالفت نه مخکې وو. حبوا ماشوم چې کله په خاپوړو باندې یعنې لاسونه او سینه باندې روان وي داسې تللو ته حبوا ویلي شي ، ځینې ترجمه کوونکو ددې لفظ په ګُناټو باندې د تللو کړې ده صحیح دواړه دي مګر متبادر دادی چې په خاپوړو باندې د تلو ترجمه وکړی شي . (المرقات ۲/۳۲۳).

## کوم یو مونځ په منافق باندې بوج (ګران) وي :

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ صَلَاةٌ أَثْقَلَ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ |
| د ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایي: نشته دي درونده مونځ په منافقینو |
| مِنَ الْفَجْرِ وَ الْعِشَاءِ وَ لَوْ يَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا لَأَتَوْهُمَا وَ لَوْ حَبْوًا » . [1] |
| باندې د سحر او ماسخوتن مونځ نه غیر که چیرته د دواړو ثواب ده ته معلوم شي د ګُناټو په سر به راشي. |

**توضیح:** **اثقل**: ددین په معامله کې منافق هسې هم غل دی دده په مزاج کې د عبادت په باره ستوالی او سترګې پټول دي د سحر او ماسخوتن مونځ نه سخت وختونو کې دا کله ګرمی یا یخنی کې د ماسخوتن مونځ انتظار کولی شي او د سحر مونځ د خوب په وخت کې کولی شي نو ځکه د منافق طبیعت د ایمان نه ملو د کمزورۍ د وجې نه مونځونه په دوي باندې مشکل وي حالانکه د ماسخوتن او سحر وخت کې تیاره وي نو ددوي د پاره په دې وختونو کې سترګې پټول او ځان غائبول آسان وي . ددې حدیث نه معلومه شوه چې مخلص سړي او صحیح مؤمن په دې دواړو مونځونو کې ښه کوشش مشقت کوي ، دې حدیث نه مونږ ته دا تعلیم حاصل شو چې یو مخلص مسلمان ته په کار دي چې خصوصاً د سحر او

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱٤۱/۲،رقم الحديث : ٦٥۷، ومسلم في الصحيح ٤٥١/١ رقم الحديث: ٢٥٢-٢٥١.

ماسخوتن مونځ كې كوشش وكړي دا نه چې د منافقينو سره مشابهت پيدا نه شي .(اشعة اللمعات ۳۲۵)

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ |
| د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى فرمايي چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي : چا چې د ماسخوتن |
| فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا قَامَ نِصْفَ اللَّيْلِ وَ مَنْ صَلَّى الصُّبْحَ |
| مونځ د جمعې سره وكړو هغه داسې دى ګويا چې ده نيمه شپه عبادت كې تيره كړه او چا چې د سحر مونځ |
| فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ ».(۱) |
| هم په جمع وكړو ګويا چې ده ټوله شپه په عبادت كې تيره كړه . |

**توضيح :قام نصف الليل**:يعنې ګويا چې نيمې شپې پورې يې تهجد وكړل **قام** او **صلى** كې مختلفو الفاظو كې **تفنن في العبارة** دى مطلب يې يو دى(المرقات ۲/۳۲۴،الكاشف ۲/۲۲۰،اشعة اللمعات ۳۲۵).

**الليل كله** د دې حديث دوه مفهومه دي چا چې د ماسخوتن مونځ ه جمعې سره وكړو ګويا چې نيمه شپه تهجد يې وكړل او چا چې د سحر مونځ د جمعې سره وكړو ګويا چې ټوله شپه عبادت كې مشغول وې په دې صورت كې د ماسخوتن مونځ باندې د سحر مونځ فضيلت او فوقيت ثابت شو ،او دويم مفهوم يې دا دى چې چا د ماسخوتن مونځ د جمعې سره وكړو ده ته د نيمې شپې ثواب ملاؤ شو او چا چې د سحر مونځ په جمعې سره وكړو ګويا چې ده ته د باقي نيمې شپې ثواب ملاؤ شو ، دغه رنګ د ټولې شپې د تهجدو ثواب ورته ملاؤ شو ، دا مطلب ډير واضحه دى .

## د شرعي اصطلاحاتو خيال ساتئ :

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ |
| دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي : چې غالب دې نه شي باندې چيان خلک د |
| عَلَى اِسْمِ صَلَاتِكُمُ الْمَغْرِبِ ». قَالَ : « وَ تَقُولُ الْأَعْرَابُ هِيَ الْعِشَاءُ . وَ |
| مابنام مونځ نوم اخستو كې په تاسو باندې ،راوي وايي چې :باندې چيان مابنام ته هم ماسخوتن وايي بيا |
| قَالَ لَا يَغْلِبَنَّكُمُ الْأَعْرَابُ عَلَى اِسْمِ صَلَاتِكُمُ الْعِشَاءِ فَإِنَّهَا فِي كِتَابِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل:چې د ماسخوتن نوم اخستو كې دې هم دوې په تاسو غالبه نه شي د دې نوم په كتاب |

(۱) أخرجه مسلم ۱/۴۵۴ رقم الحديث ۲۶۰-۶۵۶، وأبو داود ۱/۳۷۶ رقم الحديث :۵۵۵، والترمذي ۱/۴۳۳ رقم الحديث :۲۲۱ .

اللهِ الْعِشَاءُ فَإِنَّهَا تُعْتِمُ بِحِلَابِ الْإِبِلِ. (رواه مسلم)[1].

الله کې عشاء دی ځکه چې بانډه چیان په مونځ کې تاخیر کوي د اوښانو نه پئ رالوشلو د وجې نه.

**توضیح: الاعراب**: اعراب په بانډه کې اوسیدونکي ته ویلی شي دا خلک د ښار نه لري اوسیدو د وجې نه د عام آدابو نه خبر نه دي دلته د اعراب نوم ددوي د نه پوهیدو د وجې نه اخستلی شوی دی ورنه عرب خلک به (یعنې د ښار والا) هغوي به هم ماښام ته د ماسخوتن نوم اخستو او ماسخوتن ته یې عتمه ویله، دلته د اعرابو نه د جاهلیت دور بانډې والا مراد دي چې دوي به شرعي اصطلاحات بدلولو سره د ختمیدو کوشش کولو، ددې وجې نه پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د عربو ښار والا منع کړل چې تاسو د بانډه چیانو په شان جوړ نه شئ چې خپل شرعي اصطلاحات او شرعي اطلاقات بدل کړئ او د هغوي هغه اختیار کړئ چې ددې وجې نه په تاسو د هغوي ثقافت او معاشرتي پیژندنه غالبه راشي تاسو له په کار دي چې قرآن او حدیث کې کوم نومونه وي او چې کومه اصطلاح متعارفه وي هغه استعمال کړئ. دې حدیث نه دا معلومه شوه چې په مسلمانانو لازم دي چې خپله ژبه او خبرې د شریعت په اصطلاح کې درست ساتي او د فجارو او کافرانو په تقلید کې خپل شرعي او ثقافتي میراث برباد نه کړي. (المرقات ۲/۳۲۵، الکاشف ۲/۲۲۱).

**فانها في کتاب الله العشاء**، دا مخکې جمله د نهي او مخالفت د پاره علت دی چې د بانډه چیانو تقلید مه کوئ د قرآن حکم منئ قرآن ماسخوتن د ﴿وَمِن بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ﴾ په نوم سره یاد کړې دی.

**فانها تعتم بحلاب الابل**: دې جملې نه پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دا ښکاره کړه چې په جاهلیت کې به هغوي ماسخوتن ته عتمه ولې ویلو فرمایي چې بانډه چیانو خلکو به د اوښانو نه پئ رالوشلو وجې نه به پرې ناوخته شوخه تیاره به ولګیده ددې وجې نه به یې تیاره ته عتمه ویله، خلاصه دا چې کله د اسلام دور شروع شو نو د ماښام وخت ته یې **صلوة المغرب** او د ماسخوتن مونځ ته **صلاة العشاء** نوم ورکړو د جاهلیت دور باقي پاتې شوي بانډه چیانو او په اسلام کې داخل شوي مسلمانانو بانډه چیانو د ماسخوتن ته **عتمه** ویل برقرار وساتل او ځینې مسلمانانو هم **عتمه** ویلو دې وجې نه پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دوي په سختۍ سره منع کړل او دې ته یې **عتمه** ویل مکروه وګرځول. **سوال**: ډیرو روایاتو کې راغلي چې پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او صحابه په خپله ماسخوتن ته عتمه ویله دا سې ولې؟

---

(۱) أخرجه البخاري ۱۳/۲، رقم الحدیث ۵۶۳، ومسلم ۴۴۵/۱ رقم الحدیث ۲۲۹-۶۴۴، والنسائي ۲۷۰/۱، رقم الحدیث ۵٤۱، وابن ماجة ۲۳۰/۱، رقم الحدیث: ۷۰٤.

**جواب**: شارحين ليکي چې کوم ځاى کې په احاديثو کې دالفظ استعمال دى نو دا په جاهليت زماني باندې محمول دى، خو شيخ عبد الحق رَحِمَهُ‌اللهُ فرمايي چې ماسخوتن ته عتمه ويل مکروه تنزيهي دي يعنې خلاف اولى دى نو چا چې د منع کيدو نه پس دالفظ استعمال کړه نو ده خلاف اولى کار وکړو .

**تعتم** دا صيغه د باب **افعال** ده **اعتمام** په معنى د **دخول في العتمه** دى دا د مجهول صيغه هم ويل شوې او د معروف هم ،که د مجهول صيغه وي نو ضمير به صلوة ته راجع کيږي نو مطلب به دا شي چې د اوښانو پېۍ رالوشلو د وجې مونځ کې تاخير راغې او په تياره کې به يې کولو او که صيغه د معلوم شي بيا به ضمير اعرابو طرف ته راجع شي مطلب به يې دا شي چې د باندې خلکو د اوښانو د پېۍ د وجې نه مونځ وروستو کړى وو .(اشعة اللمعات ۳۲۶،۳۲۸).

**تعتم** مجهول صيغه ده او **تعتم** د معروف صيغه ده دواړه د باب **افعال** نه دي **رواه مسلم** شيخ عبدالحق رَحِمَهُ‌اللهُ وايي : دا روايت مطلقاً د مسلم روايت کې شمارل ځاى د بحث دى ځکه چې د دې حديث اولنى جمله صرف امام بخاري رَحِمَهُ‌اللهُ نقل کړې ده مسلم کې نشته او د دې دويمه جمله چې **وقال لا يصلين** نه شروع شوې ده صرف مسلم کې ده په بخاري کې نشته . (المرقات ۳/۲۲۶).

## صلوة الوسطى مصداق کوم مونځ دى ؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ: |
| حضرت علي رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ نه روايت دى چې نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام د غزوه خندق په ورځ وفرمايل (کافرانو) مونږ د مېنځني |
| "حَبَسُونَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطَى: صَلَاةِ الْعَصْرِ مَلَأَ اللهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا). (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) |
| مونځ نه يعنې د مازيګر مونځ کولو نه منع کړى وو الله تعالى دې د دوي کورونه او قبرونه د اور نه ډک کړي. |

**توضيح** : **صلاة الوسطى صلاة العصر** :قرآن کريم کې د مونځونو د حفاظت متعلق يو آيت دى : ﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى﴾ په څلوريشت (۲۴) ګينتو کې پنځه مونځونه فرض کړي دي چې کله دوه مونځونه د يو طرف نه شمار کړى شي او دويم طرف نه هم دوه مونځونه واخستلى شي پنځه مونځونو کې هر يو مونځ وسطى يعنې مينځ والا جوړيږي ، ځکه د دې تعين مشکل دى هلته احاديثو کې چې کله وکتلى شي حضرت علي رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ روايت نه صلوة وسطى مصداق مازيګر معلوميږي .فصل

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۹۵/۸،رقم الحديث . ۴۵۳۳، ومسلم في الصحيح ۴۳۷/۱ رقم الحديث:۲۰۵-۶۲۷، وأبو داود ۲۸۷/۱ رقم الحديث :۴۰۹، والنسائي ۲۳۶/۱، رقم الحديث: ۴۷۳ ، والترمذي ۲۰۲/۱ رقم الحديث ۲۹۸۴.

ثاني کې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت کې هم ددې مصداق د مازيگر مونځ گرځول شوی دی، بيا فصل ثالث کې حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه روايت کې دليل سره دا خودلې چې د صلوة الوسطی مصداق د ماسپښين مونځ دی. (الکاشف ۲/۲۲۳، اشعة اللمعات ۳۲۶).
بيا ددې نه پس د امام مؤطا مالک په روايت کې دي چې د صلوة الوسطی مصداق د سحر مونځ دی د رواياتو د اختلاف د وجې نه د فقهاو هم د صلوة الوسطی په تعيين کې اختلاف دی که واړه لوي اقوال راجمع کړی شي نو تقريبا شلو پورې تعداد رسي.

**د فقهاو اختلاف**: ځينې فقهاء د **صلوة الوسطی** مصداق د ماسپښين مونځ گرځوي ځينې د سحر مونځ ځينې د مازيگر گرځولی دی، بعضې د جمعې مونځ **صلوة الوسطی** گرځولی دی، ځينې د تهجد مونځ ددې مصداق جوړ کړی دی خو مشهور دري اقوال دي: امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله د سحر مونځ **صلوة الوسطی** گرځولی دی. امام ابو حنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله د مازيگر مونځ **صلوة الوسطی** گرځولی دی. د حضرت ابو سعيد خدري او زيد بن ثابت رضي الله عنهما او د حضرت عائشې رضي الله عنها په نزد صلوة الوسطی مصداق د ماسپښين مونځ دی.

**دلائل**: د حنابلو دليل دا موجوده حديث مرفوع د حضرت علي رضي الله عنه دی چې دا حديث امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله په صحيحين کې راوړې، په حديث کې په خپله نبي عليه الصلاة والسلام د صلوة الوسطی تفسير په مازيگر سره کړی دی، چې دا ډير مضبوط دليل دی، ددې نه پس په فصل ثاني کې ابن مسعود رضي الله عنه صريح حديث هم ددوي دليل دی. شوافع او مالکيه په فصل ثالث کې په حواله د موطا مالک کې د حضرت علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه روايت استدلال کې نيولی دی دې کې واضح طور باندې ذکر دي چې **صلوة الوسطی صلوة الصبح**. حضرت ابو سعيد خدري، زيد بن ثابت رضي الله عنه او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم اجتهادي رواياتو باندې خپل مسلک قائم کړی وو چې په فصل ثالث کې روايت نمبر ۱۲ او ۱۳ دی چې دا ددغه حضراتو نه منقول دی.

**جواب**: احنافو او حنابلو چې د کوم روايت نه استدلال کړی دی هغه مرفوع حديث دی او د شوافعو او مالکيو استدلال د صحابه کرامو رضي الله عنهم آثار دي، د مرفوع حديث مقابله نه شي کولی، علامه نووي رحمه الله وايي چې: د آحاديثو صحيحو صريحو تقاضا دا ده چې **صلوة الوسطی** نه د مازيگر مونځ مراد دی او دا مختار دی، علامه ماوردي شافعي رحمه الله فرمايي: چې امام شافعي رحمه الله اگر چې د **صلوة الوسطی** مصداق سحر گرځولی دی خو د امام شافعي رحمه الله قول دی چې کله صريح او صحيح حديث راشي نو هغه زما مذهب دی هغه اخلئ او زما قول چې د هغې مخالف وو نو په ديوال يې گوزار کړئ.

(لمعات ج ۲ ص ۲٦۸) (الكاشف ۲/۲۲۳، اشعة اللمعات ۳۲٦، مرقات ۲/۳۲۷).

ددې نه علاوه چې کومو صحابه کرامو رضي الله عنهم اجتهاد کړی چې د صلوة الوسطی نه د ماسپښين مونځ مراد دی د هغوي مستدل آثار د صحابو دی چې د مرفوع حديث په مقابله کې هيڅ څيز نه دی کيدی شي دغه صحابو ته د نبي عليه السلام مرفوع حديث نه وو رسيدلی ځکه يې اجتهاد کړی شوي اقوال خپل کړه.

**واقعه**: غزوه خندق ته غزوه احزاب هم ويلی شي دا غزوه په (سنـ۵هـ) کې رامخې ته شوې وه دې غزوه کې د مکې نه د ابوسفيان په مشرئ کې د ټولو قبائلو نه دولس زره مشرکين مدينې منورې ته د حملې د پاره راغلي وو د پيغمبر عليه الصلاة والسلام په حکم باندې خندقونه ويستلی شوې وو ځکه دې ته جنګ خندق ويلي شي او د عربو ټول قبائل دلې دلې شوې وو ځکه دا غزوه د غزوه احزاب په نوم باندې مشهوره وه ،د خندقونو سره نزدې د حفاظت سخت انتظام موجود وو ځکه يوه ورځ پيغمبر عليه الصلاة والسلام د ماسپښين مازيګر او ماسخوتن مونځ کولو وخت ملاؤ نه شو ،دې کې يې د مازيګر مونځ باندې خصوصي افسوس کړی وو او د کفارو د پاره يې بد دعا وکړه ،د خندق په موقع صحابه درې زره وو ، ۲۸ ورځې د محاصرې نه پس کافران تباه شول او وتښتيدل .(المرقات ۲/۳۲٦).

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَلَاةُ الْوُسْطَى |
| حضرت ابن مسعود او سمره بن جندب رضي الله عنهما راويان دي وايي چې نبي عليه السلام وفرمايل مينځنی مونځ |
| صَلَاةُ الْعَصْرِ » (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). (۱) |
| (يعني په قرآن کريم کې چې کوم صلوة الوسطی مذکور دی) هغه د مازيګر مونځ دی . |
| ﴿۱۱﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه نقل کوي نبي عليه السلام د الله تعالی د دې قول :يعني د سحر مونځ |
| كَانَ مَشْهُودًا ﴾ قَالَ: « تَشْهَدُهُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَ مَلَائِكَةُ النَّهَارِ » (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). (۲) |
| د فرښتو د حاضريدو وخت دی ،په تفسير کې وايي :جمع کيږي د سحر مونځ کې د ورځې او د شپې فرښتې . |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳٤۰، رقم الحديث : ۱۸۲

(۲) أخرجه مسند أحمد ٤۷٤/۲، وأخرجه الترمذي ۲۸۲/٥، رقم الحديث . ۳۱۳٥، وأخرجه ابن ماجه ۱/۲۲۰ رقم الحديث:۲۷۰

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۲﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ وَ عَائِشَةَ قَالَا : اَلصَّلَاةُ الْوُسْطٰى

حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې صلوة وسطى (يعني مينځنى مونځ)

صَلَاةُ الظُّهْرِ [1]. (رَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ زَيْدٍ وَالتِّرْمِذِيُّ عَنْهُمَا تَعْلِيقًا).

د ماسپښين مونځ دى.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَلَمْ يَكُنْ

دزید بن ثابت رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې : نبي عليه السلام به د ماسپښين مونځ وختي کولو او نه به وو

يُصَلِّيْ صَلَاةً أَشَدَّ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنْهَا

يو مونځ چې کولو به يې په مونځونو کې سخت په اصحابو د نبي عليه السلام باندې په غير د ماسپښين مونځ نه نو

فَنَزَلَتْ : ﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَ الصَّلَاةِ الْوُسْطٰى ﴾

دا آيت نازل شو : تاسو د ټولو مونځونو او خصوصاً د مينځني مونځ حفاظت کوئ او زيد بن ثابت رضي الله عنه

وَ قَالَ إِنَّ قَبْلَهَا صَلَاتَيْنِ وَ بَعْدَهَا صَلَاتَيْنِ [2].

به فرمايل : د ماسپښين مونځ نه مخکې هم دوه مونځونه دي او ددې نه پس هم دوه مونځونه دي.

﴿۱۴﴾ وَ عَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنُ أَبِيْ طَالِبٍ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍ كَانَا يَقُوْلَانِ :

امام مالک رحمه الله وايي ماته دا خبره رارسيدلې ده چې حضرت علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه به ويل

الصَّلَاةُ الْوُسْطٰى صَلَاةُ الصُّبْحِ . عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ ابْنِ عمر تَعْلِيقًا) [3]

مينځني مونځ د سحر دى. او دا روايت امام ترمذي د ابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل کړى دى تعليقا

## د سحر مونځ کوونکي د ايمان علمبردار دى:

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « مَنْ غَدَا إِلَى

حضرت سلمان نه روایت دى وايي چې ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي چې فرمايل يې: څوک چې ځي د

---

(۱) أخرجه موطأ امام مالک ۱۳۹/۱ رقم الحديث: ۲۷ ،كتاب صلاة الجماعة ، و الترمذي عنهما تعليقا ۳۴۲/۱ رقم الحديث :۱۸۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲۸۸/۱ رقم الحديث ۴۱۱ ، وأخرجه أحمد في المسند ۱۸۳/۵.

(۳) أخرجه مالک في الموطأ بلاغا ۱۳۹/۱ رقم الحديث . ۲۸ من كتاب صلاة الجماعة وأخرجه الترمذي تعليقا في سننه ۳۴۲/۱.

| |
|---|
| صَلَاةِ الصُّبْحِ غَدَا بِرَايَةِ الْإِيمَانِ وَ مَنْ غَدَا إِلَى السُّوقِ |
| سحر مونځ د پاره ، ګویا د ایمان جنډه یې په لاس کې وي او روان وي او څوک چې سحر بازار ته روان وي |
| غَدَا بِرَايَةِ إِبْلِيسَ »[1]. |
| نو د شیطان جنډه یې په لاس کې وي او روان وي . |

**توضیح : برایة الایمان** : یعني کوم کس د سحر مونځ د پاره کور نه وځي ګویا د ایمان جنډه یې اوچته کړې او وځي او څوک چې د سحر مونځ نه بغیر بازار ته روان شي چې تجارت وکړي نو د شیطان جنډه یې اوچته کړې ده او وځي . ( المرقات ۲/۳۳۰، اشعة اللمعات ۳۳۸).

علامه طیبي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې په دې حدیث کې د رحمان د لښکر او د شیطان د لښکر تمثیل ذکر کړی .

**تمثیل: تشبیه الهیئة المرکبة بالهیئة المرکبة** نوم دی یعني یو طرف ته ډیر څیزونو مجموعه ده د دې نه یو هیئت او نتیجه مخې ته راځي دغه رنګ دویم طرف ته ډیر څیزونه دي د هغې هم نتیجه ده د دې دواړو نتیجو یو بل سره تشبیه نوم تمثیل دی .( الکاشف ۲/۳۲۶).

مثلاً د شاعر په دې شعر کې د تمثیل نقشه واضحه ده :

**کان مثار النقع فوق رؤسنا ❁ واسیافنا لیل تهاوی کواکبه**

یعني یو طرف ته د جنګ دوره ده د دې نه تیاره خوره شوې وي په دې کې توري پرقیږي او نیزې حرکت کوي او دویم طرف ته د شپې تیاره ده په دې کې ستوري پرقیږي او ستورې تکړې تکړې شوې پرقیږي د دواړو صورتونو په مینځ کې د تشبیه نوم تمثیل دی .

په موجوده حدیث کې دا کیفیت دی چې یو کس د سحر مونځ له ځي ګویا چې جنډه یې اوچته کړې وي داسې وي چې د لښکر سره د دښمن مقابلې د پاره داسې ځي څنګه چې مجاهدین د دښمن مقابلې د پاره وځي او د اسلام په غلبه کې اضافه کوي دوهم طرف ته کوم خلک چې د مونځ نه بغیر غفلت سره بازار ته مخ کړي ګویا د شیطان جنډه یې اوچته کړې وي خپلو ملګرو سره بازار ته ځي او د شیطان غلبه کې زیاتوالی کوي .

یاد ساتئ ! څوک چې د سحر مونځ وکړي او بازار ته ځي او حلال رزق ګټي هغه د دې وعید نه بچ دی ځکه چې دا د یو جائز کار د پاره وځي .



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۵۱ ، رقم الحديث : ۲۲۳٤.

۱۵ ربیع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْأَذَان:

## د اذان بیان:

قال الله تعالی: ﴿وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ﴾(التوبة:۲)
و قال الله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾.(الجمعة: ۱۰).

**د آذان شروع څنګه وشوه ؟** مکه مکرمه کې د پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ معراج وشو د معراج په شپه کې مسلمانانو باندې مونځونه فرض شول چونکې مکه مکرمه کې په ښکاره د اسلام په ټولو احکاماتو عمل نه کیدو نو ځکه د مونځ د پاره د آذان اهتمام ونه کړی شو او دا ورځ د مکې آخري ورځې وې او د مدینې منورې طرف ته د تللو د وجې د آذان اهتمام نه شو کیدی چې کله پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مدینې منورې ته هجرت وکړو د هجرت په اولنې کال پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ سره مشوره وکړه مونځ ته د راجمع کیدو د پاره څه انتظام په کار دی مختلف طریقې او رایې مخې ته راغلې .د بعضې صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ رایه دا وه چې کله د مونځ وخت شي نو جنډه به او چته کړی شي نو خلک چې جنډه وینې نو جوماټ ته به راځي خو دا رایه محبوبه نه شوه چې هر کس پورې جنډه ورسې دا مشکل کار وو ، ځینې صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ مشوره ورکړه چې د مونځ په وخت کې به اور لګي پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دا خبره رد کړه چې دا خو د مجوسیانو سره ملګرتیا ده ، ځینې د ډول او ښکر وهلو مشوره ورکړه دا خبره یې هم ورته رد کړه دا خو د یهودیانو سره مشابهت دی ، ځینې صحابو د جرس او ټلې وهلو مشوره ورکړه دا یې هم رد کړه چې دا هم د نصارا او د عبادت نښه ده ،آخر دا چې مجلس ختم شو او فیصله ونه شوه ، وختي طور باندې دا فیصله وشوه چې خلک به د مونځ د پاره په دې رابلو چې الصلاة جامعة نو خلک به مونځ ته راځي ، ویلې کیږي چې دا مشوره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورکړې وه ، یاد ساتئ د هجرت نه پس په اولنې هجري کال کې مسجد نبوي جوړ شو او په اولنې هجري کال کې د آذان مشروعیت وشو آذان اګر چې د یو لوي عبادت د پاره اعلان دی مګر آذان په خپله هم د اسلام یوه نښه ده .په دې کې هم د اسلام اهم څیزونه جمع کړی شوي دي د الله تعالی لوی والی او عظمت ذکر شوی دی او د توحید لوي درس په کې موجود دی ، د کامیابۍ او د فلاح دعوت پکې پروت دی او د آخرت د پاره پوره تیاری پکې پروت دی په آذان کې د روح پوره خیال ساتلی کیږي صرف په رسم آذان باندې څه حاصلیږي .

**الغرض!** پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره يو مخلص صحابي وو د هغه نوم عبد الله بن زيد بن عبد ربه وو ده ته ډير درد وو چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د خلکو د راجمع کولو باره کې ډير فکرمند دی، ډير پريشانه او غم ورته وو چې دغه غم څنګه د پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه ختم کړو په دغه فکر کې هغه اوده شو په خوب کې يې يو نيک سيرته انسان وليدو چې ناقوس يې اوچت کړی وو د دغه صحابي بيان دی چې ما دغه کس ته وويله ای د خدای بنده! ته دا ناقوس خرڅوي؟ هغه جواب ورکړو ته دا د څه د پاره اخلې، ما ورته وويل دا به مونږ وهلو د پاره اخلو چې خلک مونځ له پرې راغونډ کړو نو هغه ورته وويل چې ددې نه بهتر څيز درته وښائم؟ ما غرض وکړو ضرور ولې نه، هغه راته وويل داسې ووايه دا يې وويل قبلې ته يې مخ کړو غوږونو کې يې ګوتې ورکړې او مکمل آذان يې وکړو، د صحابي بيان دی زه سحر وختې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خوا ته راغلم ټوله قصه مې ورته بيان کړه پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: ان شاء الله دا خوب رښتيا دی ته دا کلمات حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وښايه د هغه آواز تيز دی هغه به ددې کلماتو په ذريعې سره آذان ورکوي، کله چې حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ آذان وکړو نو عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل لنګ راخکلو او پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته حاضر شو او وي ويل: ای د الله رسوله! په الله قسم دا خوب خو ما هم ليدلې وو دا کلمې دي، حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الحمد لله يعنې د الله تعالى شکر يې ادا کړو.

بعضې رواياتو کې دي چې حضرت عبد الله بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما چې کله خوب وليدو په هغه وخت کې زه نه ډير اوده وم او نه ډير بيدار وم بلکې هسې د بيهوشۍ حالت وو، يو روايت کې فرمايي: که د خلکو بدګماني نه وی نو ما به ښکاره ويلی وی چې زه بيدار وم په دغه وخت کې. ددې بيان نه دا خبره واضحه شوه چې آذان په مدينه منوره کې مشروع شوی دی کوم حضرات چې د مکې مکرمې قائل دي يا خو معراج کې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ آذان اوريدلی دی يا جبرائيل امين چې کوم وخت حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دنيا وي آسمان ته بوتلو يوې فرښتې د الله تعالى په مخکې وويل: **الله اکبر الله اکبر** د پردې نه شاته آواز راغي **انا الله اکبر انا الله اکبر**، ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي دا ټول روايات صحيح نه دي او نه دا خبره ثابت ده چې په مدينه کې لس يا يولس يا څوارلس صحابو دا خوب ليدلی دی.

**سوال**: دلته سوال دا دی چې د آذان شرعي حيثيت څنګه وګرځيدو دا خو د يو صحابي خوب وو دا خو شرعي دليل نه جوړيږي؟

**جواب**: چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: **انها لرؤيا حق ان شاء الله**، ددې جملې نه د آذان شرعي حيثيت معلوم شو ګويا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ددې خوب نه پس د وحي په ذريعې سره د آذان حکم ورکړی شوی وي، مصنف عبد الرزاق کې هم دي او په مراسيل د ابو داؤد کې هم دا روايت موجود دی چې حضرت عمر

رضي الله عنه چې کله آذان واوریدو نو فوراً د نبي عليه السلام خوا ته راغلی او وایي ما خو هم داسې خوب لیدلی دی نو نبي عليه السلام وفرمایل : سبقک بذلک الوحي . دې روایت نه معلومه شوه چې دآذان مشروعیت صرف دصحابي په خوب نه دی بلکې نبي عليه السلام باندې وحي هم نازله شوې ده.

**دآذان لغوي او اصطلاحي تعریف** :آذان په لغت کې په معنی داعلام او اعلان سره دی یعنې خبرورکول. آذان د باب **تفعیل** مصدر دی د **فعال** په وزن راغلی دی او باب **تفعیل** نه داسې مصدر راځي لکه **تکذیبا و کذابا . تسلیما و سلاماً.** او په اصطلاح کې : **هواعلام بدخول وقت الصلاة بذکر مخصوص في وقت مخصوص**، یعنې په مخصوص وختونو کې یو څو مخصوصو الفاظو سره د مونځ په وخت کې د راتلو خبر ته آذان ویلی شي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل :

## دآذان کلمات او دویلو طریقه :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ | أَنَسٍ | قَالَ : | ذَكَرُوا | النَّارَ | وَ | النَّاقُوسَ |

د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی فرمایي چې: صحابه کرامو د اور او ناقوس ذکر کړی وو ( د آذان د

| | | |
|---|---|---|
| فَذَكَرُوا | الْيَهُودَ | وَ النَّصَارَى |

مشروعیت نه مخکې د مونځ د وخت اعلان کولو په سلسله کې ) بعضې د یهودیانو او د نصاراو ذکر

| | | |
|---|---|---|
| فَأُمِرَ | بِلَالٌ | أَنْ |

وکړ ( چې ددوئ مشابهت به اختیار کړی شي ) بیا نبي عليه السلام حضرت بلال رضي الله عنه ته حکم وکړو چې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَشْفَعَ | الْأَذَانَ | وَ | أَنْ | يُوتِرَ | الْإِقَامَةَ . | قَالَ | إِسْمَاعِيلُ : |

د آذان کلمات جفت وایه او وتر وایه د اقامت کلمات ، وایي شیخ اسماعیل رحمه الله ( چې ددې حدیث

| | |
|---|---|
| فَذَكَرْتُهُ | لِأَيُّوبَ. |

راوي او د بخاري او مسلم استاذ دی) ما ددې حدیث ذکر ایوب ته ( چې ددې دویم راوي دی ) وکړو نو

فَقَالَ : إِلَّا الْإِقَامَةَ . (متفق عليه) [1].

هغوي وويل چې : لفظ د قد قامت الصلاة دوه ځلې ووايه (يعنې تکبير په اول او آخر کې الله اکبر نه علاوه باقي کلمات يو يو ځلې او لفظ قد قامت الصلاة دوه ځلې).

**توضيح** : ان يشفع للاذان يعنې د آذان کلمات جفت وايي يعنې دوه دوه کلمې يو ځای کوی او وايي او اقامت کلمې طاق وايي يعنې يو يو کلمه ځان ځان له وايي په دې کې د فقهاو اختلاف دی .(المرقات ۲/۲۳۲، الکاشف ۲/۲۲۸، اشعة اللمعات ۳۲۹).

**د فقهاء کرامو اختلاف** : د کلماتو په تعداد کې او د غه رنګ په ادا کولو او د ويلو په اعتبار سره آذان په څلور قسمه دی :اول مکي آذان دی دويم مدني آذان دی دريم کوفي دی آذان څلورم بصري آذان دی .مکي آذان چې مکي خلکو خپل کړی وو او مکې کې به يې کولو ( د اهل مکې آذان شوافعو اختتی دی ددې آذان(۱۹) نولس کلمې دي په دې کې څلور ځله اشهد ان لا اله الا الله دی څلور ځله اشهد ان محمد رسول الله دی په دې کې اته ځله شهادتين دي همدارنګې په دې کې څلور ځله الله اکبر الله اکبر دی او څلور ځله حي على الصلاة او حي على الفلاح دا ټول شپاړس کلمات شو او دوه ځله آخر کې الله اکبر او په آخر کې لا اله الا الله دی دا ټول نولس کلمات شو .دويم آذان د اهل مدينه دی دا حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ خپل کړې ذی ، ددې کلمات اولس دي ، د يو قول مطابق اولس(۱۷) او د دويم قول مطابق ديارلس(۱۳) کلمات دی اولس(۱۷) کلمات داسې دی په شروع کې دوه ځله الله اکبر او بيا اته ځله شهادتين دي او څلور ځله حيعلتين دي او بيا دوه تکبيره دي او بيا لا اله الا الله دی او دويم قول مطابق ديارلس کلمات داسې دي چې الله اکبر دوه ځله شهادتين څلور ځله حيعلتين څلور ځله آخر کې دوه ځله الله اکبر او بيا لا اله الا الله دی .د بصرينو آذان هغه دی کوم چې د اهل بصرې والا دی او دې کې نولس کلمات دي خو د ويلو طريقه د شوافعو نه بدله ده هغه دا چې څلور ځله تکبيرات او شپږ ځله شهادتين او شپږ ځله حيعلتين دي ، بيا دوه ځله الله اکبر او بيا لا اله الا الله دی : د اهل کوفه آذان امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ اختلی دی او سفيان ثوري رَحِمَهُ اللَّهُ اختتی دی دا آذان په پنځلس کلمو باندې مشتمل

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۷۷،رقم الحديث ۶۰۳، ومسلم في الصحيح ۱/۲۸۶ رقم الحديث:۳-۳۷۸، وأبو داود ۱/۳۴۹ رقم الحديث :۵۰۸، والنسائي ۲/۳، رقم الحديث.۶۲۷ ، والترمذي ۱/۳۶۹ رقم الحديث .۱۹۳

دی څلور ځله تکبیرات دي څلور ځله شهادتین دي څلور ځله حیعلتین دي آخر کې دوه ځله تکبیر او بیا لا اله الا الله دی. (اشعة اللمعات ۳۲۹، الکاشف ۲/۲۲۸).
د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله په نزد دا ټولې طریقې او اقسام د پیغمبر عَلَیهِ الصَّلاةُ وَالسَّلَام نه ثابت دي دا اختلاف مباح دی چا چې کوم آذان وکړو جائز دي د محل او موقع په اعتبار سره په هر یو باندې عمل کول جائز دی. بهر حال د آذان په کلماتو او طریقو کې د فقهاو اختلاف د اولی او غیر اولی دی د جواز او عدم جواز اختلاف نه دی.
**دلائل**: شوافع حضرات د مشکوة ص ۶۳ کې فصل اول کې دویم حدیث نه استدلال کړی دی چې د حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنهُ تفصیلي روایت دی، دغه رنګ شوافعو د مشکوة باب الاذان کې فصل ثاني کې دویم او دریم حدیث نه هم استدلال کړی دی او دواړه احادیث د ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه مروي دي، دا دري واړه احادیث د مشکوة اردو شرح توضیحات کې باب الاذان کې حدیث نمبر ۵،۴،۳،۲، په حوالې سره درج دي، د شوافعو په نزد آذان کې چې د ترجیع کولو کومه مسئله ده هغه هم دلته ده چې شهادتین څلور ځلې وویلی شي یو ځلې په زوره او یو ځل په مزه باندې دې ته ترجیع ویلې شي عام شارحین چې کله د فقهاو اختلاف نقل کوي نو هغوي دا وایي چې شوافع د **ترجیع في الآذان** قائل دي ددې مطلب هم دا شو چې ددوي په نزد د آذان کلمات نولس دی. د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل د اهل مدینې عمل دی بعضې روایات داسې دي چې په دې کې دوه ځله تکبیرات ذکر دي **ان یشفع الاذان** او آذان مثنی مثنی نه هم مالکیه یو حد پورې استدلال کوي. د احنافو دلیل په مشکوة شریف ص ۶۴ باندې د فصل دویم حدیث دی چې عبد الله ابن زید بن عبدربه روایت دی چې توضیحات کې په ترتیب لسم نمبر (۱۰) حدیث دی، ددې روایاتو واضح الفاظو سره د آذان ذکر او ددې ابتدا هم ذکر ده او د پنځلس کلماتو وضاحت هم بیان کړی دی او حدیث د آذان د پاره اصل او بنیاد دی.
د احنافو دویم دلیل د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ د زندګۍ هغه آذانین دي چې د پیغمبر عَلَیهِ الصَّلاةُ وَالسَّلَام په حکم باندې او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم په موجودګۍ کې کړي دي په مدینه منوره کې، دې کې د ترجیع نوم او نښه نشته دغه د حضرت عبد الله ابن مکتوم آذانونه دي دې کې هم ترجیع نشته دی دغه رنګ د زیاد بن حارث صدائي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په آذان کې هم ترجیع نشته دی حالانکه دریو واړو د نبي عَلَیهِ السَّلَام په موجودګۍ کې آذان کولو. احنافو په عدم ترجیع باندې د ټولو روایاتو نه استدلال کړی دی په هغې کې الاذان مثنی مثنی الفاظ راغلي دي ظاهر دی چې کله دوه دوه کلمې وي نو د څلورو څلورو نفي وشوه دا یو جزئي دلیل دی دا د مدعا یو جزء ثابتوي.
**جواب**: ائمه احناف د شوافعو د دلیل د ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنهُ د روایت نه جواب کوي چې ده ته د ترجیع

شهادتین حکم ورکړی شوې وو دا په اصل کې د تعلیم په طور وو د آذان کولو هیڅ ضابطه او طریقه نه وه اصل واقعه داسې راغله چې پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د طائف نه واپس راتلو په لاره کې د مونځ وخت شو چې کله چې آذان کیدو نو د علاقې ماشومانو هم نقل شروع کړو آذان یې کولو په دې ماشومانو کې ابومحذوره لړلوي وو پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دده د نیولو او ځان ته د حاضریدو حکم وکړو چې کله ابومحذوره راوستی شو پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ورته وفرمایل: آذان وکړه په دغه وخت کې مسلمان لا نه وو، حالانکه مشرکانو به هم الله تعالی لوي ګڼلو ځکه یې په الله اکبر کې هیڅ نه محسوسولو خو چې کله شهادتین ته ورسیدو نو په مزه مزه یې ولوستلو په خپله فرمایي چې کله ما په زوره ولوستلو نو اسلام زما په زړه کې دننه شو پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دده په سر باندې لاس کینبودو او لاړو حضرت ابومحذوره پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وویل ما د مکې مؤذن جوړ کړه پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دا د مکې مؤذن مقرر کړو نو دغه شان آذان یې وکړو چې څنګه ورته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طریقه د تعلیم ښودلی وو دا ضابطه نه وه بلکې د پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د ابومحذوره سره مینه او محبت وو ددې وجې نه دا یو خصوصیت د ابومحذوره وو ددې وجې نه دده د خپل سر وینبته نه خرولې وواونه یې واړه کړې ووځکه چې په دې باندې د پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لاس مبارک لګیدلی وو دغه رنګ معامله د آذان سره هم وکړه.

احناف وایي: سنتیت د آذان **ترجیع في الاذان** باندې موقوف نه دی که څوک یې کوي نو منع نه دی او که څوک یې نه کوي نو سنت پرېښودونکي نه دی، مخکې د ابومحذوره قصه نقل شوه دا طحاوي او قدامه لړ په تفسیر سره ذکر کړې ده باقي امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د دوو تکبیراتو والا حدیث نه استدلال کړی دی نو ابوداؤد د **قال ابوداؤد** ویلو سره په دې باندې تبصره کړې ده چې د زهري څومره شاګردان دی ټولو د ابن عبدربه په روایت کې د زهري څلور تکبیراتو والا روایت نقل کړی دی صرف معمر دوه تکبیراتو والا ذکر کړی دی کلام ختم شو.

خلاصه دا شوه چې د معمر روایت د ثقاتو خلاف دی ځکه هغه ضعیف دی چې قابل قبول نه دی.

**مونځ د پاره اقامت او د هغې کلمات**: **وان یوتر الاقامة**، اقامت اذان الحاضرین دی دومره آواز کول دي چې جوماتې کې دننه خلک صرف اوري او په جمعه کې شریک شي دغه رنګ د اقامت په کلماتو کې هم د فقهاو اختلاف دی د تعداد په اعتبار سره.

**د فقهاو اختلاف**: د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا اللهُ په نزد د اقامت په کلماتو کې ایتار دی یعنې دا کلمات جفت نه دي بلکې طاق دي یعنې **الله اکبر الله اکبر اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان محمد رسول الله، حي على الصلاة، حي على الفلاح، قد قامت الصلاة، قد قامت الصلاة، الله اکبر الله اکبر**

**لا اله الا الله**، دا ټول یولس کلمات شو. (المرقات ۲/۳۳۲).

د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد **قد قامت الصلاة** هم یو ځل دی نو ټول لس کلمې شوې، د جمهورو په مقابله کې احناف فرمایي په اقامت او آذان کې فرق نشته دی د دواړو پنځلس کلمات دي خو په اقامت کې **قد قامت الصلاة** دوه ځله اضافي دي نو د اقامت کلمات اولس شو د احنافو په نزد، د اقامت په مسئله کې جمهور یو طرف ته دي او احناف بل طرف ته دي.

**دلائل**: جمهور د اقامت په ایتار او طاق کیدو باندې د هغه احادیثو د الفاظو نه استدلال کړی چې په هغې کې **ان یوتر الاقامة** الفاظ راغلي او موجوده حدیث کې دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا الفاظ موجود دي. (المرقات ۲/۳۳۲).

**دائمه احناف دلیل**: حضرت عبدالله بن زید انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د آذان روایت دی په هغې کې وکذا الاقامة الفاظ راغلي دي په مشکوة ص ۶۴ باندې موجود دی یعنې آذان په شان د اقامت هم دی او قد قامت الصلاة دوه ځله په اقامت کې مسلم دی د اقامت ټول اولس کلمات د حدیث نه ثابت شو.

د احنافو دویم دلیل د حضرت ابومحذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی د مشکوة په ص ٦۳ باندې موجود دی په دې کې دا الفاظ دي والاقامة سبع عشرة کلمة دا نهایت صریح دلیل دی، څلورم دلیل د سلمه بن اکوع روایت دی پنځم دلیل د حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی، شپږم دلیل د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی، د دې حضراتو ټولو روایاتونو کې دا الفاظ موجود دي: **الاذان مثنی مثنی والاقامة مثنی مثنی** طرز استدلال داسې دی چې کله اقامت دوه دوه ځله دی نو ایتار چرته شو؟.

**جواب**: احناف د جمهورو دلیل **یوتر الاقامة** نه یو جواب دا ورکړو که د دې جملې مطلب دا وي کوم چې جمهورو اخستی دی نو دا د بیان جواز د پاره دی په اقامت کې ایتار هم جائز دی کله کله داسې هم شوې دی. **دویم جواب** دا دی د اقامت د کولو طریقه یې ښودلې ده چې په آذان کولو کې ترسل او تمهل دی په مزه مزه وایي او په ... باندې **ان یشفع الاذان** الفاظ دلالت کوي او په اقامت کې حدر دی چې په جلتی جلتی یوه کلمه په یوه ... ویل په دې باندې **ان یوتر الاقامة** الفاظ دلالت کوي که د ویلو طریقه او انداز ښودل مراد نه دی یا خو شفع جفت ته ویلې شي یعنې دوه دوه کلمې وي حالانکه جمهور د څلورو کلمو د ویلو قائل دي چې تکبیرات څلور وي او شهادتین څلور څلور ځلې وي نو شفعه باندې څنګه عمل راغی او که د **ان یشفع الاذان** نه پوره آذان شفعه مراد شي نو آیا دوباره آذان به کولی شي چې شفعه متحقق شي؟ معلومه شوه چې ایتار الالفاظ مراد نه دي بلکې ایتار صوت مراد دی او که ان یوتر

الاقامة کې ایتار معنی که یو یو ځلې ویل وي نو بیا داسې ویل په کار دی حالانکه جمهور د قد قامت الصلاة دوه ځلې او اول او په آخر کې تکبیر هم دوه ځلې ویلو باندې فتوی ورکوي که په ایثار باندې عمل وي نو بیا کلمات یو یو ځل ادا کول په کار دي چې بیا په اته کلماتو باندې عمل وشي اصل حقیقت دادی چې په دې حدیث کې د آذان او اقامت کیفیت ذکر دی د جفت او طاق خبره نشته دی بلکې د کلماتو د ادا کولو کیفیت ښودل شوی دی **تَرَسُّلُ وَ تَحَدُّرُ** خبره بیان شوې ده چې په دې باندې **ان یشفع الاذان** او **ان یوتر الاقامة** دلالت کوي او په راتلونکي حدیث د حضرت جابر رضی الله عنه حدیث نمبر ۷ کې واضح طور باندې پیغمبر علیه الصلاة والسلام حضرت بلال رضی الله عنه ته د ترسل او تحدر حکم کړې چې ددې توجیه تائید دی .شیخ عبد الحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې ددې حدیث په وضاحت کې لیکلي دي چې دبنو امیه د بعضې حکمرانانو په نزد مخکې زمانه کې د اقامت او د آذان الفاظ یو شان لوستلی کیدل په دواړو کې هیڅ فرق نه وو لیکن د بنو امیه بعضې حکمرانانو په اقامت کې فرق وکړو چې کله مونځ د پاره بهر راووتل دوي ته به د مونځ جلتي وه ځکه دوي د اقامت کلمات یو یو کړل او ځان له یې جوړ کړل دغه رنګ دا سلسله چلیده .توجیه شیخ دهلوي رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکلي ده لیکن دا د پوهیدو نه ډیره لرې خبره ده ، **والله اعلم** ( اشعة اللمعات ۳۲۹).

**د ناقوس تحقیق** : **الناقوس** په احادیثو کې د ناقوس لفظ ذکر دی ددې د مسترد کیدو وجه دا ذکر شوې ده چې دا د نصارا و د عبادت نښه ده ناقوس د دوو لرګو د مجموعې نوم دی په دې کې یو لرګی اوږد وي او یو وړوکی وي وړوکی لرګی په غټ لرګي باندې ووهلی شي نو آواز پیدا کوي د عیسایانو په ګرجو کې نن سبا دا ځیزونه وي کوم ته چې تلئ ویل کیږي نن سبا عیسائیان د لرګو په ځای د جدید اشیاو استعمال کوي .(المرقات ۲/۳۳۱).

**النار** دې حدیث کې د اور ذکر راغلی دی دا یې ځکه مسترد کړو چې دا د مجوسیانو نښه ده .

**سوال** : دلته حدیث کې اور او ناقوس ذکر دی بیا د نصارا و ذکر وو ددې نه معلومه شوه چې اور بلول د یهودو د عبادت مضبوطه نښه ده حالانکه دا د مجوسیانو نښه ده د یهودو نه ده.

**جواب** : ددې جواب عامو شارحینو ورکړی دی کیدی شي د بعضو یهودو په نزد د اور رڼا کول د عبادت نښه وه او د اکثرو په نزد ښکر او بوق یعنې بغل وهل علامت او نښه ده .

ددې اعتراض صاحب د تعلیق الفصیح دا ورکړی چې په حقیقت کې ددې حدیث بیانولو کې راویانو د اختصار نه کار اخستی دی ددې په مفهوم کې مشکل والی پیدا کړی دی په تفصیلي روایاتو کې د اور ناقوس او د بوق ذکر دی بیا د مجوسو او نصارا او د یهودو ذکر دی ، دې ترتیب کې لف ونشر مرتب دی لیکن بعضې راویانو په دې کې اختصار کړی دی او بوق یې نه دی ذکر کړی دوي ته په کار وو چې د

بوق ذکر یې نه کولو نو بیا به یې یهود هم نه ذکر کولی او د اور سره به یې مجوس ذکر کولی خو داسې ونه شوه نومفهوم کې خلل راغی داسې معلومه شوه چې اور د یهودیانو د عبادت قومي نښه ده حالانکه داسې نه ده. عمدة القاري کې علامه عیني رَحِمَهُ اللهُ وایي عبدالوارث په دې حدیث کې دا اختصار کړی علامه عیني رَحِمَهُ اللهُ وایي دروح په روایت کې ابو الشیخ تفصیلي حدیث داسې نقل کړې دی: **فقالوا لو اتخذنا ناقوسا فقال النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذلک للنصاری فقالوا لو اتخذنا بوقا فقال ذلک للیهود فقالوا لو رفعنا نارا فقال ذاک للمجوس (التعلیق الفصیح ص ۹۷)**(المرقات ۲/۳۳۱).

**بوق، القرن** او **الشبور** دا دري واړه الفاظ د یو څیز د پاره ویلی کیږي دا د شپیلی په شان یو آله ده، دې کې پوک وهلو سره یو تیز آواز پیدا کیږي منجد کې د دې تصویر د مائکروفون په شان جوړ دی د دې ترجمه: بگل، نرسنگا او سنگ سره کولی شي. **الا الاقامة**: یعني **قد قامت الصلاة** دوه ځلې ویل کیږي ځینې روایاتو کې استثناء نشته په دې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ عمل کړی دی د هغه په نزد **قد قامت الصلاة** یو ځای ویلي کیږي نو بیا د هغې په نزد د اقامت کلمات لس دي. د مختلفو احادیثو نه معلومیږي چې د اقامت او آذان په کلماتو کې کافي فرق دی د دې وجې نه دا امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد د موقع او محل په اعتبار سره ټولې طریقې خپلول مباح دی. دا فیصله ډیره ښه ده د دې وجې نه چې په ټولو احادیثو باندې عمل راشي نن سبا په حرم شریف کې آذان د احنافو په مسلک باندې کیږي او اقامت د شوافعو او د جمهورو په مسلک باندې کیږي. باقي دا مسئله زیر بحث راوړې ده چې د آذان شرعي حیثیت څه دی؟

**د آذان شرعي حیثیت**: د جمهورو فقهاو راجح مسلک دا دی چې پنځه مونځونو د پاره آذان سنت دی، دا احنافو دا کثرو فقهاو دا فتوی ده خو بعضې احناف آذان ته واجب وایي چې پنځه وخته مونځونو د پاره آذان کول واجب دي، دا حضرات دا امام محمد رَحِمَهُ اللهُ د یوې فتوی نه استدلال کړی امام محمد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کوم خلک یا قوم آذان ونه کړي نو د وخت حکومت باندې لازم دي چې د غه خلکو سره جنګ وکړي د دې وجې نه بعضې حضرات د آذان د وجوب قائل دي ځکه یې خو د دې په نه کولو باندې د جهاد او جنګ حکم کړی دی لیکن د دې حضراتو دلیل تام نه دی ځکه چې آذان سنت کیدو سره سره د اسلام نښه هم ده او د اسلام د شعائرو نه دی او د حکومت ذمه داري ده چې د شعائر اسلام حفاظت وکړي دا جنګ د شعائر اسلام د حفاظت په بنیاد باندې دی د آذان د وجوب په بنیاد باندې نه دی.

## د آذان د کلماتو حکمت او مقصد:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ قَالَ: أَلْقَى عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّأْذِينَ هُوَ بِنَفْسِهِ |
| د ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپله ما ته (بغیر د واسطې نه) آذان خودلی |

| |
|---|
| فَقَالَ : " قُلِ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ |
| دی ، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل : وایه الله ډیر لوی دی، الله ډیر لوی دی . الله ډیر لوي دی ، الله ډیر لوی دی ، |
| أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ |
| زه ګواهي ورکوم چې د الله تعالی نه غیر بل د عبادت لائق نشته زه ګواهي ورکوم چې د الله تعالی نه غیر |
| إِلَّا اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا |
| بل څوک د عبادت لائق نشته ، زه ګواهي ورکوم چې محمد د الله رسول دی زه ګواهي ورکوم چې محمد |
| رَسُولُ اللّٰهِ . ثُمَّ تَعُودُ فَتَقُولَ : أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ |
| د الله رسول دی ، بیا یې وفرمایل : چې وایه زه ګواهي ورکوم چې د الله نه غیر بل معبود نشته دی ، زه |
| أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ |
| ګواهي ورکوم چې د الله تعالی نه غیر بل معبود نشته دی، زه ګواهي ورکوم چې محمد د الله رسول دی زه |
| أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ. حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ |
| ګواهي ورکوم چې محمد د الله رسول دی ، راځئ مونځ طرف ته راځئ مونځ طرف ته راځئ کامیابی طرف |
| حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ" (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).[1] |
| ته ، راځئ کامیابي طرف ته الله ډیر لوی دی الله ډیر لوی دی د الله نه سوا بل معبود نشته دی . |

**توضیح** : اکبر د اسم تفضیل صیغه نه ده بلکې د صفت مشبه صیغه ده ددې ترجمه داده چې الله تعالی ډیر لوي دی که اسم تفضیل شي نو معنی به یې دا شي چې الله تعالی د ټولو نه لوي دی دې کې دا نقصان دی چې د الله د توحید په موقع باندې نور هم لوي تسلیم کړی شوي دي چې د وحدانیت منافي دی څلور ځلې الله اکبر ویلو سره دا اشاره مقصود ده چې د الله تعالی عظمت او لوی والی څلور طرفه عالم کې جاري او ساري دی .(المرقات ۲۳۲-۲/۲۳۳).

**حي علی الفلاح** : د دین او دنیا د کامیابي او د هر مصیبت نه د حفاظت نوم فلاح دی ، دې کې ټولې نیکۍ راغلې او بدیو نه د بچ کیدو ضمانت راغلی دا مسنونه او منقوله جمله ده چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۲۸۷/۱ رقم الحديث:٦-۳۷۹، وأبو داود ۳۴۳/۱ رقم الحديث :۵۰۳، والنسائي ۵/۲، رقم الحديث: ۶۳۲ ، وابن ماجة ۲۳۴/۱، رقم الحديث: ۷۰۸

امت ته ذکر کړې ده او د فرېښتو تعلیم سره ملاؤ ده دا جمله يې شيعه او روافض نه مني هغوي ددې په ځاى حي على خير العمل په آذان کې وايي حالانکه دا دروغ دي او بدعت دي.

د روافضو آذان دا هل حق نه ډير خلاف دی په دې کې د ګمراهى او د منافقت او په امت کې د جدا والي پیدا کیدو د پاره نور اعلانات دی، د حضرت ابو محذوره رضي الله عنه په دې روايت کې ترجيع في الاذان ذکر ده چې شوافعو او مالکيو اختيار کړی دی. د ترجيع مطلب دا دی چې شهادتين يو ځلې په مزه ويلي شي بيا دوباره په تيز آواز وويلي شي او پيغمبر عليه الصلاة والسلام ابو محذوره رضي الله عنه ته د دوباره ويلو حکم بطور تعليم وو تاسو دا شرعي وګڼلو او د عمر ټوله موده مو په دې عمل وکړو بهر حال دا حديث د شوافعو دليل دی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ الْأَذَانُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ |
| د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی، وايي چې: د نبي عليه السلام په زمانه کې د آذان کلمات دوه دوه |
| وَ الْإِقَامَةُ مَرَّةً مَرَّةً غَيْرَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ.(۱) |
| ځلې او تکبير کلمات يو يو ځلې ويل کيدلی البته (تکبير کې) قد قامت الصلاة مؤذن دوه ځلې ويله. |
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَهُ الْأَذَانَ تِسْعَ عَشْرَةَ |
| د حضرت ابو محذوره رضي الله عنه نه روايت دی چې: پيغمبر عليه الصلاة والسلام ده ته ښودلي وو، د آذان نولس |
| كَلِمَةً وَ الْإِقَامَةَ سَبْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً.(۲) |
| (۱۹) کلمات او د اقامت يې ورته اولس (۱۷) کلمات ښودلي وو. |

**توضيح: سبع عشرة كلمة** يعنې د اقامت کلمات (۱۷) دي دا حديث په واضح طور باندې د احنافو دليل دی، د احنافو په نزد دا روايت د نورو رواياتو د پاره ناسخ دی چې په کومو کې د اقامت يولس (۱۱) کلمات ذکر دي، دې روايت نه د شوافعو د مسلک مطابق د آذان نولس (۱۹) کلمات ثابتيږي د احنافو په نزد **شهادتين** کې تکرار په تعليم باندې محمول دی د ترجيع د پاره نه دی. (المرقات ۲/۱۲۳).

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۵۰ رقم الحديث ۵۱۰.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۳/۴۰۹، وأخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۴۲ رقم الحديث ۵۰۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۶۷، رقم الحديث: ۱۹۲.

﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ عَلِّمْنِي سُنَّةَ الْأَذَانِ
حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته غرض وکړو يا رسول الله! ما ته د آذان طريقه وښايه
قَالَ : فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِهِ . قَالَ : " تَقُوْلُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ
راوي وايي :نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ابو محذوره په تندي باندې لاس راښکلو او بيا يې وفرمايل وايه : الله اکبر
اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ تَرْفَعُ بِهَا صَوْتَكَ ثُمَّ تَقُوْلُ : أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا
الله اکبر ،الله اکبر ،الله اکبر په دې سره آواز اوچت کړه بيا وايه : اشهد ان لا اله الا الله ، اشهد ان لا
إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ تَخْفِضُ بِهَا صَوْتَكَ ثُمَّ
اله الا الله ، اشهد ان محمدًا رسول الله ، اشهد ان محمدًا رسول الله دا په قلاره باندې ووايه بيا آواز
تَرْفَعُ صَوْتَكَ بِالشَّهَادَةِ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ
اوچت کړه په شهادة سره اشهد ان لا اله الا الله ، اشهد ان لا اله الا الله ، اشهد ان محمدا رسول الله
أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ فَإِنْ كَانَ
اشهد ان محمدًا رسول الله حي على الصلاة ، حي على الصلاة ، حي على الفلاح ، حي على الفلاح ، که چيرته
صَلَاةُ الصُّبْحِ قُلْتَ : اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ
د سحر د پاره آذان وي نو ددې نه پس دا کلمات وايه : الصلاة خير من النوم ، الصلاة خير من النوم
اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ".[1]
(يعني مونځ د خوب نه بهتر دی) الله اکبر ،الله اکبر ،لا اله الا الله .

**توضيح** : **ان تخفض بها صوتك** : په دې روايت کې **ترفع** او **تخفض** الفاظ راغلي دي نو ددوی په نظر کې د احنافو هغه توجيه صحيح نه ده چې شهادتينو کې تکرار د تعليم د پاره دی ځکه چې دا حديث دغه توجيه ته اجازت نه ورکوي .لهذا د احنافو جواب به هم دغه وي چې نورو ډير روايات او عبد الله بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه د آذان او د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغيره مؤذنينو ترجيع نه کوله، ددې تپولو امورو د وجې نه

(١) أخرجه أبوداود في السنن ٣٤٠/١ رقم الحديث ٥٠٠ ، وأخرجه النسائي في السنن ٧/٢ رقم الحديث :٦٣٢

احنافو د حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايات مرجوح کړو او نورو روايات يې راجح کړل.(المرقات ۲/۲۳۷)

**مقدم رأسه**: يعنې رواياتو کې د رأس لفظ راغلى دى دا د دې خبرې دليل دى چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سر لاس ايخودى وو دا واضح او راجح دى بعضې حضراتو د دې جملې مطلب دا اخستى دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپل سر مبارک لاس راخکلى وو دا مطلب واضح نه دى.

## د آذان نه پس د مونځ د پاره اعلان څنګه دى؟

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ بِلَالٍ قَالَ : قَالَ لِيْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « لَا تُثَوِّبَنَّ |
| د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى، وايي چې: پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ما ته وفرمايل: چې تثويب مه |
| فِيْ شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ إِلَّا فِيْ صَلَاةِ الْفَجْرِ».(۱) |
| کوه په هيڅ يو مونځ کې د مونځونو نه په غير د سحر مونځ نه. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : أَبُو إِسْرَائِيلَ الرَّاوِي لَيْسَ هُوَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيْثِ. |
| امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ابو اسرائيل راوي قوي نه دى د محدثينو حضراتو په نزد باندې. |

**توضيح**: **لا تثوبن**، دا صيغه د **تثويب** د باب **تفعيل** نه ده په لغت کې **تثويب** په معنى د رجوع او واپس کيدو دى د دې نه ثيبه ښځه مراد ده د دې نه ثوب او ثواب دى په دې اعتبار سره بيت الله ته مثابة للناس فرمايلي دي په دې ټولو کې واپسئ معنى موجود ده دلته حديث کې تثويب اعلام بعد اعلام او اطلاع بعد اطلاع ده اعلان بعد اعلان مراد دى تثويب په درې معنو او درېو مطالبو او مقاصدو باندې راځي

(۱) اقامت او تکبير ويلو ته هم تثويب ويل کيږي (۲) د سحر آذان کې **الصلاة خير من النوم** ويلو ته هم تثويب ويل کيږي (۳) اعلام نه پس اعلام يعنې د آذان ويلو نه پس اقامت نه مخکې يو کس اعلان وکړي او خلکو ته د مونځ رابللو د پاره خپلو الفاظ کې اعلان وکړي دې ته هم تثويب ويل شي.(اشعة اللمعات ۳۳۰، المرقات ۲۳۷-۲/۲۳۸).

دې تثويب کې سخت اختلاف دى، متقدمينو او سلف صالحينو دې ته مکروه او بدعت ويلي دي. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي او دده متعلق مشهور دي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو کس جومات کې وليدو چې هغه تثويب کولو يعنې د آذان نه پس يې د مونځ د پاره اعلان کولو، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: **اخرجوا هذا المبتدع من المسجد**.(اشعة اللمعات ۳۳۱، المرقات ۲/۲۳۸).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۷۸ رقم الحديث ۱۹۷

د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې منقول دي چې د وي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ځلې جومات کې مؤذن په تثويب کولو باندې وليدو ، عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جومات نه بهر راوتو او خلکو ته يې وفرمايل چې دې بدعتي مخې ته مه ودريږئ ، امام محمد رَحِمَهُ اللهُ به هم داسې قسمه تثويب باندې سخت خفه کيده او ويل به يې ټول

مسلمانان په عبادت کې يو شان دي ، بهر حال د سحر په آذان کې الصلاة خير من النوم کوم تثويب دی داد زماني د رسالت نه جاري دی د غفلت او خوب د وجې يا د سستۍ د وجې نه دې الفاظو ويلو ته د سنت درجه حاصله ده ، ددې نه علاوه خلکو په خپل خپل انداز کې ددې نه علاوه نور اعلانات د سحر مونځ کې داخل کړي دي ځکه چې د سحر وخت د خوب او غفلت او سُستي وي .

بيا آخر کې امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ عام مونځونو کې د قاضيانو او حکامو او په دين کې مشغوليدونکو خلکو د پاره خاص طور باندې اعلان کول د آذان نه پس جائز وګرځول د مشغولتيا د وجې نه چې مؤذن

وغيره ورشي او ورته ووايي : ايها الامير الصلاة جامعة ، او متاخرينو په دين کې مشغوله خلکو ته اطلاع ورکولو د پاره اعلان ښه وګڼلو ، ګويا د زماني د تبديلۍ د وجې نه يا د زماني د خلکو د تبديلۍ د وجې نه حکم بدليږي لکه څنګه چې نن سبا په مدارسو کې د آذان نه پس دوباره د پاڅيدو د پاره اعلان کوي ، دغه رنګ مؤذنينو پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلاةُ وَالسَّلَامُ ته هم خصوصي اطلاع ورکړې وه ، خلفاء راشدينو ته هم ورکړی شوې وه دوي انکار نه شي کولی په ښکاره عامو جوماتونو کې د آذان نه پس دوباره اعلان کول ناجائز دي ياکه چيرته خاص داعي يا خاص سبب د وجې نه کله يو کس اعلان وکړي هغه بيله خبره ده مګر مستقل طور باندې د آذان نه پس اعلان کول په هر حالت کې بدعت دی ، ځکه چې ددې وجې نه د آذان حيثيت او مشروعيت اصل مقصد ته نقصان رسي .

## په آذان کولو کې ځينې غلطيانې خطرناکې دي :

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالٍ : « إِذَا أَذَّنْتَ |
| د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې کله ته آذان کوې |
| فَتَرَسَّلْ وَ إِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ وَاجْعَلْ بَيْنَ أَذَانِكَ وَ إِقَامَتِكَ قَدْرَ |
| نو په وقفه وقفه يې کوه او چې کله اقامت کوې نو زر زر يې کوه د آذان او تکبير په مينځ کې دومره وقفه کوئ |
| مَا يَفْرُغُ الْآكِلُ مِنْ أَكْلِهِ وَالشَّارِبُ مِنْ شُرْبِهِ وَ الْمُعْتَصِرُ إِذَا دَخَلَ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ |
| چې روټۍ والا د خپلې روټۍ نه او اوبو والا د خپلو اوبو نه او قضاء حاجت ته تلونکي د خپل قضاء حاجت نه |

وَلَا تَقُوْمُوْا حَتّٰى تَرَوْنِيْ ». (۱)

فارغ شي او هغه وخت پورې مه ولاړېږئ تر څو پورې چې ما ونه وينئ.

د اذان او اقامت په مينځ کې د دومره وقفه مقدار چې يو موږ ته دريږي ترڅو پورې چې مو زه نه يم ليدلی. دا حديث ترمذي

وَ قَالَ : لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيْثِ عَبْدِ الْمُنْعِمِ وَ هُوَ إِسْنَادٌ مَجْهُوْلٌ.

نقل کړی او ويلي يې دي چې دا حديث غير د عبد المنعم نه د بل چا نه نه پيژنو او د دې سند مجهول دی.

**توضيح** : **فترسل** وقفې وقفې سره آذان کولو ته ترسل ويلی کيږي او زر زر تکبير کولو ته حدر ويلی شي دا حديث په دې خبره واضح دليل دی، احناف چې په آذان او اقامت کې د شفع او ايتار کومه معنی اخيستې ده په دې حديث کې په دغه طرز تعليم ورکړی شوی دی او دغه معنی د دې احاديثو مطالبو ته ډيره نږدې ده، دې حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې په دې آذان او اقامت کې د غلطی نه ځان بچ ساتئ ځکه چې آذان کې غلطي کولو سره ايمان کې د خرابی خطره وي مثلاً : **الله اکبر** کې **الف** باندې مد وويلې شي او د اکبر په ځای باندې **اکبار** ويلی شي او قصداً دا سې کولو سره د کفر خطره وي ځکه چې د مد په صورت کې استفهام پيدا شي چې آيا الله لوي دی يا نه دی. دغه رنګ اکبار د کبر جمع جوړيږي د دې معنی يو قسم طبله راځي دغه رنګ د **اشهد الف** باندې مد راشي نو د استفهام معنی شوه چې خطرناکه ده ګويا مؤذن وايي چې آيا زه ګواهي ورکړم، دغه رنګ د ان په ځای انا وويلی شي علماء ليکي د آذان او اقامت کلمات د وقف په حالت سره منقول دي د هرې کلمې په آخر کې اعراب ښکاره کولو سره خلاف سنت کار دی لکه **حي على الصلاة، حي على الفلاح** په آخر کې اعراب نه ښکاره کول ځکه چې د وقف په حالت کې منقول دی، دغه رنګ **قد قامت الصلاة** د وقف په حالت کې منقول دی د دې په آخر کې پيش ويل غلط دی.

**د آذان او جمعې په مينځ کې څومره وقفه کول په کار دي ؟قدر ما يفرغ الآكل** : دا د آذان او د اقامت په مينځ کې د مقدار بيان دی چې د آذان نه پس دومره وقفه په کار ده چې يو موږ کوونکي د قضاء حاجت ضرورت محسوس کړي او په آسانی سره ترې فارغ شي يا ولاړې والا خپل ضرورت پوره کړي يا بل يو مختصر ضرورت په کې پوره کړي نن سبا د ګهړئ ترلی انتظام دئ يعنې جوماتونو کې نيمه ګينټه وقفه ورکولی شي، بعضو کې پنځلس منټه د پاکستان په مؤذنينو کې د ټولو نه لويه کمزوري داده چې په دې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۷۳ رقم الحديث : ۱۹۵

ملک کې افغانستان . بنګله دیش کې آذان د وخت تعیین د پاره نه وي بلکې د مونځ د تعیین د پاره وي که آذان دوخت د تعیین د پاره وي نو د وخت شروع کیدو نه یو څو میتټه مخکې به یې آذان کولو مګر داسې نه وي لکه د ماسپښین وخت د زوال نه شروع کیږي نو مناسب او مسنون دا دی چې په دغه وخت کې آذان کولی شوی لیکن آذان د وخت شروع کیدو نه پس نیمه ګینټه بعد کولی شي خو سعودي عرب کې آذان دوخت د تعیین د پاره کولې شي نو د وخت په شروع کې کولی شي دا ډیره ښه خبره او عمل دی . (الکاشف ۲/۲۳۳، المرقات ۲/۳۳۸، اشعة اللمعات ۳۳۱).

**دصفونو دصحیح کولو دپاره دې مقتدیان کله اودریږي ؟ولا تقوموا حتی ترونی:** چې کله مؤذن اقامت دپاره اودریږي چې څو پورې تاسو زه نه یم لیدلی دغه وخته پورې نه سو کیني یې سی مه ځکه د وخت نه مخکې پاڅیدو کې تکلیف ډیروي، ددې حدیث نه معلومه شوه چې د تکبیر شروع کیدو نه پس به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حجرې نه راوتو او چې کله حي علی الصلاة ویلو نو پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به محراب ته رارسیدو . اوس پاتې شوه دا مسئله چې مقتدي به د مونځ د پاره کله اودریږي دې کې اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف :** د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او د جمهورو علماو رای داده چې په صفونو کې د مقتدیانو دپاره مقرر وخت نشته څه وخت چې وغواړي نو صف دې برابر کړي ، د بعضې علماو رای داده چې کله مؤذن قد قامت الصلاة ووایي نو مقتدي دې دغه وخت کې ودریږي، په مصنف ابن ابي شیبه کې سوید بن غفله ، قیس بن حازم ، حماد ، سعید بن مسیب او حضرت عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللَّهُ قول نقل کړې دی

چې کله مؤذن اقامت شروع کړي نو **قیام الی الصفوف** واجب دی چې په صفونو کې اعتدال راشي چې کله مؤذن اقامت ختم کړي نو امام دې تکبیر شروع کړي .د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ مسلک دادی چې

مؤذن **قد قامت الصلاة** ووایي نو امام دې تکبیر تحریمه شروع کړي او مونځ دې هم شروع کړي او د امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ یو قول دا هم دی خو د جمهورو مسلک دادی چې مؤذن څو پورې اقامت ختم کړې نه وي نو امام به تکبیر نه کوي او دا امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ هم یو قول دی او فتوی په همدې قول باندې ده.د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد چې کله مؤذن تکبیر کولو نه فارغ شي نو مقتدیان دې اودریږي ددې حدیث نه دا مسئله واخستلی شوه چې څوک هم د اقامت په وخت کې یا ددې نه مخکې جومات ته راشي نو ده

ته مخکې ناسته په کار ده بیا په **حي علی الصلاة** باندې اودریدل په کار دي .نن سبا اهلِ بدعت د همدې بدعت پابندي کوي دوي ولاړ کس معاف کوي نه تر څو چې یې کینولی نه وي زما په خیال دا اهل بدعت په یو علمي غلطۍ کې دي که نه نو په حدیث کې ولاړ کس کینول د التزام اشاره قدرې هم نشته دی .

فقهاء احناف کتابونو کې لیکلي دي چې **حي علی الفلاح** په وخت کې اودریږئ ددې دا مطلب دی که د مجبورۍ د وجې نه مخکې ونه دریږي نو بیا ددې نه پس د ناستې اجازت نشته دی ، فقهاء لیکي چې د

ن ستې آخري حد حي على الصلاة دی ، ددې نه پس ناسته جائز نه ده ددې دا مطلب نه شو چې د حي على الصلاة نه مخکې به څوک نه اودريږي او که څوک ودريدو نو د طعن لائق به وي لکه څنګه چې يې اهلِ بدعت کوي.

شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ ددې حديث لاندې ليکي : اى لا تقوموا للصلاة بمجرد الاقامة حتى تبصروني اخرج من البيت و في الفقه يقوم عند على الصلاة و يحرم عند قد قامت الصلاة (لمعات ج ۳ ص ۹) دې عبارت کې هم دغه خبره ده چې د حي على الصلاة نه پس ناسته منع ده څکه چې صف نيغول په کار دي دا نه چې د حي على الصلاة نه مخکې ناسته لازم ده ، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې ليکلي دي : کيدی شي پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د حي على الصلاة سره د حجرې نه محراب ته راتلو څکه يې فرمايلي: چې زما راتلو او ليدو پورې مه اودريږي (اشعة اللمعات ج ۱ ص ۳۳۱)

## آيا چې کوم کس آذان وکړي هغه دې اقامت هم وکړي ؟

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ: أَمَرَنِيْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنْ أُؤَذِّنَ فِي |
| د حضرت زيد بن حارث صدائي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی فرمايي چې ما ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د آذان حکم وکړو د |
| صَلَاةِ الْفَجْرِ » فَأَذَّنْتُ فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| سحر مونځ د پاره ما آذان وکړو بيا حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اقامت کول غوښتل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې : |
| « إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ قَدْ أَذَّنَ وَ مَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ ».[1] |
| صدائي ورور دې آذان کړی دی او څوک چې آذان وکړي هغه به اقامت هم کوي . |

**توضيح** : ان اخا صدا : زياد بن حارث صدائي ته پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په دې حديث کې اخا صدا ويلی دا صحابي دی او د يمن اوسيدونکي دی د قبيلې نوم يې صدا دی ده ته د ددې نسبت د وجې نه صدا ويلی شو د عربو دستور دی چې د يوې قبيلې د کس ذکر کيږي نو هغه ته ددې قبيلې ورور ويلی کيږي ددې قاعدې مطابق پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دې صحابي ته اخا صدا وفرمايل يعنې دصدا قبيلې ورور. (المرقات ۲/۳۴۰، اشعة اللمعات ۳۳۱).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۸۳/۱ رقم الحديث ۱۹۹، وأخرجه أبوداود في السنن ۳۵۲/۱ رقم الحديث : ۵۱٤ .

**فهو یقیم** : چې څوک آذان وکړي د هغه حق دی چې اقامت هم وکړي ددې په استحقاق کې د فقهاو معمولي شان اختلاف دی . (المرقات ۲/۳۴۰).

**د فقهاو اختلاف** : د استحقاق تقاضا خو داده چې څوک آذان وکړي هغه دې اقامت هم وکړي خو که بل څوک اقامت وکړو نو ددې شرعي حیثیت څه دی دې کې د شوافعو او حنابلو مسلک دادی چې داسې کول مطلقا مکروه دی که د مؤذن اجازت وي او یا نه وي خو که اقامت وشو نو د دوباره کولو ضرورت نشته دی .ائمه احناف فرمایي : که مؤذن په خوشحالۍ اجازت ورکړو بیا جائز دی بغیر د کراهت نه او که مؤذن اجازت نه وي ورکړی او خوشحاله هم نه وي نو بیا دا اقامت مکروه دی .امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي د غیر مؤذن اقامت مطلقا جائز دی یعنې په هر حالت کې جائز دی.

**دلائل** : شوافع او حنابله د زیاد بن حارث د دوی روایت نه استدلال کړی دی چې په دې پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تکبیر کولو نه منع کړی دی او وجه داده چې آذان کوم کس کړی دی اقامت به هم هغوي کوي، مالکیه حضراتو د عبدالله ابن زید بن عبدربه د حدیث نه استدلال کړی دی چې هغه ته پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل : ته بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د آذان کلمات وښایه چې آذان وکړي حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د آذان کولو نه پس د اقامت وخت راغی نو پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ عبدالله بن زید ته وفرمایل : قم الت ، دلته غیر مؤذن اقامت وکړو معلومه شوه چې جائز دی که مؤذن راضي وي او که نه وي . احنافو دواړه قسمه روایاتو کې د تطبیق صورت پیدا کړو که مؤذن نه وي خوشحاله چې اقامت دې بل څوک وکړي لکه څنګه چې د صدائي د حدیث معامله وه کیدی شي صدائي نهٔ خوشحاله ځکه پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ منع فرمایلې وه د حضرت عبدالله ابن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اقامت اجازت حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړو کیدی شي هغه په دې راضي وُ نو لهذا د احنافو د مسلک مطابق په ټولو احادیثو کې تطبیق راغلی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

| |
|---|
| ﴿۹﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ الْمُسْلِمُونَ حِيْنَ قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ يَجْتَمِعُوْنَ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي : چې مسلمانان کله مدینې ته راغلل او جمع شول نو مونږ د پاره وخت |
| فَيَتَحَيَّنُوْنَ لِلصَّلَاةِ وَلَيْسَ يُنَادِي بِهَا أَحَدٌ فَتَكَلَّمُوا يَوْمًا فِيْ ذَٰلِكَ |
| متعین کول په کار وُ (ځکه) چې مونځ د پاره دا بللو څوک نه وو (یوه ورځ) چې په دې مسئله خبرې وشوې |
| فَقَالَ بَعْضُهُمْ : اتَّخِذُوا مِثْلَ نَاقُوسِ النَّصَارَى وَ قَالَ بَعْضُهُمْ: قَرْنًا مِثْلَ قَرْنِ الْيَهُوْدِ |
| ځینو وویل چې د نصارا او په شان ناقوس جوړول په کار دي ، او بعضو وویل : د یهودیانو په شان خکر |

فَقَالَ عُمَرُ أَوَلَا تَبْعَثُونَ رَجُلًا يُنَادِي بِالصَّلَاةِ ؟
جوړول په کار دي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: يو سړي ولې نه مقرروو چې د مونځ د پاره خلک رابللی

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا بِلَالُ قُمْ فَنَادِ بِالصَّلَاةِ». (۱)
شي پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: اى بلاله! ته ودرېږه او خلک د مونځ د پاره راغونډ کړه.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ قَالَ: لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوسِ
حضرت عبد الله بن زيد بن عبد ربه فرمايي: چې کله نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د ناقوس جوړولو حکم ورکړو چې

يُعْمَلُ لِيُضْرَبَ بِهِ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ طَافَ بِي وَ أَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ
د خلکو د مونځ د پاره جومات ته راجمع کولو د پاره ووهلی شي نو ما په خوب کې وليدو چې يو کس په

نَاقُوسًا فِي يَدِهِ فَقُلْتُ يَا عَبْدَ اللهِ أَتَبِيعُ النَّاقُوسَ قَالَ
لاس کې ناقوس نيولی روان وو ما هغه کس ته وويل: دا الله بنده چې ته دا ناقوس خرڅوي؟ هغه کس وويل

وَمَا تَصْنَعُ بِهِ فَقُلْتُ نَدْعُو بِهِ إِلَى الصَّلَاةِ قَالَ
ته په دې څه کوې؟ ما ورته وويل چې مونږ به پرې خلک جومات ته د مونځ د پاره راجمع کوو هغه ورته وويل

أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكَ فَقُلْتُ لَهُ بَلَى قَالَ فَقَالَ تَقُولُ اللهُ أَكْبَرُ
چې د دې نه بهتر څيز درته ونه ښايم؟ ما ورته وويل ولې نه ضرور يې وښايه د غه کس وويل دا وايه په الله اکبر

إِلَىٰ آخِرِهِ وَكَذَا الْإِقَامَةُ فَلَمَّا أَصْبَحْتُ أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ
آخره پورې هغه ورته آذان وښودلو او د غه رنګ اقامت هم کله چې سحر شو نو زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې

فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا رَأَيْتُ فَقَالَ: «إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللهُ
حاضر شوم او ټول خوب مې ورته ذکر کړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام (خوب واوريدو) او وې فرمايل: ان شاء الله خوب

فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَأَلْقِ عَلَيْهِ مَا رَأَيْتَ فَلْيُؤَذِّنْ بِهِ فَإِنَّهُ أَنْدَىٰ
رښتيا دی او س د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره او درېږه هغه ته وايه او هغه به يې وايي ځکه چې هغه اوچت

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۷۷/۲، رقم الحديث ۶۰۴، ومسلم في الصحيح ۲۸۵/۱ رقم الحديث ۱-۳۷۷، والنسائي ۲/۲، رقم الحديث ۱، والترمذي ۳۶۲/۱ رقم الحديث ۱۹۰

صَوْتًا مِنْكَ » فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ فَجَعَلْتُ أُلْقِيهِ عَلَيْهِ وَ يُؤَذِّنُ بِهِ قَالَ

آوازوالادی، زه د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ودریدم او هغه ته مې ښودو او هغه آذان ورکوه راوي وايي

فَسَمِعَ بِذَلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَ هُوَ فِيْ بَيْتِهِ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ

چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله خپل کور کې آذان واوریدو نو راووتو او خپل څادرېې په ځمکه راښکو

وَ يَقُولُ وَ الَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ مَا أُرِيَ

او وې وویل ای د الله رسوله! قسم په هغه ذات چې ته یې په حق سره رالیږلی یې ما هم داسې خوب لیدلی

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَهُ إِلَّا

دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: **الحمد لله**، دا حدیث ابوداؤد، دارمي او ابن ماجه نقل کړی خو ابن ماجه د

أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرِ الْإِقَامَةَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ لٰكِنَّهُ لَمْ يُصَرِّحْ قِصَّةَ النَّاقُوسِ.[1]

تکبیر ذکر نه دی کړی او ترمذي ویلي دا حدیث صحیح دی خو د ناقوس د قصې تصریح یې نه ده کړې.

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوده شوي خلک د مونځ د پاره راپاڅول:

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ فَكَانَ

د حضرت ابوبکرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وايي زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره سحر مونځ ته ووتم نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې د

لَا يَمُرُّ بِرَجُلٍ إِلَّا نَادَاهُ بِالصَّلَاةِ أَوْ حَرَّكَهُ بِرِجْلِهِ[2]. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد).

کوم کس خوا ته تیریدو یا به یې د مونځ د پاره آواز ورکولو یا به یې د خپې نه ونیولو او حرکت به یې ورکړو.

**توضيح: ناداه بالصلاة** یعني پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د سحر آذان نه پس چې کله پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام به په کوم یو کس هم تیریدو چې ویده به وو نو هغه به یې راپاڅولو او کله به یې هغه کس ته په خپل قدم مبارک باندې حرکت ورکولو او راپاڅولو به یې. (المرقات ۲/۳۳۴).

ددې نه معلومه شوه چې اوده کس ته یا آواز ورکوئ یا یې په لاس یا خپې باندې حرکت سره راپاڅوئ، نن سبا په مدارسو کې په دې سنت باندې عمل شروع دی او مقرر اساتذه سحر او ماسپښین وخت کې د

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳۳۷/۱ رقم الحديث ۴۹۹، وأخرجه ابن ماجه في السنن ۲۳۲/۱ رقم الحديث ۷۰۶، وأخرجه الدارمي في السنن ۲۸۶/۱ رقم الحديث ۱۱۸۷

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۹/۲ رقم الحديث ۱۲۶۴

مونځ د پاره طالبان د خوب نه را پاځوي او د پیغمبر عَلَیْهِ السَّلَام قدم مبارک چې د یو صحابي سره لګیدلی وي داد هغه د پاره د فخر خبره ده . او ده کس د خوب نه د پاڅید و ښه طریقه داده چې د خپې د ګوتې نه یې ونیسه او حرکت ورکړه یا ورله په سر یا تندي باندې لاس کیږده حرکت ورکړه ، یک دم آواز په تیزه باندې د خطرې نه خالي نه دی .

**حرک بر جله**: ددې ترجمه شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللّٰهُ داسې کړې ده : یا مي جنبانید اورا به پای مبارک خود. ددې ترجمه مظاهر حق جدید کې ښوې ده هغه محل نظر دی . (اشعة اللمعات ۳۳۳).

## الصلاة خير من النوم حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په آذان کې نه دی داخل کړی :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ | مَالِكٍ | بَلَغَهُ | أَنَّ | الْمُؤَذِّنَ | جَاءَ | عُمَرَ |
| د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په باره کې نقل دي چې ده ته دا حدیث رسیدلی چې راغې مؤذن عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | | | | | | |
| يُؤْذِنُهُ | لِصَلَاةِ | الصُّبْحِ | فَوَجَدَهُ | نَائِمًا | فَقَالَ : | |
| خوا ته د سحر مونځ د پاره یې خبر ورکولو نو مؤذن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حالت د خوب کې وموندو نو وي ویل | | | | | | |
| الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَنْ يَجْعَلَهَا فِي نِدَاءِ الصُّبْحِ. (رَوَاهُ مَالِك فِي الْمُوَطَّأ) [1] | | | | | | |
| الصلاة خير من النوم، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مؤذن ته حکم وکړو چې دا کلمه د سحر په آذان کې داخله کړه. | | | | | | |

**توضیح: فامره عمر ان یجعلها**: یعنې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مؤذن ته حکم ورکړو چې دا کلمه د سحر په آذان کې وایه. **سوال**: ددې جملې نه ښکاره معلومیږي چې **الصلاة خير من النوم** جمله حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خپل طرف نه د سحر آذان کې داخله کړې ده ، ددې نه دا سوال پیدا کیږي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خپل طرف نه یو څیز په شریعت کې ولې او څنګه داخل کړو ؟ (الکاشف ۲/۲۳۵، اشعة اللمعات ۳۳۳، المرقات ۲/۳۴۴).

**جواب**: حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قطعا دا جمله د سحر آذان کې نه ده داخله کړې ، دې نه مخکې حدیث نمبر ۵ کې د حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په روایت کې ښکاره الفاظ موجود دي ، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وفرمایل : چې کله د سحر آذان وې په هغې کې **الصلاة خير من النوم** وایې اوس دا خبره چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څنګه فرمایلې دي : چې ای مؤذنه دا د سحر په آذان کې داخله کړه ، دې کې یو احتمال دا هم کیدې شي چې د پیغمبر عَلَیْهِ السَّلَام نه پس دا کلمه د سحر په آذان کې پریخودلی شوې وه نو حضرت

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۷۲/۱، رقم الحديث ۸ من کتاب الصلاة

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ياده کړه چې داد سحر د آذان د پاره ده وايه يې د سحر په آذان کې او شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په اشعة اللمعات کې دا ليکلي دي .دويم احتمال دادی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مؤذن په دې جمله باندې د آذان نه بهر کولو باندې خفګان کړې وي چې دا جمله د سحر مونځ کې وايه ، د آذان نه علاوه د چا د پاڅيدو د پاره يې مه وايه .(اشعة اللمعات ۳۲۳).

ددې نه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې سخت موقف پته لګي کوم چې هغه د اسلام د اصولو او ضوابطو او قواعدو او احکامو د حفاظت او نګرانی د پاره اختيار کړي وو .دريم احتمال دادی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مؤذن ته د تاکيد او تذکير د وجې فرمايلي وو چې د سحر آذان کې لازمي طور باندې دا وايه . ( کذا في التعليق الفصيح ) . بهر حال د رافضو مرفوضه او د شيعو شنيعو اعتراض بې ځايه دی چې دا کلمه پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام په خپله آذان کې شامله کړې ده .

## غوږونو کې ګوتې ورکول او آذان ويل مسنون دی :

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ سَعْدٍ مُؤَذِّنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| د حضرت عبد الرحمن بن سعد بن عمار بن سعد مؤذن د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت دی وايي چې : |
| حَدَّثَنِيْ أَبِيْ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| مانه زما والد او هغه د خپل والد عمار او هغه د سعد د نيکه نه اوريدلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام حضرت |
| أَمَرَ بِلَالًا أَنْ يَجْعَلَ إِصْبَعَيْهِ فِيْ أُذُنَيْهِ وَ قَالَ : « إِنَّهُ أَرْفَعُ لِصَوْتِكَ » .(رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه).[1] |
| بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې خپلې دواړه ګوتې په غوږونو کې ورکوه دې سره آواز ډير اوچتيږي . |

**توضيح : اصبعيه في اذنيه :** يعنې دواړه غوږونو کې دې ګوتې ورکړه او آذان وايه ، ددې حکمت خپله په حديث کې مذکور دی چې ددې وجې نه د مؤذن آواز تيز وي ددې وجه داده چې مؤذن خپل آواز کم اوري ددې وجې نه دا نور هم د آواز تيزيدو کوشش کوي ، نو يو تيز آواز والا آذان به راځي ، نن سبا لاؤډ سپيکر دی مګر علماء دغه فتوی ورکوي چې په غوږونو کې ګوتې کينږدل سنت دي چې دا سنت ختم نه شي .

**حدثني ابي عن ابيه :** دې حديث کې د سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم راغلی دی داد پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې د مسجد قباء مؤذن ؤ ، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وفات باندې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شام ته لاړو او هلته يې استوګنه اختيار کړه يعنې هلته يې خپل ژوند تيرول شروع کړل ددې په ځای باندې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ټولې زندګۍ د پاره د مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مؤذن شو .(الکاشف ۲/۳۳۶، المرقات ۲/۳۴۵).

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲۳٦/۱ رقم الحديث ۷۱۰

۱٦ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

## بَابُ فَضْلِ الْأَذَانِ وَإِجَابَةِ الْمُؤَذِّنِ:

## آذان او ددې د جواب فضيلت:

آذان د اسلام د نښو نه يو ه نښه ده د الله تعالى د عظمت او شوکت اعلان کوي، د اسلام د غلبې نښه ده د توحيد او رسالت او د پاکۍ شهادت او چت عنوان دى نو ځکه د آذان ورکولو او برقرار ساتلو ډير لوي فضيلت او ثواب دى ددې باب کې هغه احاديث ذکر کيږي چې په دې کې به دا بيان وي چې آذان ورکول د دنيا او آخرت د عظمتونو او د ثوابونو د حصول يو ه ذريعه ده کوم ځاى کې چې آذان ښکاره کيږي دا ددې خبرې گواهي ده چې هلته اسلام ته شوکت او عزت حاصل دى . د غه وجه ده د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ قول دى چې د کومې علاقې ټول مسلمانان آذان پريږدي نو د هغوي خلاف ددې وخت بادشاه د جهاد اعلان وکړي، پاتې شوه دا خبره چې آذان کول ډير افضل دى يا امامت ډير افضل دى. راجح قول دادى چې که يو کس ته پوره يقين وي چې دامامت ټول حقونه په ښائسته طريقې سره پوره کوي د هغه د پاره امامت افضل دى او که د امامت فرائض په صحيح طريقې سره نه شي پوره کولې نو آذان ورله کول افضل دي، اوس داسوال چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپله زندگۍ کې آذان کړى دى يا يې نه دى کړى ؟ راجح قول دادى چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ د آذان دعوت ورکړى دى او فضيلت يې هم بيان کړى دى خو آذان يې نه دى فرمايلې او امامت يې هميشه په خپله کړى دى .

يو ه مسئله دا هم ده چې د آذان جواب ورکول څنگه دي علماء ليکي د آذان يو جواب فعلي دى، دويم جواب قولي دى، جواب فعلي دادى چې کوم وخت آذان واوري د غه وخت جومات طرف ته ځه او قولي جواب دادى چې کوم کلمات مؤذن وايي هغه دې سامع هم وايي. کله چې د مختلفو محلو نه د آذان آواز راځي صرف د يو جومات آذان جواب ورکول واجب دى او که يو کس مخکې نه جومات کې ناست ؤ هغه باندې د آذان جواب ورکول لازم نه دى ځکه چې هغه جواب فعلي کړى دى اوس په دغه دوران کې جومات کې تلاوت کوي نو هغه دې تلاوت جاري ساتي او که څوک د جومات نه بهر تلاوت کوي نو هغه دې د آذان جواب ورکولو د پاره تلاوت بند کړي (کذا في اللمعات) (اشعة اللمعات ۱۳۴).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د قيامت په ورځ به مؤذنين عزت مندوي:

﴿۱﴾ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ :

د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې : ما د پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه اوريدلي دي فرمايي :

«الْمُؤَذِّنُونَ أَطْوَلُ النَّاسِ أَعْنَاقًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ» (رَوَاهُ مُسلم).(۱)

چې د قیامت په ورځ باندې د ټولو نه اوچت څټونو والا به مؤذنین وي.

**توضیح**: **اطول الناس اعناقا**: یعنې د قیامت په ورځ باندې به د ټولو نه اوچتو څټونو والا مؤذنین وي ددې ډیر مطلبه دي: (۱) بعضې لیکي چې د قیامت په ورځ باندې به مؤذنینو ته لوي شان حاصل وي د آذان په برکت به دوي ته لوي اعزاز حاصل وي څټونه به یې اوچت وي دا جمله ددې اعزاز نه کنایه ده ځکه چې معزز کس څټ اوچت ساتي. (۲) بعضې علماء لیکي ددې نه مراد دادی مؤذنین به د قیامت په ورځ باندې سرداران وي ځکه چې د سردارانو څټونه اوچت وي. (۳) ابن عربي رَحِمَهُ اللهُ وایي: چې دا خلک د ډیرو اعمالو والا او ثواب والا به وي. (۴) قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ وایي: لفظ **اعناق** د **عنق** جمع ده د څټ په معنی کې ده بلکه دا **اعناق** د باب **افعال** مصدر دی چې د تیز تللو په معنی کې دی یعنې دا خلک به جنت ته تیزي تیزي سره منډې وهي اوله معنی جامع او ډیره واضحه ده. (اشعة اللمعات ۳۲۴، المرقات ۲/۳۴۶).

## شیطان د آذان آواز نه تختي:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ |
| د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایي چې: کله آذان د مونځ |
| أَدْبَرَ الشَّيْطَانُ وَ لَهُ ضُرَاطٌ حَتَّى لَا يَسْمَعَ التَّأْذِينَ فَإِذَا قَضَى |
| د پاره وویلی شي نو شیطان شاه کړي او منډې وهي او تیزونه اچوي چې آذان وانه وري چې کله ختم شي |
| النِّدَاءَ أَقْبَلَ حَتَّى إِذَا ثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ أَدْبَرَ حَتَّى إِذَا قُضِيَ التَّثْوِيبُ أَقْبَلَ |
| آذان نو دا بیا راشي خو چې کله تکبیر ویلې کیږي نو بیا منډې وهي چې تکبیر ختم شي بیا واپس راشي |
| حَتَّى يَخْطِرَ بَيْنَ الْمَرْءِ وَ نَفْسِهِ يَقُولُ اذْكُرْ كَذَا |
| چې د انسان او د هغه د زړه په مینځ کې نقصان پیدا کړي نو مونځ کوونکي ته وایي چې فلانکي څیز یاد |
| اذْكُرْ كَذَا لِمَا لَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ حَتَّى |
| کړه فلانئ خبره را یاده کړه نو کومې خبرې چې مونځ کوونکي ته یادې نه وې هغه ورته یادوي تر دې پورې |

(۱) أخرجه الإمام مسلم في الصحيح ۱ / ۲۹۰ رقم الحديث ۱۴ / ۳۸۷ وابن ماجه ۱ / ۲۴۰، رقم الحديث: ۷۲۵، أخرجه أحمد في المسند ۹۵/۴

يَظَلَّ الرَّجُلُ لَا يَدْرِيْ كَمْ صَلّٰى. (متفق عليه)(۱)

چې دغه کس ته دا یاد نه وي چې ده څو رکعته وکړه.

**توضیح**: لـه ضـراط اصـیلي یو نسخې کې ولـه ضـراط واو سره راغلی دی دا جمله حالیه ده ضراط وضریط تیزونو اچولو ته ویلې کیږي. (المرقات ۲/۳۴۷، اشعة اللمعات ۳۳۵).

قاضي عیاض وایي دا کلام په حقیقت باندې محمول دی ځکه چې شیطان هم ... لري او خوري څکي او تیزونه اچوي یعنې د آذان آواز په شیطان باندې ډیر وزن داره دی څنګه چې په خرې ... امان ډیر شي نو خره تیزونه اچوي نو شیطان هم تیزونه اچوي او لګئ وهي او منډې وهي دا احتمال هم لري ... ددې نه مراد سخت نفرت ظاهرول دي. علامه طیبي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي چې ددې نه مراد دادی چې کله آذان شروع شي نو شیطان د آواز نه خپل ځان لرې ساتلو او د غافله کیدو کوشش کوي. (الکاشف ۲/۲۳۸).

د شیطان د غفلت تشبیه یې داسې آواز سره ورکړې ده چې ددې نه غوږونه ډک شي او ددې آواز نه علاوه بل آواز نه اوري یا ډیر تقبیح د پاره دغه آواز یې د ضراط سره یاد کړو دا یو تشبیهي کلام دی، لهذا احادیثو کې صریح الفاظو سره تیز اچول راغلي دي دا کلام په تشبیه او مجاز باندې حمل کول لرې خبره ده ځکه چې حقیقي معنی مراد اخیستل ګران نه دي، شیطان دومره معزز نه دی چې مونږ د هغه طرف ته د تیز اچولو نسبت نه کوو.

**سوال**: دلته دا اشکال راځي چې شیطان د تلاوت نه نه تختي او د مونځ نه نه تختي او د مونځ په مینځ کې شهادتینو نه، نه تختي څه وجه ده چې صرف د اذان نه تختي؟ **جواب**: آذان د شعائر الله نه دی چې کوم ځای کې آذان بنکاره کیږي هلته د اسلام غلبه وي او شیطان د اسلام عظمت او شوکت او د هغې رفعت او عزت برداشت نه کوي ځکه تیزونه اچوي او تختي. نو معلومه شوه چې د جهاد او ازادۍ په زمکه باندې آذان کول او د غلبې او قدرت او شوکت د سورې د لاندې آذان کولو شان یو شانتې وي. او په حالت د مغلوبیت او مظلومیت کې د آذان حیثیت بل شان وي، اقبال رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي:

الفاظ و معانی میں تفاوت نہیں لیکن ملا کی آذان اور ہے مجاہد کی آذان اور

بعضې علماو دا جواب ورکړی دی چې دلته په حدیث کې د آذان فضیلت په مونځ باندې جزئي ذکر دی دې نه د مونځ کلي فضیلت باندې اثر نه پریوځي، بعضې علماء دا وایي چې مؤذن داعي الی الخیر دی

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۸۴/۲، رقم الحديث: ۶۰۸، ومسلم في الصحيح ۲۹۱/۱ رقم الحديث: ۱۹-۳۸۹، وأبو داود ۲۵۵/۱ رقم الحديث: ۵۱۶، والنسائي ۲۱/۲، رقم الحديث ۶۷۰، أخرجه أحمد في المسند ۳۱۳/۲.

او شيطان داعي الى الله دى داعي الى الشر د داعي الى الخير د آذان د وجې نه سوزي او تختي .

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَسْمَعُ مَدَى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ

ابو سعيد الخدري رضي الله عنه راوي دى وايي چې :نبي عليه السلام وفرمايل : چې څوک اوري د مؤذن آواز هغه

جِنٌّ وَلَا إِنْسٌ وَلَا شَيْءٌ إِلَّا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ». (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).[1]

که انسان وي يا جنات يا هر څيز چې وي ټول به د قيامت په ورځ د مؤذن دپاره دايمان ګواهي ورکوي .

**توضيح** : مدى صوته : مدى مسافت او لرې والې او د انتهاء په معنى کې دى دې حديث مبارک کې مؤذنينو ته دا ترغيب دى چې د چا آواز څومره تيز وي نو هغه له په کار دى چې آواز دې انتهائي درجې پورې د تيزيدو کوشش وکړي دغه وجه ده چې مؤذن په غوږونو کې ګوتې ورکړي او آذان دې کوي چې آواز اوچت او تيز وي او چې ډير نه ډير ثواب ورته ملاؤ شي ، دا وجه ده چې آذان د جومات نه بهر په يو اوچته مناره کې دې کولى شي .(اشعة اللمعات ۳۳۵، المرقات ۲/۳۴۸، الکاشف ۲۳۹).

## د آذان جواب څنګه ورکړى شي ؟

﴿۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ:

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې ما دنبي عليه السلام نه اوريدلي چې فرمايل يې

"إِذَا سَمِعْتُمُ الْمُؤَذِّنَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ ثُمَّ صَلُّوا عَلَيَّ فَإِنَّهُ

چې کله تاسو د مؤذن آواز واورئ نو دغه الفاظ دوباره تاسو وايئ بيا په ما باندې درود ووايئ ځکه چې

مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا

څوک په ما باندې يو ځل درود شريف ولولي ددې په بدله کې الله تعالى په ده باندې لس رحمتونه نازلوي

ثُمَّ سَلُوا اللهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ فَإِنَّهَا مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِي إِلَّا لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللهِ

بيا زما د پاره د وسيلې دعا کوئ وسيله د جنت يو اعلى درجه ده دا الله په بنده ګانو کې صرف يو بنده ته

وَ أَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ فَمَنْ سَأَلَ لِيَ الْوَسِيلَةَ

ملاويږي او زما اميد دى چې هغه بنده به زه يم چې څوک زما دپاره د وسيلې دعا کوي د (قيامت په ورځ)

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۸۷/۲، رقم الحديث ۶۰۹، والنسائي ۱۲/۲، رقم الحديث ۶۴۴ ، وابن ماجة ۲۳۹/۱، رقم الحديث ۷۲۳، أخرجه أحمد في المسند ۳۵/۳

حَلَّتْ عَلَيْهِ الشَّفَاعَةُ. (رَوَاهُ مُسلم).[1]

د هغه سفارش په ما باندې ضروري دی.

**توضيح**: **فقولوا مثل ما يقول**: يعنې څنګه الفاظ چې مؤذن ادا کوي تاسو هم دغه رنګ جواب ورکوئ. اجابت د مؤذن په دوه قسمه دی يو اجابت فعلي دی د مؤذن په بلنې باندې جومات ته لاړ شي، دويم اجابت قولي دی چې په ژبه باندې جواب ورکړي او س په دې مسئله کې بحث دی، چې څوک د مؤذن آذان نه اوري هغه د پاره څه رد عمل کول ضروري دی او څنګه جواب ورکړي د آذان په جواب کې د فقهاو معمولي شان اختلاف دی چې جواب ورکول واجب دي او که مستحب دي.(اشعة اللمعات ۳۴۵).

**د فقهاو اختلاف**: **اوله اختلافي مسئله**: اهل ظواهر او ځينې احناف او مالکيه د دې قائل دي چې د مؤذن د الفاظو په شان الفاظ سره جواب ورکول واجب دي او امام شافعي، احمد او امام مالک رَحِمَهُمُ اللهُ او اکثر احناف د دې قائل دي چې اجابت قولي مستحب دی واجب نه دی.

**دلائل**: فريقِ اول د زير بحث حديث نه استدلال کړی دی چې په دې کې د امر صيغه ده او داد وجوب د پاره راځي نو اجابت قولي واجب دی. فريقِ ثاني د مسلم يو حديث نه استدلال کړی دی د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د يو مؤذن آذان واوريدو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: **على الفطرة**، په دې کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مؤذن الفاظو په جواب کې نور الفاظ وفرمايل، نو معلومه شوه چې واجب نه دی، د فريقِ اول جواب دادی چې د امر صيغه په استحباب باندې محمول ده يعنې مستحب دی.

**دوهمه اختلافي مسئله**: دې حديث کې دوهمه اختلافي مسئله هم ذکر ده هغه داده چې آيا پوره آذان کې دغه کلمات دوباره وويل شي يا د آذان د جواب په کلماتو کې فرق شته، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهر وايي پوره آذان د مؤذن د کلماتو په شان جواب کې دوباره وو ايه تر دې پورې چې حيعلتين په جواب کې هم دغه وو ايه، د ائمه احنافو او حنابلو په نزد د **حي على الصلاة**، **حي على الفلاح** په جواب کې حوقله يعنې **لا حول ولا قوة الا بالله** ويل په کار دي.

**دلائل**: فريقِ اول د موجوده حديث نه استدلال کړی دی او وايي په دې حديث کې د يو لفظ هم استثناء نشته بلکې د ټولو الفاظو جواب په دغه الفاظو کې د ادا کولو حکم دی څنګه چې يې مؤذن ادا کوي. د فريقِ ثاني دليل د مسلم شريف حديث نمبر ۵ دی چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د **حي على الصلاة** په جواب

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۲۸۸/۱ رقم الحديث:۱۱-۳۸٤، وأبو داود ۳۵۹/۱ رقم الحديث .۵۲۳، والنسائي ۲۵/۲، رقم الحديث: ، والترمذي ۵٤۷/۵ رقم الحديث : ۳٦۱٤ ، أخرجه أحمد في المسند ۱٦۸/۲

کې **لا حول ولا قوة الا بالله** فرمايلي دی دغه رنګ حضرت معاويه رضي الله عنه روايت په بخاري کې دی په هغې کې هم د **لا حول ولا قوة الا بالله** ذکر موجود دی. د فريقِ ثاني سره عقلي دليل هم موجود دی هغه دا چې کله مؤذن د مونځ د پاره يا د کاميابۍ د پاره رابلل کوي او چې خلک هم جواب کې مؤذن د مونځ او کاميابۍ د پاره رابلل کوي نو دا ښکاره ټوقې او مذاق او استهزاء ده چې په شريعت کې جائز نه دي.
د فريقِ اول د دليل جواب دا دی چې هغه روايت مجمل دی او د احنافو روايات مفسر دي او کله چې د مجمل او مفسر په مينځ کې تعارض راشي نو ترجيح به مفسر ته وي په حقيقت کې په دې دواړو کې تعارض قدرې هم نه وي بلکې صرف اجمال او تفصيل کې فرق دی دا هم واورئ چې د آذان د کلماتو په جواب کې د مؤذن او سامع په الفاظو کې فرق دا راتلی شي د هغه حيعلتينو الفاظو په جواب کې **لا حول ولا قوة الا بالله** به سامع وايي چې د خپلې عاجزۍ او بې وسۍ اظهار وکړي او الله تعالی نه د نصرت او مدد درخواست وکړي او د سحر د آذان په جواب کې مؤذن **الصلاة خير من النوم** وايي او سامع به **صدقت وبررت وبالحق نطقت** سره جواب ورکړي د مؤذن د دعوې تصديق به وکړي او د هغه ذات او ذ هغه د کلمو تعريف او صفت به وکړي دغه رنګ چې کله مکبر تکبير کې **قد قامت الصلاة** ووايي نو سامع به د دې په جواب کې **أقامها الله و أدامها** الفاظو سره به د مونځ د نظام باقي کيدو او شعائر الله د دائمي کيدو دعاء وکړي، دا الفاظ په راتلونکي د حضرت ابو امامه په روايت نمبر ۱۷ کې مذکور دي لهذا دا هم مستند دی. (المرقات ۲/۳۳۹).
د آذان په ختميدو باندې چې د درود شکل کې کومه دعاء غوښتلی شي دې حديث کې دې طرف ته اشاره ده، د درود هغه الفاظ په روايت نمبر ٦ کې مکمل طور باندې موجود دي.

**دوسيلې مطلب**: الوسيلة دا لفظ په عربي او پښتو او فارسي ټولو کې وسيلې او ذريعې ته ويلی شي يعني يو مطلوب ته چې کومې ذريعې استعماليږي هغه وسيله ده دې حديث کې د وسيلې مطلب په خپله نبي عليه الصلاة والسلام بيان کړی دی چې دا ديو ځای او ديو مقام نوم دی چې په جنت کې دی شيخ عبد الحق رحمه الله په لمعات کې ليکلي: چې په دې حديث کې د کومې وسيلې ذکر دی دې نه د الله تعالی نزديکت مراد دی دلته ويلی شوي دی چې دا د جنت د يو مقام نوم دی نو د دې مطلب هم قرب او نزدې والی دی ځکه چې جنت هم د قرب الهي مقام دی او وسيله هم د قرب ځای او مقام دی. (اشعة اللمعات ۳۳۵).
قاموس کې يې ليکلي دي وسيله او واسله د بادشاه سره يو اعلی مقام او اوچت درجاتو د حصول يو نوم دی چې يو کس ته د قرب او منزلت دا مقام حاصل شي نو ده ته وسيله حاصل شوه دې درجو ته د رسيدو د پاره د نيک اعمالو او د اعلی کارنامو ضرورت وي ځکه وسيله ښو اعمالو ته هم ويلی کيږي دلته

حدیث کې د جنت نه مخکې د محشر په میدان کې د شفاعت کبری د پاره چې کله حضور ﷺ د الله تعالی مقام قرب ته ځي هغې ته وسیله ویلی شوې ده او دغه مقام ته مقام محمود هم ویلی شوی دی چې ددې تذکره قرآن کریم کې موجود ده ، د وسیلې دا مفهوم ددې حدیث باره کې ډیر موزون دی. (المرقات ۲/۳۵۰).

ارجو : ددغه درجې او مقام محمود او د وسیلې دغه اعلی مقام او ارفع مقام د پاره حضور اکرم ﷺ متعین دی بیا هم پیغمبر علیه الصلاة والسلام د تواضع او انکساری په ذریعې سره ارجو زه امید لرم الفاظ استعمال کړي دي ، بعضې شارحین ارجو په **اتیقن** په معنی باندې اخیستې دی ما ته یقین دی چې دا درجه به ما ته ملاویږي .

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ اَللهُ |
| د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام فرمایلي دي چې کله وایي مؤذن الله |
| أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ فَقَالَ أَحَدُكُمُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ ثُمَّ قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ |
| اکبر الله اکبر نو ووایئ تاسو هم هریو کس الله اکبر الله اکبر بیا چې کله مؤذن ووایي : اشهد ان لا اله |
| إِلَّا اللهُ قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ثُمَّ قَالَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ قَالَ |
| الا الله نو تاسو هم دا وایي ، بیا چې کله مؤذن ووایي اشهد ان محمداً رسول الله نو تاسو هم ووایي هریو |
| أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ قَالَ لَا حَوْلَ |
| کس اشهد ان محمدًا رسول الله ، بیا چې کله مؤذن حي علی الصلاة ووایي ،نو تاسو هم ووایي هریو کس |
| وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ قَالَ لَا حَوْلَ |
| لا حول ولا قوة الا بالله ، بیا چې کله مؤذن حي علی الفلاح ووایي نو تاسو هم ووایي هریو کس : لا حول |
| وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ ثُمَّ قَالَ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ قَالَ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ ثُمَّ |
| ولا قوة الا بالله ، بیا چې کله مؤذن الله اکبر الله اکبر ووایي نو تاسو هم ووایي الله اکبر ،الله اکبر بیا |
| قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ |
| چې مؤذن لا اله الا الله ووایي نو تاسو هم هریو کس لا اله الا الله ووایي ( د آذان په جواب کې دا کلمات |

| |
|---|
| مِنْ قَلْبِهِ دَخَلَ الْجَنَّةَ ». (رَوَاهُ مُسلم).[۱] |
| چې څوک ) د زړه د صفت نه وايي هغه به جنت ته داخليږي . |

**توضيح**: الله اکبر، الله اکبر دلته تکبير دوه ځلې ويل شوي دا د مکمل آذان حکايت نه دی بلکې د اختصار سره د آذان ديو څو کلمو ذکر دی چې د آذان باقي کلماتو طرف ته اشاره ده حالانکه تکبيرات خو څلور ځلې دي لا حول عن المعصية الا بنصر الله و قدرته ولا اتيان على طاعة ولا قوة على طاعة الا بمدد الله.

**من قلبه**: يعنې د زړه د صدق او پوخ ايمان نه دا کلمات و وايه نو ضرور به جنت ته داخل شي که ګناه يې موجود وي او الله تعالى د طرف نه معاف شوې هم نه وي نو سزا ورکولو نه پس به دخول ثانوي په صورت کې جنت ته داخل شي او که ګناه يې نه وي يا الله تعالى معاف کړې وي نو په دخول اولي سره به جنت ته داخل شي . (المرقات ۲/۳۵۱).

## د آذان نه پس دعاء:

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ |
| د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې نبي عليه السلام فرمايي چاچې وويل د آذان اوريدو په وخت کې |
| اللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَ الصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ |
| چې ای الله ماته د دې کامل دعا (آذان) او پروردګار د دې مونځ قائمه زمونږ سردار محمد صلى الله عليه وسلم ته |
| وَ الْفَضِيلَةَ وَ ابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا |
| وسيله ( د جنت د ټولو نه خاص او اعلى درجه ) او بزرګي عنايت کړه او مقام محمود يې ورله ورکړو چې |
| الَّذِيْ وَعَدْتَهُ حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». (رَوَاهُ البُخَارِيُّ).[۲] |
| د کومې وعده دې ورسره کړې ده د قيامت په ورځ به د ده د پاره زما شفاعت واجب وي. |

**توضيح**: **اللهم رب هذه الدعوة التامة**: آذان ته يې دعوت ويلې دي ځکه چې په توحيد مشتمل دی او عبادت طرف ته دعوت دی. شيخ عبد الحق رحمه الله په لمعات کې ليکلي دي : د دې دعوت نه مراد

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۲۸۹ رقم الحديث ۱۲ ۳۸۵، وأبو داود ۱/۳۶۱ رقم الحديث ۵۲۸.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۹۴ رقم الحديث ۶۱۴، وأبو داود ۱/۳۶۲ رقم الحديث ۵۲۹، والنسائي ۲۶/۱، رقم الحديث ۶۸۰، والترمذي ۱/۴۱۳ رقم الحديث ۲۱۱

توحيد کلمې دي لکه څنګه چې د قرآن په آيت کې ( له دعوة الحق ) دعوت نه مراد توحيد دی دې سره **التامة** لفظ لګولو سره اشاره کړې ده د توحيد کلمې کامل او مکمل ناقابل تبديلي او تنسيخ دي بيا د کمال سره محمد رسول الله د کلمې سره يو ځای کړو توحيد او رسالت کې يې اعلى کمال پيدا کړو دا مجموعه دعوت تامه په نوم سره ياد کړی شوی دی. (اشعة اللمعات ۳۳۶، المرقات ۲/۳۵۳).

**الصلاة القائمة** دې جملې کې د مونځ طرف ته اشاره ده دې طرف ته دعوت ورکولی شي الله تعالى قرآن مجيد کې مونځ باره **ويقيمون الصلاة** الفاظ بار بار ويلی شي اقامت صلوة طرف ته په دې کلمو کې اشاره شوې ده.

**والفضيلة**: ممکن دی چې د دې فضيلت نه دغه وسيله مراد ده او ممکن ده جمله کائناتو باندې د پيغمبر عليه الصلاة والسلام د پاره فضيلت دعاء وي دلته بعضې خلک **والدرجة الرفيعة** الفاظ زياتوي خو مستند طريقو سره ثابت نه دي ځکه يې دلته ويل په کار نه دي.

**مقام محمود**: د مقام محمود نه د شفاعت کبرى هغه مقام مراد دی چې پيغمبر عليه الصلاة والسلام هلته د الله تعالى مخې ته په حالت د سجدې کې عجيب او نا اشنا محامدو سره د الله تعالى تعريف کوي بيا الله تعالى به وفرمايي: **ارفع رأسک يا محمد سل تعط**، نبي عليه الصلاة والسلام به وفرمايي: ای الله! حساب شروع کړه، بيا به حساب شروع کړي. **حلت** بعضې رواياتو کې **وجبت** لفظ راغلی دی يعنې دغه کس د پاره به زما شفاعت واجب شي د **حلت** معنى د حلال کيدو ده او مستحق کيدو هم ده.

**شفاعتي**: په قيامت کې به د شفاعت دير اوچت مقام وي هلته به د دې د قيمت پته ولګي. د مثال په طور يو کس په يو ځای کې نه پوهيږي چې څه کول په کار دي حيران ولاړ وي اعمالو د تللو ويره هم وي څوک خپل کس هم نه وي په انتظار کې سخته ګرمي هم وي خفه ولاړ وي يک دم يو کس راشي او دا د لاس نه رابهر کړي او جنت ته يې داخل کړي او وايي دا د محمد عليه الصلاة والسلام کس دی دغه کس د پاره په دغه وخت کې د شفاعت او سفارش نه علاوه بل هيڅ شئ نه شي کيدی لکه څنګه چې د بين الاقوامي پرواز په وخت يو کس د اميګريشن سستم(د يو ملک نه بل ملک ته سفر کول) ما تحت کاغذاتو چيک کولو د پاره پريشان ولاړ وي او يک دم د ائرپورټ يو غټ افسر راشي او دا د لاس نه ونيسي او وايي: دا زما کس دی دغه شان دا کس هم د مختلفو مصيبتونو نه وځي. **اللهم ارزقنا شفاعة لبيک بجاه حبيبک محمد صلى الله عليه وسلم**.

په مختلفو احاديثو کې د آذان نه پس د نورو دعاګانو ويلو ذکر هم راغلی دی راتلونکي حديث کې د يو څو دعاګانو بيان راروان دی .(المرقات ۲/۳۵۳ ،اشعة اللمعات ۳۳۷).

## آذان د شعائر اسلام نه دی :

﴿۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُغِيرُ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دی وايي چې نبي علیه الصلاة والسلام به په دشمن حمله کوله د سحر کيدو په

وَ كَانَ يَسْتَمِعُ الْأَذَانَ فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ وَ إِلَّا

وخت کې او د آذان د اوريدو انتظار به يې کولو که آذان به شروع شو نو حمله به يې نه کوله او که (د آذان)

أَغَارَ فَسَمِعَ رَجُلًا يَقُوْلُ

آواز به نه ؤ نو حمله به يې کوله يو ځل يې په دښمن د حملې کولو په وخت کې د يو سړي نه واوريده چې ويل

اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « عَلَى الْفِطْرَةِ »

يې الله اکبر الله اکبر نو نبي علیه السلام وفرمايل: دا کس د اسلام (په طريقه) باندې دی (ځکه چې آذان

ثُمَّ قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ

مسلمان وايي) بيا دغه کس وويل: زه ګواهي ورکوم چې د الله تعالی نه غير بل معبود نشته نبي علیه السلام

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « خَرَجْتَ مِنَ النَّارِ »

(دا واوريدل) وې فرمايل: (تاسو شرک کولو نه بچ شوې) تاسو د دوزخ نه را ووتلې ، صحابو (ځلورو

فَنَظَرُوْا فَإِذَا هُوَ رَاعِيْ مِعْزًى .[1] (رَوَاهُ مُسْلِم).

طرفو ته وکتل او معلوم يې کړل چې آذان کولو والا څوک دی) چې وي کتل هغه د ګډو څرولو والا کس دی

**توضيح :يغير اذا طلع الفجر:** د حضور صلی الله علیه وسلم عادت شريفه وو چې کله به يې د دښمن خلاف کاروايي کوله نو د سحر په وخت کې به يې کوله دا د دښمن د غفلت وخت دی او د مسلمان مجاهد د چستی وخت دی ، بيا حملې کولو وخت کې د پيغمبر علیه السلام حکمت دا دی چې په کوم کلي باندې حمله رسيږي آيا په دې کې مسلمانان شته يا ټول کافران دي که چيرته د مسلمان اندازه وي بيا کاروايي په احتياط سره کوئ کنې د احتياط ضرورت نه وو ، دې مقصد د پاره حضور صلی الله علیه وسلم د سحر آذان

(۱) أخرجه مسلم ۱/۲۸۸ رقم الحديث:۹-۳۸۲، وأبو داود ۳/۹۸ رقم الحديث ۲۶۳۴، والترمذي ۴/۱۴۰ رقم الحديث :۱۶۱۸

انتظار کولو، دې حديث کې ددې ذکر دی چې د اسلام لښکر ته دا تعليم ورکړی شوی خو عام مسلمانانو ته ويل شوي چې په دار الحرب کې اوسيدنه اختيار نه کړي ورنه د اسلام لښکر په حمله کې به راشي او مړه به موکړي. (المرقات ۲/۳۵۴، اشعة اللمعات ۳۳۷).

ددې حديث نه معلومه شوه چې آذان د شعائر اسلام نه دی ځکه چې نبي اکرم ﷺ آذان کولو ته داسلام نښه او نه کولو ته د کفر نښه ويلي دی دا وجه ده چې فقهي جزئياتو کې دا جزئيه موجود ده، که د مسلمانانو بعضې خلک آذان پريږدي په حکومت وخت باندې فرض دي چې ددوي خلاف د جهاد اعلان وکړي ځکه چې اذان د شعائر اسلام نه دی دا ځان له خبره ده چې آذان سنت دی.

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: «مَنْ قَالَ |
| د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام فرمايلي دي: چاچې وويل د |
| حِيْنَ يَسْمَعُ الْمُؤَذِّنَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ |
| مؤذن د آذان اوريدو نه پس زه ګواهي ورکوم چې د الله نه غير هيڅوک نه معبود او نه د هغه شريک شته زه |
| وَ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ رَضِيْتُ بِاللّٰهِ رَبًّا |
| ګواهي کوم چې محمد ﷺ د الله تعالى رسول او بنده دی او زه راضي يم د الله تعالى په رب کيدو |
| وَ بِمُحَمَّدٍ رَسُوْلًا وَ بِالْإِسْلَامِ دِيْنًا، غُفِرَ لَهُ ذَنْبُهُ» . (رَوَاهُ مُسْلِم).[1] |
| او د محمد ﷺ په رسول کيدو او د اسلام په دين کيدو باندې وبه بخښل شي ده ته ګناهونه دده. |

**توضيح**: رضيت بالله ربا دغه دعا د آذان په ختميدو باندې ويل ډير مناسب ده د آذان په دوران کې کلمات د آذان په جواب کې خلل واقع نه شي دې دعا ويلو سره دا هم معلومه شوه چې د آذان نه پس مختلفې دعاګانې ويل د پيغمبر عليه السلام سنت دي صرف يو دعاء متعين نه ده.

**غفر له ذنبه**: باربار ليکلی شوي دي چې د ګناه نه مراد صغيره ګناه ده کبائرو د پاره د توبې ضرورت دی.

## د ماښام آذان نه پس د نفل مونځ حکم:

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| د حضرت عبد الله ابن مغفل رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چې په |

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۲۹۰ رقم الحديث ۱۳ ۳۸۶، وأبو داود ۱/۳۶۰ رقم الحديث ۵۲۵، والنسائي ۲/۲۶، رقم الحديث ۶۷۹، والترمذي ۱/۴۱۱ رقم الحديث ۲۱۰، أخرجه أحمد في المسند ۱/۱۸۱

«بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ» ثُمَّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ
مېنځ د هردوو آذانونو کې مونځ دی، په مېنځ د هردوو آذانونو کې مونځ دی او بیا یې وفرمایل په دریم ځل
«لِمَنْ شَاءَ» . (متفق علیه).[1]
چې دا مونځ د هغه کس د پاره دی چې خوښه یې شي.

**توضیح**: بين كل اذانين صلوة: اذانين نه مراد آذان او اقامت دی اول آذان د غائبو او دویم آذان د حاضرینو دی دا اقامت او اذان په مېنځ کې وخت ډیر برکتي دی او د دعاء د قبلیدو وخت هم دی ځکه پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام مکرر ترغیب ورکړو په دې کې د نفل مونځ کولو که دغه مونځ نفل وي یا سنت په باقي مونځونو کې کیږي خود ماښام آذان او اقامت په مېنځ کې نفل کولو کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۲/۳۵۲).

**د فقهاو اختلاف**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د یو قول مطابق د ماښام مونځ نه پس او د ماښام مونځ نه مخکې دوه رکعته نفل کول مستحب دي. امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد دا رکعتونه اصل کې جائز دي خو د ماښام مونځ د تاخیر د وجې نه دا مکروه لغیره جوړیږي د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ یو قول دا دی چې دا نفل صرف مباح دي مستحب هم نه دي امام مالک او امام ابوحنیفه رَحِمَهُمَا اللهُ یو قول د اباحت دی او ابن همام اباحت راجح ګرځولی دی.

**دلائل**: شوافعو او حنابلو زیر بحث حدیث د عبدالله بن مغفل رَحِمَهُ اللهُ نه استدلال کړی دی د بخاري یو روایت د عبدالله ابن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا سې نقل کړی دی پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: صلوا قبل صلوة المغرب دې حضراتو د مشکوة ص ۱۵۵ کې حضرت مختار بن فلفل او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایاتو نه استدلال کړی دی په دې کې د دې رکعتونو کولو ښکاره ثبوت موجود دی. احنافو او مالکیو د حضرت بریده اسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نه استدلال کړی دی دا دارقطني په دې الفاظو کې نقل کړی: **وعن بريدة عن عبدالله بن مغفل المزني قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان عند كل اذانين ركعتين ما خلا المغرب (زجاجة المصابيح ۱ ص ۱۹۹)** .

دې روایت کې د ماښام نه علاوه وختونو کې د دوو آذانونو په مېنځ کې رکعتین ذکر دي او د ماښام استثناء ده احنافو او مالکیو زیر بحث حدیث کې لمن شاء الفاظو نه استدلال کوي په دې کې د کولو او نه کولو اختیار دی او س کول جائز دي خو دې سره د ماښام تاخیر خطره ده د دې وجې نه د نه کولو اختیار

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۱۰/۲، رقم الحديث ۶۲۷، ومسلم في الصحيح ۵۷۳/۱ رقم الحديث: ۳۰۴-۸۳۸، وأبو داود ۵۹/۲ رقم الحديث: ۱۲۸۳، والنسائي ۲۸/۲، رقم الحديث. ۶۸۱، والترمذي ۳۵۱/۱ رقم الحديث ۱۸۵.

هم دی او په دې کې احتياط هم دی . احنافو په مشکوة کې د مختار بن فلفل روايت نه استدلال کړی دی ده نه تپوس وکړی شو آيا حضور ﷺ دا دوه رکعتونه کړي دي نبي کريم ﷺ وفرمايل :

**كان يرانا نصليها فلم يأمرنا ولم ينهنا ( رواه مسلم ) .**

دې روايت نه هم اختيار معلوميږي ځکه چې نبي عليه السلام نه يې په خپله کړي دي، او نه يې چا ته حکم کړی دی او نه يې څوک منع کړي دي ددې په کولو په استحباب او يا جواز باندې عمل کولو کې يو کس د ماښام په تاخير کې واقع کيږي چې مکروه دی ، د احتياط په بناء باندې احناف د نه کولو د پاره حکم ورکړو که تاخير نه وي نو بيا دا کراهيت لغيره هم نه دی بهر حال دا د ومره لوي اختلاف نه دی په کومو ملکونو کې چې عوام او ائمه حضرات د دوو رکعتو پابندي کوي بيا احنافو ته په کار دي چې دا دوه رکعته کوي دغه رنګ په يو ځای کې په رمضان کې افطاري کې ناوخته شي نو خلکو ته په کار دي چې هسې ناستې نه دا دوه رکعته کوئ ځکه چې دا اختلاف د طرفينو نه دا استحباب په حکم کې دی نو معامله آسانه شوه ، د ځينې شارحينو خيال دی چې دا حکم مخکې وو بيا موقوف شو .

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

### امام د مقتديانو د مونځ ذمه دار دی :

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « الْإِمَامُ ضَامِنٌ وَ الْمُؤَذِّنُ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې : نبي عليه السلام فرمايلي دي : امام ضامن دی او مؤذن |
| مُؤْتَمَنٌ اَللّٰهُمَّ أَرْشِدِ الْأَئِمَّةَ وَ اغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِينَ »[1] |
| امانتدار دی ( بيا نبي عليه السلام دا دعاء وفرمايله ) ای الله! امامانو ته هدايت وکړې او مؤذنانو ته بخښش |
| وَ الشَّافِعِيُّ وَ فِيْ أُخْرَى لَهُ بِلَفْظِ المصابيح. |
| وکړې . او امام شافعي رحمه الله د وهم روايت په مصابيح کې ددې په شان رانقل کړی دی . |

**توضيح :الامام ضامن :** يعنې امام د خپلو مقتديانو ذمه دار او کفيل دی چې د هغوي مونځ خراب نه وي امام د قرائت ذمه دار دی او د تعديل ارکان ذمه دار دی د مونځ د رکعتونو ذمه دار دی د مونځونو د ارکانو او د رکعتونو د تعداد او د مونځونو د حرکاتو او حرکاتو ذمه دار دی .

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۴۶۱/۲، وأخرجه أبو داود في السنن ۳۵۶/۱ رقم الحديث . ۵۱۷ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۴۰۲/۱، رقم الحديث : ۲۰۷.

**ضامن**، دا مذکوره مفهوم د احنافو د ذوق مطابق دی د احنافو په نزد د امام مونځ په صحت او فساد سره د مقتدیانو مونځ مربوط دی که د امام مونځ فاسد شو نو د مقتدیانو مونځ به هم فاسد شي .لیکن شوافعو د **ضامن** مفهوم په نګران او رعایت سره کړی دی ځکه چې د دوي په نزد د امام مونځ ځانله دی او د مقتدیانو ځانله مونځ دی د امام حیثیت صرف د منتظم او مرتب او نګران دی که د امام مونځ فاسد شو نو د مقتدیانو مونځ نه فاسدیږي .(المرقات۲/۳۵۲،اشعة اللمعات ۳۲۸).

**والمؤذن مؤتمن**: مؤذن امانت او د امانت دار کیدو مطلب دا دی چې هغه د خلکو د مونځونو صحیح وختونو خیال ساتي خلک روژه نیسي سحر او ماښام دواړه وختونو کې په مؤذن اعتماد کوي او د هغه د آواز انتظار کوي ، همدارنګې مؤذن په چت باندې و خیژي او آذان وکړي په دې کې د خلکو په کورونو کې پاسیدو کې قوي امکان دی ځکه پیغمبر عَلَیْهِالسَّلَام فرمایي مؤذن امانت دار دی هغه یې امین جوړ کړی دی د حدیث په آخر کې هدایت او رهنمائي او مؤذن د پاره د استغفار دعاء غوښتلې ده د دواړو احوالو مناسب دعاء ده .

## د اوه کالو پورې آذان ورکولو فضیلت:

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « مَنْ أَذَّنَ سَبْعَ سِنِيْنَ |
| د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمایل: چا چې آذان ورکړو اوه کاله د |
| مُحْتَسِبًا كُتِبَتْ لَهُ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه). (1) |
| ثواب خاصلولو د پاره نو وبه لیکلی شي ده د پاره خلاصي او نجات د دوزخ نه. |

**توضیح: سبع سنین**: د اوه کالو د خدمت د مودې تعین او آذان ورکولو باندې اعزاز ورکولو حکمت د الله تعالی او د هغه رسول ته حواله دی .(المرقات ۲/۳۵۹).

**محتسبا**: یعني د ثواب په نیت اوه کاله آذان ورکول خالص د الله د وجې یې آذان ورکړو د دنیاوي اغراض او مقاصد نشته دی ځکه الله تعالی ده ته د جنت امتیاز ورکړې ده ، احتساب یعني د ثواب په نیت او د ثواب په ارادې سره کوم کار وکړی شي دې ته احتساب ویلي شي ، ددې په مقابله کې هغه کار چې د ثواب په نیت نه وي بلکې دا کار په معاشره کې د خاطر داري او د ښودنې د پاره وي نو دا د الله تعالی په نزد مقبول نه دی .**براءة**: د خلاصیدو د پاره یو پروانه ورکولی شي دې پروانې ته براءة ویلي

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۴۰۰، رقم الحديث :۲۰۶، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۴۰ رقم الحديث:۷۲۷.

کيږي د دې ذکر په دې حديث کې راغلی دی .

## يوائحې مونځ کولو د پاره هم آذان کول په کار دي :

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَعْجَبُ رَبُّكَ مِنْ رَاعِي

د عقبه بن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: ستا رب خوشحاليږي د هغه چيلو

غَنَمٍ فِي رَأْسِ شَظِيَّةٍ لِلْجَبَلِ يُؤَذِّنُ بِالصَّلَاةِ وَيُصَلِّي فَيَقُولُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي هٰذَا

څرونکي نه په غرونو کې چې آذان کوي او مونځ کوي نو الله ملائکو ته وايي چې وګورئ دې زما بنده ته

يُؤَذِّنُ وَ يُقِيمُ الصَّلَاةَ يَخَافُ مِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِي وَ أَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ »[1].

چې آذان کوي او مونځ کوي او ما نه ويريږي ما هم دده بنده ګناه وبخښله او جنت ته مې داخل کړو .

**توضيح: يعجب ربک** يعني ستا رب راضي کيږي او خوشحاله کيږي که د ک لـه خطاب د الله د طرف نه پيغمبر ته وي نو بيا حديث قدسي دی او که خطاب عوام الناس سره خاص وي بيا حديث قدسي نه شو شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللَّهُ وايي اوله توجيه ډيره راجح ده .(اشعة اللمعات۳۳۹،المرقات۳۵۹–۲/۳۶۰)

**شنطية د قضية** په وزن ده د غر او چت والي ته ويلی شي يخاف مني يعني چراګاه د دنيا ټولو علاقو نه بچ وي او غرونو طرف تـه تلی وي او چې د مـونځ وخت راشي نـو زما د ويـرې د وجې نـه او زما د خوشحالولو د پاره آذان کوي او بيا مونځ کوي په لوي غر باندې د الله تعالی ذکر کوي او بيا مونځ کوي الله تعالی دده نه خوشحاله وي او فرشتو ته وايي وګوره زما بنده زما د ويرې نه اذان وکړي بيا مونځ وکړي هغه يې معاف کړو او جنت کې يې داخل کړو ، علماء ليکي : د آذان نه مراد اقامت او آذان دی او چې کله ځان له مونځ کوي بيا فرښتې د هغه سره اودريږي او مونځ کوي نو د غـه کـس تـه د جماعت ثـواب ملاويږي د دې حديث نه دا تعليم حاصل شو که يو کس ځان له په سفر کې وي يا د کار د وجې نه په صحراء کې وي نو آذان دې کوي .(المرقات ۲/۳۶۰).

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « ثَلَاثَةٌ عَلَى

د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: د قيامت په ورځ به دري کسان د

كُثْبَانِ الْمِسْكِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ أَدَّى حَقَّ اللهِ وَ حَقَّ مَوْلَاهُ

مشکو په يو ډيرۍ باندې وي (اول) هغه غلام چې د الله تعالی حقوق ادا کولو سره سره يې د آقا حقوق هم ادا

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۹/۲ رقم الحديث ۱۲۰۳ ، وأخرجه احمد في مسنده ۱۵۷/۴ .

وَ رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَ هُمْ بِهِ رَاضُوْنَ وَ رَجُلٌ

کړي وي (دویم) هغه کس چې خلکو ته مونځ ورکوي او خلک د هغه نه خوشحاله وي (دریم) هغه کس چې

يُنَادِيْ بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَ لَيْلَةٍ ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]

د شپې ورځې (یعنې همیشه) پنځه مونځونو د پاره آذان کوي ، امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ دا حدیث نقل کړی دی

وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

او وایي چې دا حدیث غریب دی .

**توضیح : كثبان المسک كثبان الكثبة** او **كثب** دا **كثيب** جمع ده **كثيب** د شګې غونډۍ ته ویلې شي په دې کې د جمع کیدو معنی پرته وي امرء القیس د **كثب** تذکره په خپل مشهور کتاب کې کړې ده :

**ویوما علی ظهر الکثیب تعذرت ❁ عَلَيَّ و آلت حلفة لم تحلل**

یوه ورځ محبوبې د شګو د ډیرۍ سره د ملاویدو نه انکار وکړو قطعي طور باندې او نه ماتونکې قسم یې وخوړو .

**وعبد :** د عبد نه مراد مملوک دی برابره خبره ده که غلام وي او یا وینځه وي .

**وهم به راضون :** یعنې قوم د خپل امام نه خوشحاله او راضي وي د هغه د علم او تقوی د وجې نه او د هغه د کردار او د خبرې د وجې نه او د هغه د قرائت او ښائسته آواز د وجې نه او د حق خبرو او انصاف د وجې نه ټول دده نه راضي وي ، په دې حدیث کې د محلې اکثر اهل دین او اهل فراست خلکو رضامندي مراد ده د هر چا نه ، ځکه هغوي خو عموما خفه وي .

**ورجل ينادي :** د مضارع صیغې نه دې خبرې طرف ته اشاره ملاویږي چې مؤذن همیشه او استمرار سره آذان کوي (کذا في اللمعات)

﴿١٤﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « الْمُؤَذِّنُ يُغْفَرُ لَهُ

د حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایلي : آذان کوونکي ته بخښنه دده

مَدٰى صَوْتِهِ وَ يَشْهَدُ لَهُ كُلُّ رَطْبٍ وَ يَابِسٍ وَ شَاهِدُ الصَّلَاةِ يُكْتَبُ لَهُ

د آواز د انتها مطابق کیږي او هر وچ او لوند څیز او مونځ ته رابلونکي ګواهي کوي دده د پاره او دده د پاره

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۱۲/٤، رقم الحديث ۱۹۸٦، وأخرجه احمد في مسنده ۲۵ ۲٦

| |
|---|
| خَمْسٌ وَ عِشْرُوْنَ صَلَاةً وَ يُكَفِّرُ عَنْهُ مَا بَيْنَهُمَا ». (۱) |
| د پنځویشتو (۲۵) مونځونو ثواب لیکلي کیږي او د مونځونو په مینځ کې که ګناه وشي معاف کیږي. او |
| وَرَوَى النَّسَائِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: «كُلُّ رَطْبٍ وَيَابِسٍ» وَقَالَ: «وَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ مَنْ صَلَّى». (والنسائي ۲/۱۲) |
| نسائي دا روایت د کل رطب ویابس پورې نقل کړی او دا الفاظ یې هم نقل کړي چې وله مثل اجر من صلی |

**توضیح: مدى صوته:** یعنې کوم ځای پورې چې د مؤذن آواز رسي دې کې چې څومره فرشتې وي یا انسان ټول په ټوله به د قیامت په ورځ به د مؤذن د پاره ګواهي ورکوي لکه څنګه چې د دې باب حدیث نمبر ۳ کې تیر شو. (الکاشف ۲/۲۴۸، اشعة اللمعات ۳۳۹، المرقات ۲/۳۶۲).

**و شاهد الصلاة:** د دې نه مراد په جماعت شریک کیدونکي خلک دی ده ته د جماعت د وجې نه یو مونځ کې د ۲۵ مونځونو ثواب ورکوي. **وله اجر:** یعنې څومره خلک چې جمعه کې شریک شي مؤذن ته به د هر یو برابر ثواب ورکولی شي ځکه چې مؤذن ټول مونځ ته رابللي دي او دوي ته دعوت ورکوونکی دی **الدال علی الخیر کفاعله** مسلمه قاعده او حدیث دی د دې حدیث نه معلومه شوه د ثواب په اعتبار سره مؤذن د مونځ کوونکو نه افضل دی.

## د تنخواه نه بغیر آذان کول:

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| د عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې ما نبي عليه السلام ته عرض وکړو: ای د الله رسوله! |
| اجْعَلْنِيْ إِمَامَ قَوْمِيْ فَقَالَ: « أَنْتَ إِمَامُهُمْ |
| ما د قوم امام کړه نو نبي عليه السلام وفرمایل: ته د دوي امام شوې، یعنې ما تا سو د خپل قوم امام کړئ خو ته |
| وَاقْتَدِ بِأَضْعَفِهِمْ وَ اتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا » (۲). |
| مونځ کولو کې د ډیر ضعیف خلکو اقتداء کوي او داسې مؤذن مقرر کړه چې آذان باندې پیسې نه اخلي. |

**توضیح: اقتد بأضعفهم**، یعنې مونځ کې د کمزوري خلکو رعایت کوه مه قرائت ډیر اوږده وه چې د

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۲/۴۱۱، و أبو داود ۱/۳۵۳ رقم الحديث: ۵۱۵، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۴۰ رقم الحديث: ۷۲۴.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۶۳ رقم الحديث: ۵۳۱، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۳۶ رقم الحديث: ۷۱۴.

کمزورو خلکو په برداشت کې نه وي او مه د مونځ ارکان دومره سپک کوه چې خلک تنګ شي او مونځ کول پرېږدي .(المرقات ۲/۳۶۴،الکاشف ۲/۲۴۹، اشعة اللمعات ۳۴۰).

**د استیجار علی الطاعات مسئله:** **لا یأخذ علی اذانه اجرا:** دې حدیث نه معلومه شوه چې مؤذن ته په خپل آذان باندې پیسې اخیستل صحیح نه دي په دې باندې قیاس کولو سره امام ته په امامت باندې پیسې اخیستل جائزنه دي تردې چې مطلقاً استیجار علی الطاعات منع دی په دې کې د فقهاو اختلاف دی .

**د فقهاو اختلاف:** امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او شوافعو حضراتو په نزد باندې اجرت اخیستل مطلقاً جائز نه دی ، د حنابلو په نزد طاعاتو یعنې آذان او اقامت تعلیم د قرآن او امامت باندې پیسې اخیستل جائز نه دي د احنافو دوه طبقې دي یوه طبقه د متقدمینو ده او یوه د متأخرینو ده ، د متقدمینو احنافو په نزد استیجار علی الطاعات ناجائز دی ، احناف متأخرین علماء فرمایي : استیجار علی الطاعات په جواز باندې ددوي فتوی نشته دی خو د مجبورۍ په صورت کې د جواز قول یې کړی دی .حالانکه اصل مسئله د عدم جواز ده او د جواز خبره عارضي ده او د مجبورۍ د لاندې ددې قول شوی دی چې د شعائر اسلام حفاظت وشي چې دیني مناسبت ختم نه شي چې کله یو کس امامت او خطابت او تدریس تردې چې آذان باندې پیسې نه اخلي نو خامخا به هر یو کس د شعائر اسلام ده یو منصب حفاظت ذمه دار نه شي ددې وجې نه به د دین ټول احکامات خراب شي لکه څنګه چې د ملحدینو مقصد دی څکه هغوي په اجرت علی الطاعات باندې اعتراض کوي هلته بیت المال نه سلفو او صلحاو خطباو معلمینو او مفتینو ته وظائف ملاویدل څکه به دوي د دین حفاظت کولو ، اوس ددې منصب حفاظت او بچ کیدو د پاره بقدر ضرورت متأخرین د اجرت اخیستو قول پیش کړو څکه چې دا ضرورت دی او الضرورة تتقدر بقدر الضرورة دی نن سبا امام او مؤذن د دین خدمت ته نه ګوري بلکې دنیا ګټل یې مقصود وي ، نو داسې امام او مؤذن د پاره اجرت اخیستل ناجائز دی ، عقود رسم المفتي کې ابن عابدین شامي لیکلي دي : ددې خلاصه داده چې د شریعت یو منصب بغیر د تنخو نهاه باقي نه شي پاتې کیدی مثلاً آذان او امامت نو داسې منصب باقي ساتلو د پاره اجرت اخیستل جائز دی لکه درس او تدریس امامت او آذان او د قضاء او افتاء مناصب شو او په بعضې مناصبو باندې اجرت وانه اخستلی شي نو ختمېږي نه مثلاً تراویحو کې ختم کول ، ټیوشن کول دا داسې مناصب دي چې ددې په ذریعې سره د شریعت یو منصب هم نه ختمېږي نو په داسې منصب باندې اجرت صحیح نه دی که وکتلې شي د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په دور کې مجاهدینو ته عوض ورکړی شوی وو او قاضیانو ته په شرعي فیصلو باندې اجرت ورکړی شوی وو ، خلفاء او امراء ته د دین په خدمت باندې تنخواه ملاؤ شوې وه دا دلائل د جواز د پاره کافي دي .توضیحات جلد څلورم کې ص ۶۴۵ باندې استیجار علی الطاعات باندې مکمل بیان موجود دی دې طرف ته رجوع کول د زړه اطمینان دی بهر حال چې کله د مجبورۍ د وجې په معامله کې جواز پیدا

شو ، د زیر بحث حدیث توجیه به داوي چې دلته اخلاص سره اجرت نه بغیر آذان کولو ترغیب طرف ته اشاره کړې شوې ده ، د اجرت اخیستل او نه اخستل مسئله بیانول مقصود نه ده، داوجه ده چې په مسلمانانو کې اوس هم ډیرې علاقې داسې دي هلته آذان په خپله کوي او اجرت نه اخلي او نه داجرت اخیستلو تصور وي لهذا کوم ځای پورې چې ممکن وي دې حدیث باندې عمل کولو دپاره داسې ماحول جوړول په کار دی .خلاصه دا شوه چې په حدیث کې د اخلاص کوم ترغیب ورکړې شوی دی په دې کې هیڅ کلام نشته دی .

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُولَ عِنْدَ |
| د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام ماته ښودلې وُچې زه و وایم په وخت |
| أَذَانِ الْمَغْرِبِ : « اللّٰهُمَّ إِنَّ هٰذَا إِقْبَالُ لَيْلِكَ وَ إِدْبَارُ نَهَارِكَ وَ أَصْوَاتُ |
| د ماښام آذان کې دا دعاء: ای الله ! دا وخت دی ستا د شپې د راتللو او دورځ د تللو او تا ته د آوازونو کولو |
| دُعَاتِكَ فَاغْفِرْ لِيْ » (۱) |
| والا (یعني مؤذن) ته زما بخښنه او مغفرت وکړې . |

**توضیح** : **اللهم هذا** ، چې د آذان جواب مکمل شي بیا دې ددې نه پس دا دعاء ووایي او په دې دعاء کې د شپې او ورځې بدلیدو طرف ته اشاره ده ځکه چې د ماښام نه پس دا دعاء وایي دې نه دا خبره هم واضحه شوه چې د آذانونو نه پس د مختلفو دعاګانو ثبوت شته خو د آذان او اقامت په مینځ کې چې کوم وخت دی دا د دعاء د قبلیدو بهترین وخت دی ځکه چې په دې کې د مختلفو دعاګانو اهتمام شوی دی . (المرقات ۲/۳٦۵، الکاشف ۲/۲۵۰).

## د آذان او اقامت په مینځ کې دعاء قبلیږي :

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَوْ بَعْضِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ بِلَالًا أَخَذَ |
| حضرت ابو امامة رضي الله عنه یا بعضې اصحاب د نبي علیه السلام فرمایي چې حضرت بلال رضي الله عنه شروع کړو |
| فِي الْإِقَامَةِ فَلَمَّا أَنْ قَالَ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَقَامَهَا اللهُ وَ |
| اقامت چې کله یې **قد قامت الصلاة** ووېلو نو نبي علیه السلام (ددې په جواب کې) وفرمایل: **اقامها الله و** |

أَدَامَهَا » وَ . قَالَ فِيْ سَائِرِ الْإِقَامَةِ : كَنَحْوِ

ادامها یعنې د الله تعالی مونځ قائم او دائم ساته ، او د تکبیر باقي کلمو جواب یې هغه ورکړو کوم چې

حَدِيْثِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي الْأَذَانِ [1].

د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د آذان په حدیث کې شوی دی.

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَا يُرَدُّ الدُّعَاءُ

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی وایي چې نبي کریم عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمایل : نه رد کیږي دعاء په

بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ» [2].

مینځ د آذان او اقامت کې .

**توضیح** :لا یرد الدعاء :د مسلمان دعاء الله تعالی هر وخت په رحمت او مهربانۍ سره قبلوي خود آذان او اقامت چې کوم وخت دی هغه دومره سعادت مند دی او دومره برکت والا دی چې په دې وخت کې د دعاء کولو والا دعاء الله تعالی نه رد کوي، دې حدیث نه مسلمانانو ته دا تعلیم ورکولی شي چې مسلمانانو ته په کار دي چې دوي خپل دنیاوي او اُخروي حاجتونه د الله تعالی نه په دې وختونو کې غواړي، د حدیث ظاهري الفاظونه دا معلومیږي چې دعاء د آذان سره متصل وي یا لږ ساعت پس وغوښتلی شي په هر صورت کې به قبلیږي خو اولی او بهتره داده چې د آذان ختمیدو سره یو ځای کول په کار دي . ( المرقات ۲/۲۶۶، اشعة اللمعات ۳۴۰)

## د دعاء قبلیدو دوه وختونه :

﴿۱۹﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «ثِنْتَانِ لَا تُرَدَّانِ

د حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: دوه دعاګانې نه رد کیږي

أَوْ قَلَّمَا تُرَدَّانِ الدُّعَاءُ عِنْدَ النِّدَاءِ وَ عِنْدَ الْبَأْسِ حِيْنَ

یا یې وفرمایل چې کم رد کیږي یو هغه دعاء چې د آذان په وخت کې کیږي او دویم هغه دعاء چې د جنګ

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۶۰ رقم الحديث ۵۲۸

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۵۸ رقم الحديث ۵۲۱ و الترمذي ۱/۴۱۵، رقم الحديث ۲۱۵، مسند أحمد ۳/۱۱۹

يُلْحِمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا» وَفِي رِوَايَةٍ: «وَتَحْتَ الْمَطَرِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: وَتَحْتَ الْمَطَرِ [1]

په دوران کې چې کله قتل و قتال شروع کیدو په وخت کې وغوښتلې شي.

**توضيح**: او قلما ترددان، ممکن دی چې دا أو د شک د راوي د پاره وي او دا هم ممکن دی چې دا أو د تنويع د پاره وي يعنې د دوو دعاگانو انواع ذکر وي.

**قلما** لفظ عدم ته ويلي کيږي اول صورت کې راوي ته شک شو د **لا تردان** الفاظ ارشاد يې وفرمايل يا **قلما تردان** الفاظ دي. (اشعة اللمعات ۳۴۰، المرقات ۲/۲۶۷).

**عند النداء**: دې نه مراد آذان دی او د آذان وخت د دعاگانو د قبليدو وختونو کې شمارل کيږي، و**عند البأس** بأس سخت جنگ دی او مراد ترينه په جهاد ميدان کې د کفارو په مقابله کې سخت جنگ دی دا هم د دعاء د قبليدو وخت دی يعنې ټوله توجه د الله‌تعالی په ذات باندې پرته وي.

**لحم يلحم** باب **سمع** نه راځي جنگ ته ويلی شي د دې وجې نه هم د پيغمبر عليه الصلاة والسلام نوم رسول **الملاحم** مشهور دی دلته دا صيغه د باب **افعال** او **سمع** نه راځي اگر چې **سمع** نه ډير مستعمل دی، و **تحت المطر** باران حالانکه د آسمان نه کيږي گويا چې الله تعالی د خوا نه کيږي ځکه په دې کې رحمت او برکت دی دې مبارک وخت کې هم دعاء قبليږي که باران په ده باندې وريږي يا صرف هسې وريږي.

## د مؤذن ثواب څنگه تلاي کيږي؟

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الْمُؤَذِّنِينَ |
| د حضرت عبدالله ابن عمرو نه روايت دی وايي چې يو صحابي عرض وکړو يا رسول الله آذان کوونکي په |
| يَفْضُلُونَنَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: « قُلْ كَمَا يَقُولُونَ |
| فضيلت کې زمونږ نه مخکې شو نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل: څنگه چې هغه وايي تاسو هم داسې وايي |
| فَإِذَا انْتَهَيْتَ فَسَلْ تُعْطَ ».[2] |
| چې کله فارغ شئ څه چې غواړئ ورکولی به شي. |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۴۵/۳ رقم الحديث: ۲۵۴۰، وأخرجه الدارمي في السنن ۲۹۲/۱، رقم الحديث: ۱۲۰۰.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۳۶۰/۱ رقم الحديث: ۵۲۴.

**توضیح**: **یفضلوننا** :یعني مؤذنین خلک آذان کولو سره ثواب کې زمونږ نه مخکې کیږي آیا مونږ داسې عمل کولی شو چې په ثواب کې د هغوي سره یو شان شو دا دور صحابه دی چې په دې کې به په نیکیو کې منډه او مخکیوالی کیدو او د هر ملګري به دا خیال وو چې زه د نورو ملګرو نه ثواب کې وروسته پاتې نه شم لکه نن صبا چې د دنیا او پیسې ګټلو کې یو بل نه مخکې کیږي دوي ته پیغمبر علیه الصلاة والسلام د ثواب ګټلو د پاره کم خرچ والا عمل دا وښودو چې مؤذن آذان کوي نو جواب ورکوئ او چې آذان ختم شي دعاء کوي .(المرقات ۲/۳۶۷)

په دې کې به تاسو ته د آذان کوونکو د اصل ثواب په شان ثواب ملاویږي او د دې نه پس دې کوي دې سره به مزید ثواب تاسو ته ملاویږي .شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې لیکي : جواب ورکوونکي چې د جواب سره د آذان نه پس دعاء ووایي نو ممکن دی چې په ثواب کې د مؤذن نه مخکې شي په دې شرط چې مؤذن دعاء ونه کړي .(اشعة اللمعات ۳۴۱).

د دعاء نه شاید هغه دعاء مراد وي چې په حدیث نمبر ٦ کې مذکور وي او عوامو کې مشهوره ده ، دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې څوک اجابت فعلي باندې عمل وکړي جومات ته راشي نو هغه ته هم په کار دي چې د خاموش کیناستو په ځای اجابت قولي وکړي او دا دعاء دې ووایي چې ثواب کې شریک شي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : |
| د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې ما اوریدلي د نبي علیه الصلاة والسلام نه چې فرمایل به یې: |
| إِنَّ الشَّيْطَانَ إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ ذَهَبَ حَتَّى يَكُونَ مَكَانَ الرَّوْحَاءِ. قَالَ الرَّاوِيْ وَالرَّوْحَاءُ |
| چې کله شیطان د مونځ آذان اوري نو تختي تر دې چې مقام روحا پورې ورسي ، راوي وایي : چې روحا د |
| مِنَ الْمَدِيْنَةِ عَلَى سِتَّةٍ وَ ثَلَاثِيْنَ مِيْلاً [1]. |
| مدینې نه شپږ دیرش کلو میټره فاصله باندې دی . |

**توضیح**: **ان الشیطان** ، ممکن ده چې د دې نه د ټولو لوي شیطان مراد وي چې آذان واوري وتختي ، او ممکن ده چې جنس شیطانان مراد وي ، اول صورت ډیر واضح دی .(المرقات ۲/۳۶۸).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/ ۲۹۰ ، رقم الحديث :۱۵-۳۸۸.

الروحا : د یو کوهي نوم دی د مدینې منورې زرې لارې باندې واقع دی یعنې یو کس چې د مدینې نه مکې طرف ته د بدر په لاره ځي شپږ دیرش میله مټره باندې دا کوهي واقع دی د لارې په غاړه باندې د یوې اوږدې فاصلې سره الروحا بورډ لګیدلی دی ، بیا په سړک باندې ځې نو ښځ لاس باندې هلته په یو لویه نالی صحرائي علاقه کې دا کوهي واقع دی ، اوس هم په دې کې یخې او به ملاویږي دې سره یو زور جومات دی وایي چې په خپل دور کې ددې سره اویا (۷۰) پیغمبرانو آرام کړی دی . او سید الاولین والآخرین پیغمبر علیه الصلاة والسلام د دري سوه دیارلس (۳۱۳) صحابه کرامو رضي الله عنهم سره جنګ بدر ته تشریف وړلو نو دلته یې آرام کړی وُ ، یعنې شپه یې تیره کړې وه . بنده ناچیز په رمضان کې د خپلو احبابو سره ددې کوهي او بو نه غسل کړی دی ،دبوتلې په ذریعې سره یې او به راویستلی شي کوم حلک چې د بدر په لاره باندې مکې ته ځي نو دا کوهي په لاره کې راځي ،الله تعالی دې آباد ساتي .مدینه منوره کې مقیم صوفي حاجي نورمحمد افغاني رحمه الله ما ته ویلي وو د روحا کوهي د سړک نه لرې آخوا په یوه محله کې دی او سړک سره چې کوم کوهي دی نو دا بل کوهي دی والله اعلم

قال الراوي : د راوي نه نافع بن طلحه مراد دی چې ددې کنیه ابوسفیان ده .

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ قَالَ : ( إِنِّي لَعِنْدَ مُعَاوِيَةَ |
| د حضرت علقمه بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: زه (یو ورځ) د حضرت معاویه رضي الله عنه |
| إِذْ أَذَّنَ مُؤَذِّنُهُ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ كَمَا قَالَ مُؤَذِّنُهُ حَتَّى إِذَا قَالَ : حَيَّ |
| سره وم ، چې د هغه مؤذن آذان وکړو نو معاویه هغه څه وویل کوم چې مؤذن ویل ، چې کله به مؤذن : حي |
| عَلَى الصَّلَاةِ : قَالَ : لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ فَلَمَّا قَالَ : حَيَّ |
| علی الصلاة وویل ، نو حضرت معاویه رضي الله عنه به وویل : لاحول ولا قوة الا بالله او چې کله به مؤذن حي |
| عَلَى الْفَلَاحِ قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ وَقَالَ بَعْدَ ذَلِكَ مَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ |
| علی الفلاح وویل ، نو حضرت معاویه رضي الله عنه به وویل: لاحول ولا قوة الا بالله او ویل به یې ددې نه پس |
| ثُمَّ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سلم قَالَ ذَلِكَ (۱). |
| هغه چې مؤذن ویل بیا یې وویل: ما دنبي علیه السلام نه اوریدلي دي چې هغه به داسې ویل . |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲/۲۵ رقم الحديث ۶۷۷ ، واحمد في مسنده ۴/۹۱ ۹۲

**توضيح**: علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: لا حول ولا قوة الا بالله نه پس العلي العظيم الفاظ په رواياتو كې نادردي. عقلمه بن وقاص رَحِمَهُ اللَّهُ كبارو تابعينو نه دى (الكاشف ٢/٢٥٣، المرقات ٣٦٨-٢/٣٦٩)

| |
|---|
| ﴿٢٣﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَامَ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره يو ځاى وو چې اودريدو |
| بِلَالٌ يُنَادِي فَلَمَّا سَكَتَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او آذان يې وكړو چې كله هغه (آذان وكړو) غلى شو نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: |
| « مَنْ قَالَ مِثْلَ هٰذَا يَقِينًا دَخَلَ الْجَنَّةَ » [1]. |
| چې كوم كس دغه رنګ په يقين سره (يعني د زړه په خلوص سره) وويل نو جنت ته به داخل شي. |
| ﴿٢٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ يَتَشَهَّدُ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه روايت دى وايي چې كله به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مؤذن نه شهادتين اوريدل نو |
| قَالَ: « وَ أَنَا وَ أَنَا » [2]. |
| فرمايل به يې: او زه هم، او زه هم. |

**توضيح**: **قال وانا وانا**: چې كله به مؤذن په آذان كې شهادتين وويل نو پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به په جواب كې دوه ځله وفرمايل: زه هم ګواهي وركوم د توحيد او رسالت، څنګه ګواهي چې تاسو وركوئ دغه رنګ ګواهي زه هم وركوم. ددې نه معلومه شوه چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د امت په شان په خپل رسالت باندې په ګواهي وركولو باندې مكلف دى، اوس په دې كې بحث او تحقيق دى چې آيا پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د خپل امت په شان اشهد ان محمد رسول الله الفاظ وويلي شي يا اشهد اني رسول الله الفاظ ادا كولى شي. (اشعة اللمعات ٣٤١).

عام علماء دا ليكي: چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د خپل امت په شان د خپل رسالت ګواهي كولى شي اوس حديث نمبر (٢١) كې حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا وايي ما چې د كومې كلمې جواب كې ويلي دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه رنګ كلمو سره جواب وركولو، اوس په ظاهره زير بحث حديث سره تعارض راغلى

---

(١) أخرجه النسائي في السنن ٢/٢٤ رقم الحديث ٦٧٤

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ١/٣٦١

ځکه چې په دې کې وانا، انا الفاظ دي .علماء جواب ورکوي چې نبي عَلَيْهِالسَّلَامْ کله دا الفاظ ويلي دي او کله يې هغه الفاظ ويلي دي چې د هغې تذکره حضرت معاويه رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ کړې ده دواړه ثابت دي.

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ أَذَّنَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِالسَّلَامْ وفرمايل: څوک چې آذان وکړي دولس کاله |
| وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَ كُتِبَ لَهُ بِتَأْذِينِهِ فِي كُلِّ يَوْمٍ |
| ده د پاره جنت واجبيږي او ده ته به د آذان په بدله کې (دده په اعمال نامه کې) هره ورځ (يعني د هر آذان |
| سِتُّونَ حَسَنَةً وَ لِكُلِّ إِقَامَةٍ ثَلَاثُونَ حَسَنَةً »[1]. |
| په عوض) شپیته نیکۍ او د هر تکبیر په بدله کې دیرش نیکۍ لیکلی کیږي. |

**توضيح: ثلاثون حسنة:** آذان کوونکي ته په هر آذان باندې هره ورځ اضافي شپیته (۶۰) نیکۍ ملاویږي او تکبیر کوونکي ته ددې نیمې یعنې دیرش نیکۍ ملاویږي او د شمار راز الله تعالی او رسول الله صَلَّىاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ته حواله دی، د آذان په نسبت اقامت باندې ثواب ځکه لږ دی چې په آذان کې محنت ډیر دی او اقامت کې محنت کم دی او کیدی شي چې د جمهورو په ذوق باندې د اقامتٔ کلماتو کې ایتار دی ځکه یې ثواب کې کموالی دی .(المرقات ۲/۳۷۰، اشعة اللمعات ۳۴۲).

**سوال:** فصل ثاني حدیث نمبر ۱۱ کې د اوه کالو پورې آذان ورکولو باندې د جنت خوشخبري ده دلته دولس کالو باندې خوشخبري ده دا په ظاهره تعارض دی ددې جواب څه دی؟

**جواب:** شیخ عبد الحق رَحِمَهُاللّٰهُ په لمعات کې ددې یو جواب دا کړی چې علامه کرماني بطور ضابطه جواب ورکړی دی که هلته هم شمار او حساب کې اختلاف نظر باندې راشي نو په دې کې تعارض نشته دی ځکه چې عدد اکثر عدد اقل لره منافي نه دی .شیخ عبد الحق رَحِمَهُاللّٰهُ دویم جواب دا ورکړی دی چې اوه کالو پورې آذان کولو ثواب د دوزخ نه د بچ کیدو براءة ملاویږي چې په جنت کې د ددا خلیدو زیری دی دلته زیر بحث حدیث کې د آذان کولو وخت دولس کاله دی چې ډیره موده او وخت دی ځکه یې ده ته د جنت زیري ورکولو سره روزانه شپیته(۶۰) نیکۍ اضافي ورکولی شي.(اشعة اللمعات ۳۴۲).

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: كُنَّا نُؤْمَرُ بِالدُّعَاءِ عِنْدَ أَذَانِ الْمغرب. (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيْرِ) |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ فرمايي چې مونږ ته د ماښام د آذان په وخت کې د دعا غوښتلو حکم شوی دی. |

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲۴۱/۱ رقم الحديث: ۷۲۸، وأخرجه الدار قطني في السنن ۱ ۲۰۱ رقم الحديث ۲۳

**توضيح: لؤمر**: يعنې مونږ ته به حکم کيدو چې مونږ د ماښام اذان په وخت کې دعا غواړو دې حديث نه خو يو خبره دا معلومه شوه چې د اذان په وخت کې او پس د آذان نه د قبوليت د دعا وخت دی، دويمه خبره دا معلومه شوه چې په دې وخت کې دعاء غوښتل که سنت او واجب نه دي نو کم از کم مستحب خو دي ددې اهتمام کول په کار دي خو دا ياد ساتئ په دې دعاء کې لاس اوچتول د سلفو او خلفو نه ثابت نه دي بغير د لاسونو اوچتولو دعاء وکړئ. (المرقات ۲/۳۷۰، اشعة اللمعات ۳۴۲).

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : کيدی شي دا هغه دعاء وي چې د کومې ذکر حديث نمبر ۱٦ کې دی يعنې **اللهم هذا اقبال ليلک وادبار نهارک و اصوات دعاتک فاغفرلي** . دلته دا وضاحت هم ضروري دی چې د عاء د هر آذان نه پس مستحب ده بيا د ماښام تصريح څه ضرورت ؤ؟ (**اخرجه ابوداؤد ۵۳۰**)

ددې جواب دادی کيدې شي د ماښام آذان نه پس دعاء د نورو آذانونو نه ډيره مؤکده او قابل اهتمام وي ځکه يې ددې ذکر وکړو چونکې د ماښام وخت د ورځې په ختميدو باندې او د شپې په راتلو باندې يو لوي انقلاب ظاهريږي ځکه دا وخت قابل اهتمام شو د ماښام آذان او اقامت يو ځای ويلي کيږي يعنې دومره فاصله په کې نه وي ځکه هم دا وخت اهم شو او د دعاء تاکيد په کې شوی دی.



۱۸ ربیع الاول ۱٤۱۰ھ

## باب:

## د آذان نور مسائل:

دې باب سره هیڅ عنوان نشته دی ځکه داد تنوین سره ویلې کیږي ، شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ د دې عنوان داسې بیان کړی دی : **باب في متممات ولواحق الآذان** ، یعنې د مخکنې بابونو سره متعلقه څه د نورو احکامو بیان ، دې باب کې د وخت نه مخکې د آذان مسائل هم دي ، او د آذان د تاخیر مسائل هم دي ، د استحقاق آذان هم مسئله ده او آذان باندې جومات ته راتللو طریقه هم ذکر ده او د مؤذن ذمه دارو ذکر هم دی دا ټول د آذان د متعلقاتو نه دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل:

### بَابُ تَأْخِیْرِ الْأَذَانِ

### د وخت نه مخکې د آذان کولو حکم :

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ | | | | | | | |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې : نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایلي : بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ آذان کوي | | | | | | | |
| بِلَيْلٍ | فَكُلُوْا | وَ | اشْرَبُوْا | حَتّٰى | يُنَادِيَ | ابْنُ | أُمِّ مَكْتُوْمٍ» |
| د سحر په شپه کې نو (روژه کې د پیشنمي) خوراک څښاک کوئ څو پورې چې ابن ام مکتوم آذان نه وي | | | | | | | |
| ثُمَّ | قَالَ | : | وَ كَانَ | رَجُلًا | أَعْمٰى | لَا | يُنَادِيْ حَتّٰى |
| کړی ، ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي : ابن مکتوم یو ړوند سړي دی چې آذان به یې نه کولو تر څو پورې چې به ده ته | | | | | | | |
| يُقَالَ لَهٗ: أَصْبَحْتَ أَصْبَحْتَ. (متفق علیه)[1] | | | | | | | |
| دا نه وو ویلې شوي چې تا سبا کړو تا سبا کړو. | | | | | | | |

**توضیح : ان بلالا ینادی بلیل** ، یعنې بلال به د شپې په وخت کې آذان کولو د سحر کیدو نه مخکې یعنې د تهجد و د پاره به یې آذان کولو ، تاسو خلک د ده آذان سره د پیشمني خوراک مه بندوئ بلکې خورئ یې تر دې پورې چې عبد الله ابن ام مکتوم آذان وشي .(المرقات ۲/۳۷۱).

(۱) أخرجه البخاري ۹۹/۲،رقم الحديث ٦١٧، ومسلم ٨٦٢/٢ رقم الحديث.٣٦-١٠٩٢، والنسائي ١٠/٢، رقم الحديث: ٦٣٧ .

دا خبره ټولو ته معلومه ده چې د آذان مشروعیت د مونځونو د وختونو د تعیین د پاره دی ځکه په دې باندې د ټولو فقهاو اتفاق دی، د سحر نه علاوه ټولو وختونو کې د وخت نه مخکې آذان جائز نه دی که چا وکړو نو دوباره به یې بیا کوي خو د سحر په آذان کې د فقهاو اختلاف دی چې سحر کیدو نه مخکې آذان جائز دی یا نه دی.

**د فقهاو اختلاف**: د امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل او امام ابویوسف رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد د سحر اذان د سحر نه مخکې جائز دی او د اعادې ضرورت یې نشته دی، امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: د نورو وختونو په شان د سحر په وخت کې د سحر کیدو نه مخکې آذان کول جائز نه دي که چا وکړو نو دوباره به یې کوي د ډیرو سلفو هم دا مسلک دی.

**دلائل**: جمهور زیر بحث د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کوي چې په هغې کې: **ان بلالا ینادي بلیل** الفاظ راغلي دي، د دې نه معلومیږي چې د سحر کیدو نه مخکې آذان کولی شي.

(۱) د ائمه احنافو اولنی دلیل په ابوداؤد شریف کې د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی هغه ته نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: **لا تؤذن حتی یستبین لک الفجر هکذا و مد یده عرضاً (رواه ابوداؤد)**

(۲) د احناف دویم دلیل په بیهقي او ابوداود کې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت پیش کوي چې په (**قبل الفجر** آذان کولو باندې) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو تا داسې ولې وکړل؟ جواب یې ورکړو چې کله زه پاڅیدم نو اوس پورې په خوب کې وم نو ما دا خیال وکړو چې صبح صادق شوی دی (نو ما آذان وکړو) په دې وجه ورته پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمایل: اوس لاړ شه او خپل باره کې اعلان وکړه چې زه اوده وم (او د خوب په حالت کې مې په غلطۍ سره اذان وکړو).

(۳) د احنافو دریم دلیل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی: **ان بلالا أذن قبل الفجر فغضب رسول الله صلی الله علیه وسلم (زجاجة المصابیح ج ۱ ص ۲۰۱)**

(۴) د احنافو څلورم دلیل ترمذي کې د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی یو ورځ یې آذان د سحر کیدو نه مخکې کړی وو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته حکم وکړو چې آذان دوباره وکړه، دغه رنګ ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته منسوب دی چې تا خپل غلام ته **قبل الوقت** آذان کولو باندې دوباره کولو حکم ورکړی وو، دغه رنګ احناف د **والمؤذن مؤتمن** نه استدلال کړی ځکه چې د وخت نه مخکې آذان کول د وخت سره خیانت کول دي او مؤذن امین دی ده ته داسې کول نه دي په کار (۵) ائمه احنافو سره عقلي دلیل هم شته هغه داسې لکه څنګه چې د باقي څلور مونځونو وختونو کې آذان د وخت نه مخکې معتبر نه دی دغه شان آذان د سحر نه مخکې صحیح نه دی ځکه چې ټولو کې علت مشترکه دی هغه دا چې آذان د وخت

دتعیین دپاره دی او وخت نه مخکې آذان تجهیل (خلک په جهالت کې اچول دي) تعیین دوخت نه دی.

**جواب**: احناف د حضرت بلال رضی الله عنه د آذان په باره کې وايي چې هغه د پیشمني از تهجد و د پاره ؤ د سحر د پاره نه ؤ د سحر دپاره مستقل طور باندې ابن ام مکتوم رضی الله عنه آذان کولو او حالانکه هغه روند هم ؤ نو خلک به راتلل چې اصبحت اصبحت، حضرت سحر شو، سحر شو، تاسو زر آذان وکړئ نو ابن ام مکتوم به پاڅیده او آذان به یې ورکړو، حالانکه بخاري کې حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د روایت الفاظ دادي: حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: **لا یمنعن احدکم او احد منکم آذان بلال من سحوره فانه یؤذن او ینادی بلیل لیرجع قائمکم ولینبه نائمکم** (بخاري ج۱ ص ۸۷)

یعنې د حضرت بلال رضی الله عنه آذان دې تاسو د پیشمني نه منع نه کړي ځکه چې هغه د سحر کیدو نه مخکې آذان ورکړو چې تهجد ګزار کورونو والا د پیشمني د پاره تیاري وکړي، یا اوده شوي راپاڅي، دا حدیث دلیل دی چې د سحر آذان د وخت نه مخکې نه دی شوی کوم آذان چې مخکې شوې دی هغه به د پیشمني د پاره ؤ دې سره حضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه روایت هم دال دی، د حضرت بلال رضی الله عنه آذان د پیشمني د پاره ؤ دا هغه مسئله ده چې په دې کې څومره حیراتیا وشي یعنې تعجب وشي نو کم دی ټول جمهور یو طرف ته دي او د استدلال د پاره دوي سره دلیل نشته او مذکور حدیث نه ددې مسلک د پاره پټه اشاره هم نشته دی. **فجر مستطیل**: دا په افق د آسمان باندې کرخې ته ویلی شي چې په مینځ کې یې اوږده رڼا وي دویم نوم **ذنب السرحان** او دروغژن سحر دی، **المستطیر** آسمان غاړو باندې خورې شوی رڼا ته ویلی کیږي ددې دویم نوم رښتیني سحر دی.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَن سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَمْنَعَنَّكُمْ مِنْ |
| د حضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه نه روایت دی وايي چې: نبي علیه السلام فرمایي: تاسې دې منع نه کړي د- |
| سُحُورِكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ وَلَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ وَلَكِنِ الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيرُ |
| پیشمني کولو نه آذان د حضرت بلال رضی الله عنه او نه اوږد سحر (صبح کاذب) البته هغه سحر چې خورید ونکي |
| فِي الْأُفُقِ». وَلَفْظُهُ لِلتِّرْمِذِيِّ [1] |
| وي په افق باندې (چې کله صبح صادق را وخیژي نو بیا خوراک څښاک بند کړئ) الفاظ د ترمذي دي. |

(۱) أخرجه مسلم ۷۷۰/۲ رقم الحديث ۴۳ - ۱۰۹۴، وأبوداود في السنن ۷۵۹/۲ رقم الحديث ۲۳۴۶، وأخرجه الترمذي في السنن ۸۶/۳ رقم الحديث ۷۰۶.

﴿۳﴾ وَ عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَابْنُ عَمٍّ لِيْ

د حضرت مالک بن حويرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې زه نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته راغلم او زما د تره زامن

فَقَالَ: «إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَ أَقِيمَا وَ لْيَؤُمَّكُمَا

نو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: چې کله تاسو سفر کوئ نو آذان او تکبير کوئ او امامت دې وکړي تاسو

أَكْبَرُكُمَا». (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ). [۱]

ته چې کوم په تاسو کې مشروي.

﴿٤﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «صَلُّوا

د حضرت مالک بن حويرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته وفرمايل مونځ وکړئ

كَمَا رَأَيْتُمُونِيْ أُصَلِّيْ وَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ

تاسې لکه څنګه چې تاسې ما وينئ چې زه مونځ کوم، او چې کله د مونځ وخت شي، نو تاسو کې دې يو

فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ». [۲] (متفق عليه)

کس آذان وکړي بيا امامت دې وکړي کوم چې په تاسې کې مشروي.

**توضيح**: **كما رأيتموني**: اصل شريعت هغه دی چې د هغې نمونه پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ښودلې ده ځکه پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: ما ته ګورئ زما په شان عمل کوئ، زما طريقه خپله کړئ، زما په طريقه باندې لاړ شئ د خپل طرف نه د عبادت د پاره ترتيب مه جوړوئ.

**فليؤذن لكم احدكم**: يعني د مونځ په وخت کې چې د تاسو نه څوک آذان وکړي برابره خبره ده که په سفر کې وي يا مقيم وي بيا د امامت د پاره دې تاسو کې چې څوک افضل وي نو هغه دې امامت وکړي. (المرقات ۲/۳۷۷).

د دې کلام نه معلومه شوه چې په معاشره او محله کې هر يو کس آذان د پاره مخکې کيدې شي، خو د امامت د پاره د هغې اهل مخکې کول په کار دي. اکبرکم دې نه مراد افضل کس دی صرف عمر کې لوی

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲/۱۱۰، رقم الحديث ٦۲۸، مسلم ۱/٤٥٦، رقم الحديث ۲۹۲-٦۷٤، والترمذي ۱/۳۹۹، رقم الحديث ۲۰٥، ابوداؤد ۱/۳۹٥، رقم الحديث ٥۸۹، نسائي ۲/۹، رقم الحديث ٦۳٦، ابن ماجه ۱/۳۱۳، رقم الحديث: ۹۷۹، مسند احمد ۵/۳٥.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۱۱۱، رقم الحديث ٦۳۱، وأخرجه الدارمي في السنن ۱/۳۱۸، رقم الحديث: ۱۲٥۲، وأخرجه أحمد في المسند ٥/٥۳

کس مراد نه دی بلکه علم او فضل کې د ټولو نه مقدم وي که په دې کې دواړه برابر وي بيا چې عمر کې لوي وي هغه به امام جوړيږي او د عمر نه هغه عمر مراد وي چې د اسلام په حالت کې تير شوی وي د جاهليت د عمر اعتبار به نه وي.

## که د سحر مونځ قضاء شي نو څنګه به اداء کيږي:

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَفَلَ مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې کله را واپس شو د غزوه خيبر نه نو ټوله |
| سَارَ لَيْلَةً حَتَّى إِذَا أَدْرَكَهُ الْكَرَى عَرَّسَ |
| شپه يې سفر وکړو تر دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام باندې خوب غلبه وکړه نو آرام د پاره د شپې آخري حصه کې يو ځای |
| وَ قَالَ لِبِلَالٍ: "اِكْلَأْ لَنَا اللَّيْلَ". فَصَلَّى بِلَالٌ مَا قُدِّرَ لَهُ |
| کوز شو بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وفرمايل چې زمونږ خيال کوه نو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تهجد مونځ يو څه اندازه |
| وَنَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ فَلَمَّا تَقَارَبَ الْفَجْرُ اسْتَنَدَ بِلَالٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ |
| وکړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام او صحابه او ده شو چې کله سحر شو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلې کيجاوې ته ډډه ووهله |
| مُوَجِّهَ الْفَجْرِ فَغَلَبَتْ بِلَالًا عَيْنَاهُ وَ هُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ فَلَمْ يَسْتَيْقِظْ |
| او د سحر (مشرق) طرف ته يې مخ کړو او خوب ورغی چې ډډه يې وهلې وه خپلې کجاوې ته نو را بيدار نه |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَلَا بِلَالٌ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِهِ حَتَّى ضَرَبَتْهُمُ الشَّمْسُ |
| شو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام او نه بلال او نه يو کس د صحابه کرامو نه تر دې چې هغه باندې ګرمي راغله نو د ټولو |
| فَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَهُمُ اسْتِيقَاظًا فَفَزِعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «أَيْ بِلَالُ» |
| نه مخکې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سترګې مبارکې وغړيدې، نبي عَلَيْهِ السَّلَام خفه شو او وي فرمايل: ای بلاله! دا څه |
| فَقَالَ بِلَالٌ أَخَذَ بِنَفْسِي الَّذِي أَخَذَ بِنَفْسِكَ |
| وشو؟ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو ای د الله رسوله! زه هم هغه څيز نيولی وم چې کوم تاسو نيولي وي |
| قَالَ: «اقْتَادُوا» فَاقْتَادُوا رَوَاحِلَهُمْ شَيْئًا ثُمَّ |
| (يعنې خوب) نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل: دې ځای نه روان شئ نو ټولو خلکو لږ ساعت مزل وکړو بيا |
| تَوَضَّأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الصَّلَاةَ |
| نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام اودس وکړو او بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې د تکبير حکم ورکړو د مونځ د پاره يې تکبير وکړو |

فَصَلّٰى بِهِمُ الصُّبْحَ فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ قَالَ " مَنْ نَسِيَ الصَّلَاةَ
نبي علیه السلام صحابو ته مونځ ورکړو چې د مونځ نه فارغ شو نو وي فرمايل: کوم کس نه چې مونځ هیر شي
فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَالَ: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِيْ﴾ . (رَوَاهُ مُسْلِم) .[1]
نو د یادیدو سره یې ژر بیا کوئ ځکه چې الله تعالی فرمايي : زما یادیدو سره مونځ کوئ.

**توضیح : من غزوة خیبر** ، غزوه خیبر په (سنه هـ) کال کې راغلې وه د مدینې منورې د طرفونو نه بنو نظیر وغیره اکثر یهودیان د خیبر علاقو کې یو ځای شوي وو مدینه منوره چونکې د اسلام مرکز جوړ شوی وو او دا یهودیان هر وخت د اسلام د مرکز خلاف د بهر د کفارو سره یې رابطې ساتلې ، د عقل او تدبیر تقاضا ده چې اسلامي مرکز د خطرې نه او یهودیانو ددې ناپاکو فتنو نه پاک کړی شي ، پیغمبر علیه الصلوٰة والسلام د صلح حدیبیه نه واپس کیدو سره د څه تاخیر نه علاوه په صلح حدیبیه کې شامل تقریبا یو نیم زر صحابو سره په خیبر باندې حمله وکړه د مدینې منورې نه خیبر د شمال طرف ته ۹۶ میله فاصلې باندې واقع دی دغه وخت دا علاقه په اوه لویو مضبوطو جنګي قلعه ګانو باندې مشتمل وه د خیبر په زمکه کوزیدو سره **نبي الملاحم** دا تاریخي جملې وفرمایلی : **الله اکبر خربت خیبر ، الله اکبر خربت خیبر ، الله اکبر خربت خیبر** ، یوې میاشتې پورې د اسلام لښکرو د خیبر محاصره کړې وه بیا ټولې قلعه ګانې فتح شوې د کفر ۹۲ یهودیان مړه شو او د اسلام شپاړس کسان شهیدان شول . په ټوله علاقه باندې د اسلام جهنډه اوچته شوه ، حضرت علي رضي الله عنه قموص قلعه فتح کړه او باب خیبر یې مات کړو ددې د وجې نه حضرت علي رضي الله عنه ته د فاتح خیبر لقب ملاؤ شو . (المرقات ۲/۲۷۶).

**قفل** : د جنګ میدان نه واپس راتلونکو مجاهدینو ته د **قفل** لفظ استعمال شوی .

**الکری** : د خوب ډیر اقسام او درجې دي چې کله په سترګو د خوب اثر کیږي هغې ته سنه ویل کیږي چې کله سپک اثر په دماغو باندې وي هغې ته کری ویلې کیږي چې کله اثر په زړه باندې وي نعس ورته ویلې شي . دې الفاظو کې معمولي فرق دی خو دا الفاظ مترادفه دي ټولو نه ابتدائي خوب ته اوسیلی ویلې شي چې کله په ټول بدن باندې د خوب اثر وشي هغې ته نوم ویلې کیږي.

**عرس** د **تعریس** د باب **تفعیل** نه دی د شپې په آخرې حصه کې پړاو اچولو ته **تعریس** ویلې شي.

**اکلألنا اللیل** : یعني زمونږ د شپې پیره (څوکیداري) کوه **اکلا** باب **فتح یفتح** نه د امر صیغه ده د یو څیز

(۱) أخرجه مسلم ۱/۴۷۱ رقم الحديث ۳۰۹-۶۸۰، والنسائي ۱/۲۹۵، رقم الحديث ۶۱۸ ، وابن ماجة ۱/۲۲۷، رقم الحديث: ۶۹۷.

نګراني او حفاظت او څوکیداری ته کلا ویلې شي

**موجه الفجر** : دا جمله د استند ضمیر نه حال واقع ده او موجه د باب تفعیل نه د اسم فاعل صیغه ده چې د اوړېدو په معنی کې دی اصل عبارت داسې دی : **ای موجه راحلة الی الفجر** . ددې مطلب دا شو چې هغه سورلۍ په داسې انداز کې کینوله چې د هغې سره یې ډېره وهمه و د سحر طرف ته یعنې مشرق طرف ته یې مخ کړو ( کذا في اللمعات )

شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لیکي : **موجه د متوجه** په معنی کې دی یعنی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مشرق طرف ته د سحر راختو د پاره سورلۍ ته ډېره وهلي وه او متوجه شوي وو .

**اقتادوا** داد باب **افتعال** نه د امر صیغه ده اصل کې داد قود نه دی چې د وښ د مهار نه نیولو او راښکلو ته ویلي شي .دغه رنګ د سوق او د شړلو په معنی کې هم دی **فاقتادوا** : ددې باب نه د ماضي صیغه ده یعنې ټول خلک ددغه ځای نه سورلۍ واغستې او روان شول .

**سوال** : سوال دادی چې د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کله سترګې خلاصې شوې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم فورا د مونځ اهتمام ولې ونه کړو او وادۍ نه لرې مخکې تلو سره د مونځ کولو څه حکمت دی ؟

**جواب** : دلته احناف او شوافع جدا جدا حکمت ذکر کوي دې سره د مسلک فقهي تائید حصیږي . احناف علماء فرمایي : د لمر راختو مکروه وخت وو دغه وخت کې قضاء مونځ د کول مکروه وو ځکه پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لرې د مخکې تللو حکم صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته ورکړو چې مکروه وخت ختم شي .

مسلم شریف کې روایت دی :**فسرنا حتی اذا ارتفعت الشمس نزل(ص ۲۳۹)** دا د احنافو د قول تائید دی .د شوافعو په نزد ددغه رنګ قضاء مونځونو ادا کول د سحر کیدو په وخت کې جائز دی پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته ددغه ځای نه د تللو حکم وکړو چې دغه ځای کې د شیطانان اثر او د اوسیدو ځای وو په بعضې روایاتو کې هغه طرف ته اشاره هم موجود ده .

**سوال** : دلته یو مشهور سوال دی هغه دا چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي : د خوب په حالت کې زما سترګې اوده کیږي خو زما زړه نه اوده کیږي بلکې ویخ وي بیا د ویخ پاتې کیدو باوجود د پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه د سحر مونځ ولې قضاء شو ؟

**جواب** : اکثرو شارحینو دا جواب کړی دی چې په بدن کې د هریو اندام خپله خپله ذمه داري وي د سحر موندل او لیدل د زړه وظیفه نه ده بلکې داد سترګو ذمه داري ده دغه وجه ده که یو کس سترګې بندې کړي او د بیدارۍ په حالت کې سحر کیدل وغیره او د لیدونکو څیزونو ادراک نه شي کولې حالانکه زړه ویخ دی او سړي هم بیدار دی صرف سترګې بندې دي په خپله حضرت ابن ام مکتوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بیدارۍ په حالت کې د سحر کیدو ادراک نه شو کولی ځکه چې هغه ړوند وو خو زړه یې بیدار وو دلته هم د پیغمبر

معامله داسې وه د سحر ليدلو وظيفه د سترګو وه او سترګې بندې وې خو د زړه د ويخ کيدو باوجود هم د سحر کيدو ادراک ونه کړه او مونځ قضاء شو ، خو د ګرمئ د وجې نه چې کله په بدن باندې اثرو شونو بيا د سحر کيدو او د نمر راختو احساس وشو ، د پيغمبر عليه الصلاة والسلام مونځ قضاء کيدل او د وحې او کشف په ذريعې سره د الله تعالى د طرف نه د پاڅيدو انتظام نه کول په دې کې د الله تعالى مرضي او حکمت وو چې د دې فعل په ذريعې سره ستا امت ته په داسې کارونو کې يو طريقه او سنت ملاؤ شي د توضيحات جلد اول ص ۳۶٦ باندې د دې تفصيل ذکر شوى دى هلته يې وګورئ .

**و اقام الصلاة** ، حضرت بلال رضي الله عنه ته حضور صلى الله عليه وسلم د تکبير حکم ورکړو د مونځ د پاره يې تکبير ويلو او پيغمبر عليه الصلاة والسلام سره يې مونځ وکړو .د دې لفظ نه په ظاهره دا معلوميږي د قضاء مونځ د پاره صرف تکبير کول کافي دى آذان کول ضروري نه دى د امام شافعي رحمه الله نوى قول هم داسې دى خو د شوافعو د علماو زوړ قول او معتمد مسلک دا دى چې د قضاء مونځونو د پاره آذان ضروري دى .د احنافو مسلک هم دا دى چې اقامت او آذان دواړه ضروري دي صاحب بدايه په هدايه کې ليکي چې پيغمبر عليه الصلاة والسلام د ليلة التعريس د سحر قضاء مونځ د آذان او اقامت سره کړى دى ، شيخ ابن همام رحمه الله په فتح القدير کې د مسلم شريف يو اوږد حديث حواله ورکړې ده چې په دې کې د ليلة التعريس قصه ده د دې حديث کې الفاظ دا دي : **ثم اذن بلال بالصلاة فصلى رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعتين** ( مسلم ج ۱ص ۲۳۹) دابوداؤد شريف په يو روايت کې دا الفاظ دي : **انه صلى الله عليه وسلم امر بلالا بالاذان و الاقامة حين ناموا من الصبح و صلوها بعد ارتفاع الشمس ( كذا في اللمعات ۳٤٤)** د دې تفصيلي حديث نه پس دا ويلې شي چې زير بحث حديث کې کوم الفاظ دي يعنې اقام الصلاة دا مجمل دى تفصل د نظر نه ، نه شو غورځولی .

**مسئله** : که يو کس د سحر مونځ قضاء کړو نو د فرض مونځ سره سنت به هم کوي که چيرته د زوال نه مخکې قضاء کوي او که د زوال نه پس يې وکړو نو بيا د سحر سنت به نه کوي ، که د يو کس نه د سحر سنت پاتې شو او فرض يې وکړل نو اوس د لمر راختو نه پس يې نه شي کولى خو که د ثواب د حصول د پاره هغه دوه رکعته نفل وکړي دا مسئله به وروستو په تفصيل سره راځي .

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا أُقِيمَتِ |
| د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه الصلاة والسلام و فرمايل : چې کله تکبير وويل شي |

الصَّلَاةُ فَلَا تَقُوْمُوْا حَتّٰى تَرَوْنِيْ قَدْ خَرَجْتُ ". (متفق عليه) (۱)

د مونځ د پاره نو تر څو پورې چې زه د حجرې نه نه یم راوتی تاسو مه اودریږئ .

## جمعه کې د شامليدو د پاره منډه مه وهئ :

﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه السلام فرمایلي: چې کله اودریږي مونځ نو تاسو

فَلَا تَأْتُوْهَا تَسْعَوْنَ وَ أْتُوْهَا تَمْشُوْنَ وَ عَلَيْكُمُ السَّكِيْنَةُ فَمَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْا

په منډه مه راځئ بلکې بنه په مزه او په خپل چلن سره راځئ نو چې څومره مونځ تاسو ونیوه هغه وکړئ ،

وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوْا». (متفق عليه) (۲)

او کوم چې فوت شي هغه پوره کړئ .

وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: « فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا كَانَ يَعْمِدُ إِلَى الصَّلَاةِ فَهُوَ فِيْ صَلَاةٍ ».

د مسلم په یو روایت کې ذکر دي: څوک چې د مونځ اراده وکړي نو هغه (حکماً) په مونځ کې شمارل کیږي

**توضيح : فلا تأتوها تسعون** ، یعنې بنه په سکون او وقار باندې مونځ له راتلل کوئ په تیزۍ سره په منډه مونځ له مه راځئ ، که تاسو ته د ثواب فکروي هغه به تاسو ته ملاویږي او که تاسو ته څه بل سوچ لاحق وي هغه پریږدئ . (المرقات ۲/۳۷۹).

**سوال** : دلته سرسري سوال دی : په قرآن کې ﴿ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ ﴾ (بقرة آيت: ۱۴۷) او ﴿ سَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ ﴾ (آل عمران آيت : ۱۳۳) نه معلومیږي ، د نیکو طرف ته منډه وهل مطلوب او مقصود دي بیا په دې حدیث کې نیکۍ طرف ته منډه وهلو باندې ولې منع راغلې ؟ **جواب** ، د قرآني آیتونو مطلب دادی چې په وخت باندې د نیکو تیاري کوئ او په بنې طریقې سره یې حاصل کړئ د دې آیتونو مطلب دا نه دی چې په وخت کې کوتاهي وکړئ او بیا په آخره کې نیکۍ طرف ته منډه وهئ ( كذا في اللمعات )
اصل حقیقت دادی چې څوک چې مونځ کې د شاملیدو د پاره منډه وهي هغه کس اکثر خلک د ثواب په

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۱۹/۲،رقم الحديث : ۶۳۷، ومسلم في الصحيح ۲۲/۱ رقم الحديث:۱۵۶-۶۰۴، وأبو داود ۳۶۸/۱ رقم الحديث ۵۳۹، والنسائي ۸۱/۲، رقم الحديث ۷۹۰ ، والترمذي ۳۹۵/۲ رقم الحديث ۵۱۷

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۹۰/۲،رقم الحديث ۹۰۸، ومسلم في الصحيح ۴۲۰/۱ رقم الحديث:۱۵۱-۶۰۲، وأبو داود ۳۸۴/۱ رقم الحديث :۵۷۲، والنسائي ۱۱۴/۲، رقم الحديث: ۸۶۱ ، والترمذي ۱۴۸/۲ رقم الحديث . ۳۲۷ ، أخرجه أحمد في المسند ۲۹۶/۵.

نیت باندې نه وي بلکې بیا ورته ځان ته مونځ کول یو لوي غرا و زحمت ښکاري یا ددې د پاره منده وهي چې رکعت تللو نه پس خلک ما ته ګوري چې وګوره ده نه رکعت تللې دی صرف په دې نیت باندې منډې وهي که د ثواب نیت وي نو بیا په وخت باندې د کور نه ولې نه راوتو چې په سکون سره مونځ کې شامل شوی وی او اوس هم چې دا راځي نو ددې حدیث مطابق ده ته ثواب ملاویږي او دا په مونځ کې شمارل کیږي بیا د منډې وهلو مطلب څه دی او خدای مه کړه که دا کس په فرش باندې راپریوځي نو بیا به څه وي او یا دا چې د سپین ګیري سره یا د غټ وجود او بدن سره دا خوند نه کوي څومره بد لګي اسلام مونږ ته د عبادت کولو وقار ښائي چې د خندا ذریعه جوړه نه شي که څوک د تکبیر اولی یا د جمعې ثواب حاصلولو د پاره تیز تیز قدم کیدي بیله خبره ده ددې ګنجائش شته، په دې کې هم داسې منډه نشته.

**فهو في صلوة**: صلوة کې تنوین د تنکیر د پاره دی یعنې دا کس یو قسم په مونځ کې دی او هغه حکمي مونځ دی او هغه ته د مونځ ثواب ملاویږي ځکه چې داد ثواب په نیت سره ځي اګر چې حقیقي مونځ کې شامل نه وي.

وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِيْ

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## چرته چې شیطاني اثرات وي هغه ځای نه تختیدل په کار دي:

| |
|---|
| ﴿۸﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ أَنَّهُ قَالَ : عَرَّسَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَيْلَةً |
| د زید بن اسلم رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه الصلاة والسلام اودریدو د شپې په آخره حصه کې د |
| بِطَرِيْقِ مَكَّةَ وَ وَكَّلَ بِلَالًا أَنْ يُوْقِظَهُمْ لِلصَّلَاةِ فَرَقَدَ |
| مکې په لاره کې او حکم یې وکړو بلال رضي الله عنه ته چې د مونځ د پاره تول راپاځوي چې کله تول اوده شول |
| بِلَالٌ وَ رَقَدُوْا حَتَّى اسْتَيْقَظُوْا وَقَدْ طَلَعَتْ عَلَيْهِمُ الشَّمْسُ فَاسْتَيْقَظَ الْقَوْمُ وَ قَدْ فَزِعُوْا |
| د حضرت بلال رضي الله عنه سترګې هم پټې شوې تول د لمر راختو وخت کې راپاڅیدل خلک ویریدل (د مونځ |
| فَأَمَرَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْكَبُوْا حَتَّى يَخْرُجُوْا مِنْ ذٰلِكَ الْوَادِيْ وَ قَالَ: |
| په قضا کیدو باندې) نبي علیه السلام و فرمایل چې سورلو باندې کینئ او ددې ځنګل نه وځئ او وې فرمایل |
| «إِنَّ هٰذَا وَادٍ بِهِ شَيْطَانٌ». فَرَكِبُوْا حَتَّى خَرَجُوْا مِنْ ذٰلِكَ الْوَادِيْ |
| دا داسې ځنګل دی چې په دې شیطان مسلط دی تول په سورلو باندې د ځنګل نه ووتل یو ځای ته ورسیدل |

ثُمَّ أَمَرَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْزِلُوا وَأَنْ يَتَوَضَّئُوا وَأَمَرَ بِلَالًا أَنْ يُنَادِيَ لِلصَّلَاةِ أَوْ يُقِيمَ
نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا و دس حکم وکړو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې د آذان او تکبير کولو حکم وکړو بيا يې د خلکو
فَصَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَيْهِم وَ قَدْ رَأَى مِنْ فَزَعِهِمْ
سره د سحر قضاء مونځ ادا کړو چې کله د مونځ نه فارغ شو خلک يې د خفگان په صورت کې وليدل نو وې
فَقَالَ : « يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ اللهَ قَبَضَ أَرْوَاحَنَا وَ لَوْ شَاءَ
فرمايل : اى خلکو ! الله تعالى د اوده کيدو په وخت کې روحونه اخيستي وو که الله تعالى غوښتل نو د
لَرَدَّهَا إِلَيْنَا فِي حِينٍ غَيْرِ هٰذَا فَإِذَا رَقَدَ أَحَدُكُمْ عَنِ الصَّلَاةِ أَوْ نَسِيَهَا
لمر راختو نه مخکې به يې واپس کړې وى که په تاسو کې څوک د مونځ نه غافله شي او مونځ کول يې هير
ثُمَّ فَزِعَ إِلَيْهَا فَلْيُصَلِّهَا كَمَا كَانَ يُصَلِّيهَا فِي وَقْتِهَا » ثُمَّ
شي هغه ته په کار دي چې په هغه طريقې سره مونځ وکړي لکه څنګه چې يې په خپل وخت کې کوي بيا
الْتَفَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ فَقَالَ : « إِنَّ الشَّيْطَانَ أَتَى بِلَالًا وَ
ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته متوجه شو او وې فرمايل : چې شيطان راغى حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته او
هُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فَأَضْجَعَهُ ثُمَّ لَمْ يَزَلْ يُهَدِّئُهُ
دا په مونځ باندې ولاړ وُ او شيطان هم دده سره وُ او دا يې کجاوې ته په ډډه وهلو مجبوره کړو او ټالې
كَمَا يُهَدَّأُ الصَّبِيُّ حَتَّى نَامَ » ثُمَّ دَعَا
ورکول کيدې لکه څنګه چې ماشومانو ته ټالئ ورکول کيږي تردې چې خوب پرې غلبه وکړه بيا را وبللو
رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَالًا فَأَخْبَرَ بِلَالٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلَ الَّذِي أَخْبَرَ
نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نو بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته هغه خبرې وکړې کومې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام
رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا بَكْرٍ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ :
ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کړې وې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان واوريدو او وې ويل
أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللهِ . رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا(۱)
چې زه گواهي ورکوم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د الله تعالى رسول دى (دا روايت امام مالک مرسلاً نقل کړې)

(۱) أخرجه مالک مرسلا في الموطأ ۱/۱٤، رقم الحديث : ۲٦، كتاب وقوت الصلاة .

**توضيح** : **بطريقة مكة** : داسې معلومېږي چې دا واقعه بله ده او حديث نمبر ۵ کې چې کومه واقعه تيره شوې ده هغه بله ده دلته **بطريقة مكة** لفظ دی او هلته د خيبر ذکر دی چې په لاره د مدينه کې واقع ده . (المرقات ۲/۳۸۲).

شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي : کيدی شي واقعې دوه وي يا راوي ته وهم شوی وي او **طريقة مكة** لفظ يې وويله ،**ان ينادي للصلاة او يقيم** دلته **أو** لفظ د شک د پاره دی راوي ته شک شو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ **ينادي** لفظ ويلی دی او که **يقيم** لفظ يعنې آذان کولو حکم يې ورکړو يا د اقامت کولو حکم يې ورکړو ، بعضې شارحين ليکي **أو** شک د پاره نه دی بلکې د واؤ په معنی دی ددې نه مراد معنی د جمع ده يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي چې آذان او اقامت دواړه يو ځای وکړې (اشعة اللمعات ۳۴۵) . ددې نه د احنافو د مسلک تائيد کيږي.

**وقد رأى من فزعهم** : صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په دې خبره باندې ډيرزيات خفګان وکړو چې د دوی مونځونه ولې قضا شونو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ددوي خفګان لرې کولو د پاره دوی ته تسلي ورکړه چې دا د الله تعالی د طرف نه تکويني فيصله وه الله تعالی وکړه که الله تعالی نه غوښتلی نو داسې به يې نه کولی تاسو خفه کيږئ مه تاسو ته د مونځونو په قضا کيدو باندې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نمونه او طريقه وښودله ، يا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ټوله قصه بيان کړه چې شيطان د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره څه وکړه .**يُهَدِّؤُهُ** :دلته دا لفظ د باب **افعال** نه دی مور چې کله ماشوم ته غيږه کې تالئ ورکوي دې ته **اهداء** ويلي کيږي داد سکون په معنی کې دی دا صيغه د **فتح يفتح** نه هم راځي چې د سکون او د ودريدو په معنی کې دی.**اشهد انک رسول الله** ، (کله چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ بلال ته د شيطان د کاروائی خبره واوروله او بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې تصديق وکړو نو دا د نبوت معجزه شوه) ، د نبوت د اثبات د پاره په دې باندې ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ګواهي ورکړه چې تاسو د الله تعالی حق پيغمبر يې ،دې واقعې ته **ليلة التعريس** ويلي کيږي.

## د مؤذن په ذمه دوه امانتونه دي :

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " خَصْلَتَانِ |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې : نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايلي دي : دوه خصلتونه دي |

مُعَلَّقَتَانِ فِيْ أَعْنَاقِ الْمُؤَذِّنِيْنَ لِلْمُسْلِمِيْنَ : صِيَامُهُمْ وَ صَلَاتُهُمْ ". [1]

چې زوړند دي په غاړو د مؤذنينو کې يو د هغوی روژې ، او دويم د هغوی مونځونه.

**توضيح** : **خصلتان معلقتان** ، د مسلمانانو دوه امانتونه او بنيادي ذمه داری د مؤذن په څټ (ګردن) سره نختې وي او مؤذن د هغې د حفاظت ذمه دار دی ، دې کې د ټولو نه ړومبې څيز روژه ده ځکه چې مسلمانان د پيشمنې په وخت کې د مؤذن په آذان باندې اعتماد کوي ، د هغه آذان سره روژه بندوي او دغسې ورسره روژه ماتوي ، دويم څيز مونځ دی د مونځ د وخت راتللو پته په آذان سره لګي که موذن خپل آذان کې مخکېوالی او وروستووالی کوي او بې وخته آذان کوي ، د عامو مسلمانانو سره وخت کې خيانت دی ځکه مؤذن ته په کار دي چې د آذان په وختونو کې احتياط کوي .(المرقات ۲/۳۸۴، اشعة اللمعات ۲۴۶).

پاکستان ، هندوستان ، افغانستان او بنګله ديش کې د مونځ د تعيين د پاره آذان کولی شي ، د وخت د تعيين د پاره نه، حالانکه آذان د وخت د تعيين د پاره مشروع دی په دې خبره باندې افسوس دی. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ دې حديث کې د ترکيب حوالې سره ليکلي دي چې **خصلتان** موصوف دی او **معلقتان** د دې صفت دی دواړه مبتداء شو د **للمسلمين** د پاره چې خبر دی او **صيامهم وصلوتهم** د **خصلتان** د پاره بيان دی . ( الکاشف ۲/۲۴۱).

شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي : متبادر دا دی چې **خصلتان** مبتداء دی او **معلقتان** يې خبر دی دا اعتراض چې مبتدا نکره څنګه واقع کيږي نو ما څو ځله ليکلي دي اصل دارومدار په فائدې باندې دی که ده مبتدا نه فائده او استفاده وي نو نکره واقع کيدو کې هيڅ حرج نشته دی ( لمعات ) .



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۲۳٦ ، رقم الحديث ۷۱۲.

۱۹ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

## بَابُ الْمَسَاجِدِ وَمَوَاضِعِ الصَّلَاةِ :
## د جومات او د مونځ د مقاماتو بيان :

قال الله تعالى: ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللهِ مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ﴾ (سورة التوبة آيت :۱۸).

وقال الله تعالى: ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللهِ أَحَدًا﴾ (سورة جن آيت : ۱۸).

و قال الله تعالى : ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا﴾ (سورة آل عمران آيت : ۹٦).

مساجد جمع د مسجد ده ، مسجد د جيم په کسرې سره ويل خلاف القياس دی د قياس مطابق په جيم باندې زور ويل په کار دي اګر چې سنت کې نه دي راغلي بهر حال چې کوم ځای د مونځ په غرض جوړ شي او خلکو ته په هغې کې د مونځ کولو اجازت ورکړی شي هغه جومات وي اوس دا وقف ګرځي او د قيامت پورې به دا جومات وي نه دا خرڅولی شي نه په دويم ځای سره بدلولی شي ، د آسمان طرف نه واخله د ځمکې تر ويخ پورې د جومات ځای وي د دنيا په تاريخ کې اولنی جومات بيت الله او مسجد حرام د عبادت د پاره مقرر شوی وو او بيا څلويښت کاله پس بيت المقدس هم د عبادت د پاره مقرر شو ،اسلامي دنيا کې د هجرت نه پس د تولونه مخکې د مسجد قباء بنياد ايخودی شوی دی د فضيلت په اعتبار سره افضل مسجد الحرام دی ،بيا مسجد نبوي ﷺ دی بيا بيت المقدس دی او څلورم نمبر باندې مسجد قباء دی.

مواضع الصلاة :يعنې د مونځ مقاماتو نه هغه ځايونه مراد دي چې په هغې کې مونځ کول مکروه يا غير مکروه وي د دې تفصيل په راتلونکي حديث کې راځي ، د دې لفظ کې د مونځ کولو هغه ځايونو طرف ته اشاره ده چې هغه جومات نه دی .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:
## په کعبه کې د ننه د مونځ کولو حکم :

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: لَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ دَعَا فِي |
| د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې کله داخل شو نبي عليه الصلاة والسلام بيت الله ته او دعا يې وکړه په |
| نَوَاحِيهِ كُلِّهَا وَلَمْ يُصَلِّ حَتَّى خَرَجَ مِنْهُ فَلَمَّا خَرَجَ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِي قُبُلِ |
| ټولو طرفونو کې او په غير د مونځ کولو نه بهر راووتو هر کله چې راووتو نو دوه رکعته مونځ يې وکړ مخامخ |

الْكَعْبَةِ وَ قَالَ: « هٰذِهِ الْقِبْلَةُ ». [1]

کعبې ته او وې فرمايل: دا قبله ده، مسلم دا روايت د ابن عباس نه او هغه د اسامه بن زيد نه روايت کړې.

**توضيح**: **هذه القبلة**، پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې کله د مکې د فتح کيدو په موقع باندې کعبې ته دننه تشريف وروړو نو د کعبې دروازې ته مخامخ يې دوه رکعته مونځ وکړو او ويې فرمايل: دا قبله ده، د ارشاد مطلب دا دی چې اوس به د قيامت پورې بيت الله قبله وي دا به کله هم نه منسوخ کيږي، ددې دا مطلب نه دی چې د دروازې طرف ته قبله ده او باقي طرفونه قبله نه ده بلکه د بيت الله څلور واړه طرفونه قبله ده، د پاکستان قبله دغه طرف ته ده چې کوم طرف ته پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ارشاد وفرمايلو او هغه د بيت الله دروازه ده چې د مشرق طرف ته واقع ده. (المرقات ۲/۳۸۷، اشعة اللمعات ۳۴۶).

**تعارض بين الحديثين**: دې کې اختلاف دی چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ کعبه کې دننه نفل کړي دي او که نه؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د روايت نه دا معلوميږي چې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کعبه کې دننه مونځ نه دی کړی خو حضرت عبد الله بن عمر او حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د روايت نه معلوميږي چې پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په کعبه کې دننه مونځ کړی دی (لمعات)

**دفع تعارض**: شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: د حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت ته ترجيح ورکړی شوې ده ځکه چې هغه مثبت ده او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت منفي دی او کله چې د مثبت او منفي په مينځ کې تعارض راشي نو ترجيح به مثبت ته ورکوو ځکه چې اثبات کې اصل خبر سره څه علمي اضافه هم کيږي لکه څنګه چې په اصول فقه کې مذکور دي، دفع د تعارض د پاره دويم جواب دا دی چې د حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په کتو کې خلل واقع شوی دی هغه په خپله دعا کې مشغول وو او لرې هم وو ځکه ده نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په مونځ نه دی ليدلی، حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نزدې ؤ او پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يې هم ليدو، ځکه د هغه روايت راجح دی، دا جواب هم کيدی شي چې د کعبې داخليدل دوه ځلې شوي دي يو ځل يې نفل کړي دي او يو ځل يې نه دي کړي، ددې تعارض دريم جواب دا دی چې حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پيغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د تصويرونو ورانولو د پاره اوبو پسې بهر ليږلی وو کيدی شي په دغه وخت کې يې نفل کړي وي. بهر حال هريو خپله خپله مشاهده بيان کړه خو په هغې کې شک نشته چې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کعبه کې دننه مونځ کړی وي راتلونکي د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث نمبر ۱۲ دې باندې واضح دلالت کوي. (اشعة اللمعات ۳۴۷).

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵۰۱/۱ رقم الحديث. ۳۹۸

**آیا کعبه کې دننه د فرض مونځ کولی شي ؟** دې باندې د ټولو فقهاو اتفاق دی چې په بیت الله کې دننه حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نفل مونځ کړی دی او په غیر د اختلاف نه جائز دی البته په دې مسئله کې اختلاف دی چې فرض مونځ کعبه کې دننه کول جائز دي او که نه دي ؟ اکثر فقهاء فرض مونځ کعبه کې دننه کول جائز ګڼړي خو امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ کعبه کې دننه فرض مونځ جائز نه ګڼړي ، کیدی شي مالکیه او حنابله د قرآن د دې آیت نه استدلال کوي ﴿فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾ (البقرة آیت:۱٤٤) طریقه ده استدلال داسې ده چې د الله تعالی حکم دی بیت الله طرف ته مخ کړئ او څوک چې بیت الله کې دننه مونځ کوي هغه د بیت الله یو حصې ته متوجه دی او یو حصې طرف ته یې شا ده ځکه فرض جائز نه دي او نوافلو کې وسعت او نرمي ده ځکه هغه جائز دي احناف ، شوافع ، مالکیه او جمهور د دې آیت نه استدلال کوي ﴿أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ﴾ (البقرة آیت:۱۲۵) دلته دننه د مونځ کولو مطلق ذکر دی بیت الله کې برابره خبره ده که فرض وي او که نفل وي څه فرق نشته دی د غه رنګ استقبال کولو کې استیعاب هم نشته دی لهذا د بعضې حصې استقبال کافي دی .

## د کعبې ستنې څومره دي ؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ وَأُسَامَةُ بْنُ |
| د حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی ، وایي چې : نبي عَلَيْهِ السَّلَام داخل شو کعبې ته او اسامه بن |
| زَيْدٍ وَ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ وَ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ فَأَغْلَقَهَا عَلَيْهِ |
| زید او عثمان بن طلحة الحجبي او بلال بن رباح رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم ورسره وو نو دروازه یې بنده کړه نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| وَ مَكَثَ فِيهَا فَسَأَلْتُ بِلَالًا حِينَ خَرَجَ |
| لږ ساعت دننه وو ، حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې : کله حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بهر راووتو چې |
| مَاذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : جَعَلَ عَمُودًا عَنْ يَسَارِهِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام دننه څه کول بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و ویل : نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونځ کولو چې یو ستن د نبي عَلَيْهِ السَّلَام کس طرف |
| وَعَمُودَيْنِ عَنْ يَمِينِهِ وَثَلَاثَةَ أَعْمِدَةٍ وَرَاءَهُ وَكَانَ الْبَيْتُ يَوْمَئِذٍ عَلَى سِتَّةِ أَعْمِدَةٍ ثُمَّ صَلَّى (متفق علیه) [1] |
| ته وه او دوه ښي طرف ته او دري شاته وي هغه وخت خانه کعبه کې شپږ ستنې وي (او اوس دري دي) . |

**توضیح :عثمان بن طلحة الحجبي:** دا د حاجب طرف ته منسوب دی څوکیدار او چابي او چتوونکي په

(۱) أخرجه مسلم في ۹٦۸/۲ رقم الحدیث :۳۹۵-۱۳۳۰ وأخرجه النسائي ۲۲۰/۵ رقم الحدیث :۲۹۱۷، وأحمد في المسند ۲۰۱/۵.

معنی دی دبیت الله چاپیاني دې کس سره وي .(المرقات ۲/۳۸۸)

دصلح حدیبیه په دویم کال نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ عمرة القضاء دپاره راغلی ؤ او دعثمان بن طلحة نه یې چاپیاني وغوښتې نو هغه انکار وکړو، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل: عثمانه! واوره یو وخت به داسې راشي چې دا چاپیانې به ما سره وي او زه چې یې چاته ورکول وغواړم نو ورکوم به یې، هغه وویل: چې په دغه ورځ به د قریشو بده ورځ وي او قریش به ذلیل وي.

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې په دغه ورځ به قریش په فخر سره وي کله چې مکه فتح شوه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولیږلو چې لاړ شه د حضرت عثمان بن طلحة نه چاپیانې واخله. عثمان پټ شوې وو چاپیانې یې نه ورکولې تر دې چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دهمکي ورکړه او چاپیانې یې پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته ورکړې او پیغمبر عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دروازه خلاصه کړه او بیت الله یې ووینځلو او دننه یې تشریف یوړو، په دې وخت کې عثمان بن طلحة موجود ؤ.

بیا د حضرت علي او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړو خیال دا ؤ چې چاپیانې ده ته ورکړل شي د قرآن آیت نازل شو: ﴿إِنَّ اللهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ (النساء آیت: ۵۸) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عثمان بن طلحة ته وفرمایل: چې د الله تعالی په حکم باندې چاپیانې تا ته حواله کوم: **خذها خالدة تالدة** .یعنې همیشه به تاسو سره وي، څوک ظالم بادشاه به یې د تاسو نه اخلي که نه نو څوک به یې هم درنه نه شي اخستی.

عثمان بن طلحة مسلمان شو بیا دده وارث نه موندلو د وجې نه دده ورور ته یې چاپیانې ورکړې شوې هغه خپل ورور شیبه ته ورکړې نن ورځ پورې د بنو شیبه سره دي. د بیت الله دروازې نه کافي دننه لاړ او مخامخ دیوال ته یو څو ګزو په فاصله باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کړی دی.

د بخاري په روایت کې دا الفاظ دي: چې درې ستنې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شا ته وي او یوه ستن یې چپ طرف ته وه او دوه ستنې یې ښي طرف ته وې، په دغه وخت کې بیت الله شپږ ستنو باندې ولاړ وو او د بیت الله چت نن هم د لرګو نه جوړ دی، شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې لیکي: نن صبا دا ستنې صرف درې پاتې شوې دي (اشعة اللمعات ۳۴۷).

## مسجد حرام کې یو مونځ په یو لاکه دی:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاةٌ فِي مَسْجِدِي |
| دابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایي: مونځ کول زما په دې جومات (مسجد |

| |
|---|
| هٰذَا خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلَاةٍ فِيمَا سِوَاهُ إِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامِ » . ( متفق عليه).[1] |
| نبوي)کې بهتر دي د مونځ کولو نه په نورو جوماتونو کې د زرو مونځونو کولو نه په غير د مسجد حرام نه. |

**توضيح: خير من الف صلاة**: د ثواب د زياتيدو په اعتبار سره مسجد حرام د ټولو نه افضل دی، دې کې يو مونځ په يو لاک دی، خو زياتوالی او دوچنده کيدل د ثواب په اعتبار سره دي، د مونځونو په اعتبار سره نه دي، يعني تضعيف في الثواب دی تضعيف في الاجزاء نه دی، څنګه چې عوامو کې مشهور دي که چا يو مونځ وکړو، نو دې کس ته يو لاک مونځونه ملاؤ شو. دغه رنګ د ټولو قضاء مونځونو کفاره شوه دا غلطه خبره ده. بلکې دلته صرف د ثواب دوچنده ملاؤيدو خبره ده مونځ يو شمار کېږي، ځکه چې يو مونځ يې کړی دی. مسجدنبوي کې يو مونځ په يو هزار مونځونو برابر دی. (المرقات ۲/۳۹۲)
او مسجد اقصی کې يو مونځ په پنځوس زره مونځونو برابر دی، ابن ماجه کې بعضې رواياتو کې راغلي دي، چې مسجد نبوي کې يو مونځ د پنځوس زرو مونځونو برابر دی.(مشکوة ص ۷۲) خو دا روايت کمزوری دی، بعضې رواياتو کې دي، چې يو مونځ د لس زرو مونځونو سره برابر دی. ملاعلي قاري وايي دا زياتوالی داسې دی، چې يوه نيکي د دې امت د لسو نيکيو برابر وي، لهذا هزار مونځونه لس زره مونځونه شمار کېږي، شوافع حضرات فرمايي د ثواب دوچنده کيدو دا حکم د فرض مونځونو سره خاص دی، په سنتو او نوافلو کې دا اضافت نه دی، ( المرقات ۲/۳۹۲) ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ مرقات کې ليکي دا دو چنده کيدل او ثواب په ټولو نيکيو کې دی، مونځ سره خاص نه دی، دا رنګه علماوو دا فيصله راجح ګرځولې ده چې، دا دوه چنده کيدل او ثواب د حرم د ځمکې د پاره عام دی صرف مسجد حرام سره خاص نه دی.دې حديث کې او مشکوة (ص۷۲) باندې د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت کوم چې توضيحات حديث نمبر (۵۹) دی، دواړو کې په ظاهره تعارض دی، ځکه چې دلته د مسجدنبوي فضيلت يو مونځ د زرو مونځونو برابر ښودلی دی، حالانکې هلته پنځوس زره ذکر دي؟
**جواب**: شروع د وحې کې د زرو فضيلت وو، بيا پنځوس زره پورې فضيلت زيات شو. دويم جواب په اعدادو کې تعارض نشته دی، ځکه چې عدد اقل د عدد اکثر په ضمن کې دی، د دې مخالف نه وي، بعضو د پنځوسو زرو والا روايت کمزوری ګرځولی دی.

**فائده جليله**: دې حديث کې يو لفظ **مسجدهذا** ذکر دی، دې نه په ظاهره معلوميږي، مسجدنبوي چې کله د پيغمبر په زمانه کې وو، نيکيو او د مونځونو فضيلت دې جومات سره خاص وو، دې نه پس چې

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۷۸/۱،رقم الحديث : ۵۰۵، ومسلم في الصحيح ۹۶۶/۲ رقم الحديث:۳۸۸-۱۳۲۹، وأبو داود ۵۲٤/۲ رقم الحديث :۲۰۲۳، والنسائي ۶۳/۲، رقم الحديث: ۷۴۹. أخرجه أحمد في المسند ۱۱۲/۲.

جومات کې زیاتوالی راغی، نو دا فضیلت د هغه حصو د پاره نه دی. علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دې فضیلت حصول د پاره دا مناسب دي چې یو کس دې په هغه حصو د مسجد نبوي کې مونځ وکړي چې کوم د حضور عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې موجود وو. (المرقات ۲/۳۹۲)

د علامه تاج الدین سبکي رَحِمَهُ اللهُ هم دا رایه ده، (المرقات ۲/۳۹۲) خو ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ او علامه محب طبري رَحِمَهُ اللهُ خپل اوږد کلام کې ویلي، چې دوچنده ثواب دا فضیلت د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د زمانې جومات سره خاص نه دی بلکې دهغې نه علاوه حصو ته هم شامل دی کوم چې د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د زمانې نه پس په کې زیاتوالی شوی دی. (المرقات ۲/۳۹۲)

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه تپوس وشونووې ویل دا خاص والی نه دی که چرته د ثواب د حصول خاص والی د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د زمانې جومات سره خاص وی نو خلفا، راشدینو به په جومات کې زیاتوالی نه کولی او نه به خلکو قبلولی، تاریخ مدینه کتاب کې ...یکلی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مسجد نبوي د پراخوالي نه فارغ شو او وې ویل که مسجد نبوي ذوا... پورې غځ شي نو ټول به په مسجد نبوي کې شمارکېږي او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام جومات به ورته ویل کېږي . سماویو جماعت دې طرف ته تللي چې څنګه په مکه مکرمه کې یوه نیکي د کیفیت په اعتبار سره یو لک پورې رسیږي نو دغه شان یوه ګناه د یو لاک پورې دیریږي. دا قول د امام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللهُ دی او دا قول د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دی او دا قول د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د مجاهد هم دی، حالانکې د ثواب دا دوچنده کیدل د راجح قول مطابق د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د زمانې سره خاص نه وو، بلکې د ټولو زمانو د پاره دی

بیا علماو کې دا خبره چلیده، چې مکه مکرمه افضل ده که مدینه منوره، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې مدینه منوره افضل ده، خو جمهور په دې باندې متفق دي چې مکه مکرمه د حرم څمکه د مدینې منورې نه افضل ده دواړو کې فرق دی کوم فرق چې په حج او عمره کې دی بیت الله مثال د حج دی او د مسجد نبوي مثال د عمرې دی.

بهرحال مکه مکرمه افضل ده په دې باندې څو نصوص دال دي البته مدینه منوره کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام جسم مبارک چې د کومې حصې سره لږېدلی هغه د کعبې نه افضل ده، دا قول د قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ هم دی، بلکې د ابن عقیل حنبلي رَحِمَهُ اللهُ نه منقول دی، (المرقات ۳۹۶ - ۲/۳۹۷)

د پیغمبر د بدن مبارک کومه حصه چې قبر سره لږېدلې وي هغه د عرش نه ډیره افضله ده.

دا ټول تفصیل ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې ددې حدیث د لاندې بیان کړی هلته کتلی شئ. (المرقات ۳۹۶ - ۲/۳۹۷)

۲۰ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

## درې جوماتونو نه علاوه بل جومات ته سفر کول منع دي

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ

د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: مه تړئ کېجاوه (يعني

إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ: مَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى وَ مَسْجِدِي هٰذَا". (متفق عليه)[1]

سفر مه کوئ) مګر درې جوماتونو ته مسجد حرام، مسجد اقصی او زما مسجد (يعني مسجد نبوي).

**توضيح: لا تشد الرحال:** شد يشد نصر ينصر نه د تړلو په معنی ده او الرحال نه کېجاوه مراد ده، دا ټوله جمله د سفر نه کنايه ده او د نفي صيغه د نهي په معنی کې ده، مطلب دا شو، چې د دريو جوماتونو نه علاوه نورو جوماتونو ته سفر مه کوئ. (المرقات ۲/۳۹۷).

ددې حديث د پوهيدو د پاره دا خبره ضروري ده، چې دلته مستثنی مفرغه ده او ددې د پاره مستثنی منه مخذوف راويستل ضروري دي، او س د مستثنی منه مخذوف راويستلو و تعين کې د علماو اختلاف دی، يو طرف ته جمهور امت دی او دويم طرف ته حافظ ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ دی. ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ دلته مستثنی منه عامه ګڼي او وايي: دلته **مکان** يا **موضع** الفاظ راويستلی شي، عبارت داسې دی: **لا تشد الرحال الی موضع الا الی ثلاثة مساجد**، يعنې دريو جوماتونو نه علاوه نورو جوماتونو ته سفر جائز نه دی، ددې عموم امکنه کې ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ د جوماتونو نه علاوه د مقدس مقاماتو او ټولو مزارونو ته تلل ناجائز ګرځولي دي تردې پورې چې ددې عموم د وجې نه د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روضې مبارکې ته خاص په دغه غرض سفر کولو ته هم ناجائز ويلي دي. د هغه مقصد د روضې مبارکې نه منع کول نه دي، بلکې نيت د مسجد نبوي کول په خپله په کې روضه مبارکه راځي د هغې زيارت به وشي. دې صورت کې زيارت کول مستحب دي. ددې مسئلې د وجې نه تاسو ډير لوی تکاليف او مصيبتونو کې ګير شوی او ستاسو شاګرد ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ هم ددې ښکار شو. ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ جيل کې ګرفتار شو تردې چې جنازه يې هم د جيل نه ووتله، نن سبا د سعودي حکومت هم دا عقيده ده، خو ښکاره خلکو سره څه نه شي کولی. د جمهورو په نزد باندې دلته مستثنی منه عموم امکنه نه ده، بلکې عموم مساجد دي، تقديري عبارت داسې دی: **لا تشد الرحال الی مساجد الا الی ثلاثة مساجد**. يعنې د دريو جوماتونو نه

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۷۰/۳، رقم الحديث ۱۱۹۷، ومسلم في الصحيح ۹۷۵/۲ رقم الحديث ٤۱٥-۸۲۷، وأبو داود ۵۲۹/۲ رقم الحديث ۲۰۳۲، والنسائي ۳۷/۲، رقم الحديث ۷۰۰، والترمذي ۱٤۸/۲ رقم الحديث ۳۲٦

علاوه بل جومات ته خاص کر سفر مه کوئ، ځکه چې باقي ټول جوماتونه ثواب او فضيلت کې يو شان دي. خلاصه دا چې دې حديث کې ممانعت صرف جوماتونو نه راغلی دی د نورو سفر بحث نه دی، هغه سفرونه ددې حديث د مفهوم نه خارج دي، ځکه چې مستثنی، د مستثنی منه جنس نه وي، چې استثناء د مساجدو نه شوه، نو مستثنی منه به هم مساجد وي. شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ (اشعة اللمعات ۳۴۸) لمعات کې ليکي چې دې کې ډير توجيهات کيدې شي چې يو توجيه دا ده چې دې حديث کې ددې دريو جوماتونو شان او چتول مقصد دی، چې د فضيلت مرتبې او د عظمت په اعتبار سره د نورو جوماتونو په نسبت امتيازي درجه مراد وي، چې څوک مشقت او تکليف او چتول وغواړي، نو دې دريو جوماتونو ته د سفر اهتمام دې وکړي، ځکه چې ددې جوماتونو لوی شان دی. (لمعات ج ۳ ص ۴۲)

ددې توجيه مقصد او خلاصه دا شوه، چې دې کې صرف دې دريو مساجدو ته سفر کولو ترغيب دی نورو سفرونو بحث په کې نشته دی. حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب **حجة الله البالغة** کې په دې تحقيقي کلام کړی دی فرمايي: زما خيال خو دا دی چې د جاهليت په زمانه کې بعضې ځايونه تبرک ګڼل کيده د هغې د عظمت د وجې به يې سفر کولو دغه سفر به يې باعث د برکت متصور کولو ظاهره ده چې داسې عقيده ساتل چې يو ځای د تبرک د پاره د هغې عظمت د وجې نه هغه ځای ته سفر کولو دا نه صرف ذهني او فکري بيماري ده، بلکې د فتنې او فساد ذريعه جوړيږي، ځکه په حديث مبارک کې داسې سفرونو څخه ممانعت راغلی دی، چې شعائرالله سره د غير شعائر الله التباس را نه شي او يو کس د غيرالله عبادت ونه کړي زما په نزد باندې صحيح خبره دا ده چې د مزارونو داولياء الله او د دغه حضراتو د عبادت ځايونو ته تردې چې کوه طور طرف ته سفر کول ټول په دې ممانعت کې برابر دي، خاص کر داسې ځايونو ته سفر کول جائز نه دي. (حجة الله البالغه)

د شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ د تحقيق دا خلاصه راوتله، چې په حديث کې د مستثنی منه تعلق د اهل عربو وغيره هغه مقامات دي، چې هلته به د جاهليت ميلې لږيدلې، هلته به شرک او بدعات کيدل، عرسونه به کيدل او په خاص موسمونو کې به خاص خاص ځايونو طرف ته به د لرې لرې نه د قافلو په شکل کې سفرونه کول. بعضې حضراتو دا توجيه کړې ده، څنګه چې اشعة اللمعات کې بيان دی، ددې دريو مقاماتو او مساجدو نه علاوه بل ځای ته سفر د تقرب او د عبادت په نيت کول جائز نه دي، ددې نفې صرف د هغه سفر باره کې ده چې هغې کې تقرب او عبادت وي، دې نه علاوه سفرونه په خپل ځای باندې وجه د جواز لري، هو، د مزارونو د پاره لرې نه سفر کول مختلف فيه ده. بعضې علماء دا مباح ګڼي او بعضې ورته حرام وائي، حالانکې قاضي عياض مالکي، قاضي حسين او ابو محمد الجوزي رَحِمَهُ اللهُ مقامات متبرکه او زيارتونو د صالحينو د قبرونو طرف ته سفر کول حرام ګرځولي (کذا في مجمع البحار) حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ په کلام کې عدم جواز دی او د احمد علی لاهوري رَحِمَهُ اللهُ په کلام کې هم

عدم جواز دی، شاه انورشاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ هم فرمايي د اولياو قبرونو ته سفر کول جائز نه دي چې د اباحت او حرمت اختلاف راغلی دی، نو لا محاله حرمت ته به ترجيح وي، لکه څنګه چې مشهوره قاعده ده، حديث کې مسجد اقصی لفظ راغلی دی، اقصی د بعيد په معنی دی او دا مسجد د مکې او مدينې نه ډير لرې دی، ځکه ورته اقصی ويلې شي، دا يو وجه د تسميه شوه.

**درسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې زيارت د پاره سفر کول:** دې مقام کې د دې حديث د توضيح نه يو بله مسئله مخې ته راغله، هغه دا چې د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضه اطهر د پاره سفر کول څنګه دي په قصد او ارادې سره، د حديث په عام نهې کې دا هم داخل دی که نه؟ نو د جمهورو مسلک دا دی د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روضې مبارکې ته سفر کول د اعلی قرباتو نه دی او د حديث ممانعت تعلق خاص کر دې زيارت سره نه دی.

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ دا اختيار کړی دی او فرمايي حديث کې مستثنی منه صرف مساجد دي، ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ د حديث ممانعت عام ګرځولی دی او دده په نزد باندې روضه اطهر ته په ارادې او مقصد سره سفر کول جائز نه دي، دد دې مسئلې د وجې نه د امت علماء دده خلاف قلم اوچت کړو ډير څه يې ورپسې وليکل او په خپله د شام بادشاه دا په جيل کې بند کړو.

**دلائل:** شيخ الاسلام ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ د خپل موقف د پاره زير بحث حديث نه استدلال وکړو او مخکې يې څنګه ليکلي وو، چې مستثنی منه د عموم امکنو نه ګرځولې ده او عام امکنو کې روضه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم داخل ګڼي، هغه د روضه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت مستحب ګڼي، خو فرمايي دد دې د پاره به مستقل سفر نه کوئ سفر به د مسجد نبوي په نيت سره کوئ.

د جمهورو اولنی دليل هغه ټول احاديث دي چې هغې کې د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه پس د قبر زيارت بيان دی، بلکې (**وعن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوعا من حج فزار قبري بعد موتي كان كمن زارني في حياتي**) (بيهقي، مشکوة ص ۲۴۱) وفاءالوفاء کې دا قسمه ډير روايات دي.

دويم دليل حضرت امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ دې حديث نه استدلال کړی: **كنت نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها فانها تزهد في الدنيا و تذكر الاخرة**، (ابن ماجه، مشکوة ص ۱۵۴)

مشکوة شريف په دغه صفحه کې د مسلم روايت هم شته د هغې الفاظ دا دي: (**عن بريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها**) (ص ۱٥٤).

دريم دليل ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ فتح الباري شرح د بخاري د زيارت د روضه اطهر په باره کې فرمايي: (**فانها من افضل الاعمال واجل القربات الموصلة الى ذى الجلال و ان شرعيتها محل**

**اجماع بلا نزاع)** يعني زيارت د روضه رسول الله ﷺ د بهترين اعمالو نه ده او الله تعالى ته په رسيدو كې لويه نيكي ده، ددې په مشروعيت باندې اجماع ده نزاع نشته. ( فتح الباري ج ٣ ص ٦٦، بحواله اشرف التوضيح)

دا خبره ارشاد الساري د بخاري شرحې هم ليكلې ده، كوكب الدري په حاشيه كې شيخ الحديث رحمه الله فرمايي: (**قلت وكذا حكى الاجماع عليه النووي و ابن الهمام وغيرهما**) (**الكوكب الدري، ج ١، ص ٣٣٩ بحواله بالا**)

شاه ولي الله رحمه الله المصفى شرح الموطا كې ليكلي دي: (**سنت است زيارت قبر شريف آنحضرت ﷺ بعد فراغ حج باتفاق اهل علم.**) (**المصفى، ج ١، ص ٣٣٩ بحواله بالا**)

د جمهورو څلورم دليل مسند احمد كې دا شد الرحال والا حديث دى دې كې مستثنى منه مذكوره ده كوم چې خاص ده عام نه ده او هغه لفظ مسجد دى، الفاظ دا دي: (**لا ينبغي للمطي ان يشد رحله الى مسجد تبتغى فيه الصلوة إلا المسجد الحرام والمسجد الأقصى ومسجدي هذا**) (**رواه احمد في مسنده**)

**حدثنا هاشم قال حدثنا عبدالحميد قال حدثني شهر (بن حوشب) قال سمعت أبا سعيد الخدري ذكر عنده صلوة في الطور فقال قال رسول الله ﷺ لا ينبغي للمطي ان يشد رحله إلى مسجد يبتغي فيه الصلوة غير المسجد الحرام والمسجد الأقصى و مسجدي هذا.**) (**و اسناده حسن بحواله التعليق الفصيح، ص ١٠٠ نقلا عن عمدة القاري، ج ٣، ص ٦٨٧**)

**جواب:** د ابن تيميه رحمه الله د شان جلالت او د علم دبدبه په خپل ځای د منلو ده، ددې حديث نه د زيارت د قبر النبي ﷺ عدم جواز استدلال كول ډيره لرې بلكې ابعد بلكې غير اصوب ده، كه دې حديث كې مستثنى منه عام مواضع او عام امكنه واخيستلى شي، نو بيا څنګه روضه رسول ﷺ ته سفر كول منع دي، دغه رنګ تجارت د پاره، د علم د طلب د پاره او جهاد د پاره سفر كول يا نور داسې سفرونه ټول ممنوع دي، ددې څوک هم قائل نه دي، په خپله پيغمبر ﷺ د والدينو قبرونو ته تلى دى او د احد د شهداء د پاره يې مسلسل حاضري كړې ده.

دويم جواب دا دى چې كله مسند احمد په حديث كې واضح طور باندې مستثنى منه مذكور او مخصوص ده او هغه لفظ (**مسجد**) دى، نو بيا زير بحث حديث كې د مستثنى منه عام اخستلو څه جواز پاتې شو، بهر حال د زيارت قبر النبي ﷺ نه د منع كولو كوم قول چې ابن تيميه رحمه الله كړى دى دا د هغه د تفرداتو نه يو تفرد دى او تفردات د علماو شته دى، خو د چا د تفرد سره د هغه ټول علم ناقابل

اعتماد نه کېږي. حضرت قاسم الخيرات قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ د پيغمبر صلى الله عليه وسلم د متعارف مرګ قائل نه و، بلکې د يو قسم د مرګ قائل وو، خو دې تفرداتو سره د دې حضراتو علميت په خپل ځای باندې قائم دی. والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## رياض الجنة

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا بَيْنَ بَيْتِي وَمِنْبَرِي |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: زما د کور او منبر په مينځ کې |
| رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ وَمِنْبَرِيْ عَلَى حَوْضِي. (متفق عليه)(۱) |
| د جنت د باغونو نه يو باغ دی، او زما منبر زما د حوض د بره دی. |

**توضيح: ما بين بيتي:** نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل هغه کور ته اشاره وکړه، چې عائشه بي بي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره خاص دی چې يو کس قبلې طرف ته او درېږي او وګوري نو منبر نه ګس طرف ته د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حجره ده او په دغه ځای کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شوی او دغه ځای کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر مبارک دی، د دغې کور او منبر په مينځ کې سپينه قالينه خوره ده، دغه رياض الجنة دی، او په دغې باندې اسطوانه توبه، اسطوانه عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، اسطوانه الحرس وغيره يو څو مبارکې تاريخي ستنې موجود دي.

**و منبري:** عربو بادشاهانو، سردارانو او بزرګانو کې دا رواج وو، چې د هغوئ خطبو او اعلاناتو د پاره خاص منبرونه وو، (اشعة اللمعات ۲۴۸، المرقات ۲/۳۹۸) يو شاعر وايي:

**وتحزبوا حزبا فكل قبيلة ❁ فيها امير المومنين و منبر**

دويم شاعر وايي:

**واذا اعرنا سيدا من قبيلة ❁ ذا منبر صلى علينا وسلما**

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله مدينې طرف ته تشريف راوړو مسجد نبوي کې منبر نه ؤ، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د يو کهجورې ونې ته ډډه وهله او خطبه به يې ورکوله، دغې ته حنانه ستن وايي، جنګ بدر نه لږ مخکې دويم هجری کال کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته يو انصاري زنانه درخواست وکړو چې زما يو غلام د لرګو په کار ښه پوهېږي نو زه درته منبر تيار وم، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغې زنانه ته اجازت ورکړو دغې انصاريه نوم

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۷۰، رقم الحديث ۱۱۹۶، ومسلم في الصحيح ۲/۱۰۱۱ رقم الحديث: ۲-۵۰۲-۱۳۹۱، والترمذي ۵/۶۷۵ رقم الحديث ۳۹۱۵، أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۳۶.

عائشه وه د غلام نوم يې باقوم رومي ؤ، با قوم رومي د جهاؤ ونې نه منبر جوړ کړو چې د دې درې زينې وې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې باندې خطبه فرمايله، بيا د منبر په زينو کې زيات والى وشو غالباً د غه وخت د منبر اووه(۷) زينې وې، او يو اوچته مناره د بره چهت نيږدې پورې رسيده، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصل منبر څه حادثه کې سوزيدلى وو، اوس د غه منبر په د غه ځاى باندې دى او د لرګي نه جوړ دى.

**روضة:** په اصل کې ګڼ او شين باغ ته ويلي شي. (اشعة اللمعات ۳۴۸)

**سوال:** مدينې منورې کې مسجد نبوي کې د دننه د ځمکې خطې ته د جنت باغيچه په کوم اعتبار سره ويلي شي؟

**جواب:** شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې تفصيلي کلام کړى دى آيا دا کلام حقيقت باندې محمول دى يا مجاز باندې. بيا هغه مجاز رد کړو او وې فرمايل د محققينو علماوو په نزد باندې دا کلام په حقيقت محمول دى، ددې يو مطلب دا دى چې دا مقام به د قيامت په ورځ جنت ته منتقل شي، دا اګر چې د ځمکې تکړه ده، ليکن د ځمکې او آسمان تکړې تکړې کيدلو او د قيامت هولناکۍ کې به دا حصه محفوظ وي، يا به جنت طرف ته منتقل شي، ځکه يې احاديثو کې د جنت يوه باغيچه ګرځولې ده، ابن جوزي او ابن فرحون ويلي د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ هم دا رايه ده، (اشعة اللمعات ۳۴۸، المرقات ۲/۳۹۸)
ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ دا قول راجح ګرځولى دى، د اکثرو محدثينو هم دا رايه ده، ددې حديث دويم مطلب په مالکيو کې لوى فقهي ابو حمزه رَحِمَهُ اللهُ دا بيان کړى دى، ممکن دى چې د ځمکې دا تکړه بعينه د جنت تکړه وي او د هغه ځاى نه لاندې راوړل شوې وي او مسجد نبوي په د غه مقام کې اينبودلى شوې وي، څنګه چې حجر اسود او مقام ابراهيم دواړه کاڼي جنت نه راوړل شوي دي او د قيامت په ورځ باندې به خپل مقام ته ځي. (المرقات ۲/۳۹۸).

**سوال:** سوال دا دى که دا روضة الجنة د جنت حصه وي دې کې د جنت خصوصيت ولې نشته، مثلاً روښانه ولې نه ده چې لمر وغيره د دينه بې نوره شي او کوم کس چې دې کې کيني ده ته ولږه او تنده نه وي، څنګه چې جنت کې نه وي؟ **جواب:** کله چې دا حصه دنيا ته راوړلى شوه دې نه د جنت خصوصيت جدا کړى شو يا دا خصوصيت په پرده کې کيښودلى شو.

**على الحوض:** ددې آسان مطلب دا دى په ميدان حشر کې به زما منبر په حوض باندې وي، حوض نه مراد حوض کوثر دى. (المرقات ۲/۳۹۹)

## د مسجد قباء فضيلت:

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِيْ مَسْجِدَ قُبَاءَ كُلَّ سَبْتٍ مَاشِيًا |
| د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي: چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به راتللو مسجد قباء ته، هره هفته پيدل |

وَ رَاكِبًا فَيُصَلِّيْ فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ .(متفق عليه) . (۱)

او یا سورلی باندې او دوه رکعته نفل به یې په کې کول.

**توضیح: مسجد قباء** :حضور اکرم ﷺ چې کله مکې مکرمې نه مدینې منورې ته هجرت وکړو د عمرو بن عوف محله کې کوز شو، هلته حضور ﷺ دیارلس یا څوارلس ورځې قیام وکړو نو دغه قیام په دوران کې حضور ﷺ د مسجد قباء بنیاد کینبود. په اسلام کې د فضیلت په اعتبار سره مسجد قباء څلورم نمبر باندې دی، د تعمیر په اعتبار سره د هجرت نه پس د اسلام اولنی مسجد دی، د مسجد نبوی نه تقریبا درې میله فاصله باندې دی. (المرقات ۲/۴۰۰).

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي صحیح حدیث کې دي، چې دغه مسجد کې د هفتې په ورځ باندې دوه رکعتو نفلو کولو باندې د عمرې ثواب ملاویږي، د پیغمبر ﷺ معمول وو، د هفتې په ورځ باندې حضور ﷺ دغه جومات ته تشریف وړلو او دوه رکعته مونځ به یې اداء کولو، او هم د امت خلک دغه سنتو باندې عمل کوي. پیدل تلل د سورلی نه افضل دي. (المرقات ۲/۴۰۰).

**فیصلی فیه رکعتین:** د اهل ظواهرو په نزد باندې دوه رکعته تحیة المسجد واجب دي، د جمهورو علماو په نزد باندې دا نفل دي، د ثواب کور دی او د شوافعو په نزد باندې ناستې نه مخکې کول دي، پس د ناستې نه ثواب نشته، د احنافو په نزد باندې ثواب ملاویږي.

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَحَبُّ الْبِلَادِ

د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي: خوښ مقامات په ښارونو کې

إِلَى اللهِ مَسَاجِدُهَا وَ أَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللهِ أَسْوَاقُهَا». (رَوَاهُ مُسْلِم)(۲)

الله تعالی ته مساجد دي، او بدترین او ناخوښ مقامات الله تعالی ته بازارونه دي.

**توضیح: احب البلاد:** ښکاره خبره ده کوم ځای کې چې د الله تعالی عبادت کېږي هغه ټول ځایونه الله تعالی ته محبوب دي او جوماتونو کې چې کوم بنیادي عبادت کېږي هغه د الله تعالی عبادت دی، مونځونه، تهجد، نوافل، سنت، تلاوت، ذکر الله، آذانونه، اقامتونه، اعتکاف وغیره ټول عبادتونه جوماتونو کې کېږي، ځکه الله تعالی ته خوښ دي. (اشعة اللمعات ۳۴۹، المرقات ۲/۴۰۰).

---

(۱) أخرجه البخاري ۶۹/۳، رقم الحديث ۱۱۹۳، ومسلم ۱۰۱۶/۲ رقم الحديث ۵۱۶-۱۳۹۹، وأبو داود ۵۳۳/۲ رقم الحديث ۲۰۴۰، والنسائي ۳۷/۲، رقم الحديث ۶۹۸

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴۶۴/۱ رقم الحديث ۲۸۸-۶۷۱.

او بازارونو کې د الله تعالی نافرماني کېږي جګړې، دروغ، خیانت، ګټانې، دوکه، فراډ، شور شعب او بې حیائي کېږي، ځکه الله تعالی ته ناخوښ ځایونه دي. دې نه معلومه شوه، چې جنت ته د تلو لاره مساجد دي، ترڅو پورې چې مسلمانان مساجدو ته نه وي راغلي نو هغې پورې هغوئ د مارکیټ نه جنت ته نه شي تللی، دغې جوماتونو داطرافو نه بې شماره خلک جنت ته تلي دي، لهذا کمزوري خلک او جومات کې ډېر وسیدونکي خلک حقیر مه ګڼئ او بازارونو کې ګرځیدو والا خلک معزز مه ګڼئ.

**سوال**: دلته یو سطحي سوال دا دی د بازارونو نه ډیرې د ګناه اډې، شراب خانې، جوار خانې، د فحاشۍ اډې، سینماګانې وغیره دي نو هغه د بازارونو نه ډیرې مبغوضې ولې نه دي؟ **جواب**: جواب دا دی بازارونه قائم ساتل او آبادول د شارع طرف نه حکم دی او دا اډې تیارول د شریعت طرف نه نه دي، د حدیث مطلب دا دی شارع چې د کومو څیزونو اجازت ورکړې هغه کې بدترین ځایونه بازارونه دي. دویم جواب دادی بره چې کوم اډواو د ګناهونو ذکر وشو دا مقامات د بازارونو حصه ده د بازار نه جدا نه دي

## د جوماتونو د جوړیدلو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ بَنَى لِلّٰهِ |
| د حضرت عثمان رضي الله عنه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام فرمایلي: چاچې جوړ کړو د الله تعالی د پاره |
| مَسْجِدًا بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ». (متفق علیه) [1] |
| جومات نو الله تعالی به ده د پاره په جنت کې کور جوړ کړي. |

**توضیح: من بنی لله مسجدا**: یعنې د الله تعالی رضا د پاره او د اسلام اشاعت په نیت باندې جومات جوړول، دا نه چې ځان ښودنې د پاره وي، یا د دنیا اغراضو او مقاصدو د پاره یې جوړوي، نو ددې ثواب نشته، بعضې علماء لیکي څوک چې د شهرت په غرض باندې جومات په خپل نوم جوړوي دې کې اخلاص نشته دی. (المرقات ۲/۴۰۱، اشعة اللمعات ۴۴۹).

**مسجدا**: نکره د تقلیل د پاره وي یعنې وړوکی جومات ولې نه وي، ثواب ملاویږي، یو روایت کې دي، چې د کوترې د جالې هومره ولې نه وي، دې کې دا هم ممکن دي، چې یو کس معمولي حصه جومات کې واخلي پوره جومات جوړ نه کړي، ده ته هم د جومات جوړیدو ثواب ملاؤ شو.

**في الجنة**: جنت کې عالیشان محل ملاویدل د الله تعالی احسان دی، خو دې خوشخبرۍ نه دا معلومه شوه چې دا کس به جنت ته ځي، دا لویه خوشخبري ده، که محل ملاؤ شي او یا نه.

(۱) أخرجه البخاري ۱/ ٥٤٤، رقم الحديث ٤٥٠، مسلم ۱/ ۳۷۸ رقم الحديث ۲٤-٥۳۳، النسائي ۱/ ۳۱، رقم الحديث: ٦٨٨، مسند أحمد ۱/ ۷۰.

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ غَدَا إِلَى الْمَسْجِدِ أَوْ رَاحَ أَعَدَّ اللهُ لَهُ نُزُلَهُ مِنَ الْجَنَّةِ كُلَّمَا غَدَا أَوْ رَاحَ». (متفق عليه).[1]

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: څوک چې ځي د ورځې په اوله حصه کې جومات ته او يا را واپس کيږي د ورځې په آخري حصه کې الله تعالى به تيار کړي ده ده د پاره سامان دميلمستيا په جنت کې، برابره خبره ده که سحر لاړ شي يا ماښام.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعْظَمُ النَّاسِ أَجْرًا فِي الصَّلَاةِ أَبْعَدُهُمْ فَأَبْعَدُهُمْ مَمْشًى وَالَّذِي يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْإِمَامِ أَعْظَمُ أَجْرًا مِنَ الَّذِي يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ». (متفق عليه).[2]

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه روايت دى وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: زيات اجر په خلکو کې هغه چا ته د مونځ ملاويږي چې د مسافت په اعتبار سره لرې وي (يعني څومره چې يې کور د جومات نه لرې وي هغومره به زيات اجر ورته ملاويږي) او کوم کس چې د مونځ په انتظار کې وي چې د امام سره مونځ وکړي دده ثواب د هغه کس نه ډير دى چې ځان ته مونځ وکړي او ويده شي.

**توضيح: ابعدهم ممشى**: يعني يو کس د لرې نه جومات ته د مونځ د پاره راځي د هغه کس نه ورته زيات ثواب ملاويږي کوم چې جومات سره نزدې وي، ځکه چې د هغه قدمونه ليکل کيږي، مگر دا ياد ساتئ که په لاره کې يو جومات پريږدي او دويم جومات ته د فضيلت په نيت ځي دا صحيح نه ده، خاصکر چې نزدې جومات ته پرې نقصان رسيږي، بيا دا د گناه کار جوړيږي. (اشعة اللمعات ۳۹۹، المرقات ۲/۴۰۳)

**ثم ينام**: يعني يو کس مثلاً بيا ځي د ماسخوتن مونځ کوي او بيا ويده کيږي اگر چې ډير افضل وخت کې يې وکړ خو د جمعې انتظار يې ونه کړو او يو کس هغه دى چې په تاخير سره يې مونځ وکړو، خو د جمعې انتظار يې وکړو جمعې کې د شامل کيدو او د انتظار د وجې نه ورته ثواب ملاويږي.

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۱۴۸، رقم الحديث ۶۶۲، ومسلم في الصحيح ۱/۶۶۳ رقم الحديث: ۲۸۵-۶۶۹، وأخرجه أحمد في المسند ۲/۵۰۸.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۱۳۷، رقم الحديث ۶۵۱، ومسلم في الصحيح ۱/۶۰ رقم الحديث: ۲۷۷-۶۶۲.

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : خَلَتِ الْبِقَاعُ حَوْلَ الْمَسْجِدِ فَأَرَادَ
د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې : خالي شو يو څو کورونه د مسجد نبوي سره نزدې نو اراده
بَنُو سَلِمَةَ أَنْ يَنْتَقِلُوا قُرْبَ الْمَسْجِدِ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ
وکړه بنو سلمه چې جومات ته نزدې راشي ، نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته د دې اراد ې معلومات وشو نو وې فرمايل
لَهُمْ : « بَلَغَنِي أَنَّكُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تَنْتَقِلُوا قُرْبَ الْمَسْجِدِ » . قَالُوا : نَعَمْ يَا
دوي ته: ماته دا خبره را رسيدلې چې تاسو اراده لرئ چې را نقل شئ جومات ته نزدې هغوى وويل آو اى د
رَسُولَ اللهِ قَدْ أَرَدْنَا ذَلِكَ . فَقَالَ : « يَا بَنِي سَلِمَةَ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ
الله رسوله مونږ دا اراده کړې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل اى بنو سلمه تاسو خپلو کورنو کې اوسئ، ليکلې کيږي
آثَارُكُمْ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ آثَارُكُمْ » [1].
ستاسو د قدمونو چاپونه بنو سلمه تاسو خپلو کورونو کې اوسئ ستاسو د قدمونو چاپونه ليکلى کيږي.

**توضيح**: خلت البقاع: بقاع د بقعة جمع ده کولاو ميدان ته ويل کيږي، دلته امکنه (ځايونه) مراد دي. (المرقات ۲/۴۰۳).

بنو سلمة: دا د انصارو يو خاندان دى، ددې خلک د مسجد نبوي نه لرې وو، مسجد نبوي سره د څه وجې نه کورونه خالي شو، هغوئ اراده وکړه چې جمات ته نزدې راشي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته معلومه شوه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع وفرمايله. ديارکم: داد الزموا دپاره مفعول دى يعنې خپل کورونه لازم ونيسئ ځکه چې ستاسو د تلو راتلو قدمونه ليکلى کيږي او ستاسو د اعمالو په وزن کې شامليږي، ګويا دې آيت طرف ته اشاره ده ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ او مونږ ليکو کوم څه چې تاسو مخکې ليږلي دي او کوم څه چې ددې نه وروسته دي.

**۲۱ ربيع الاول ۱٤۱۰ هـ**

## ميدان محشر کې به اوه کسان د الله تعالى په رحمت کې وي

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « سَبْعَةٌ
د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: اوه قسمه کسان دا سې دي چې

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/٤٦٢ ، رقم الحديث : ۲۸۰ - ٦٦٥

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُظِلُّهُمُ | اللهُ | تَعَالَى | فِيْ | ظِلِّهِ | يَوْمَ | لَا | ظِلَّ | إِلَّا | ظِلُّهُ |

الله تعالی به يې د قيامت په ورځ په خپل سوري کې ساتي په کومه ورځ چې د خدای د سوري نه غير بل سوری

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِمَامٌ | عَادِلٌ | وَ | شَابٌّ | نَشَأَ | فِيْ | عِبَادَةِ | اللهِ | وَ رَجُلٌ |

نه وي: (۱) انصاف کونکي حاکم (۲) هغه ځوان چې خپله ځواني په عبادت کې مصرف کړي (۳) هغه کس

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَلْبُهُ | مُعَلَّقٌ | بِالْمَسْجِدِ | وَ |

چې د جماعت نه ووځي او تر هغې پورې چې واپس جماعت ته لاړ نه شي د ده زړه په جمات کې وي (۴) هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَجُلَانِ | تَحَابَّا | فِي | اللهِ | اجْتَمَعَا | عَلَيْهِ وَ |

دوه کسان چې خالص د الله تعالی د پاره محبت ساتي که يو ځای کېږي د الله تعالی د محبت د وجې نه او که

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَفَرَّقَا | عَلَيْهِ | وَ رَجُلٌ | ذَكَرَ | اللهَ | خَالِيًا |

جدا کېږي هم د الله تعالی د محبت د وجې نه (۵) هغه کس چې په خالي ځای کې د الله تعالی ذکر کوي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَفَاضَتْ | عَيْنَاهُ | وَ | رَجُلٌ | دَعَتْهُ | امْرَأَةٌ | ذَاتُ | حَسَبٍ | وَ | جَمَالٍ |

(الله د ويرې) د سترګو نه يې اوښکې ځي (۶) هغه کس چې را وبلي ده لره يوه ښځه د ښه نسب او ښائست والا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | إِنِّي | أَخَافُ | اللهَ | وَ رَجُلٌ |

او دا سړی د هغې ښځې خواهشاتو په جواب کې وايي چې: زه د الله تعالی نه ويرېږم (۷) هغه کس چې

تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتَّى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ». (متفق عليه). [1]

په داسې پټه طريقه صدقه ورکړي چې د هغه چپ لاس ته هم معلوم نه وي چې ښي لاس څه خرچه کړي دي

**توضيح: في ظله:** ظل اصل کې سوري ته ويلې شي، دلته د لمر سوری مراد نه دی، بلکې د الله د طرف نه د عزت او عظمت او رحمت سوری مراد دی، بعضې علماو د عرش سوری مراد اخستی دی. بعضې د دې سوري نه د راحت او نعمت مراد اخيستی دی، بهر حال مقصود دا دی، دا خوش نصيبه اوه قسمه خلک به د الله تعالی د رحمت سوري د لاندې وي، دوی به محشر ميدان کې خفه نه وي، دا خصوصي جدا شان به دوی ته ځکه ملاويږي، مثلاً د عادل بادشاه د عدالت اثرات د خپل ذات نه علاوه په ټولو خلکو باندې هم وي، د الله د مخلوق د پاره د امام عادل عدالت عمومي رحمت وي. دويم کس ځوان

(۱) أخرجه البخاري ۱۴۳/۲، رقم الحديث: ۶۶۰، ومسلم في الصحيح ۷۱۵/۲ رقم الحديث: ۹۱-۱۰۳۱، أخرجه أحمد في المسند ۴۳۹/۲.

عابد او زاهد دی، یعنې ده دخپلو جذباتو سره او په حالت د ځوانۍ کې چې د لیو تنوب وخت دی د الله تعالی د عبادت حق اداء کړو، ځکه دا عزت ورته ملاؤ شو .(المرقات ۲/۴۰۵).

در جوانی توبه کردن شیوه پیغمبریست ❁ وقت پیری گرگ ظالم میشود پرهیزگار

د دریم کس قرباني لویه ده، چې هر وخت د جومات سره محبت ساتي ښکاره خبره ده چې د جومات خدمت کوونکی به هم وي او هر وخت به عبادت گزار هم وي. څلورم قسم هغه دوه کسان دي چې د هغوئ جدائي او یو ځای کیدل د الله د رضا د پاره وي، ښکاره خبره ده چې د الله تعالی اطاعت به د دوی مخې ته هر وخت وي، د الله تعالی د پاک والي مراقبه به هر وخت حاصله وي. پنځم هغه کس دی چې ځان له ځای کې د الله تعالی په عظمت کې ډوب وي او د الله تعالی د ویرې د وجې نه اوښکې یې د سترګو نه څي. داږاد ریانه پاکه وي، ځکه دا مقام ورته ملاؤ شوی دی. شپږم هغه کس دی چې په لوی امتحان کې صرف د الله تعالی دویرې د وجې نه کامیاب شوی وي، عامه زنانه نه وي، بلکې د اعلی خاندان سره تعلق لري او ښائسته هم وي او په خپله یې ورته ځان سپارلی وي، ددې ګناه نه د بچ کیدو وجه د الله تعالی خوف دی، ځکه ددې کس عزت وکړی شو . او اوم کس هم د اعلی کردار والا دی، محبت الهی کې دومره ډوب وي او ځان ښودنې نه دومره لرې وي چې د صدقې په وخت کې د الله تعالی نه سوا بل چاته پته نه وي، بلکې کوشش دا کوي، چې واجبې د صدقې علم خپل چپ لاس ته هم نه وي. مقصد دا چې صرف اووه کسان نه دي، بلکې اوه قسمه خلک دي.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ |
| دابو هریره رضي الله عنه روایت دی وایي چې : نبي علیه السلام فرمایي: مونځ د سړي په جماعت سره د افضیلت |
| تُضَعَّفُ عَلَى صَلَاتِهِ فِيْ بَيْتِهِ وَ فِيْ سُوقِهِ خَمْسًا وَ عِشْرِيْنَ ضِعْفًا وَ ذٰلِكَ أَنَّهُ إِذَا |
| لري د مونځ کولو نه په کور یا بازار کې په پنځویشت درجو باندې او دا ځکه چې کله یو کس په ښې طریقې |
| تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً إِلَّا رُفِعَتْ لَهُ بِهَا |
| سره اودس وکړي صرف مونځ د پاره جومات ته راځي نو چې قدم اوچتوي د هر قدم په عوض کې یې یوه |
| دَرَجَةٌ وَ حُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةٌ فَإِذَا صَلَّى لَمْ تَزَلِ |
| درجه اوچتیږي او یوه ګناه یې معاف کیږي او ترڅو پورې چې مونځ نه پس په خپل ځای باندې ناست وي |
| الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَيْهِ مَا دَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ |
| فرښتې دده د پاره دعاګانې کوي: ای الله تعالی! دده بخښنه وکړه، ای الله تعالی! ده باندې رحم وکړه او |

| |
|---|
| وَلَا يَزَالُ أَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاةٍ مَا انْتَظَرَ الصَّلَاةَ ». وَ فِيْ رِوَايَةٍ: |
| ځوپورې چې يو کس د مونځ په انتظار کې ناست وي نو دده دغه وخت مونځ کې شماريږي، او په يو روايت |
| قَالَ « إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ كَانَتِ الصَّلَاةُ تَحْبِسُهُ» |
| کې دي چې يو کس جومات ته لاړ او د مونځ د وجې نه هلته حصار شو ګويا دغه وخت يې هم مونځ کې دی |
| وَ زَادَ فِيْ دُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ : " اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ. |
| او زيات کړي دي فرښتو په دعا کې: ای الله! دغه کس ته بخښنه وکړې، د دغه کس توبه قبوله کړې او دا |
| مَا لَمْ يُؤْذِ فِيْهِ مَا لَمْ يُحْدِثْ فِيْهِ .(متفق عليه) .[1] |
| به د هغه وخت پورې وي تر ځو پورې چې يو مسلمان ته تکليف ورنه کړي او په او دس کې وي. |

**توضيح: خمسا وعشرين ضعفا:** مخکې باب الجماعة کې د اقسم احاديث راځي هلته به بحث کيږي چې کله(۲۵) او کله(۲۷) درجې ثواب ولې ملاويږي (المرقات ۲/۴۰۷)

ددې کمې او زياتي وجه څه ده دلته خو صرف دا ويلی شي چې د جماعت نه بغير مونځ کولو باندې هغه ثواب نه ملاويږي کوم چې جمعې سره په مونځ کولو باندې هغه درجه حاصليږي(۲۵) يا (۲۷) درجې ثواب صرف هغه صورت کې حاصليږي، چې کله جماعت سره وي.

**في مصلاه:** شيخ عبد الحق رَحِمَهُ‌اللَّهُ لمعات کې ددې حديث لاندې ليکي: چې دوچنده ثواب هغه وخت ملاويږي، چې مونځ کونکی د مانځه په ځای باندې کلک ناست وي او يو خوا بل خوا نه ګوري، که مونځ کونکي جومات کې يو خوا بل خوا لاړل، بيا دا ثواب نه ملاويږي.(اشعة اللمعات ۳۵۱).

**مالم يؤذ:** يو انسان يا مونځ کونکي ته تکليف و نه رسوي يعنې په خپل فعل او قول چا ته تکليف نه رسوي.

**مالم يحدث:** دا جمله د ماقبل **مالم يؤذ** نه بدل واقع ده د فرښتو دعاء تر هغه وخته پورې وي چې دا په اودس کې وي که جومات کې يې اودس مات شو بيا فرښتي دعاء نه کوي شيخ عبد الحق رَحِمَهُ‌اللَّهُ لمعات

کې ليکي دا صيغه د **يحدث** د **تحديث** نه په معنی د کلام هم کيدی شي يعنې فضيلت هغه وخت دی تر ځو پورې چې مونځ ګزار جومات کې دنياوي خبرې شروع نه کړي که خبرې يې شروع کړې نو فرښتې خپلې دعاګانې موقوف کړي هر مونځ کونکي ته په کار دي چې په اودس کې کيني د دنيا خبرو نه ځان

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۳۱/۲، رقم الحديث ۶۴۷، ومسلم في الصحيح ۴۵۹/۱ رقم الحديث ۲۷۲-۶۴۹، وأبو داود ۳۷۸/۱ رقم الحديث ۵۵۹، أخرجه أحمد في المسند ۲۵۲/۲

وساتي. (اشعة اللمعات ۳۵۱).

## جومات سره د بيت الخلاء والا معامله مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ |
| دحضرت ابي اسيد نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: تاسو کې چې څوک داخل شي جومات ته |
| فَلْيَقُلِ: اللَّهُمَّ افْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ. وَ إِذَا |
| نو هغه ته په کار دي چې دا دعاء ووايي: ای الله! د خپل رحمت دروازې ما ته خلاصې کړه، او چې کله د |
| خَرَجَ فَلْيَقُلِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ". (رَوَاهُ مُسلم).(۱) |
| جومات نه وځي نو دا دعاء دې وايي: ای الله! زه د تا نه ستا فضل غواړم. |

**توضيح: فليقل اللهم**: دې حديث مبارک کې جومات ته د ننوتو او دراوتو آداب ذکر شوي دي او څه آداب د قياس په طور باندې معلوميږي حالانکې اول آدب دا دی چې جومات ته د داخليدو په وخت کې ښې خپه اول د ننه کړی شي او دراوتو په وخت کې چپه خپه بهر کړی شي دا ځکه چې جومات سره د بيت الخلاء مشابهت رانه شي بيت الخلاء ته د ننوتلو په وخت کې د شريعت حکم دی چې اول ګسه خپه د ننه کوئ بيا ښې خپه او دوتو په وخت کې اول ښې خپه او بيا ګسه خپه. (المرقات ۲/۴۰۹)

اوس که څوک د دې تعليم خلاف کوي هغه په ناپوهی کې د جومات سره د بيت الخلاء معامله کوي او بيت الخلاء سره د جومات معامله کوي، دلته حديث کې جومات ته د ننوتلو دعا مذکور ده هر مسلمان ته په کار دي چې د الله تعالی په کور کې قدم کيښودو سره د الله تعالی نه د رحمت او د وسعت دعاګانې وغواړي او چې جومات نه بهر قدم کېږدي، نو د روحانيت نه مالامال کيدو نه پس د ماديا تو او د حلال رزق دعا غواړي، ځکه چې د جومات نه بهر د نيا سره واسطه راځي، بعضې رواياتو کې د دخول مسجد په وخت کې مذکوره دعا سره د دې الفاظو د زيادت نقل شوی دی (بسم الله والسلام على رسول الله) (المرقات ۲/۴۱۰) که څوک دا هم ووايي ډيره ښه خبره ده.

## جومات ته د داخليدو نه پس دوه رکعته نفل کوئ

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ |
| دابو قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي: چې کله تاسو کې څوک داخل شي |

(۱) أخرجه مسلم ۴۹۴/۱ رقم الحديث ۶۸-۷۱۳، وأبوداؤد ۳۱۷/۱ رقم الحديث ۴۶۵، والنسائي ۵۳/۲، رقم الحديث: ۷۲۹، مسند أحمد ۴۹۷/۳.

| |
|---|
| الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ ». (متفق عليه).[1] |
| مسجد ته هغه ته په کار دي چې د ناستې نه مخکې دوه رکعته مونځ وکړي. |

**توضیح: فليركع:** دا دوه رکعته تحية المسجد باندې مشهور دي، که دې کې د تحية الوضوء نيت وشي، ددې ثواب به ان شاء الله حاصل شي، اوس ددې دوو رکعتونو حيثيت څه دی، د اهل ظواهرو او شوافعو په نزد باندې د دخول مسجد نه پس دوه رکعته مونځ واجب دي، خو دا ثواب به کوم وخت ملاویږي. شوافع وايي دا ثواب د کيناستو نه مخکې کولو باندې ملاويږي که مونځ گزار جومات کې کيناستو بيا ثواب نه ملاويږي د جمهورو فقهاو په نزد تحية المسجد دوه رکعته نفل واجب نه دي بلکې نفل دي، اهل ظواهراو شوافع زير بحث حديث کې د امر صيغې ته گوري چې دا وجوب د پاره ده، (المرقات ۲/۴۱۰) جمهور وايي د امر دا صيغه دوجوب د پاره نه ده بلکې استحباب باندې محمول ده ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې دې حديث د لاندې ليکي، که د دخول مسجد په وخت کې يو کس بې اودسه وويا وخت مکروه ؤ نو څلور ځله دې سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولا حول ولا قوة الا بالله العلي **العظيم**) ووايي ده ته د دوو رکعتونو ثواب ملاؤ شو. (کذا في المرقات ۲/۴۱۰)

## د سفر نه واپس کيدلو وخت کې په جومات کې څه وخت ناسته کول

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ |
| د حضرت کعب بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله د سفر نه راواپس شو نو |
| إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ |
| د څاښت وخت کې به راتللو نو اول به جومات ته تللو، هلته به يې دوه رکعته مونځ کول، بيا به (لږساعت |
| جَلَسَ فِيهِ". (متفق عليه)[2] |
| پورې) په جومات کې کيناستو. |

**توضیح: بدأ المسجد:** يعني د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ عام معمول داؤ چې د خپل سفر نه به واپس کيدو وخت کې د

---

(۱) أخرجه البخاري ۱/۵۳۷، رقم الحديث: ۴۴۴، ومسلم ۱/۱۹۵ رقم الحديث ۶۹-۷۱۴، وأبو داود ۱/۳۱۸ رقم الحديث ۴۶۷، والنسائي ۲/۵۳، رقم الحديث ۷۳۰

(۲) أخرجه البخاري ۶/۱۹۳، رقم الحديث ۳۰۸۸، ومسلم ۱/۴۹۶، رقم الحديث ۷۱-۷۱۶، وأبو داود ۳/۲۲۰، رقم الحديث ۲۷۸۱، و النسائي ۲/۵۳، رقم الحديث ۷۳۲، أخرجه أحمد في المسند ۶/۳۸۶

شپې په ځاى د ورځې په وخت کې مدينې منورې ته تشريف راوړلو او چې د ورځې به تشريف راوړلو.
نو کور ته د تللو نه مخکې به لږ ساعت مسجد نبوي کې کيناستو. د دې نه به يوه فائده دا کيدله، که د
ځائينت وخت به وو، نو مونځ به يې وکړو يا د تحية المسجد ثواب به يې حاصل کړو. او دويمه فائده
داده چې مدينې منوره کې کوم صحابه کرامو رضي الله عنهم د جدائي وختونه تير کړي وو هغوئ ته به
جومات کې د يو ځاى کيدلو زيارت موقع ملاويدله او د يو بل احوالو نه به خبريدل. دريمه فائده دا وه
چې کورونو کې زنانه او ازواج مطهرات د خپل ځانونو او د کور صفايانې وکړي، په دې حديث کې د
امت د پاره ډير ښه تعليم پروت دى. (المرقات ۲/۴۱۱، اشعة اللمعات ۳۵۲).

## په جومات کې د ورک شوي څيز اعلان منع دى:

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَمِعَ رَجُلًا |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دى وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: چې څوک دا واوري (يا وګوري) |
| يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَقُلْ : |
| چې څوک جومات کې خپل ورک شوي څيز ګوري نو هغه ته په کار دي چې د هغه جواب کې دا ووايي چې. |
| لَا رَدَّهَا اللهُ عَلَيْكَ فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهٰذَا". (رَوَاهُ مُسْلِم)[1] |
| الله تعالى دى ستا ورک شوى څيز پيدا نه کړي ځکه چې جوماتونه د ورک شوو څيزونو د پاره نه دي جوړ. |

**توضيح: لا ردها الله عليک:** علماء ليکي په ظاهر الفاظو باندې عمل کولو د پاره که څوک داسې بد
دعا وکړي، نو دا جائز ده، خو د زړه نه د بد دعا نيت نه وي، هو که څوک دا خيال کوي داسې بد دعائي
سره دغه کس او نورو خلکو ته عبرت حاصليږي او بيا جوماتونو کې داسې اعلانات نه کوي، نو بيا د
زړه نه داسې بد دعائي کولو ګنجائش شته. (المرقات ۲/۴۱۱، اشعة اللمعات ۳۵۲).

نن سبا مساجدو کې اکثر د امامانو سره د خلکو په دې اعلاناتو باندې جګړې وي، د ماشومانو د
ورکيدو اعلانات او د مړو د جنازو اعلانات او د خلکو د مالونو اعلانات جوماتونو نه کيږي، بلکې د
پنجاب په طرفونو کې اوريدلي دي، چې د چرګانو او د چيلو اعلانات هم جوماتونو نه کيږي، چې دا ډير
غلط کار دى، د جومات انتيظاميه ته په کار دي چې جومات نه بهر لوډ سپيکر انتظام وکړي او صرف د
ورک شوو څيزونو اعلانات نه بلکې هر هغه عمل چې کوم د جومات د تعمير د مقاصدو نه جدا وي،

---

(۱) أخرجه مسلم ۳۹۷/۱ رقم الحديث.۷۹-۵۶۸، وأبو داود ۲۱/۱ رقم الحديث: ۴۷۳، وابن ماجة ۲۵۲/۱، رقم الحديث.۷۶۷. أخرجه أحمد في المسند ۳۴۹/۲.

ددې شور مسجد کې جائز نه دی.د سلف صالحينو په نزد باندې يو سائل ته هم صدقه ورکول نه ده صحيح،دحديث آخري جمله ( فأن المساجد لم تبن لهذا ) دغه عموم طرف اشاره کوي.

## که بدبودار څيزونه وخورئ نو بيا جومات ته مه ځئ :

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «مَنْ أَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ |
| دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي: چا چې خوراک وکړودې ونو |
| الْمُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَتَأَذّٰى مِمَّا |
| بد بودارو (پياز او اوګه) نه هغه دې زمونږ جومات ته نه راځي ځکه چې ملائکو ته تکليف وي د هغه څه |
| يَتَأَذّٰى مِنْهُ الْإِنْسُ» .(متفق عليه).[1] |
| نه دکوم د وجې نه چې انسان ته تکليف وي . |

**توضيح: الشجرة المنتنة:** د بدبودارې ونې څخه پياز او اوګه مراد دي، څنګه چې راتلونکي حديث کې راځي، مطلب دا دی چې څنګه انسان ته د بدبودارو ونو څخه تکليف رسيږي دغه رنګ فرښتو ته هم رسيږي، مسلمانانو ته په کار دي، چې کله پياز او اوګه وخوري نو بيا دې جومات ته نه ځي، ځکه چې انسانانو سره فرښتې هم جومات کې وي، هغوئ ته تکليف ملاويږي، په دې حکم کې هر هغه څيز داخل دی، چې بدبودار وي، که د خوړو څيزونه وي، لکه ګندنې، مولۍ، نسوار، سيګريټ، تمباکو والا پان وغيره ټول داخل دي، که د يو کس ترخ يا خولې يا بدن د يو زخم څخه بدبوی ځي ددې هم دا حکم دی، چې جومات ته داسې خلک مه راځئ، (المرقات ۲/۴۱۲، اشعة اللمعات ۳۵۲).

که نه سميږي حکومت باندې لازم دي چې دوئ منع کړي، مونځ ګزار او فرښتو ته دې تکليف نه ورکوي، بدبودار څيزونو څخه پس ګوره وغيره استعمالوئ دې سره بدبو ختميږي، دايې علاج دی د جومات قيد احترازي نه دی، بلکې علماء ليکي داسې خلک د وعظ مجالسو،دذکر اذکارو او محافلو او د قرآن کريم او حديث درسګاهانو ته هم مه پريږدئ ، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي عامو مجالسو مثلاً د وليمې دعوت ته هم مه ځئ.(اشعة اللمعات ۳۵۲).

**مسجدنا:** دې لفظ نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عموم طرف ته اشاره ده، چې صرف مسجد نبوي سره خاص نه دی، بلکې د مسلمانانو عام مساجدو دا حکم دی، ځکه (مسجدنا) څخه علاوه (مساجدنا) الفاظ

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۳۹،رقم الحديث ۸۵٤، ومسلم في الصحيح ۱/۳۹٤ رقم الحديث ۷۲-۵٦٤، والنسائي ۲/٤۳، رقم الحديث ۷۰۷ ، أخرجه أحمد في المسند ۳/۳۷٤

هم راغلي دي، کوم ځای کې چې مسجدی لفظ راغلی هغه نور هم د سخت والي او تغلیظ د پاره دی د نورو مساجدو په نسبت سره مسجد نبوي کې ددې بدبو نه سخت احتراز راغلی دی.

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ |
| د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي: لاړې تُوکَل په جومات کې ګناه ده |
| وَ كَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا». (متفق عليه).[1] |
| او ددې کفاره دا ده، چې دا لاړې په ځمکه کې ومنډي. |

**توضیح: البزاق:** یعني جومات کې لاړې تُوکَل یو قسم ګناه ده او کفاره یې ازاله کول دي. (المرقات ۲/۴۱۳، اشعة اللمعات ۳۵۳).

**دفنها:** ددفن کولو نه مراد ازاله ده، دا مطلب نه دی چې جومات کې توکل کوي بیا یې دفن کوي که کله د مسجد حصه داسې وي چې هغې کې خټه او شګه وي خو قصداً توکل مراد نه دي دا ټول د اضطرار صورتونه دي دلته څه الفاظو کې فرق ضروري دی: **النخامة** دا دهغه بلغم نوم دی چې سینې نه بره خولې طرف ته راشي دې ته نخامه وایي **النخاع** دا دهغه بلغم نوم دی چې ددماغونه ښکته خولې ته راشي (کذافي اللمعات) دا باریک فرق دی، خو دا الفاظ یو د بل په ځای ویلی شي. **بزاق، بصاق، بساق** او **تفل** د خولې لاړو ته ویلي شي، لیکن تر څو پورې چې خولې کې وي هغې ته ریق ویلي شي.

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عُرِضَتْ عَلَيَّ أَعْمَالُ أُمَّتِي |
| د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل پیش کیږي ماته زما د امت اعمال |
| حَسَنُهَا وَ سَيِّئُهَا فَوَجَدْتُ فِي مَحَاسِنِ أَعْمَالِهَا الْأَذَى يُمَاطُ عَنِ الطَّرِيقِ وَ وَجَدْتُ |
| ښه او بد اعمال، ما ولیدل په نیک اعمالو کې د لارې نه تکلیف رسونکی څیز لرې کول، او ومې لیدل |
| فِي مَسَاوِئِ أَعْمَالِهَا النُّخَاعَةَ تَكُونُ فِي الْمَسْجِدِ لَا تُدْفَنُ». (رَوَاهُ مُسْلِم)[2] |
| په خراب اعمالو کې چې په مسجد کې دننه لاړې توکړي او هغه دفن نه کړي. |

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۱۱/۱، رقم الحديث ۴۱۵، مسلم رقم الحديث: ۵۵-۵۵۲، وأبو داود ۳۲۲/۱ رقم الحديث: ۴۷۵، والنسائي ۵۰/۲، رقم الحديث: ۷۲۳، أخرجه أحمد في المسند ۲۳۲/۳.

(۲) أخرجه مسلم ۳۹۰/۱ رقم الحديث: ۵۷-۵۵۳، وابن ماجة ۱۲۱۴/۲، رقم الحديث ۳۶۸۳. أخرجه أحمد في المسند ۱۷۸/۵

۱۱

## د مونځ په حالت کې چې بلغم راشي نو څه کول ورسره په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ |
| دحضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي کله چې تاسو مونځ ته ودرېږئ نو |
| فَلَا يَبْصُقْ أَمَامَهُ فَإِنَّمَا يُنَاجِي اللهَ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ وَلَا عَنْ يَمِينِهِ |
| مه توکوئ خپلې مخې ته ځکه چې تاسې د الله سره مناجات کوئ ترڅو چې په مونځ کې يئ، او نه ښي طرف |
| فَإِنَّ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكًا وَ لْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ فَيَدْفِنُهَا». |
| ته ځکه چې ښي طرف ته فرښته ده، او توکړئ گس طرف ته او یا لاندې د قدمونو او بیایې ځمکه کې ښخ |
| وَ فِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ سَعِيدٍ: «تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى».(متفق علیه).(۲) |
| کړئ. د ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کې دي، بلکې د خپل گس قدم د لاندې توکړئ. |

**توضیح: فانما يناجي الله:** دې حدیث کې د مونځ گزار کس تشبیه يې د هغه کس سره ورکړې ده چې خپل واجب الاحترام مالک ته ولاړ وي او هغه سره خبرې کوي او دغه حالت کې او دغه کیفیت کې د خپل مالک عزت او احترام د ټولو آدابو خیال ساتي او د هغه طرف ته د توکلو جرات نه کوي. دغه مونځ کونکي د پاره واجب دي، چې کله خپل حقیقي مالک ته مخامخ مونځ د پاره ولاړ وي، د ټولو آدابو خیـ' دې وساتي او د حاضریدو د شرائطو خیال دې وساتي، چې خپل مالک مخامخ لاړې توک نه کړي، که توکلو باندې مجبوره شي، بیا دې مخامخ نه توکوي، د الله تعالی ذات اگر چې د جهت او سمت د قیوداتو نه پاک دی، خو اسلام د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طریقې سره آداب مسلمانانو ته رسولي دي چې د رب ذوجلال په دربار کې د حاضرۍ په وخت کې کوم داسې صورت او طریقه اختیار شي چې د الله تعالی د ذات د کبرائي سره منافي وي.(الکاشف ۲/۲۷۸).

**عن یمینه ملکا:** دې فرښتې نه د کراماکاتبین نه علاوه نورې فرښتې مراد دي خاص کر مونځ وخت ښي طرف ته ولاړ وي، مونځ گزار د پاره رهنمائي او دعا کوي، گویا دا یو مېلمه دی د ده احترام پـ' مو گزار باندې واجب دی د هغه طرف ته توکل منع دي یا فرښتې نه مراد کراماکاتبین دي د هغوي 'حتر لازم دی دا افضل دي د هغه فرښتې نه چې گس طرف ته وي د انسان بدیانې لیکي ښي طرف ته فر امیره ده گس طرف ته فرښته ماموره ده ځکه ښي طرف ته توکلو نه منع فرمایلې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري ۵۱۲/۱، رقم الحديث ۴۱۶، ومسلم ۳۸۹/۱ رقم الحديث ۵۳ ـ ۵۵۰، وابن ماجة ۳۲۶/۱، رقم الحديث ۱۰۲۲.

۲۲ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

## هر يو قبر ځای د سجدې ګرځول حرام دي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ |
| د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: په هغه بيمارۍ کې چې د هغې نه |
| لَمْ يَقُمْ مِنْهُ : « لَعَنَ اللهُ الْيَهُوْدَ وَ النَّصَارَىٰ |
| پا نه څېدو (يعني مرض وفات کې) د الله تعالى لعنت دې وي په يهودو او نصاراو باندې چې دوی د |
| اتَّخَذُوا قُبُوْرَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ». (متفق عليه)[1] |
| خپلو پيغمبرانو د قبرونو ځای د سجدې جوړ کړی وو. |

**توضيح: لعن الله اليهود:** کله چې حضور صلی الله علیه وسلم ته د الله تعالى د طرف څخه معلوم شو، چې اوس ډير زر د دنيا څخه روان دی، نو حضور صلی الله علیه وسلم ته ويره راغله، چې هسې نه زما ، امت څه خلک زما د قبر سره هغه معامله ونه کړي کومه معامله چې يهودو او نصارى د خپلو انبياو علیهم السلام د قبرونو سره کړې وه، دې وجې نه يې خپل امت ته تنبيه ورکړه چې يهود او نصارى د کوم کار د وجې نه ملعون ګرځيدلي وو، د هغې نه تاسو بچ شئ. (المرقات ۴۱۵-۲/۴۱۶، اشعة اللمعات ۳۵۳).

شيخ عبد الحق رحمه الله لمعات کې د علامه توربشتی رحمه الله د حوالې سره ليکي قبرونه ځای د سجدې جوړول دوه طريقو سره دي، يو طريقه دا ده محض د قبر د عبادت په نيت سره قبرونو ته سجده کول، (لکه څنګه چې نن سبا دي) دويمه طريقه دا ده عبادت خو د الله تعالى د پاره وي خو ځای د سجدې د يو پيغمبر قبر جوړ کړي په دې خيال چې، دغه رنګ عبادت سبب د قبليدو دی، ځکه چې دې کې د الله تعالى عبادت هم وي او د انبياء کرامو او د هغوئ د قبرونو تعظيم کول هم وي دا دواړه طريقې غير مشروع دي، د الله تعالى د رسول صلی الله علیه وسلم په نزد باندې ناخوښې دي، رومبۍ طريقه خالص شرک او کفر دی. او دويمه طريقه هم حرامه ده او دا شرک جلي دی خو خفي او معنوي شرک دی حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل: (**اللهم لاتجعل قبري وثنا يعبد اشتد غضب الله على قوم اتخذوا قبور انبياءهم مساجد**) علامه توربشتی رحمه الله مزيد تشريح کې ليکي چې دې نه معلومه شوه، چې د يو نبي يا د يو ولي قبر طرف ته بطور تبرک او تعظيم مونځ کول حرام دي، (اشعة اللمعات ۳۵۳).

---

(۱) أخرجه البخاري ۱٤۰/۸، رقم الحديث ٤٤٤١، ومسلم ۳۷٦/۱ رقم الحديث ۱۹-۵۲۹، أخرجه أحمد في المسند ۱۲۱/٦

علامه نووي رحمه الله ليکي چي د بزرگانو په قبرونو د تبرک د وجې مه کوئ، ځکه چې ددې په ممانعت کې حديث موجود دی او ددې په حرمت کې د شک او شبهې گنجائش نشته دی او ماته معلومه نده چې د تعظيم او د تبرک د وجې څخه د يو نبي يا د يو ولي قبر طرف ته مونځ کولو په حرمت کې د چا اختلاف شته دی، علامه تورپشتی رحمه الله ليکي که د قبرونو خواته جومات وي يا داسې ځای وي چې هلته قبرونه په نظر راځي، نو په داسې ځای کې مونځ کول شي، داسې ځای کې هم د مونځ گنجائش شته دی، چې هلته يو مبي د پيغمبرانو قبرونه وو، خو وروسته د هغې نښې هم باقي پاتې نه شوې، څنگه چې مشهوره ده چې حطيم کې د حضرت اسمعيل عليه السلام قبر دی حالانکې خلک هلته مونځ کوي. (کذا في اشعة اللمعات ۳۵۴)

بهرحال نن سبا عوام الناس د بزرگانو په مزارونو باندې د شرع خلاف سجدې او طوافونه کوي او نور ناروا کارونه هم کوي چې د اسلام او قرآن د تعليماتو نه سراسر منافي دي. يو شاعر ښه ويلي دي :

زندگی اس کی ہے ملت کیلئے پیغام موت ❁ کر رہا ہوں جو بجائے کعبہ قبروں کا طواف

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ جُنْدُبٍ قَالَ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « أَلَا |
| د حضرت جندب رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې : ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي چې فرمايل يې : خبردار! |
| وَ إِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانُوا يَتَّخِذُونَ قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ وَ صَالِحِيهِمْ مَسَاجِدَ |
| ستاسو نه مخکې خلکو د خپلو انبياو عليهم السلام او د بزرگانو د قبرونو نه سجده گاه جوړې کړې وې، لهذا |
| أَلَا فَلَا تَتَّخِذُوا الْقُبُورَ مَسَاجِدَ إِنِّي أَنْهَاكُمْ عَنْ ذٰلِكَ »[1]. |
| خبردار شئ تاسو خلک قبرونه سجده گاه مه جوړوئ، زه تاسو ددې نه منع کوم. |

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ |
| د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې : نبي عليه السلام فرمايي : کوئ تاسې په خپلو کورونو کې |
| مِنْ صَلَاتِكُمْ وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا ». (متفق عليه)[2] |
| بعضې مونځونه او د کورونو نه قبرونه مه جوړوئ. |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۷۷/۱ رقم الحديث ۲۳ ۵۳۲

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۲۸/۱، رقم الحديث ۴۳۲، ومسلم في الصحيح ۵۳۸/۱ رقم الحديث ۲۰۸-۷۷۷، وأبو داود ۶۳۲/۱ رقم الحديث ۱۰۴۳، والنسائي ۱۹۷/۳، رقم الحديث ۱۵۹۸، أخرجه أحمد في المسند ۱۶۲

**توضیح: من صلوتکم**: یعنې خپل نوافل او سنت چې جماعت په کې نه وي هغه په کورونو کې کوئ ستاسو په کورونو کې به برکت راځي او عبادت د وجې نه به کور کې هدایت راځي. (المرقات ۲/۴۱۷)

**ولاتتخذواها قبورا**: یعنې کورونه د عبادت نه داسې مه خالي کوئ لکه څنګه چې قبرونه خالي دي، بلکې د نوافلو او سنتو یوه حصه په کور کې کوئ، دغه وجه ده چې فقهاو سنت او نوافل کور کې کولو ته افضل ویلي دي، دا معنی ډیره واضح ده، بعضې شارحینو دا مطلب اخیستی دی چې خپل مړي کورونو کې مه دفن کوئ کورونو نه قبرستان مه جوړوئ، خو دا مطلب لرې دی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿۲۵﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ»[1]

د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایلي دي: په مینځ د مشرق او مغرب کې قبله ده.

**توضیح: قبلة**: ددې حدیث تعلق د مدینې منورې سره دی نورو ملکونو کې حکم داسې نه دی او شریعت کې ډیر مسائل داسې دي چې د هغې تعلق د خاص ځای یا زمانې سره وي، مدینه منوره چې ته واقع ده ددې په شمال کې شام واقع دی او جنوب کې یې مکه واقع ده، مشرق طرف ته یې خراسان نع دی او جانب مغرب کې مغربي علاقې دي، ددې حدیث مطلب دا شو چې کوم خلک مدینې کې سیږي یا د مدینې په طرف کې د هغوئ د پاره قبله د مشرق او مغرب په مینځ کې ده، نه مشرق ددوی قبله ده او نه مغرب، یعنې ددې دواړو په مینځ کې جنوب د دوي قبله ده، مشرق او مغرب صیفاً او شتاءً سیږي، لیکن د مینځ په لفظ کې ډیر وسعت دی هر موسم کې قبله مینځ کې وي. (اشعة اللمعات ۳۵۴)

﴿۲۶﴾ وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: خَرَجْنَا وَفْدًا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْنَاهُ وَصَلَّيْنَا مَعَهُ وَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّ بِأَرْضِنَا

د طلق بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: مونږ د یو وفد په شکل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راغلو او مونږ تولو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره بیعت وکړو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره مو مونځ وکړو او بیا مو دا عرض وکړو چې زمونږ په ځمکه

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۷۳، رقم الحديث ۳۴۴، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۳۲۳ رقم الحديث ۱۰۱۱.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِيعَةٌ | لَنَا | فَاسْتَوْهَبْنَاهُ | مِنْ | فَضْلِ | طَهُورِهِ |

كې يوه ګرجه ده هغې سره څه وكړو نو موږ وغوښتې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه د هغه د اودس نه پاتې شونكې اوبه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَدَعَا | بِمَاءٍ | فَتَوَضَّأَ | وَ | تَمَضْمَضَ | ثُمَّ صَبَّهُ | لَنَا |

نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام اوبه راوغوښتې اودس يې پرې وكړو او خوله كې يې اوبه واچولې بيا يې واچولې اوبه

فِي إِدَاوَةٍ وَ أَمَرَنَا فَقَالَ : « اخْرُجُوا فَإِذَا أَتَيْتُمْ أَرْضَكُمْ فَاكْسِرُوا بِيعَتَكُمْ

په يو لوښي كې او موږ ته يې وفرمايل كله چې خپل ځاى ته لاړ شئ هلته ګرجه ورانه كړئ او په هغه ځاى كې

وَانْضَحُوا مَكَانَهَا بِهٰذَا الْمَاءِ وَاتَّخِذُوهَا مَسْجِدًا » قُلْنَا : إِنَّ الْبَلَدَ بَعِيدٌ وَ الْحَرَّ شَدِيدٌ

دا اوبه واچوئ او بيا هلته جومات جوړ كړئ موږ عرض وكړو زموږ ښار خو ډير لرې دى او سخته ګرمي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ الْمَاءَ | يُنْشَفُ | فَقَالَ : « | مُدُّوهُ | مِنَ | الْمَاءِ | فَإِنَّهُ |

ده دا اوبه چې هلته رسيږي نو وچې شوي به وي نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل : نورې اوبه ور سره ملاؤ كړئ ځكه

لَا يَزِيدُهُ إِلَّا طِيبًا [1] ».

چې ددې په پاك والي او بركت كې به نوره اضافه هم وشي.

**توضيح: وفدا:** ضرب يضرب نه وفدا وفوداً وافادة د هغې معززې جرګې نوم دى كوم چې د يو قوم د طرف نه خپل امير ته معامله وړي، ددې مفرد وافد دى، سنه۹هـ د سنة الوفود په نوم سره يادېږي مسجد نبوي كې ددغې وافدينو قيام به كيدو دغې كې د يوې ستنې نوم اسطوانة الوفود ده، د وفد عبدالقيس قصه مشهوره ده هلته تشريح هم شوې ده.

**بيعة:** د عيسائيانو د عبادت ګاه نوم دى او دې ته ګرجه ويل كيږي او كنيسه د يهوديانو عبادتخانې ته ويلى شي او مسجد د مسلمانانو عبادت ځاى ته ويلى شي، شارحين ليكي د وفد داخلك رومبى عيسائيان وو بيا چې كله مسلمانان شو هغوئ د خپلې ګرجې غورځول او غوښتل چې جومات پرې جوړ كړي، خو هغوئ غوښتل چې ګرجه كې د غير الله د عبادت اثرات پراته دي دغې د ختميدو د پاره دغه ځاى وينځل ضروري دي او بيا د پيغمبر ﷺ د تبرك اوبه پرې اچول په كار دي دې مقصد د پاره دا اودس نه باقي پاتې شوې اوبه او غوښتلې او پيغمبر ﷺ وركړې. (المرقات۲/۴۱۹).

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲/۳۸ رقم الحديث : ۷۰۱.

**فأستوهلباه:** مطلب دا دی چې بطور هبه یې او به وغوښتلې.

**اداوه:** د چمړې لوښې ته ویلې شي، چې د اوبو نه به یې ډک کړو سفر کې به یې وړه، دې ته اردو کې چهاګل وایي.

**ينشف:** د مجهول صیغه ده د وچیدو په معنی ده، مطلب دا چې مسافت لرې دی، سفر اوږد دی د ګرمۍ موسم دی او اوبه د وچیدو شیز دی هلته د رسیدو پورې به وچې شي (مدوه) د امر صیغه ده د مدد نه دی، دې کې مزید اوبه ملاؤ کړئ چې دغه اوبو سره د هغې مدد وشي.

**لا يزيد الا طيباً:** یعني دا خیال مه کوه چې د نورو اوبو ملاویدو سره به د اصل اوبو برکت ختم شي، بلکه کومې نوې اوبه چې پکې واړولی شي، نو د اصل اوبو برکت به ډیر شي، دویم مطلب دا دی دا نوې اوبه چې ددغه متبرک اوبو سره ملاؤ شي ددې سره به د نوو اوبو برکت هم زیات شي، ددې جملې نه دواړه مطلبونه آخستل کیږي، شیخ عبدالحق لمعات کې لیکلي دي ددې نه د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د تبرکاتو ثبوت ملاویږي یا د پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَام د وارثانو علماو او صلحاو تبرکاتو ثبوت هم ملاویږي. (اشعة اللمعات ۳۵۴).

شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ بالکل صحیح لیکلي دي، خو دې کې د حدود شریعت نه تجاوز نه دی په کار چرته ددې عبادت شروع نه شي. (اشعة اللمعات ۳۵۴-۳۵۵)

علماو لیکلي دي خلک چې زمزم د لرې لرې علاقو پورې وړي او دا تبرک ګڼي او د خیر او برکت والا یې ګڼي دې حدیث نه ددې ثبوت ملاویږي، بهر حال برکت ورکوونکی صرف او صرف د الله تعالی ذات دی او کوم شیزونو کې چې د الله تعالی تبرک اچوي هغه متبرک کیږي.

## محلو او کورونو کې جوماتونه عام کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فِي الدُّورِ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام په محلو کې د جوماتونو جوړولو حکم |
| وَ أَنْ يُنَظَّفَ وَ يُطَيَّبَ [1]. |
| کړی دی او دا چې (هغه جوماتونه دې) صفا وساتل شي او خوشبوداردې کړی شي. |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۳۱٤/۱ رقم الحديث ٤٥٥، وأخرجه الترمذي في السنن ۴۸۹/۲، رقم الحديث ۵۹٤، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۵۰/۱ رقم الحديث ۷۵۸

**توضیح:** (دور) دال د ضمې سره د دار جمع ده دار کور ته ویل کېږي او محلې ته هم ویل کېږي، دلته محله مراد ده، یعنې حضور ﷺ صحابو ته فرمایي په خپلو خپلو کورونو کې د کورونو جوماتو نه جوړ کړئ او په خپلو محلو کې د محلې جوماتونه جوړ کړئ. (المرقات ۲/۴۲۰).

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي په حدیث کې هغه جوماتونه مراد دي چې کورونو کې د مونځ د پاره یو ځای خاص کړی شي، دې څخه محله هم مراد اخیستی شي، چې په هره محله کې ځان ته جومات په کار دی چې خلکو ته آساني وي او د جماعت ثواب حاصلول آسان وي، دا په هغه صورت کې دي، چې کله بل جومات ته نقصان نه وي، که نقصان وي، نو بیا جائز نه دی.

بهر حال جوماتونه قائم کول د مسلمان دیني، مذهبي، قومي او ملي علامه ده، مساجد قیام باعث د برکت او د رحمت دي، چې په کومې محلې کې د اهل حقو جومات وي د دغې محلې خلکو د اهل حقو سره تعلق جوړیږي چې په کومې محلې د اهل باطلو جومات وي، نو خلک هم د اهل باطلو سره کېږي، ځکه مسلمانانو له جوماتونو جوړولو کې خیال کول په کار دي، دین اسلام د جهاد په ذریعې سره دنیا کې خور شوی دی او جوماتونه د علما او په ذریعې سره برقرار او محفوظ دي، چې کوم ملک کې جوماتونه او علماء ختم شي د خلکو څخه دین ختمیږي او هغوی مرتد لوی شي او بیا مرتد کیدو سره مړه شي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل دور خلافت کې حکم جاري کړی وو، چې کومه علاقه فتح شي ړومبی هلته جومات جوړوئ، خو د یو جومات په ذریعې سره بل جومات ته نقصان مه رسوئ، یعنې مسجد ضرار جوړ نه شي، د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور خلافت کې د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حکم باندې ځلور زره جوماتونه جوړ شو او جامع جوماتونه نهه سوه (۹۰۰) جوړ شو. ابن مالک رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث نه د کورونو جوماتونه مراد اخیستي دي، اګر چې ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ دا مرجوح کړی دی، (المرقات ۲/۴۲۱).

حقیقت دا دی چې په کورونو کې جوماتونه مفید دي، د کور خلک هر وخت مونځونه او عبادتونه په کې کوي، د باران، یخنۍ او د ویرې د وجې نه د کور افراد په هغې کې مونځونه کوي، ماشومانو ته تعلیم ورکولی شي چې مونځ څه څیز دی د کور والا و شوق پیدا کېږي چې مونږ مسلمانان یو، زمونږ سره جومات دی، مونږ باندې چې صفائي لازم ده، مونږ باندې د هغې خوشبودار کول لازم دي، د کور والاو د دغه څیزونو د احساس سره سره د الله تعالی طرف نه د جومات د وجې نه رحمت او برکت ځان له حاصلیږي، لهذا د حدیث دا مطلب بیانول هم ضروري دي، د دې حدیث الفاظ عام دي که د محلې جومات وي یا د کورونو جومات، البته جوماتونه ظاهري او معنوي اعتبار سره آبادول په کار دي او پاک ساتل ضروري دي. (المرقات ۲/۴۲۱).

## په جوماتونو کې نقش ونګار د قيامت د علامو نه دی

﴿۲۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « مَا أُمِرْتُ

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي: ماته حکم نه دی شوي

بِتَشْيِيدِ الْمَسَاجِدِ » . قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : لَتُزَخْرِفُنَّهَا

د جوماتونو د اوچتولو او ښائسته کولو ،ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: تاسې د عبادت خانو ښائسته والي

كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُود وَ النَّصَارَى[1].

کوئ لکه څنګه چې يهود او نصارى (د عبادت خانو) ښائسته والی کوي.

**توضيح: تشييد المساجد:** د باب تفعيل نه تشييد روغن سره ښائسته کول او سمنټ وغيره سره پلستر کول، روغن سره پالش کول او مضبوط او اوچتولو په معنى کې دی، د مضبوطې او د وچتوالي په معنى (المرقات ۲/۴۲۱، اشعة اللمعات ۳۵۵) د قرآن کريم آيت داسې دي: ﴿وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ﴾ (نساء: ۷۸) ﴿فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾ طرفه بن العبد دخپلې اوښې تشبيه د مضبوط پل سره ورکړې ده، هغه داسې:

كقنطرة الرومي اقسم ربها ❊ لَتُكْتَنِفَنَّ حتى تشاد بقرمدة

ددې معنى په اعتبار سره مطلب دا شو چې ماته اوچتو او عاليشان او مضبوطو پليستر شوي جوماتونو د جوړيدو حکم نه دی شوی، مسجد نبوي د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وخت مبارک کې ساده او کچه وو، ديوالونه يې د خښتو او چت يې د کهجورو د څانګو څخه جوړ وو او ستنې يې د کهجورو د تنو څخه يا د کهجورو د لرګو څخه وې، عهد صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې يې هم دا حالت وو، د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې دوباره تعمير شو؛ خو دغه رنګ ساده يې پريښودو، څنګه چې مخکې وو، خو څه نا څه کولاو والی په کې شوی وو، بيا د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور خلافت کې چې هغه وکتل چې کورونه عاليشان او ښائسته دي، او دا دغه رنګ زوړ دی، نو عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوي طرز باندې جوړ کړو، نو جومات کې کولاو والی هم راوستو او ښائسته يې هم کړو، ديوالونو کې مزين کاڼي او چت کې يې اعلى لرګي استعمال کړل، متاخرينو فقهاو ددې اجازت ورکړو، چې جوماتونه هم ښائسته جوړ روئ، لکه څنګه چې کورونه دي، چې جوماتونو سپکوالی ونه شي.

**لتزخرفنها:** زخرف سروزرو ته ويلې کيږي دلته مراد زيب او زينت دی او نقش او نګار ته ويلې شي،

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۱۰ رقم الحديث ۴۴۸

زمونږ فقهاء مثلا صاحب هدایه لیکلي، چې کوم ځای پورې د جوماتو مضبوطوالی وي. هغه جائز دي، که د چا ذاتي مال نه وي یا د مسلمانانو د وقف مال نه وي بیا زیب او زینت د اد وقف مال څخه جائز نه دی که یو کس نقش او نګار کول غواړي نو د هغه حد پورې کول په کار دي چې د خلکو په مونځ کې د غفلت سبب و نه ګرځي او که سبب د غفلت ګرځي نو بیا د ذاتي مال څخه هم جائز نه دی. یعنې مکروه دی. د حدیث مطلب دا شو چې راتلونکې داسې خلک به وي چې جوماتونه به ښائسته کوي او په دیوالونو باندې به سره زر مږي، حالانکې دا طریقه د سنت نبوي نه ده ځکه چې اسلام سادګي ښائي او د نقش او نګار په ځای عمل او کردار ښائي، نن سبا بریلوي حضرات مساجد عموما په دغه طرز جوړوي او د هدایت نه خالي وي، ځکه چې د شرک او بدعت مرکزونه جوړ شي حالانکې د جوماتو د پاره د الله تعالی دا حکم دی ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾.

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي عليه السلام فرمایي: د قیامت علاماتو نه یوه علامه دا |
| أَنْ يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ». [1] |
| هم ده چې خلک به د مساجدو په باره کې یو بل باندې فخر کوي. |

**توضیح: يتباهی:** دا د باب **تفاعل** او باب **مفاعله** نه **مباهات** د فخر کولو په معنی راځي، یعنې د قیامت یو څو علاماتو نه دا هم ده، چې خلک به غټ غټ جوماتونه جوړوي او هغه به ښائسته کوي او خلکو ته به یې ښائي د الله تعالی رضا به مقصود نه وي، بلکې فخر مباهات اراده به یې وي او د دنیا والو نه شاباسی حاصلول به مراد وي (المرقات ۲/۴۲۲) ګویا چې:

*مسجد تو بنادی شب بھر میں ایمان کی حرارت والوں نے ❁ من اپنا پرانا پاپی ہے برسوں میں نمازی بن نہ سکا*

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ أُمَّتِي |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي عليه السلام فرمایي: پیش کولی شي ماته ثواب زما د امت |
| حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ وَ |
| تر دې پورې چې د ګندګی او د خاورې ثواب هم پیش کولې شي چې او باسي یې سړی د جوماتو نه او |

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۳۱۱ رقم الحديث ۴۴۹، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۴۴ رقم الحديث: ۷۳۹.

عُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوبُ أُمَّتِي فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ أَوْ
پيش کولی شي ما ته ګناه د امت زما نو نه ښکاري ما ته غټه ګناه چې يو کس يو سورت د قرآن کريم او يا
آيَةٍ أُوتِيهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا» (۱).
يو آيت ياد کړي او بيا يې هير کړي.

**توضيح: القذاة: قذاة** جمع د **قذی** ده په سترګو کې معمولي شان خزله وي هغې ته قذات ويلی شي. (المرقات ۲/۴۲۲، الکاشف ۲/۲۸۴) يو شاعر وايي:

رأىٰ خَلَقِيْ حَيْثُ يَخْفٰى مَكَانُهَا ❁ فَكَانَتْ قَذَى عَيْنَيْهِ حَتّٰى تَجَلَّتِ

دې حديث کې دې طرف ته اشاره ده چې د جومات مثال د انسان د سترګې په شان دی، څنګه د انسان په سترګه کې ګند پرېوتو سره تکليف وي او هغه ددې د لرې کيدو کوشش کوي، دغه رنګ د جومات روح ته هم د ګندګۍ د وجې نه تکليف وي چا چې د جومات څخه ګندګي يعنې خزله لرې کړه ده باندې د الله تعالی رحمت نازليږي. **ثم نسيها**: يعنې الله تعالی يو کس ته د قرآن کريم دولت ورکړي قرآن کريم يې ياد کړو يا يوه حصه يې ياده کړه بيا يې ددې قرآن ناشکري وکړه او هير يې کړو دا ډيره لويه ګناه ده. دظاهر حديث نه دا معلوميږي قرآن کريم يې يادولو نه پس يا هير کړو او س يې په يادو باندې نه شي ويلی بعضې علماء ددې ګناه تعلق هغه صورت سره ښودلی دی چې دا سې يې هير کړي چې قرآن کريم په کتو هم نه شي ويلی. (المرقات ۲/۴۲۳).

﴿۳۱﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي
د حضرت بريده نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام فرمايي زيری ورکړه هغه تلونکو خلکو ته په
الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. (۲)
تيارو کې جوماتونو ته په پوره رڼا سره د قيامت په ورځ باندې.

﴿۳۲﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ
د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: کله چې تاسو ګورئ يو

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۳۱۶ رقم الحديث ۴۶۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۶۳، رقم الحديث: ۲۹۱۶
(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۲۷۹ رقم الحديث ۵۶۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۴۳۵، رقم الحديث: ۲۲۳.

الرَّجُلَ يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ فَاشْهَدُوا لَهُ بِالْإِيمَانِ فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ:
كس د جوماټ خيال ساتلو باندې نو ګواهي ورکړئ ده ته په ايمان سره ځکه چې الله تعالى فرمايي: ترجمه:
﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللهِ مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾. (سورة التوبة آيت: ۱۸) (۱)
بيشکه آبادوي جوماتونه د الله تعالى هغه څوک چې په الله تعالى او د قيامت په ورځ ايمان لري.

**توضيح: يتعاهد المسجد: تعاهد** باب **تفاعل** نه دخدمت او خيال ساتلو په معنى دى، مطلب دا دى چې تاسو يو کس وګورئ چې د الله تعالى د کور خيال ساتي د هغې حفاظت کوي جوړوي يې، د صفائي او خوشبو خيال يې ساتي، دبڼا انتظام په کې کوي، هغې کې کيني او عبادت په کې کوي، ذکر الله کې مشغول وي، تاسو ګواهي ورکړئ چې دغه کس مؤمن او ايمان والادى او د الله تعالى او د رسول ﷺ حکم منونکى دى، ځکه چې د قرآن کريم دا ګواهي ده، د دې بالعکس کوم کس چې د جوماټ سره تعلق نه ساتي، د هغې طرف ته ګوري هم نه، د ده د ايمان ګواهي نه شي ورکولى. (المرقات ۲/۴۲۵).

**لطيفه:** يو بې دينه کس خپل ديندار ځوى ته وايي: زه چې لوبنو ته ګورم نو ماته په لوبنو کې لوټه بده ښکاري او په کپړو کې مصلى ښه نه ښکاري او ځايونو کې جوماټ او په انسانانو کې ملا سړى ښه نه ښکاري ځوى ورته وويل چې تاکې خو ټول علامات د جهنمي دي مخکې معلومه نه ده چې څه به کيږي.

## د دې امت سير و سياحت جهاد دى

﴿۳۳﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بن مَظْعُون قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ ائْذَنْ لَنَا
د حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه روايت دى وايي چې: يارسول الله ﷺ! ماته اجازت وکړه
فِي الِاخْتِصَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ
د خصي کيدو (چې زنا کې اخته نه شم) نبي عليه السلام وفرمايل: هغه کس زمونږ څخه نه دى چې څوک
خَصَى وَلَا اخْتَصَى إِنَّ خِصَاءَ أُمَّتِي الصِّيَامُ».
بل خصي کړي يا په خپله ځان خصي کړي بلکې زما امت د پاره خصي کيدل روژې نيول دي (ځکه چې روژې
فَقَالَ ائْذَنْ لَنَا فِي السِّيَاحَةِ.
نيولو سره شهوت ختميږي) حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه وويل يا ماته د سير و سياحت اجازت راکړه

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۴/۱، رقم الحديث ۲۶۱۷، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۶۳/۱ رقم الحديث: ۸۰۲.

فَقَالَ: « إِنَّ سِيَاحَةَ أُمَّتِي الجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ». فَقَالَ:
نبي عَلَیْہِالسَّلَامُ وفرمایل: زما د امت سیاحت جهاد دی د الله تعالی په لاره کې، هغوی بیا وویل: صحیح ده.
ائْذَنْ لَنَا فِي التَّرَهُّبِ. فَقَالَ: « إِنَّ تَرَهُّبَ أُمَّتِي الْجُلُوسُ فِي
بیا ما ته د راهب جوړېدو اجازت راکړه، نبي عَلَیْہِالسَّلَامُ وفرمایل: راهب جوړېدل زما د امت ناسته ده په
الْمَسَاجِدِ اِنْتِظَارًا لِلصَّلَاةِ». [1]
جوماتونو کې د مونځ کولو په انتظار کې.

**توضیح**: حضرت عثمان بن معظون رَضِیَاللّٰہُعَنْهُ جلیل القدر صحابي دی مکه مکرمه کې په اسلام قبلولو کې څوارلسم نمبر مسلمان دی، د حبشې هجرت یې وکړو، بیا د مدینې منورې د هجرت څخه سرفراز شو، د حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ ورسره د زړه محبت وو، مهاجرینو کې رومبی مسلمان دی، په مدینه منوره کې (سنہ۲ھ) کې وفات شوی دی، جنت البقیع کې د ټولو نه مخکې دا صحابي مدفون دی، ددې د مرګ نه پس حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ ده دتندي مبارک نه چپه اخیستې وه او د حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ د سترګو اوښکې مبارکې ددې په تندي باندې پرېوتې، او ددې په قبر باندې حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ په خپله یو درونډ کاڼی نصب کړاووې فرمایل چې زما دخاندان خلک به ده سره دفن کولی شي (**فرضي الله عنه وعن جميع الصحابة**) (**المرقات ۲/٤٢٥**).

**في الاختصاء: اختصاء نزع الخصيتين** یعنې د خپل ځان د خصي کولو په معنی کې دی، یعنې د انساني شهوت مرکز خصیتین دي، چې کله دا ختم شي، د خواهشاتو او شهواتو جرړه ختمه شي، ددې صحابي دا مقصد وو، چې داسې طریقه اختیار کړي، چې د دنیا لذتونو د نفس خواهشاتو څخه جدا شي او د خپل رب عبادت او خوشحالۍ کې مشغول وي، د ټولو نه مخکې هغوئ حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ څخه اجازت وغوښتو، چې دا خپل عضو قوت مکمل ختمول غواړي، حضور صَلَّیاللّٰہُعَلَیْہِوَسَلَّمَ ددې غیر فطري فعل ارتکاب څخه منع کړو او ددې نه د بچ کیدو آسان علاج یې ورته وښودو، چې تاسو ډیرې روژې نیسئ، ځکه چې روژې شهوت ختموي او شیطاني وسوسې او خواهشات لرې کوي او د تعلق مع الله ښه جذبات پیدا کوي.

**ليس منا من خصى**: خصی دویم کس خصي کول او اختصاء خپل ځان خصي کولو په معنی کې دي.

---

(۱) رواه في شرح السنة ۲/۳۷۰ رقم الحديث ٤٨١

**سوال:** دلته دا اشکال دي آيا ددې عمل د ارتکاب په وجه سړی د اسلام څخه نه وځي د اهل السنة والجماعت په نزد باندې د ګناه کبیرې په ارتکاب سره سړی نه کافر کېږي. (**ليس منا**) يعنې زمونږ څخه نه دی ددې څه مطلب دی؟

**جواب:** د دارنګه سوال او جواب توضيحات جلد اول کې ليکلي دي. خلاصه دا چې حضور ﷺ د فرمان مطلب دا دی، داسې کس ددې خاص فعل د ارتکاب څخه د مسلمانانو په طريقه نه دی. د حضور ﷺ په طريقه باندې نه دی، ددې مطلب دا نه دی چې د اسلام څخه خارج شو يا دا کلام د اسلوب حکيم طور باندې وو، حضور ﷺ وفرمايل داسې کس زمونږ څخه نه دی، هغه دومره متاثره شي، چې کله به هم دغه فعل او عمل ته نيږدې کېږي نه.

**خصي جوړيدل او جوړولو حکم:** حضرت آدم عليه السلام اولاد لره وړوکی وي او که لوی وي خصي جوړيدل حرام دي، د انسانانو نه علاوه د څناورو متعلق هم علامه قرطبي رحمه الله وايي: **انه ممنوع في الحيوان الا لمنفعة حاصلة في ذلک کتطيب اللحم او قطع ضر عنه**، علامه نووي شافعي رحمه الله فرمايي څناور غير ماکول اللحم خصي کول مطلقاً حرام دي او چې کوم څناور ماکول اللحم وي په دې کې واړه څناور خصي کول جائز دي او غټ څناور جائز نه دي. (فتح الملهم)

ائمه احناف د څناورو خصي کول جائز ليکلي دي، خو مزيد تفصيلات نشته. حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله فتاوی رشيديه (ص ۴۹۱) کې ليکلي: خصي کول د ټولو څناورو د منفعت د وجې څخه يا ضرر دفع کولو د وجې صحيح دي. او د انسانانو خصي کول حرام دي.

**في السياحة:** حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه د حضور ﷺ نه د سير وسياحت اجازت وغوښتو، ددې مشغلې د وجې څخه چې نفساني خواهشاتو کې کموالی راشي او مقامي علاقو څخه لرې والی راشي. (المرقات ۲/۴۲۶).

ددې جواب کې حضور ﷺ وفرمايل زما د امت سير او تفريح او سياحت د جهاد عمل دی، ځکه چې مختلفو ملکونو کې جهاد د پاره تلونکي سير او تفريح مقصد په اعلی پيمانه باندې پوره کولی شي، او بې مقصده سفر هم نه دی، بلکې اعلی عبادت دی او د اعلاء کلمة الله او ذ اشاعة الدين د ټولو نه لويه ذريعه ده، يو حديث کې راغلي (**اغزوا تصحوا**) تاسو جهاد وکړئ صحت مند به ئې، دا هم دغه رنګ اشاره ده، غرونو، درو او واديانو او صحراو کې صحت مند آب و هوا او بدني ورزش څخه کامل صحت حاصليږي. **الترهيب:** راهب جوړيدل او د دنياوي علاقو څخه يو طرف ته کيدل او ځانله والي اختيارولو ته رهبانيت ويلی شي، اسلام يو بنائسته مذهب دی، هغه ځانله والي او ګنه کې دواړو ته حق ورکوي، ځکه چې دا دين فطرت دی، دې کې رهبانيت نشته دی، دلته د مونځ په انتظار کې ناسته

رهبانيت دى او يو بل حديث كې جهاد في سبيل الله د دې امت رهبانيت ګرځولى شوى دى.

## الله تعالى په خوب كې ليدل

| |
|---|
| ﴿۳٤﴾ وَعَن عبد الرَّحمَن ابنِ عَائِشٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ: "رَأَيتُ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ |
| د حضرت عبد الرحمن ابن عائش رضي الله عنه روايت دى وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: ما وليد وخپل رب |
| فِي أَحسَنِ صُورَةٍ قَالَ: فَبِمَ يَختَصِمُ المَلَأُ الأَعلَى؟ |
| په ښائسته صورت كې الله تعالى زما څخه تپوس وكړو چې مقربې فرښتې كومې معاملې كې بحث كوي |
| قُلتُ: أَنتَ أَعلَمُ قَالَ: |
| ما عرض وكړو: پروردګاره! تاسو ښه پوهيږئ نبي عليه السلام فرمايي: (چې دا يې واوريدل) نو الله تعالى |
| فَوَضَعَ كَفَّهُ بَينَ كَتِفَيَّ فَوَجَدتُ بَردَهَا بَينَ ثَدَيَّ |
| كيښودو لاس خپل زما د اوږو په مينځ كې چې يخوالى يې ما په خپلې سينه باندې محسوس كړو او دې |
| فَعَلِمتُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَ الأَرضِ وَ تَلَا: ﴿وَ كَذَلِكَ نُرِي إِبرَاهِيمَ |
| وجې نه زه د آسمان په ټولو څيزونو باندې پوه شوم بيا يې دا آيت مبارك ولوستو: دغه شان مونږ ابراهيم |
| مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرضِ وَلِيَكُونَ مِنَ المُوقِنِينَ﴾ [1]. |
| عليه السلام ته د ځمكې او آسمان تصرف وښودو، چې د يقين والا خلكو كې شي. |
| وَ لِلتِّرمِذِيِّ نَحوَهُ عَنهُ وَ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ |
| او ترمذي هم دا روايت (د ځينې الفاظو بدلون سره) د عبد الرحمن بن عائش رضي الله عنه او د ابن عباس رضي الله عنه |
| وَ مُعَاذِ بنِ جَبَلٍ وَ زَادَ فِيهِ: قَالَ: |
| او معاذ بن جبل رضي الله عنه نه نقل كړى دى او دې كې دا الفاظ زيات نقل كړي دي چې الله تعالى وفرمايل: |
| يَا مُحَمَّدُ! ﴿هَل تَدرِي فِيمَ يَختَصِمُ المَلَأُ الأَعلَى؟ قُلتُ: |
| اى محمد صلى الله عليه وسلم! آيا ته پوهيږې چې مقربې فرښتې په څه كې بحث كوي نبي عليه السلام وايي ما عرض |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۷۰ رقم الحديث ۲۱٤۹

| | |
|---|---|
| نَعَمْ فِي الْكَفَّارَاتِ . وَ الْكَفَّارَاتُ : الْمُكْثُ فِي الْمَسَاجِدِ بَعْدَ الصَّلَوَاتِ وَ | |
| وکړو : آو ، د کفاراتو په باره کې خبرې کوي او کفارات انتظار دي په جومات کې د مونځونو نه پس او | |
| الْمَشْيُ عَلَى الْأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ وَ إِبْلَاغُ الْوَضُوءِ فِي الْمَكَارِهِ | |
| جماعت کولو د پاره پيدل لاړ شي ، او د اودس اوبه په ښې طريقې سره ورسوي د سختۍ په وخت کې نو | |
| فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ عَاشَ بِخَيْرٍ وَ مَاتَ بِخَيْرٍ وَ كَانَ مِنْ خَطِيئَتِهِ | |
| چا چې دا وکړه نو په نيکيو باندې ژوندې پاتې شو او په نيکيو باندې به مري او د ګناهونو نه به داسې پاک | |
| كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ وَ قَالَ : يَا مُحَمَّدُ ! | |
| شي په شان د هغه ورځې چې د مور نه پيدا شوی وي او الله تعالی وفرمايل : ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! چې | |
| إِذَا صَلَّيْتَ فَقُلْ : اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَ تَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَ | |
| مونځ څخه فارغيږې نو دا دعا وايه : ای الله ! زه سوال کوم د تا سو نه د نيکيو کولو او د ګناهونو پرېښودو او | |
| حُبَّ الْمَسَاكِينِ وَ إِذَا أَرَدْتَ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِي | |
| د مساکينو سره د دوستۍ کولو او چې کله تاسو اراده وکړې په بندګانو کې د فتنې اچولو نو ما قبض کړه | |
| إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ . قَالَ : وَ الدَّرَجَاتُ : | |
| ځان ته په غير د ګناه نه الله تعالی (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په تعليم کې د اضافت د پاره) فرمايي چې درجات دادي : | |
| إِفْشَاءُ السَّلَامِ وَ إِطْعَامُ الطَّعَامِ وَ الصَّلَاةُ بِاللَّيْلِ وَ النَّاسُ نِيَامٌ . وَ | |
| د سلام عام کول ، نورو ته خوراک ورکول او مونځ کول د شپې په داسې حصه کې چې خلک ويده وي او | |
| لَفْظُ هٰذَا الْحَدِيثِ كَمَا فِي الْمَصَابِيحِ لَمْ أَجِدْهُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ إِلَّا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ . | |
| الفاظ د دې حديث لکه څنګه چې په مصابيح کې دي ما نه دي ليدلي د عبد الرحمن نه مګر په شرح السنة کې | |

**توضيح:** رايت ربي: ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي که دا د خوب واقعه وي، چې پيغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الله تعالی په خوب کې ليدلی دی دې کې هيڅ اشکال نشته دی. او د طبراني يو روايت دې باندې دلالت کوي ظاهره دا ده چې د خوب واقعه ده. (المرقات ۲/۴۲۷).

او که چيرته دا د بيدارۍ واقعه وي، د مسند احمد د يو روايت څخه معلوميږي، يا په دې کې تاويل کولی شي او هغه داسې چې مونږ د حديث په ظاهر الفاظو ايمان لرو او د دې په حقيقي ادراک کې نه ځو، الله تعالی چې خپل رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته څه ښائي مونږ صرف دا وايو چې دا د الله تعالی لوی شان دی

په هغې ایمان راوړو او کیفیاتو کې نه ځو، څنګه چې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د استوا عرش متعلق فرمایي:
(الاستواء معلوم والکیفیة مجهولة والسوال منه بدعة)

**في احسن صورة:** دې متعلق هم سلف صالحینو رائی خپله کړې ده، یعنې (مایلیق بشانه) دا غوره ده او که احسن صورة د رائیت د فاعل نه حال شي، بیا د تاویل ضرورت نشته دی، یعنې پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې ما خپل رب لیدلی دی، او زه په داسې حال کې ووم، د خوش طبعی او بهترین حالت او صورت کې ووم. **یختصم**: د جهګړې په معنی کې دی، دلته مراد دا دی د عالم بالا فرښتې چې د کومو اعمالو په فضیلت او کې متعلق بحث کوي، یا د کومو اعمالو په قبولیت کې یو بل څخه مخکې کېږي. اوله معنی ډیره واضح ده.

**فوضع کفه:** دې لفظ کې هم تاویل داسې دی (مایلیق بشانه) یعنې چې کوم د الله تعالی د شان سره مناسب دی، همدارنګې الله تعالی د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوږو په مینځ کې لاس کیښودو ددې د پاره چې د ملا الاعلی انکشاف تام او پوره شي، حالانکې د فیض رباني یخوالی د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله قلب اطهر او سینه منوره کې محسوس کړو او انکشاف تام شو.

**الملا الاعلی:** د یو قوم د اشرافو جماعت ته ملا ویل کېږي، ځکه چې دده د وجې څخه محفل ډک کېږي یا دې ته کتلو کې سترګې ډکې شي یا د رعب د وجې څخه زړه ډک شي.

**فعلمت ما بین السموات:** دغه فیض رباني د انکشاف تام کیدو د وجې څخه زه د ځمکې او آسمان ټولو څیزونو باندې پوهه شوم او د عالم بالا د بحث جواب مې ورکړو، دا خبره یاد ساتئ چې دا انکشاف تام دائمي طور باندې حاصل نه وو، چې ددې نه دا مسئله راوباسي، چې پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ما کان او مایکون حاصل شو، داسې عقیده ساتلو سره ډیرې غلط فهمیانې پیدا کېږي او د قرآن کریم ډیر آیاتونه به یا منسوخ شي، چې په دې آیتونو کې ښکاره د علم غیب نفې ده، الله تعالی فرمایي: ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ (سورة نمل آیت:٦٥) او بل ﴿وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ﴾ (اعراف آیت:١٨٨) همدارنګې دې حدیث ته محدثینو مرسل ویلی دی ځکه چې عبدالرحمن بن عائش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابي نه دی او روایت د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي، او دده نه صرف دا یو روایت منقول دی: (**البخاري عبدالرحمن حضرمي له حدیث واحد الا انهم یضطربون فیه**) (**کذا في التعلیق الفصیح**)، **وقال البیهقي قد روی بطرق کلها ضعاف**) دا روایت دې سند سره داسې دی، خو دا روایت حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه تفصیل سره رانقل دی، چې

امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په خپل مسند کې نقل کړی دی، همدارنګې امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ هم نقل کړی دی او ويلي يې دي، چې دا حديث حسن او صحيح دی. بيا فرمايي ما د امام بخاري څخه دې حديث په باره کې تپوس وکړو وې فرمايل دا حديث حسن او صحيح دی. خلاصه دا شوه، چې دا حديث صحيح دی خو انکشاف وقتي طور وو دائمي نه دی، چې د قرآن کريم او حديث په منځ کې تعارض رانه شي.

**وتلا:** ددې فعل په ضمير فاعل جوړيدو کې دوه احتماله دي، که ضمير الله تعالى طرف ته راجع شي. نو بطور دليل الله تعالى ورته ويلي دي، چې مونږ څنګه ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د ځمکې او آسمان د بادشاهت مشاهده ښودلې ده، دغه رنګ پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم مونږ د دنيا عجائبات او احکاماتو مشاهده وښودله، يا که ضمير په خپله پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راجع شي. نو بيا پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بطور استشهاد دا آيت ويلی وو، د علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دا احتمال ډير راجح دی.

**وليکون من الموقنين:** ددې جملې معطوف عليه مخذوف دی ديو د اصل عبارت ترجمه داسې ده: (مونږ ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته عالم ربوبيت او الوهيت وښودل، چې ددې په ذريعې سره زمونږ د ذات د وجود په باره کې دليل ونيسي او د يقين کونکو نه شي. انبياء کرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ په خوب کې ليدل د احاديثو څخه ثابت دي، ددې انکار صرف انکار حديث دی، البته الله تعالى خوب کې ليدلو متعلق علماء ليکي دا صرف د خيال او د تسلى حصول وي، الله چا نه دی ليدلی چې په خوب کې يې وګوري. د پيغمبرانو ذ حليه ذکر احاديثو کې موجود دی، نو خوب کې ليدل يې هم په حقيقت باندې محمول دی.

الله تعالى خوب کې ليدلو متعلق علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ شرح مسلم کې ليکلي دي: **(قال القاضي واتفق العلماء على جواز رؤية الله تعالى وصحتها في المنام. وقال ابن الباقلاني رؤية الله تعالى في المنام خواطر في القلب وهي دلالات للرائي على امور كان او يكون كسائر المرئيات والله اعلم) (حاشيه نووي، مسلم ج ۲ ص ۲۴۳)** يعني علامه ابن الباقلاني رَحِمَهُ اللهُ فرمايي الله تعالى خوب کې ليدل د د تخيلاتو څخه يو تخيل او خيال دی، دې څخه ليدونکي والا ته راتلونکي امور يا تير شوي امورو طرف ته اشاره ملاويږي، څنګه چې نورو خوبونو کې وي.

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ |
| د ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړي دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه فرمايي: چې درې کسان داسې دي چې ضامن يې دی |
| عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَل رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ |
| الله تعالى: يو هغه کس چې د الله په لاره کې وتلې وي د الله تعالى ذمه داري ده يا خو ورته (د شهادت) |

| |
|---|
| حَتّٰى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيْمَةٍ وَ |
| مرګ ورکړي چې جنت ته يې داخل کړي، یا ورته ثواب او مال غنيمت ورکړي او کورته راشي، او دويم |
| رَجُلٌ رَاحَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ |
| هغه کس دی چې هغه (د مونځ د پاره) جوماتته لاړ شي، الله تعالی د هغه ضامن دی (د عبادت د پاره د |
| وَ رَجُلٌ دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ |
| ده کوشش او ثواب نه ضائع کوي)، او دريم کس هغه دی چې خپل کورته داخل شي نو سلام کوي نو دا |
| فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ ». [1] |
| هم د الله تعالی په ذمه داري کې دی. |

**توضيح: ضامن على الله:** شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکلي چې **ضامن** مضمون په معنی کې دی، لکه څنګه چې **افق** د مدفوق په معنی کې دی او **عاصم** د **معصوم** په معنی کې د مضمون په مفهوم کې د وجوب معنی پرته ده، مطلب دا چې د دريو وارو حفاظت او ذمه داري الله تعالی خپلې رښتيني وعدې د لاندې خپل ځان باندې واجب کړې چې دريو واړه د ضائع کيدو او د ضرر د نقصان څخه حفاظت ورکوي. (اشعة اللمعات ۳۵۹، المرقات ۲/۴۳۶).

شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ دا هم ليکي د ضامن معنی د نسبت د پاره هم کيدی شي، يعني (ذو ضمان) څنګه چې لابن او تامر صيغې ذولبن او ذوتمر په معنی سره دي، مطلب هغه دی کوم چې بره تير شو، دې حديث کې دريو قسمه خلک مراد دي، دريو افراد مراد نه دي، يا دريو اقسامو کې د رومبی قسم ذمه داري تفصيلي ذکرينې، چې د غه خلک شهداء شي جنت ته به داخليږي يا به يې غازي جوړ کړي کورته به مال غنيمت او ثواب سره واپس راشي، د دويم او دريم قسم خلکو تفصيل يې ځکه بيان نه کړو، چې د دوی حالت او فضيلت واضح دی او ظاهر دی، چې د دوی حيثيت مطابق دې ته ثواب ملاويږي.

**دخل بيته بسلام:** د دې جملې دوه مفهومه دي، اول مفهوم دا چې کله دا کس کورته داخل شي نو کور والاوته د سنت مطابق سلام وکړي د دې په بدله کې به الله تعالی د دوي او د کور والاو حفاظت کوي او دوي باندې برکت نازلوي. دويم مفهوم دا چې کله دا کس کورته داخل شي او کور کې د خپلو کور والاو سره په سلامتي سره ناسته کول په ځان باندې لازم کړي او د کور نه ووځي، چې د دوی د وجې

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۶/۳ رقم الحديث . ۲۴۹۴

څخه چاته تکليف ونه رسي، دا مطلب لږ بعيد معلوميږي لمعات کې دواړه مفهومه مذکور دي.

## د حج او مونځ ثواب او د عليين تحقيق :

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « مَنْ خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ |
| د حضرت ابو امامة نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: چې يو کس جومات ته د کور نه ووځي |
| مُتَطَهِّرًا إِلَى صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ فَأَجره كَأَجر الحَاجِّ المُحْرِمِ وَ مَنْ |
| په اودس کې د فرض مونځ اداء کولو د پاره نو دده اجر په شان د احرام تړونکي حج کوونکي دي او څوک |
| خَرَجَ إِلَى تَسْبِيحِ الضُّحَى لَا يُنْصِبُهُ إِلَّا إِيَّاهُ فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْمُعْتَمِرِ |
| چې ووتو څاښت مونځ د پاره چې تکليف اوچتونکی وو نو ددې اجر په شان د اجر د عمرې کوونکي دی |
| وَ صَلَاةٌ عَلَى إِثْرِ صَلَاةٍ لَا لَغْوَ بَيْنَهُمَا |
| او څوک چې ديو مونځ نه پس دويم مونځ کوي او ددواړو مونځونو په مينځ کې بې کاره خبرې نه کول عمل |
| كِتَابٌ فِيْ عِلِّيِّينَ ».[1] |
| داسې دی، کوم چې عليين کې ليکلی کيږي. |

**توضيح: فاجره کاجر الحاج**: يعنې يو مسلمان صحيح طريقې سره په کور کې اودس وکړي او فرض مونځ د پاره جومات ته لاړشي دده ثواب دومره لوی دی لکه حاجي ته چې د حج ثواب ملاويږي او دغه مونځ گزار صرف څاښت مونځ د پاره جومات ته لاړشي ده ته د يوې عمرې هومره ثواب ملاويږي، فرض مونځ مشبه دی او حج مشبه به دی، دغه رنګ نفل مونځ د عمرې د پاره مشبه دی او عمره مشبه به ده گويا چې فرض مونځ د حج په شان دی او نفل مونځ د عمرې په شان دی او طهارت د احرام په شان دی.

**سوال**: دلته يو سوال دی دا قسم احاديث په هر ځای کې ملاويږي، مونځ په خپل ځای د حج څخه عبادت کې افضل دی، او لوی عبادت دی، خو ثواب بقدر مشقت ملاويږي او حج کې مشقت ډيروي او بل په دې کې مالي قرباني هم ده، او د وخت قرباني هم ده، نو دواړه ثواب کې څنګه برابر وي.

**جواب**: ددې جواب شيخ عبد الحق رحمه الله لمعات کې داسې ورکړی دی: (**هذا من باب الحاق الناقص بالكامل مبالغة في الترغيب وليس المراد التسوية من كل الوجوه**) يعنې دې تشبيه کې مکمل مساوات نشته صرف ترغيب کې تشبيه ده چې مونځ د حج په شان لوی عبادت دی، علامه توريشتي

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲۶۸/۵، وأخرجه أبو داود في السنن ۳۷۷/۱ رقم الحديث ۵۵۸.

رَحِمَهُ اللهُ د دې سوال يو جواب دا هم ورکړی چې د دې تشبيه مطلب دا دی چې مشبه يعنې د مونځ ثواب څو چنده يعنې دوچنده ډيرېږي دحج د ثواب برابر ګرځي، کوم چې غير مضاعف وي يعنې دوچند نه وي. (المرقات ۲/۴۳۵).

علامه دويم جواب داورکړی دی دا تشبيه مخصوص څيز کې ده عام احوالو کې نه ده مطلب دا چې څنګه مونځ کونکی د مونځ د پاره جومات ته ځي د کور ته واپس کيدو پورې ورته ثواب ملاويږي، دغه رنګ يو حاجي د کور څخه وځي د کوروا پس کيدو پورې ورته ثواب ملاويږي ګويا دا صرف امتداد ثواب کې تشبيه ده، مساوات کې نه. بعضې علماء د دې جواب داسې ورکوي د عبادت يو اصل ثواب وي او يو اضافي ثواب وي تشبيه اصل ثواب کې وي، اضافي ثواب کې نه وي د دې توجيه ذکر علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ په خپل شرح کې کړې ده. (المرقات ۴۳۳-۲/۴۳۴).

**تسبيح الضحى**: لفظ د تسبيح نوافلو د پاره استعمال شوی دی، د دې وجه تسميه دا ده، څنګه چې فرض مونځ کې تسبيحات د نوافلو په درجه کې دي، دغه رنګ فرض مونځ څخه علاوه نور مونځونه د نوافلو په درجه کې دي، ځکه يې د تسبيح په لفظ سره ياد کړی دی. **الضحى**: د څاښت مونځ ته ويل کېږي د دې فضيلت او د جواز او عدم جواز بحث آئنده کې انشاء الله راځي. **کتاب في العليين اى عمل مکتوب في ديوان الحفظة**. يعنې د کراما کاتبين خاص دفتر کې ثواب ليکلی کېږي ځينو ويلي دي چې عليين د ټولو نه عمده جنت نوم دی څنګه چې سجين د بدترين دوزخ نوم دی بعضو ويلي دي عليين د اوم اسمان د پاسه د يو ځای نوم دی. علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ټولو نه راجح قول دا دی، چې عليين د خير او نيکۍ د دفتر نوم دی، د دې کې صلحاء او نيکو خلکو اعمال موجود دي. (المرقات ۲/۴۳۵).

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: کله چې تيرېږئ د جنت په باغونو |
| فَارْتَعُوا » قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ ؟ قَالَ : |
| باندې نو هلته به ميوه خورئ، تپوس ترې وشو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنت باغ څه ته دي؟ وي فرمايل |
| « الْمَسَاجِدُ » . قُلْتُ : وَمَا الرَّتْعُ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : |
| جوماتونه د (جنت باغ دی) بيا تپوس وکړی شو، يا رسول الله ميوه خوړل څه دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: |

| |
|---|
| « سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ »[1]. |
| سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر جوماتونو کې ددې کلمو ورد کول میوه خوړل دي. |

**توضيح: رياض الجنة:** روضة باغ ته ويلی کيږي دې نه مراد مساجد دي، دې ته د جنت باغ ځکه ويلی شي چې دې کې هغه اعمال کيږي، چې کوم جنت ته د تللو ذريعه جوړيږي.(المرقات ۲/۴۳۵).

**الرتع:** باغونو کې د ښه مقاماتو سير او تفريح او د ښه لذت والاميوې خوړلو ته رتع ويلی کيږي چې کله هم مساجدو ته تشبيه د باغاتو سره ورکړی شوه، نو دا استعاره ترشيحيه ده، ددې د پاره يې ميوه ثابت کړه، په دې حديث کې مسلمانانو ته ترغيب ورکولی کيږي، چې په مساجدو کې په کثرت سره د الله تعالی ذکر کوئ، ځوک چې په دنيا کې جوماتونو کې اوسيږي هغه به قيامت کې په جنت کې اوسيږي. او وخت مه ضائع کوئ ډيره فائده حاصل کړئ، څه وخت پس به دا موقع د لاس نه ووځي.
يو شاعر وايي:

تمتع من شميم عرار نجد ❁ فما بعد العشية من عرار

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَتَى الْمَسْجِدَ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي: ځوک چې راشي جومات ته |
| لِشَيْءٍ فَهُوَ حَظُّهُ »[2]. |
| (دين يا دنيا) د کار د پاره هغه ته به د هغې نه حصه ملاويږي. |

**توضيح: فهو حظه:** يعني کوم کس د څه مقصد د پاره جومات ته راشي هغه ته به د غه مقصد ملاويږي، که عبادت او ښو اعمالو او ښه مقاصدو د پاره راغلی وي د هغې ثواب به ورته ملاويږي او که د ريا او غلط مقاصدو د خوريدو او د نياوي اغراضو د پاره وي د هغې ګناه به او چتوي جومات ځومره مقدس ځای ولې نه وي دې کې يو غلط عمل په نيک عمل نه بدليږي دا حديث ګويا د (انما الاعمال بالنيات) والا حديث د مضمون يوه حصه ده. (المرقات ۲/۴۳۷).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۹۷ رقم الحديث ۳۵۰۹

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۳۲۰ رقم الحديث ۴۷۲.

## جومات ته د داخليدو دعاء

﴿۳۹﴾ وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْحُسَيْنِ عَنْ جَدَّتِهَا فَاطِمَةَ الْكُبْرَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ
حضرت فاطمه بنت حسين رضي الله عنها د خپلې نيا فاطمه کبرى نه روايت کوي فرمايي: حضور صلى الله عليه وسلم
صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَ سَلَّمَ وَ قَالَ: « رَبِّ
جومات ته تشريف راوړونو په نبي عليه السلام باندې به يې درود او سلام وويلو او بيا به يې دا دعا وويله: رب
اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ » وَ إِذَا خَرَجَ
اغفرلي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتک، او چې کله به جومات نه راوتلو نو بيا به يې په نبي عليه السلام باندې
صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَسَلَّمَ وَقَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ فَضْلِكَ". رَوَاهُ
به يې درود سلام ولوستلو او دا دعاء به يې ويله: رب اغفرلي ذنوبي و افتح لي ابواب فضلک، دا روايت
التِّرْمِذِيُّ وَ أَحْمَدُ وَ ابْنُ مَاجَهْ وَ فِي رِوَايَتِهِمَا قَالَتْ:
ترمذي، احمد، ابن ماجه نقل کړى دى او د احمد په روايت کې دا الفاظ دي حضرت فاطمه رضي الله عنها وايي
إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَ كَذَا إِذَا خَرَجَ قَالَ: « بِسْمِ
چې کله به نبي عليه السلام جومات ته داخليدو او همدارنګې چې کله به راوتو نو دا الفاظ به يې ويل: په نوم
اللهِ وَ السَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللهِ » بَدَلَ: صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ وَ سَلَّمَ.
د الله سره داخليږم او راوځم او سلامتيا دې وي په رسول الله باندې، په ځاى د صل على محمد وسلم، امام
وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ وَ فَاطِمَةُ بِنْتُ الْحُسَيْنِ لَمْ تُدْرِكْ فَاطِمَةَ الْكُبْرَى[1].
ترمذي وايي د دې حديث سند متصل نه دى ځکه چې فاطمې بنت حسين نه ده موندلې زمانه د فاطمه کبرى.

**توضيح: ابواب رحمتک:** يو مسلمان چې جومات ته داخليدو په وخت کې د دنيا اغراضو او مقاصدو د پاره د ننه تلى نه دي، بلکې صرف د عبادت او د الله تعالى د رضا د پاره ځي، ځکه دا په دې موقع کې ډير مناسبت لري چې انسان د الله تعالى نه د هغه د رحمتونو او برکتونو د فيضان سوال کوي، څوک چې جومات نه بهر راوځي، نو بيا عام طور باندې بازارونو کې د حصول رزق ګټلو د پاره کوشش کوي، نو په

(۱) أخرجه الترمذي ۱۲۷/۲ رقم الحديث: ۳۱۴، وأخرجه أحمد في المسند ۲۸۲/۶، وابن ماجه في السنن ۲۵۳/۱ رقم الحديث. ۷۷۱.

داسې وخت کې سړي د پاره داسې ویل په کار دي: **اللهم افتح لي ابواب فضلک**. ځکه چې دلته د فضل نه د حلاله روزي مراد ده، دې حدیث کې د جوماتِ د دخول او خروج ټول آداب او جامع انداز سره ټولې دعاګانې بیان کړې دي، اګر چې دې حدیث کې انقطاع شته او حدیث متصل نه دی. ځکه چې د حضرت حسین رضي الله عنه لور فاطمه رضي الله عنها دغه وخت پیدا شوې هم نه وه، چې حضرت فاطمة الزهرا وفات شوې وه، بلکې د حضرت فاطمة الزهرا وفات په وخت کې حضرت حسین رضي الله عنه صرف د اتو (۸) کالو وو. (المرقات ۲/۴۳۷).

## جومات کې حلقې جوړول، اشعار ویل، اخیستل او خرڅول منع دي

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي چې منع کړې ده نبي علیه السلام |
| عَنْ تَنَاشُدِ الْأَشْعَارِ فِي الْمَسْجِدِ وَعَنِ الْبَيْعِ وَالِاشْتِرَاءِ فِيهِ وَأَنْ يَتَحَلَّقَ النَّاسُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ |
| د اشعارو ویلو نه په جومات کې او د اخیستلو او خرڅولو نه په جومات کې او د حلقې جوړولو نه په ورځ د |
| قَبْلَ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ[1]. |
| جمعې باندې مخکې د مونځ نه په جومات کې. |

**توضیح: تناشد الاشعار**: **تناشد** باب **تفاعل** نه اشعار ویلو په معنی دی، یعنې جومات کې اشعار ویلو څخه منع فرمایلې ده، د اشعارو نه مراد قبیح او مذموم باطل عشقیه اشعار دي، حالانکې ښه اشعار حسان رضي الله عنه مسجد نبوي کې په منبر باندې د حضور صلی الله علیه وسلم په مخکې ویلي دي او د مسلمانانو په جوماتونو کې تا حال ویلي کېږي، ښه مضمونونو والا اشعار خو ښه نصیحت وي، البته کوم اشعار باطلو وجې چې عقائد فاسدېږي د هغې ویل منع دي، اګر چې د نعمت یو قسم ولې نه وي، ځکه چې جوماتونه د عبادت او ذکر الله د پاره جوړ دي، دې کې په دروغو او بې هوده اشعارو ګنجائش نشته، تفصیل راتلونکې **باب الشعر** کې به إن شاء الله راشي. (المرقات ۲/۴۳۸).

**وعن البیع**: جومات کې چې څنګه اخیستل او خرڅول منع او ناجائز دي، دغه رنګ جومات کې دنیاوي خبرې او بې مقصده قصې کول هم منع دي. فقهاو لیکلي دي چې څوک د سنتو نه پس فرض کولو نه مخکې فضول خبرو کې مشغول شي د هغې سنت ضائع شو، بعضې وایي سنت دې دوباره

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۶۵۱/۱ رقم الحديث ۱۰۷۹، وأخرجه الترمذي في السنن ۱۳۹/۲، رقم الحديث ۳۲۲.

وکړي، بعضې وايي د سنتو اعاده ضرور نه ده خو کوم ثواب چې وو هغه به اوس نه ملاويږي.

**وان يتحلق**: تحلق د حلقې جوړولو په معنی ده، دديې نه منع شوې ده، که هغه تعليم او تعلم او د علمي مذاکرې په غرض سره ولې نه وي، ځکه چې مونځ ځخه مخکې کوم خلک جوماتته راځي هغوی مونځ کولو ته راځي لهذا دغې خلکو له په سنت طريقې مطابق صف کې قبلې ته مخ کولو سره ناسته په کار ده او حلقې سره ناسته ددې منافي ده د ممانعت دويمه وجه دا ده، چې د جمعې مونځ ځان له لوی عمل دی، ترڅو پورې کس ددې څخه فارغ نه وي دې ته په بل کار کې مشغوليدل نه دي په کار او حلقه په دې کار کې خلل اچول دي، ځکه دا منع ده، ددې دوو وجوهاتو د وجې څخه د خطبې په وخت کې هم حلقه منع ده او د خطبې نه مخکې هم. دريمه وجه دا ده دا وخت د خطبې د اوريدو او د خاموش کيدو دی، نه د حلقې جوړيدو دا دريمه وجه د خطبې سره صرف خاص ده، دغه وخت کې حلقه جوړول او ناسته منع ده

خو بعضې رواياتو کې د جمعې ذکر نشته بلکې (**نهی عن الحلق قبل الصلوة**) الفاظ دي لهذا دا ممانعت د جمعې د وجې نه صرف نه دی، بلکې عامو مونځونو څخه هم مخکې حلقې جوړول منع دي، کيدی شي د جمعې تصريح ځکه وي، چې په دغه ورځ حلقې ډيرې وي او په دغه ورځ خلک هم ډير وي، تبليغي جماعت خلکو له په دې سنت باندې د عمل کولو فکر په کار دی.

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: چې کله تاسو وګورئ چې يو څوک په |
| يَبِيعُ أَوْ يَبْتَاعُ فِي الْمَسْجِدِ فَقُولُوا: لَا أَرْبَحَ اللهُ تِجَارَتَكَ. وَ |
| جومات کې په اخيستلو او خرڅولو باندې نوورته ووايي: الله تعالی دې ستا په سودا کې نفع ونه کړي او |
| إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَنْشُدُ فِيهِ ضَالَّةً فَقُولُوا: لَارَدَّ اللهُ عَلَيْكَ". (۱). |
| چې کله يو کس دورک شوي څيز اعلان وکړي نوورته ووايي الله تعالی دې ستا ورک شوی څيز پيدا نه کړي |

**توضيح: لا اربح الله تجارتک**: مساجد د الله تعالی د ذکر او تلاوت او مونځ د پاره جوړ دي او څوک چې په مسجد کې دنياوي معاملات او تجارات کوي، نو دا د مسجد د جوړولو مقاصد او د مسجد تقدس ورانوي، ځکه شريعت د داسې قسمه کارونو اجازت نه ورکوي او دې سلسله کې پيغمبر صلی الله عليه وسلم بطور زجر او تشديد فرمايي، په مسجد کې دا قسمه معاملات کونکي ته وايه الله تعالی دې تا ته په تجارت کې نفع او ګټه درنه کړي. (المرقات ۲/۴۴۰).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳/۶۱۰، رقم الحديث . ۱۳۲۱

علماء ليکي د دې حديث الفاظو باندې عمل صرف په ژبه باندې وکړئ د زړه نه بد دعائي اراده مه کوئ او ممکن ده چې حقيقي بددعا مراد وي، دا چې تجارت دې بې نفع پاتې نه شي نو په مستقبل کې مساجد د دغه دنياوي کارونو څخه پاک ساتئ.

**لا ردها الله:** د حديث په دې جملې کې هم د بره جملې وضاحت په رڼا کې پوهيدل په کار دي، د دې څخه مخکې حديث نمبر (۱۷) مکمل تفصيل سره ذکر شوی دی هلته يې وګورئ.

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُسْتَقَادَ |
| د حضرت حکيم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام منع فرمايلې ده د قصاص اخيستلو |
| فِي الْمَسْجِدِ وَأَنْ يُنْشَدَ فِيهِ الْأَشْعَارُ وَأَنْ تُقَامَ فِيهِ الْحُدُودُ. |
| نه په جوماتکې او د اشعارو ويلو نه په جوماتکې او د حدودو قائمولو نه په جوماتکې. |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ فِي سُنَنِهِ وَصَاحِبُ جَامِعِ الْأُصُولِ فِيهِ عَنْ حَكِيمٍ (۱) |

**توضيح: ان يستقاد:** استقاد کې سين او تا د طلب د پاره ده، اى يطلب القود والقود القصاص يعني قصاص اخستل او ثوک په جوماتکې د قصاص په شکل د قتلولو نه منع فرمايلې ده، د دې وجې نه چې جوماتکې وينه غورځيږي، د دې وجې نه چې جومات د ناپاک کيدو خطره ده، د حديث مطلب دا نه دی چې ژبه باندې د قصاص مطالبه په جوماتکې نه شي کولی. (المرقات ۲/۴۴۰).

**و ان تقام فيه الحدود:** دا الفاظ په دې باندې دلالت کوي، چې عملي طور باندې په جوماتکې قصاص نافذ کول نه دي په کار، همدارنګه دا آخري جمله د حديث اولې حصې نه پس تعميم بعد التخصيص طور باندې ذکر شوې ده، حدود څخه مراد ټول حدود دي، که د الله تعالی سره متعلق حقوق دي يا حقوق العباد سره متعلق دي، ځکه چې دې کې د جومات هم بې حرمتي ده، او دا خطره هم ده، چې د حدودو د نافذ کيدو سره جومات پليت شي، ابن ابی ليلى رحمه الله د جواز ويلي دي، خو دده قول شاذ دی، شرح السنة کې ليکلي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د واجب الحدود کس په باره کې فرمايي جومات نه يې بهر وباسئ، دغه رنګ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي (كذا في المرقات ۲/۴۴۰).

**فيه عن حكيم:** د مشکوة په دې روايت کې د حکيم بن حزام ذکر دی حزام په (حا) باندې کسره ده، دا د حکيم د پلار نوم دی صاحب جامع الاصول صرف حکيم ذکر کړی دی او ابن حزام لفظ يې نه دی لګولې،

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۶۲۹/۴ رقم الحديث ۴۴۹۰.

ممکن ده هغه حکیم بل وي، اګر چې ظاهر دغه دی حکیم څخه ابن حزام مراد دی. ځکه چې دغه صحابي دی، ددې نه علاوه حکیم بن معاویه دی ددې صحابي کیدو کې اختلاف دی. (کذا في اللمعات).

امام مسلم صحیح مسلم (جلد ۲، ص٦) کې لیکلي: **قال مسلم بن حجاج ولد حکیم بن حزام في جوف الکعبة وعاش ماة وعشرین سنة**، یعنې دې صحابي ته دوه تاریخي نا اشنا واقعې حاصل دي، یوه دا چې کعبې سره خوا کې پیدا شوی دی، معلومه شوه چې مولود کعبه صرف حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دی بلکې دغه زمانه کې یوې ښځې ته دماشوم پیدا کیدو پریشاني لاحق شوې وه، نو د کعبې په پناه کې به تلله، نو پیدا کیدو کې به اساني راتله خواه مخواه شیعه حضرات جشن مولود کعبه لمانځي. ددغه صحابي دویمه دا عجیبه خبره ده چې عمر یې یوسلو شل کاله وو دا ډیر اوږد عمر دی، ددې ذکر دتعجب څخه خالي نه دی.

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بن قُرَّةَ عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ |
| حضرت معاویه بن قره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه روایت کوي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ منع کړې ده د دغه دوو ونو |
| يَعْنِي الْبَصَلَ وَ الثُّومَ وَ قَالَ: «مَنْ أَكَلَهُمَا فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا». |
| یعنې پیاز او اوګې (د خوړلو) نه او فرمایي: چې دا څوک وخوري نو زمونږ جوماتونو ته دې نه راځي. |
| وَ قَالَ: «إِنْ كُنْتُمْ لَا بُدَّ آكِلِيهِمَا فَأَمِيتُوهُمَا طَبْخًا»[1]. |
| او وې فرمایل او که تاسو یې خوړل لازمي ګڼئ، نو بیا په کار ده چې بدبو یې ختمه کړئ. |

**توضیح: ابن قرة**: معاویه تابعي دی او د پلار نوم یې قرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی (ق) مضموم او (را) مشدده ده، قرة بن ایاس بن هلال مزنی صحابي دی. (المرقات ۲/۴۴۱).

**الشجرتين**: دلته اشکال پیدا کېږي عام عرف کې شجره ونې ته ویل کېږي، حالانکې د پیاز او اوګې بوټي وي، ونه نه وي، ددې اشکال د لاندې شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لیکلي (في الصراح) **(شجره هر چه ساق دارد از درخت و لبات)** یعنې د شجرې اطلاق هر هغه بوټي باندې کېږي کوم چې پنډې باندې ولاړ وي، که د ونې په شکل کې وي یا د بوټي شکل کې وي، لهذا د پیاز او اوګې په بوټو باندې د شجرې اطلاق صحیح دی.

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/ ٢٧٢ رقم الحديث ٣٨٢٧، وأخرجه أحمد في المسند ١٩/٤

**هاتين الشجرتين**: کې دوو بوټو ته اشاره دهنيه ده، ممکن دی چې دا دواړه بوټي د خبرو مجلس کې موجود وو، په دې صورت کې به دا اشاره حسي وی، ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي د پياز او اوګې په حکم کې مولی او ګندنه هم ده. (المرقات ۲/۴۴۱).

**ولايقربن مسجدنا**: د قرب مسجد ممانعت بطور مبالغه دی، جومات ته د ننه تلل او غاړې ته تلل منع دي، ترڅو پورې چې بدبو موجوده وي، چې بدبويې ختمه شي بيا تلل جائز دي. او د ممانعت وجه دا ده چې جومات کې فرښتو ته تکليف رسي. معلومه شوه، چې فرښتې هر وخت جومات کې وي، که انسان وي او که نه وي.

**مسجدنا**: دې کې اشاره د ملت ټولو جوماتونو ته ده، حديث کې دې طرف ته هم اشاره ده، چې د دې دواړو خوړل هغه وخت منع دي، کله چې يو کس جومات ته تلل غواړي او که جومات ته نه ځي بيا يې خوړل جائز دي، خو علماء ليکي د عوام الناس عامو اجتماعاتو ته تلل هم په دغه بدبو کې منع دي (کذا فی المرقات) مزيد تفصيل مخکې حديث نمبر (۱۸) د لاندې وضاحت کې ملاحظه کړئ.

**لابد**: قاموس کې ليکي بد د باب تفعيل نه تبديداً تفريق او جدا په معنی کې دی (**لابد بمعنی لا فراق او لا محالة**) شو (لا) خبر مخذوف دی، يعنې **اکلها** او دا جمله د کان اسم او خبر په منځ کې جمله معترضه ده او د کان خبر اکليهما دی.

**اميتوهما**: د **اماتت** نه ازاله رائحه کريهه مراد دی، که هغه پخيدو سره وي يا بلې طريقې سره وي، د پخيدو ذکر استعمال غالب طور باندې دی.

| |
|---|
| ﴿٤٤﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ إِلَّا الْمَقْبَرَةَ |
| د حضرت ابو سعيد نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: ځمکه ټوله جومات دی مګر د مقبرې |
| وَ الْحَمَّامَ». (۱) |
| او د حمام دا جومات نه دی. |

**توضيح: الارض کلها مسجد**: دا د دې امت خصوصيت دی هرې پاکې ځمکې باندې مونځ کول جائز دي بلکې د بني اسرائيلو مونځ د جومات نه علاوه جائز نه وو او جومات کې هم بغير د جمعې نه مونځ جائز نه وو دې حديث کې وويلی شو چې بغير کراهيت د ځمکې په هره حصه باندې مونځ جائز دی. (اشعة

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/۳۳۰ رقم الحديث . ۳۹۲ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۳۱ رقم الحديث :۳۱۷.

اللمعات ۳۶۲، المرقات ۲/۴۴۲).

**المقبرة**: دې لفظ کې بأ باندې زبر، زیر او پیش درې واړه ویلې شي، چرته چې مړي دفن کولی شي د هغوئ مقام ته مقبره ویلي شي، څنګه چې قبرستان ورته ویلی شي، قبرستان کې مونځ څکه مکروه دی چې هلته عموماً ګندګي او پلیتي وي، څکه چې مړو د اجسادو خاوره هلته خوره شوې وي، که قبرستان کې داسې ناپاکي نه وي او غاړې ته پاک ځای وي، نو هغه ځای کې مونځ کولو کې څه خبره نشته، خو بعضې علماء هغه طرف ته تللي دي، د حدیث ظاهر ته په کتلو سره قبرستان کې مطلقاً مونځ کول مکروه دي او قبر طرف ته مخ کول خو بالکل حرام دي، تفصیل حدیث نمبر (۲۳) کې مخکې تیر شوی دی.

**والحمام**: حمام ته د ګرمو اوبو د وجې نه حمام ویلي شي، دې کې مونځ څکه مکروه دی چې دې کې خلک بغیر د کپړو کېږي، دویمه وجه دا ده، دغې کې شیطانان جمع شوي وي.

## هغه مقامات چې هلته مونځ مکروه دی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُصَلَّى فِيْ سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: | | | | | | |
| دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ منع کړې په اوو ځایونو کې د مونځ کولو نه | | | | | | |
| فِي الْمَزْبَلَةِ | وَ | الْمَجْزَرَةِ | وَ | الْمَقْبَرَةِ | وَ | قَارِعَةِ الطَّرِيقِ |
| (۱) په دیران کې (کوم ځای کې چې ګندا چولی شي) (۲) قصاب خانه کې (۳) مقبره کې (۴) دلارې مینځ | | | | | | |
| وَفِي الْحَمَّامِ وَفِي مَعَاطِنِ الْإِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللهِ"[1]. | | | | | | |
| کې (۵) حمام کې (۶) داوښانو دتړلو ځای کې (۷) د خانه کعبې په چت باندې. | | | | | | |

**توضیح: مواطن**: د موطن جمع ده، د ځای او مقام په معنی دی، یعنې اووه ځایونه داسې دي، چې هلته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کولو نه منع فرمایلې ده، (الکاشف ۳۰۲) علماء دې ممانعت لره په کراهت باندې حمل کړی دی، په دې کې د علماو اختلاف دی، چې کراهت تحریمي دی یا تنزیهي دی، د بعضو په نزد باندې تنزیهي دی، دا د خلاف اولی په معنی باندې دی، د بعضو علماو په نزد باندې تحریمي دی، مکروه تحریمي اقرب الی الحرام وي، او مکروه تنزیهي اقرب الی الحلال وي، علماو دا قاعده هم لیکلې چې چرته چې مکروه مطلق راشي هلته د مکروه څخه تحریمي مراد وي.

**وفي مزبلة**: مجمع البحار کې لیکي (مزبلة د میم فتحې سره دی او (با) باندې درې واړه حرکات جائز

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۷۷ رقم الحديث: ۳۴۶، وأخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۲۴۶ رقم الحديث: ۷۴۶.

دي، د هغه مقام نوم دی کوم ځای کې چې ګندګي پرېوځي، لکه څنګه چې ورته کوړه خانه ويلي شي

**زبل** د با کسرې سره سوتو ته ويلي شي او که زبر وويلي شي، نو بيا دا د هغې ځمکې نوم دی کومې کې چې سوتې اچولی شي، لکه څنګه چې فصل ته سوتې ورکولی شي.

**المجزرة:** دا هغه مقام دی چې هلته ځناور ذبح کېږي، لکه مذبح خانه ورته ويلي شي، دې دواړو ځايونو کې مونځ ځکه مکروه دی، چې دې کې ګندګي موجود وي او دا د مونځ د رفعت شان منافي ده، د مونځ عظمت د دې خبرې تقاضا کوي دی چې بالکل صفا او پاک ځای کې وشي.

**قارعة الطريق:** قارعه د ټکولو او وهلو په معنی کې ده، د خلکو د امدو رفت د وجې عامه لاره د خلکو خپو د لاندې وهلی شي، ځکه کولا او منځ لارې ته قارعه ويلي شي، ځکه دې اعتبار سره الطريق طرف ته دا اضافت بيانيه دی. (المرقات ۲/۴۴۲)

ملاعلي قاري دا سې ليکلي چې د لارې منځ کې ځکه مونځ منع دی چې د عامو خلکو د امدو رفت د وجې څخه مونځ کې سوچ او ځانله والی نه وي، دويمه وجه دا ده چې عامو خلکو ته د دې څخه تکليف وي، دريمه وجه دا ده چې بيا به خلک د مونځ ګزار مخې ته تيرېږي هغه به هم ګناهګار وي او بې ځايه ودريدو والا به هم ګناهګار وي دا وجه ده که چرته يو کس صحرا کې په لاره باندې مونځ وکړي، نو بعضې علماء فرمايي چې جائز دی، ځکه هلته د خلکو آمدو رفت نه وي، (کذا في المرقات)

**معاطن الابل:** د عطن جمع ده بعضو د معطن جمع ګرځولې ده، هغه ځای ته ويلي شي چې کوم ځای کې اوښ اوبه څکې اوآرام کوي هغه ځای ته هم ويلي شي چې اوښ د شپې وخت کې تړلی شي، دغه ځای کې مونځ ځکه مکروه دی، چې دې کې عموم نجاست وي، که په داسې ځای کې بغير د جائې نماز مونځ وکړونو مونځ يې فاسد دی. او که دری (سجاده) خوره کړې وي، نو مونځ مکروه کېږي دې ځايونو کې لازم بدبويي وي، دا بحث هغه وخت دی چې د اوښانو د تړلو په ځای کې اوښان موجود نه وي، که موجود وي نو بيا مطلق مونځ مکروه دی ځکه چې اوښ يو وحشي ځناور دی اولکه دآسمان نه ميـازې کوي، لهذا د مونځ ګزار کيږي پاکې ساتل يا ځای پاک ساتل ممکن نه دي، لکه آينده حکم راځي.

**فوق ظهر بيت الله:** ظهر لفظ کې دې طرف ته اشاره ده، چې د بيت الله څخه کوم ځای اوچت وو هلته مونځ مکروه دی، لهذا کراهت خاص دی د بيت الله د بره ودريدلو سره او دا کراهت د بيت الله د آدابو او احترام د وجې څخه دی، معلومه شوه چې د بيت الله څخه بنـکته آبادي کول د شريعت منشاء ده، الدين کله ادب د بيت الله څخه اوچته آبادي کول عرفاً بې ادبي ده.

**د نهی رسول الله ﷺ الفاظو حيثيت:** د امت علماوو کې دا يو بحث چليږي، چې په دې کې کومه نهي راغلې ده د دې حيثيت څه دی آيا دې ته حرام ويلي شي يا حلال يا بل څه. (المرقات ۲/۴۴۳).

د علماو يوه طبقه وايي ددې څخه مطلقاً فساد او ناجائز كيدو طرف ته اشاره ده. دويمه طبقه وايي فساد طرف ته اشاره نه ده، بلكې فساد نه كمې درجې طرف ته اشاره ده، دريمه طبقه وايي عبادت كې چې كله نهي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راشي، نو دا عدم جواز طرف ته اشاره ده، او كه معاملاتو كې لفظ راشي، نو عدم جواز طرف ته اشاره نه ده، څلورمه طبقه دا ده كه د نهي متعلق نفس فعل سره وي. لكه د اخترونو په ورځ روژه نيول عدم جواز طرف ته اشاره ده او كه نهي نفس فعل سره متعلق نه وي. بلكې څه واسطې سره وي، لكه مغصوبه ځمكه باندې مونځ كول داسې صورت كې عدم جواز مراد نه دی. بلكې د كمې درجې مراد اخستل په كار دي، چې د كراهت درجه ده، ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي مرقات كې دا قسم بحث كړی دی. خلاصه دا چې احاديثو كې د نهي تعلق كله حرام سره وي كله مكروه تحريمي سره او كله مكروه تنزيهي سره او خلاف اولى سره وي.

﴿٤٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلُّوا فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ وَلَا تُصَلُّوا فِي أَعْطَانِ الْإِبِلِ». [1]

د ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايي: مونځ كوئ د چېلو تړلو ځای (غوجل) كې او مونځ مه كوئ د اوښانو د تړلو ځای كې.

**توضيح: مرابض:** د مربض جمع ده، د چېلو تړلو ځای ته ويل كېږي. (الكاشف ۳۰۴، المرقات ۲/۴۳۴)

**اعطان: معاطن اعطان، عطن، معطن** يو شيز دی، د اوښانو غوجل ته ويل كېږي، د چېلو او اوښانو په غوجل كې شرعي حكم كې فرق څكه دی، چې د اوښانو غوجل عام طور باندې نرم وي، نو ميتيازې جذب كوي او خوريږي. او د چېلو ځای عام طور باندې سخت وي، نو متيازې نه خوريږي، نو كوم ځای چې پاک وي هلته مونځ كولی شي، دويم فرق دا دی، اوښ يو وحشي ځناور دی د وحشت صورت هم دی، دې سره نږدې مونځ كول د خطرې وي، خشوع او خضوع كې فرق راځي، څكه چې بعضې رواياتو كې راغلي دي، چې اوښ د شيطانانو څخه دی، يو روايت كې دي د جناتو د جنس څخه پيدا دی. ددې التېه چېلۍ يو خاموش ځناور دی، دې كې د خطرې او پريشانۍ خبره نشته دی. دريم فرق دا دی چې اوښ د ډير بره څخه متيازې كوي دې سره د مونځ گزار بدن او كپړې ناپاكې كېږي په چېلو كې داسې نشته دی. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ دې بحث څخه پس ليكلي دې حديث په ممانعت كې كوم علت دی هغه د نجاست موجود كيدل او نيهدې كيدل دي، نو مونځ هر هغه ځای كې كول منع دي، چې هلته نجاست وي

---

(۱) أخرجه مسند أحمد ۱۵۱/۲، أخرجه الترمذي ۱۸۰/۲، رقم الحديث ۳۴۸، وأخرجه ابن ماجه ۲۵۲/۱ رقم الحديث ۷۶۸.

او ځای پاک نه وي که داسې ځای کې مصلی هم خوره کړی نو بیا هم مونځ کول منع دي، د مرابض او معاطن تخصیص بطور مثال دی مقصود عام ناپاک او پاک ځایونو بیان دی (المرقات ۴۴۳-۲/۴۴۴)

## زنانو د پاره قبرونو ته تلل څنګه دي

﴿۴۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَاتِ الْقُبُورِ

د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې نبي عليه الصلاة والسلام لعنت وايي د قبرونو زیارت کونکو زنانو

وَ الْمُتَّخِذِينَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ وَ السُّرُجَ.[1]

او قبرونو څخه جومات جوړولو والا او قبرونو باندې رڼا لګولو والا باندې.

**توضیح: زائرات القبور**: زائره زیارت کونکې ښځې ته ویل کېږي قبور د قبر جمع ده مراد قبرستان دی، په دې حدیث کې حضور صلی الله علیه وسلم هغه ښځو باندې لعنت لیږي څوک چې قبرستان ته لاړې شي او د قبرونو زیارت کوي (المرقات ۲/۴۴۴) حضور صلی الله علیه وسلم د اسلام په شروع کې د قبرونو څخه منع فرمایلې وه، چې په امت کې د شرک دروازه کولاو نه شي، چې کله اسلام مضبوط شو او د شرک او توحید کې فرق معلوم شو، نو پیغمبر عليه الصلاة والسلام د قبرونو اجازت دی ارشاد په ذریعه وفرمایلو: **کنت نهیتکم عن زیارة القبور فزوروها فانها تذکر الآخرة** (المرقات ۲/۴۴۴) اوس بحث په دې کې دی، چې د عام ممانعت څخه پس کوم اجازت راغلی آیا دا اجازت صرف سړو له دی یا زنانه هم په دې اجازت کې داخلې دي. بعضې علماء وايي دا اجازت دواړو د پاره دی څنګه چې سړو د پاره قبرستان ته تلل جائز دي، د غه شان زنانو ته هم قبرستان ته تلل جائز دي او بعضې علماء وايي د اجازت تعلق صرف سړو سره دی، د زنانو په حق کې د حدیث سابقه نهې او ممانعت اوس هم برقرار دی، وجه دا ده، چې زنانو د قبرونو د آدابو خیال نه شي ساتلی او نه په آدابو باندې پوهېږي، د کمزورې عقیدې د وجې څخه بدعت، او شرک کې مبتلا کېږي، ځکه قبرونو ته تلل د دوی د پاره مناسب نه دي زیر بحث حدیث واضح طور باندې د دغه علماو تائید کوي.

مزید تفصیل داسې دی شاه اسحاق دهلوي رحمه الله تحقیق داسې دی صحیح او معتمد قول مطابق زنانو ته د قبرونو زیارت کول مکروه تحریمي دي، احناف فقهاء (مستملی) کتاب کې لیکي د قبرونو زیارت د سړو د پاره مستحب او زنانو د پاره مکروه دی. یو کتاب مجالس واعظیه کې ذکر دي د زنانو د

---

(۱) أخرجه مسند أحمد۱/۲۲۹، وأخرجه أبو داؤد ۳/۵۵۸ رقم الحديث ۳۲۳۶، وأخرجه الترمذي ۲/۱۳۶، رقم الحديث ۳۲۰، وأخرجه ابن ماجه ۱/۵۰۲ رقم الحديث: ۱۵۷۵

پاره جائزنه دي چې قبرونو ته لاړې شي، حضور ﷺ قبرونو ته تلونکي زنانو باندې لعنت ويلى (نصاب الاحتساب) کتاب کې مذکور دي د ښځو قبرونو له تللو باندې جواز او عدم جواز په باره کې قاضي ابو زيد رحمه الله څخه تپوس وشو، هغوی جواب ورکړو، جواز او عدم جواز په باره کې تپوس مه کوئ، بلکې دا تپوس وکړئ چې دوئ باندې چې لعنت وريږي هغه څومره مقدار دی، ياد ساتئ چې کله زنانه قبر ته د تللو اراده وکړي، د الله تعالى او فرښتو په لعنت کې گرفتارې شي. او چې کله قبر له لاړې شي، نو هر طرف نه يې شيطان خپل گرفت کې ونيسي او چې کله قبر ته ورسيږي د مړي روح پرې لعنت وايي او چې د قبر څخه واپس راځي، نو د الله تعالى په گرفت کې راشي يو حديث کې راغلي: چې کومې زنانه مقبرې ته ځي، نو د اووه آسمانونو او اووه ځمکو فرښتې پرې لعنت وائي، هغه د الله تعالى په لعنت کې د قبرستان لاره وهي او څوک چې کور کې د ميت د پاره دعاگانې کوي. نو الله تعالى ورله د حج او د عمرې ثواب ورکوي، د حضرت سلمان رضي الله عنه او حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه يو حديث منقول دی يو ځلې پيغمبر ﷺ خپلې دروازې کې ولاړ وو، د بهر څخه حضرت فاطمة الزهرا رضي الله عنها راغله حضور ﷺ ترې تپوس وکړو د چرته نه راغلې حضرت فاطمة الزهرا رضي الله عنها ورته وويل فلانۍ زنانه وفات شوې وه هلته تلې ووم، نبي عليه السلام وفرمايل د هغې قبر ته تللې وې؟ حضرت فاطمة الزهرا رضي الله عنها جواب ورکړو معاذالله! آيا زه داسې عمل کولی شم، چې د هغې ممانعت په خپله حضور ﷺ څخه ما اوريدلی، حضور ﷺ ورته وفرمايل تا بنه کړي دي چې قبر ته نه يې تلې که ته د هغې قبر ته تلې وې، نو د جنت بوی به دې هم نه وی محسوس کړی. قاضي ثناء الله رحمه الله په خپل کتاب مالابدمنه کې ليکي: (که زيارت مرد را جائز است نه زنانه را) يعني قبرونو له تلل د سړو د پاره جائز دي او زنانه وو د پاره ناجائز دی. (بحواله مظاهر حق جديد)

د ټولو تصريحاتو او ظاهر حديث څخه دا خبره واضحه شوه چې د زنانو تلل قبرونو ته منع دی په دې کې لوی مفاسد دي چې ښکاره دي، چې هلته چراغ (ډيوه) لگوي چې هسې اسراف دی په کې او مجوسيانو سره مشابهت دی او زنانه اور ته نږدې راوستل هم دي. دا خو د عامو قبرستانونو مسئله ده، نن سبا چې کوم مزارونه جوړ دي، هلته د زنانو تللو اجازت اسلام څه چې شريف سړې هم خپله زنانه د پرېښودو تصور نه کوي، الله تعالى دې د سړو او زنانو د عقائدو حفاظت وفرمايي. (آمين)

د جمهورو علماو په نزد قبرونو ته تللو ممانعت څخه د حضور ﷺ قبر مبارک متشنی دی، هغه قبر د ټولو د پاره د برکت او ثواب ذريعه ده.

## د الله تعالی د انوارا تو اویازره(۷۰۰۰۰)پردي

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : إِنَّ حِبْرًا مِنَ الْيَهُودِ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| د حضرت ابو امامة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې یو یهودي عالم د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام نه تپوس وکړو چې |
| أَيُّ الْبِقَاعِ خَيْرٌ ؟ فَسَكَتَ عَنْهُ وَ قَالَ : « أَسْكُتُ |
| بنه ځای کوم دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ده ته د جواب ورکولو نه خاموش شو او وې فرمایل: چې زه به خاموش یم |
| حَتّٰى يَجِيءَ جِبْرِيلُ » فَسَكَتَ وَ جَاءَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| ترڅو چې جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام نه وي راغلي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام خاموش ؤ، چې کله جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام راغې نو |
| فَسَأَلَ فَقَالَ : مَا الْمَسْؤُوْلُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام د جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام نه تپوس وکړو نو جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې زه نه یم پوه ډیر د تا نه |
| وَ لٰكِنْ أَسْأَلُ رَبِّيْ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى . ثُمَّ قَالَ جِبْرِيلُ : يَا مُحَمَّدُ |
| لیکن زه به په دې باره کې د الله تعالی نه تپوس وکړم بیا جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام راغې او وې فرمایل ای محمد |
| إِنِّيْ دَنَوْتُ مِنَ اللهِ دُنُوًّا مَا دَنَوْتُ مِنْهُ قَطُّ. |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! نن زه الله تعالی ته دومره نزدې شوی وم چې کله هم دومره نزدې شوی نه وم، نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| قَالَ : وَ كَيْفَ كَانَ يَاجِبْرِيلُ ؟ قَالَ : كَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ |
| وفرمایل: ای جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام څومره نزدې شوی وې؟ وې فرمایل زما او د الله تعالی په مینځ کې اویازره |
| حِجَابٍ مِنْ نُورٍ فَقَالَ شَرُّ الْبِقَاعِ أَسْوَاقُهَا وَ خَيْرُ الْبِقَاعِ مَسَاجِدُهَا .(۱) |
| پردې موجود وې او الله تعالی وفرمایل: چې بد ځایونه بازارونه دي او ښه مقامات مساجد دي. |

**توضیح: فسکت:** یعنې د یهودي د سوال په جواب کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاموش پاتې شو او خپل طرف څخه یې جواب ورنکړو، دا ددې خبرې دلیل دی، چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د الله تعالی رښتنې پیغمبر دی، او خپل طرف څخه یوه خبره هم نه کوي، ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ. إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ که نه نو داسې مواقعو کې خاموش پاتې کیدل ډیر ګران وو، خاص کر چې غیر مسلم د اسلام متعلق سوال کوي.

---

(۱) رواه ابن حبان في صحيحه عن ابن عمر.

**فقال:** یعنې حضور صلی الله علیه وسلم په زړه کې وفرمایل چې د جبرائیل امین پورې به خاموش یم.

**فسکت:** یعنې حضور صلی الله علیه وسلم خاموش شو. علامه طیبی رحمه الله د دې کلام دغه مطلب ښودلی دی، شیخ عبدالحق رحمه الله دا کلام د سائل د سوال جواب جوړ کړی دی، هغه داسې چې کله حضور صلی الله علیه وسلم خاموش شو، ګویا چا سائل سوال وکړو، ای د الله رسول صلی الله علیه وسلم تاسو ولې خاموش کېږئ، ګویا تاسو جواب ورکړو، چې **اسکت** یعنې زه دې د پاره خاموش یم، چې جبرائیل علیه السلام راشي او وحې راوړي، بعضو نسخو کې **اسکت** د امر صیغې سره دی، ګویا پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپل ځان ته حکم وکړو، چې جبرائیل علیه السلام د راتلو پورې خاموش شه.(المرقات ۴۴۵-۲/۴۴۶).

**سبعون الف حجاب من نور:** دا حجاب او پردې د مخلوق په اعتبار سره دي د الله تعالی نسبت سره نه دي، ځکه چې الله تعالی د پردو په احاطه کې نه دی مخلوق په دو کې دی مخلوق کې د فرښتو د پاره چې کومې کومې پردې دي هغه د نور پردې دي، انسانانو د پاره چې کومې پردې دي هغه جسماني او ظلماني پردې دي، دا مثال داسې دی، لکه لمر ته مخامخ ړوند په سترګو باندې د خړوالي پرده وي، نو لمر ورته نه ښکاري او لمر په پرده کې نه دی. شیخ سعدي رحمه الله فرمایي:

**ګر نه بیند بروز شپره چشم ❁ چشمه آفتاب را چه ګناه**

شیخ عبدالحق رحمه الله لیکي چې د (نور) لفظ نه دې طرف ته اشاره ده، چې د فرښتو حجاب نوراني دی او هغه د الله تعالی د عظمت او جلال او د الله تعالی د صفات تقدس او جمال او کمال حجاب (یعنې پرده) ده. (اشعة اللمعات ۳۶۳)

ځینې انسانانو د پاره دغه نوراني پرده وي او بعضو د پاره ظلماني او نفساني پرده وي او د هر قسم پردې انتهاء نه وي، دلته د ستر (پټېدو) ذکر تحدید د پاره نه دی، بلکې دیر والي د پاره دی، بعضې شارحینو ددې تفصیل داسې بیان کړی دی، د حجاب ځنځه مراد حسي یا مادي پرده نه ده، ځکه چې الله تعالی باندې پرده محیط نه وي، بلکې حجاب کنایه ده دې، د یو داسې مانع ځنځه چې ددې په موجودګۍ کې الله تعالی ته څوک نه شي کتلی، دا نوري حجاب د مادي او حسي حجاب په شان د رؤیت د الله تعالی ځنځه مانع دی د مخلوق د پاره، مثال په طور باندې د الله تعالی د انواراتو یو پرده په سپوږمۍ باندې ده، نو اوس لمر کې څومره زور دی، څوک خو دی ورته وګوري چې پته ولږېږي چې څنګه کیفیت دی. دا قسم حدیث توضیحات (جلد اول ص ۳۰ حدیث نمبر ۱۳) د تقدیر په بیان کې تیر شوی دی هلته یې وګورئ.

**شر البقاع:** سائل صرف د خیر البقاع باره کې تپوس کړې ؤ لیکن په جواب کې د ښه او بد مقاماتو ذکر

وشوچې د رحمان نظام او د شيطان نظام په ته ولړېږي، يو کې خير او دويم کې د شر اعمال دي، دې حديث کې مسلمانانو ته دا تعليم ملاؤ شوچې کوم کس ته مسئله معلومه نه وي نو د هغه کس نه دې تپوس وکړي چې چا ته مسئله معلومه وي او په هغې کې شرم نه کوي لکه څنګه چې حضور ﷺ مسئله جبرائيل عليه السلام ته پرېښوده او جبرائيل عليه السلام په الله تعالى ته پرېښوده او هلته نه جواب راغى.

**رواه:** صاحب مشکوة مقدمه د مشکوة کې بيان کړی دی، دې کتاب کې بعضې ځايونه ما بغير د حوالې نه پرېښودې دي، ځکه چې ما ته د اصل کتاب حواله معلومه نه وه، چا ته چې هغه حوالې ملاو شي ودې ليکي، د غه ځای کې بياض او خالي ځای پرېخودی شوی دی، وروسته بيا علماوو هلته حواله ليکلې ده، دلته په هغه مقاماتو کې دا ړومبی ځای دی، راوه ابن حبان دی، دې شارحينو دلته بياض ذکر کړی دی، اګر چې مشکوة کې د غه ځای کې بياض نشته چرته يو کاتب به ډک کړی وي.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## مسجد لوی دولت دی دې څخه فائده اوچته کړئ

| |
|---|
| ﴿٤٩﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ جَاءَ |
| د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، وايي چې: ما د نبي عليه الصلاة والسلام نه اوريدلي دي څوک چې راغلو |
| مَسْجِدِيْ هٰذَا لَمْ يَأْتِه إِلَّا لِخَيْرٍ يَتَعَلَّمُهُ أَوْ يُعَلِّمُهُ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ |
| زما دې جومات ته په دې غرض راشي چې نيک کار و نه زده کړي او يا يې وښائي نو دغه کس په منزله د |
| الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللهِ وَ مَنْ جَاءَ لِغَيْرِ ذٰلِكَ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الرَّجُلِ يَنْظُرُ |
| مجاهد في سبيل الله دی او څوک چې په دې غرض سره رانه شي نو دا د هغه کس په شان دی چې ګوري د |
| إِلَى مَتَاعِ غَيْرِهِ» [1]. |
| نورو سامان ته (د حسرت په نظر). |

**توضيح: مسجدي هذا:** اشاره مسجد نبوي طرف ته ده، د مسجد ذکر بطور مثال دی څه تخصيص مقصود نه دی، بلکې د ټولو مساجدو دا حکم دی البته د مسجد نبوي دا حکم او فضيلت په اتم او اکمل طريقې سره دی او باقي جوماتونه د دې تابع دي. (المرقات ۲/۴۴۸).

(۱) أخرجه ابن ماجه في مقدمة سننه ۸۲/۱ رقم الحديث ۲۲۷، والبيهقي في شعب الايمان ۲۶۳/۲ رقم الحديث :۱۶۹۸.

**یتعلمه:** د زدکړې او ښودنې تخصیص دده وجې نه دی، چې دا عمل اعلی او افضل دی ورنه په دې کې هیڅ حصر نشته بلکې هر نیک عمل مثلاً مونځ، تلاوت، اعتکاف او ذکر الله د ټولو دا سې حکم دی جهاد في سبیل الله ثواب دغه کس ته ملاویږي، اګر چې مجاهد نه جوړیږي، خو ثواب ورته د هغه ملاویږي.

**لغیر ذلک:** دې کې عموم دی یعني لغیر الخیر مطلقاً نه د تعلیم تعلم د پاره راغلی دی او نه ذکر الله د پاره، بلکې خیر او نیکی نه علاوه لوبو او د ګرځیدو د رغبت د پاره او د تماشې په غرض وي.

**ینظر الی متاع غیره:** دې څخه افسوس او ملامت کیدل بیا مقصود دی، چې یو محروم کس د خپل مال څخه خالي لاس ناست وي او د نورو مال ته د حرص په نظر باندې ګوري، خو صرف ګوري ورته څه ورته په لاس نه ورځي، دو چنده غم دی، نه یې ترې د اخیستو طاقت لري او نه په کې صبر شته. (المرقات ۲/۴۴۸).

بعضو شارحینو دا مطلب ذکر کړی دی، چې د قیامت په ورځ باندې به دا محروم کس ثواب ګټلو والاو ته د حسرت او افسوس په نظر ګوري غیر د غم څخه به ورته بل هیڅ څیز نه ملاویږي (الا ان قد ندمت ولم ینفع الندم) دا خو دهغه کس مثال دی چې څه نا څه غرض سره مسجد ته راغلی وو، او چا چې زندګۍ کې جومات طرف ته کتلي هم نه دي غلطۍ سره دده انجام څومره خطرناک وي او د مسلمان چې کوم سفر جنت طرف ته دی، دده د پاره ضروري دي چې تیریدل یې په جومات وي، که یو مسلمان دا غواړي چې زه د جومات خوله نه ګورم او مارکیټ نه به جنت ته لاړشم دا ناممکن دی ځکه چې مارکیټ څخه جنت ته لار نشته دی بلکې مارکیټ څخه جومات ته لار شته دی، مولانا صاحب سره به ملاویږی، دین باندې پوهیدل په کار دي، بیا به درته صحیح لاره آسانه شي او جنت ته به لاړ شي معلومه شوه چې جنت لوی دولت دی او مسلمانانو د پاره لوی نعمت او رحمت دی.

## جومات کې دنیاوي خبرې منع دي

| |
|---|
| ﴿۵۰﴾ وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ |
| د حسن بصري نه مرسلا روایت دی وایي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَام فرمایلي رابه شي په خلکو باندې یو داسې وخت |
| يَكُونُ حَدِيثُهُمْ فِي مَسَاجِدِهِمْ فِي أَمْرِ دُنْيَاهُمْ. فَلَا تُجَالِسُوهُمْ فَلَيْسَ لِلّٰهِ |
| چې ددوي خبرې به په جوماتونو کې د دنیا خبرې وي نو تاسو ددوي سره مه کینئ ځکه چې نشته الله |
| فِيهِمْ حَاجَةٌ» رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الإِيمَان. |
| تعالی ته د داسې خلکو حاجت او ضرورت. |

**توضیح: یاتي علی الناس زمان:** دې جملې نه اندازه کېږي چې په جوماتو کې داسې کار کول د قیامت د علاماتو نه دي او دې حدیث کې اشاره هم شوې ده داسې زمانه به راځي (المرقات ۲/۴۴۹).

نن سبا دغه زمانه راغلې ده د خلکو فضول خبرې جوماتو کې کېږي صوبه سرحد، کشمیر، گلگت او ټولو یخو علاقو کې منکرات ډیر موندلی کېږي، زما د اندازې مطابق د ټولو نه ډیرې خبرې راځونډ کې کېږي، ما هلته کې لیدلي، چې خلک صفونو کې ولاړ وي او د امام تکبیر په انتظار کې وي او خلک خبرې تیزې تیزې کوي، ټوله شپه مجمع جوماتو کې خوب کوي او ټوله ورځ یې بسترې په جوماتو کې خورې وي. راتلونکی حدیث ډیر واضح دی، چې مسجد کې دنیاوي کلام کې څومره ګناه ده، دې نه پس حدیث نمبر (۵۲) کې علاج هم ښودلی دی، چې مسجد سره یو ځای خبرو د پاره خاص کړی وي، حالانکې هغه د صحابه و دور وو، د هغوئ او زمونږ خبرو کې ډیر فرق دی. کاش راځونډ کې دا اصلاح وشي، فتح القدیر کې ابن الهمام لیکي: **الکلام المباح في المسجد مکروه یاکل الحسنات.** یعنې مباح کلام هم جوماتو کې مکروه دی د انسانانو نیکۍ خوري (چې کله د حد څخه ووځي) حاجة دا جمله د دې خبرې څخه کنایه ده، چې الله تعالی د داسې خلکو څخه بیزار دی. او د الله تعالی د رحمت څخه خارج دي، الله تعالی ته د دوي هیڅ ضرورت نشته، اګر چې عبادت د پاره حاضر دي. دا حدیث په دې باندې دلالت کوي، چې په جوماتو کې دنیاوي امورو خبرې کول مکروه دي، ډیر زیات احادیث په دې باندې دلالت کوي دنیاوي خبرو څخه مراد عبث او بې فائدې خبرې دي، فقهاء لیکي د سنتو نه پس که چا دنیاوي خبرې وکړې د دې کس د سنتو ثواب ختمیږي او که د دنیاوي خبرو یوه یا دوه کلمې وي، نو هغه په دې کې داخل نه دي.

## مسجد کې په اوچت آواز باندې خبرې کول منع دي

| |
|---|
| ﴿۵۱﴾ وَ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ : كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ فَحَصَبَنِي رَجُلٌ |
| د سائب بن یزید رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: زه په جوماتو کې ویده وم، یو کس زما ګکرۍ وهله |
| فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ اذْهَبْ فَأْتِنِي بِهٰذَيْنِ |
| ما چې وکتل هغه حضرت عمر رضي الله عنه ؤ نو وي وفرمایل ته لاړ شه دغه دوه کسان زما خوا ته راوله (چې |
| فَجِئْتُهُ بِهِمَا فَقَالَ : |
| جوماتو کې یې په تیز آواز باندې خبرې کولې) ما هغوي راوغوښتل حضرت عمر رضي الله عنه هغوي نه تپوس |
| مِمَّنْ أَنْتُمَا أَوْ مِنْ أَيْنَ أَنْتُمَا قَالَا : مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ. |
| وکړو چې څوک یې تاسو یا یې وفرمایل د کوم ځای یې؟ هغوي جواب ورکړو مونږ د طائف او سیدونکي |

قَالَ : لَوْ كُنْتُمَا مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَأَوْجَعْتُكُمَا

یو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: که تاسو د مدینې خلک وئ ما به تاسو ته سزا درکړې وې تاسو

تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1].

په زوره زوره خبرې کوئ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جومات کې.

**توضيح: فحصبني:** ورو کو کاڼو ته حصا ویل کېږي، یعني حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ورو کاڼو په ذریعه خان ته متوجه کولو د پاره په هغې ووهلم، ما وکتل نو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو. (المرقات ۲/۴۵۰، الکاشف ۲/۳۰۷)

**ممن انتما:** راوي ته شک دی چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کومه جمله استعمال کړې ده.

**من اهل الطائف:** د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هر دوو جملو جواب دې کې موجود دی.

**لاوجعتكما:** که تاسو د بهر میلمانه نه وئ او د مسجد نبوي د آدابو څخه ناخبرنه وئ ما به تاسو ته سخته سزا درکړې وه خو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مسافرت د وجې معاف کړل او صرف دڼې و عیدېې ورته واوروه.

**ترفعان اصواتكما:** دا جمله مستانفه ده د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف څخه نوی کلام دی، فی مسجد رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې کلام کې د مسجد نبوي نور هم عظمت او رفعت او شرافت طرف ته اشاره ده، خصوصاً چې هلته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آرام فرمایي، خپله روضه مبارکه کې ژوندی ن او دالله تعالی فرمان دی: ﴿لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ (حجرات: ۲) (كذا في المرقات)

علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: **يكره رفع الصوت في المسجد بالعلم وغيره**، یعني علمي مشغله وي یا بور د اسې محفل وي په جومات کې په تیزآوازباندې خبرې کول مکروه دي، (المرقات ۲/۴۵۰).

ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ وایي: **سئل مالك عن رفع الصوت في المسجد بالعلم فقال لا خير فيه بعلم ولا بغيره ولقد ادركت الناس قديما يعيبون على مايكون بمجلسه و انا اكره ذلك والا ادري فيه خيرا.** (كذا في المرقات ۲/٤٥٠). ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې لیکي: د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ مذهب هم دا دی چې په مسجد کې آواز اوچتول مکروه دي ذکرالله ولې نه وي خو مسجد کې درس و تدریس جائز دي بشرط د دې چې مونځ کونکو ته څه تشویش نه وي (اذ مذهبه كراهة رفع الصوت في المسجد

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٥٦٠/١ رقم الحديث ٤٧٠

ولو بالذكر الخ. (مرقات)

بهر حال په جوماتو كې تيز آواز باندې خبرې مكروه دي، اگر چې علمي مكالمه ولې نه وي، خو حد كې اوسيدل په كار دي.

## دنياوي خبرو د پاره جومات څخه بهر ځاى په كار دي

| |
|---|
| ﴿٥٢﴾ وَ عَنْ مَالِكٍ قَالَ : بَنٰى عُمَرُ رَحْبَةً فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ تُسَمّٰى |
| امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مسجد په يو طرف كې چوتره جوړه كړې وه، د هغې نوم |
| الْبُطَيْحَاءَ وَ قَالَ مَنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَلْغَطَ أَوْ يُنْشِدَ شِعْرًا أَوْ يَرْفَعَ صَوْتَهُ |
| بطيحاء وُ، او خلكو ته به يې ويل كه څوک فضول خبرې كول غواړي يا اشعار ويل غواړي يا په تيز آواز |
| فَلْيَخْرُجْ إِلٰى هٰذِهِ الرَّحْبَةِ (۱). |
| خبرې كول غواړي هغه ته په كار دي (چې د مسجد څخه ووځي) او دغه كولاو ځاى ته دې راشي. |

**توضيح:** رحبة: مسجد نبوي سره يو كولاو ميدان ته رحبه ويلى شوې ده او داسې رحبه عام كولاو ځاى او صحرا ته ويلي شي څكه يې **في ناحية المسجد** سره مقيد كړې ده، د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې ترتيب سره امت ته دا تعليم ملاويږي چې كله يو منكر څخه بچ كيدل مشكل وي (المرقات ۲/۴۵۱، الكاشف ۲/۳۰۸).

نو دې متبادل لاره اختيارول په كار دي، حالانكې خلک خبرې كوي او د مونځ په وخت كې جوماتو كې د يو ځاى كيدو كوشش كوي، د دوئ اصلاح د پاره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متبادل لاره اختيار كړه چې مسجد نه بهر يو كولاو ميدان د دنياوي خبرو د پاره جوړ كړى وو. نن سبا د صوبه سرحد يخو علاقو كې اكثر مسجد سره خواته مسافرخانې جوړوي او مقصد يې هم دا وي چې مسجد كې خبرې نه وي، ډيره فائده ترې حاصليږي.

**اللغط:** داسې كلام ته ويلي شي، چې د هغې آواز اوريدلى شي، خو مطلب يې معلوم نه وي، ينشد شعراً خپل شعر وائي، يا د بل چا وايي، دواړو ته انشاد شعر ويلي شي، اشعارو څخه مراد خاص شعر نه وي، مطلقاً شعر مراد وي، اگر چې ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ مذموم اشعار مراد اخيستلي دي، خو ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په دې رد كړى دى.

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱/۱۷۵، رقم الحديث ۹۳

**او يرفع صوته:** ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي : ولو بالذكر، يعنې آواز او چتول مسجد کې د ذکر سره هم مکروه دی.

## قبلې طرف ته توکل منع دي

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُخَامَةً فِي الْقِبْلَةِ |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (مسجد کې) قبلې طرف ته ګرنګ (خرېنګ) وليدل نو |
| فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِ حَتّٰى رُئِيَ فِي وَجهه |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام ډير خفه شو تر دې چې د هغې اثر د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مخ باندې راښکاره شو ، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| فَقَامَ فَحَكَّهُ بِيَدِهِ فَقَالَ: « إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا |
| اودريدو او په خپل لاس مبارک باندې يې وګرولو او ګزاريې کړو او وې فرمايل تاسو کې چې څوک مونځ |
| قَامَ فِي صلاته فَإِنَّمَا يُنَاجِي رَبَّهُ وَ إِنَّ رَبَّهُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ |
| ته اودرېږي د خپل رب سره خبرې کوي او دغه وخت ده پروردګار د ده او قبلې تر مينځ وي هريو ته په |
| فَلَا يَبْزُقَنَّ أَحَدُكُمْ قِبَلَ قِبْلَتِهِ وَ لٰكِنْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ » ثُمَّ |
| کار دي چې د قبلې طرف ته هرګز مه توکئ بلکې خپل ګس طرف يا د خپلو قدمونو لاندې توک کوئ يا |
| أَخَذَ طَرَفَ رِدَائِهِ فَبَصَقَ فِيهِ ثُمَّ رَدَّ بَعْضَهُ عَلٰى بَعْضٍ فَقَالَ: «أَوْ يَفعل هٰكَذَا» [1]. |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام د خپل څادر طرف ونيولو او په هغې يې توک کړل او وې فرمايل : چې يا داسې کوئ. |

**توضيح: نخامة:** د لغت کتاب مغرب کې يې ليکلي نخامه او نخاعة د هغې څليښتناک څيز نوم دی د زکام په وخت کې د خيشوم څخه راوځي.(الكاشف ۲/۳۰۸، المرقات ۲/۴۵۱)

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ وايي: نخاعه د هغه تهوک نوم دی چې د حلق آخري حصې څخه خارج کېږي، بهر حال د پوزې د دننه څخه چې کوم څليښتناک څيز د پوزې په ذريعې سره راوځي هغې ته خراش ويلې شي او هغه څيز کوم چې د معدې څخه د حلق په ذريعې سرا راوځي، هغې ته بلغم ويلې کېږي. او کوم څيز چې خوله کې د ننه پيدا شي او بهر راوځي هغه ته تهوک ويلې شي، نو نخامه او نخاعه د بلغم په معنی کې دي، خو خيشوم څخه ښکته حلق ته راشي يا معده څخه بره حلق ته راشي او د خراش او بلغم مصداق او فرق واضح دی، تجربه وايي چې توک او خراش اختياري څيز دی او بلغم لږ لږ غير اختياري راځي او

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۵۰۷ رقم الحديث ۴۰۵.

په دیوالونو باندې غور ګرځولی شي. او د حدیث مصداق غالباً بلغم دی.

**فحک بیده:** نبي عَلَیۡهِالسَّلَامُ په خپله بطور اکرام د مسجد څخه دغه ځلیښتناک ځیز په خپل لاس مبارک صاف کړو، کیدی شي بلغم وچ وو، یا په لاس کې یې څه ځیز واخیستو او صفا یې کړو یا که چرته لوند وو او دا هم ممکن دی چې چاته یې حکم ورکړی وي چې صفا یې کړه، خو دا معنی بعیده ده.

**یناجي ربه:** یا ژبه باندې قرآت کوي یا زبان حال مناجات کې مشغول وي دا وجه ده مونځ یې د مؤمن معراج ګرځولی دی. **بینه و بین القبلة:** یعنې الله تعالی ته د چې کوم کس مخامخ ودریږي، نو قبلې ته مخ [illegible] عبادت د خپل رب کوي او رب راضی کوي، ځکه د دغه بنده مقصود ده او قبلې په منځ کې [illegible] یې دا حکم ورکړو چې قبلې طرف ته مه توکه، دې سره د رب بې ادبي راځي، حالانکې چپ طرف ته توکه یا قدمونو لاندې توکه، په دې شرط چې مونځ جومات کې نه وي. ځکه مسجد کې یو ځای کې هم جائز نه دی، دا د صحرا او د مسجد څخه خارج مسئله ده، دې څخه دا ثابته شوه، که په مسجد کې د توکلو صورت کیف راشي نو صرف په خپلو کپړو باندې توک وکړئ او بیا یې ومږئ صاف یې کړئ، دې ادب او احترام سره دا خبره ثابته شوه چې د بیت الله دیر لوی احترام دی، چې د زرګونو میله لرې دې طرف ته توکل منع دي، نو اودس ماتي کې خو بیا چا له هم اختلاف نه دی په کار، حالانکې بیت الله طرف ته خپې اوږدې کول هم مناسب نه دي، دا د آدب خلاف دی، پیغمبر صَلَّیاللهُعَلَیۡهِوَسَلَّمَ ټول ژوند کې داسې ملاسته مبارکه کړې ده چې قدم مبارک یې بیت الله طرف ته نه دی راغلی، مسلمان د مرګ څخه پس هم قبلې طرف ته دفن کولی شي چې، د چا خپې بیت الله طرف ته نه راځي.

## قبلې طرف ته توکلو والا امام د امامت څخه فارغ کړی شو:

| |
|---|
| ﴿٥٤﴾ وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ خَلَّادٍ وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ رَجُلًا أَمَّ قَوْمًا |
| حضرت سائب بن خلاد رَضِيَاللهُعَنۡهُ چې د نبي عَلَیۡهِالسَّلَامُ یو صحابي دی وې ویل یو کس امامت ورکولو قوم ته |
| فَبَصَقَ فِي الْقِبْلَةِ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ فَرَغَ |
| او قبلې طرف ته یې لاړې تهوک کړې اتفاقا نبي عَلَیۡهِالسَّلَامُ هغه طرف ته کتل کله چې مونځ څخه فارغ شونو |
| «لَا يُصَلِّي لَكُمْ». فَأَرَادَ بَعْدَ ذَلِكَ أَنْ يُصَلِّيَ لَهُمْ فَمَنَعُوهُ |
| مقتدیانو ته یې ورته وویل چې آئنده به دا امام نه وي دغه کس چې بیا مونځ ورکول وغوښتل نو خلکو منع |
| وَأَخْبَرُوهُ بِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| کړو او د نبي عَلَیۡهِالصَّلَاةُوَالسَّلَامُ ارشاد یې ورته وویلو دغه کس د نبي عَلَیۡهِالسَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو او دواقعې |

| |
|---|
| فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : نَعَمْ وَ حَسِبْتُ أَنَّهُ |
| ذکریې ورته وکړو ، نبي عليه السلام وفرمایل : آو ( راوي وايي ) چې زما خیال دی نبي عليه السلام دغه کس ته |
| قَالَ : « إِنَّكَ قَدْ آذَيْتَ اللّٰهَ وَ رَسُولَهُ »[1]. |
| فرمایلي وو : چې تا الله تعالی ته او د الله رسول ته تکلیف رسولی دی. |

**توضیح: رجل من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم:** ددې تصریح ضرورت ځکه راغلو چې دا صحابي غیر مشهور دی یا ددې صحابي کیدو کې اختلاف دی. (المرقات ۲/۴۵۳).

**فذکر ذلک:** یعنی کله چې د دغه کس په بې ادبۍ حضور صلى الله عليه وسلم خفه شو او په خپله یې دې سره خبرې ونه کړې، بلکې مقتدیانو ته یې وفرمایل، چې دا کس به ستاسو امام نه وي، ځکه چې دا د امامت اهل نه دی، بیا یې چې کله مونځ ورکول وغوښتل نو خلکو منع کړو هغې د وجې تپوس وکړو خلکوورته وویل دادپیغمبر صلى الله عليه وسلم حکم دی داکس حضور صلى الله عليه وسلم خواته راغې او تپوس یې وکړو، چې تاسو واقعي زه د مونځ کولو څخه منع کړې یم، حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل آو ما منع کړی ئې، نو د هغه د وجې تپوس وکړو حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل تا الله تعالی او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تکلیف رسولی دی، دغه رنګ یې امام د امامت څخه فارغ کړو.

**وحسبت:** دا د راوي خلاد بن سائب رضي الله عنه کلام دی، یعنې زما خیال دی چې حضور صلى الله عليه وسلم د نعم څخه پس دا سخت کلمات هم ذکر کړي دي، دې سخت وعید څخه پس د یو مسلمان د پاره مناسب او جائز نه دي چې قبلې طرف ته تهوک کوي، دې حدیث کې لفظ د قبلې دی، دې نه جانب قبله دیوال مراد دی، محراب مراد نه دی، ځکه چې د محراب ایجاد حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله هغه وخت کې کړی دی، چې کله مسجد نبوي نوی تعمیر شو. محراب ته موقف الامام هم ویلی شي، ځکه چې دې کې امام ودرېږي او دا تهولو کې ښه ځای وي، دا وجه ده د بادشاه محل ته هم محراب ویلي شي، هغه هم عمده او ښه ځای وي او بادشاه ځان له په هغې کې اوسیږي، محراب ته ځکه محراب ویلي شي، چې امام په هغه ځای کې شیطان سره جګړه کوي.

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ احْتَبَسَ عَنَّا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ غَدَاةٍ عَنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ |
| د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې : یو ورځ تاخیر وکړو نبي عليه السلام د سحر مونځ ته |

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/۳۲۴ رقم الحديث ۴۸۱

حَتَّى كِدْنَا نَتَرَاءَىٰ عَيْنَ الشَّمْسِ فَخَرَجَ سَرِيْعًا فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ

راتللو باندې نږدې وه چې لمر راختلې وې دې وخت کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام زر تشريف راوړو، د مونځ دپاره تکبير

فَصَلَّى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ تَجَوَّزَ فِيْ صَلَاتِهِ فَلَمَّا سَلَّمَ

وشو او نبي عَلَيْهِ السَّلَام (صحابو سره) مونځ وکړو مونځ کې يې تخفيف وکړو نو هر کله چې يې سلام واړولو

دَعَا بِصَوْتِهِ فَقَالَ لَنَا عَلَى مَصَافِّكُمْ كَمَا أَنْتُمْ ثُمَّ

نو مونږ ته يې په تيز آواز وفرمايل: څنګه چې تاسو په خپل ځای ناست يې همدغه شان کينئ، بيا زمونږ

انْفَتَلَ إِلَيْنَا ثُمَّ قَالَ أَمَا إِنِّيْ سَأُحَدِّثُكُمْ مَا حَبَسَنِيْ عَنْكُمُ الْغَدَاةَ إِنِّيْ

طرف ته متوجه شو او وې فرمايل: خبردار! نن سحر مونځ کې ناوخته راتللو وجه بيانوم مانن شپه (تهجد

قُمْتُ مِنَ اللَّيْلِ فَتَوَضَّأْتُ وَ صَلَّيْتُ مَا قُدِّرَ لِيْ فَنَعَسْتُ فِيْ صَلَاتِيْ

مونځ دپاره) اودس وکړو او څومره چې زما په مقدر کې وو هغه مې وکړو او په مونځ کې ما ته خوله وازې

حَتَّى اسْتَثْقَلْتُ فَإِذَا أَنَا بِرَبِّيْ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى فِيْ أَحْسَنِ صُوْرَةٍ

راغې تردې چې خوب په ما باندې غالب شو (دغه وخت) يودم ما د خپل رب ښه صورت وليد و الله تعالى

فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَبِّ قَالَ فِيْمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى قُلْتُ لَا أَدْرِيْ

وفرمايل (تا ته پته شته) چې مقربې فرښتې کومه خبره کې بحث کوي ما عرض وکړو اې الله ما ته پته نشته

قَالَهَا ثَلَاثًا قَالَ فَرَأَيْتُهُ

الله تعالى درې ځلې دا وفرمايل (او ما دغه جواب ورکولو) نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: ما وليدو چې الله تعالى

وَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ أَنَامِلِهِ بَيْنَ ثَدْيَيَّ

زما د ولو په مينځ کې لاس کېښودو تردې چې ما د الله تعالى د ګوتو يخ والى په سينه کې محسوس کوو

فَتَجَلَّى لِيْ كُلُّ شَيْءٍ وَ عَرَفْتُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ

نو زما مخې ته هر څيز ظاهر شو او ما ټولې خبرې وپېژندې بيا الله تعالى وفرمايل اې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

قُلْتُ لَبَّيْكَ رَبِّ قَالَ فِيْمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى

ما ووېل: اې الله! زه حاضر يم وې فرمايل (اوس وايه) مقربې فرښتې څه کې بحث کوي؟ ما عرض وکړو

| |
|---|
| قُلْتُ فِي الْكَفَّارَات قَالَ مَا هُنَّ قُلْتُ مَشْيُ الْأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ وَ |
| د کفاراتو په باره کې الله تعالى وفرمایل: هغه کوم شیزدی؟ ما عرض وکړو جماعتونو ته تلل او راتلل او |
| الْجُلُوسُ فِي الْمَسَاجِدِ بَعْدَ الصَّلَوَاتِ وَ إِسْبَاغُ الْوَضُوءِ حِيْنَ الْكَرِيهَاتِ |
| جومات کې کیناستل وروسته د مونځونو نه ،او په سختئ کې په ښه طریقې سره اودس کول ، الله تعالى |
| قَالَ ثُمَّ فِيْمَ ؟ قُلْتُ : فِي الدَّرَجَاتِ . قَالَ : وَمَا هُنَّ؟ |
| وفرمایل: نور په کوم شیز کې بحث کوي ما عرض وکړو د درجو په باره کې، وې فرمایل: هغه څه دي؟ ما |
| قُلْتُ إِطْعَام الطَّعَام وَ لِيْنُ الْكَلَامِ وَ الصَّلَاةُ بِاللَّيْلِ |
| عرض وکړو: غریبو او مساکینو ته روټئ ورکول او په نرمه لهجه کې خبرې کول او مونځ کول د شپې په |
| وَ النَّاسُ نِيَامٌ . ثُمَّ قَالَ : سَلْ قُلْتُ |
| داسې حال کې چې خلک ویده وي بیا الله تعالى وفرمایل اوس ځان دپاره څه غواړې وغواړه ما دعا وکړه |
| اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَ حُبَّ الْمَسَاكِيْنِ وَأَنْ تَغْفِرَلِي |
| اى الله ! زه ستا نه د نیکئ کولو او د معاصیو پرینبودو او محبت د مسکینانو او مونږ ته مغفرت وکړې |
| وَ تَرْحَمَنِي وَ إِذَا أَرَدْتَ فِتْنَةً فِيْ قَوْمٍ فَتَوَفَّنِيْ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ أَسْأَلُكَ |
| او رحم وکړې او چې کله ته اراده وکړې د یو قوم د ګمراهئ نو ما وفات کړې په غیر د ګمراهئ نه زه سوال |
| حُبَّكَ وَ حُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ وَ حُبَّ عَمَلٍ |
| کوم د تا نه د محبت ستا او د هغه کس محبت چې تاسره محبت کوي او د داسې عمل محبت چې ستا محبت |
| يُقَرِّبُنِي إِلَى حبك ". فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :« إِنَّهَا حَقٌّ |
| ته سرې نزدې کړی بیا رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمایل : چې دا خوب بالکل رینښتوني دی ،لهذا |
| فَادْرُسُوهَا ثُمَّ تَعَلَّمُوهَا ». [1] وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَ |
| تاسو دا یاد کړئ او بیا یې خلکو ته وښائې. امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰه وايي چې دا حدیث حسن او صحیح دی او |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۴۳/۵ رقم الحديث ۳۲۳۵.

سَأَلْتُ مُحَمَّدَ ابْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ فَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحٌ.

ما د محمد بن اسماعیل نه د ې حدیث په باره کې تپوس وکړو نو هغه وویل چې دا حدیث صحیح دی.

**توضیح:** ددې حدیث تشریح ددې نه مخکې حدیث نمبر (۳۴) کې تیره شوې ده، هغه حدیث کې دا احتمال وو، چې دا واقعه بیداری کې راغلې ده، خو دلته د ې حدیث کې تصریح ده دا واقعه د خوب ده، چې کله واقعه د خوب وي، نو بیا بریلوي حضرات دې روایت نه خپلو غلطو عقائدو ته ترویج نه شي ورکولی. یو ځلې یو بریلوي ته محمد شفیع اوکاړوي وویل نن زه ددې حدیث غوټه حل کوم، حضور ﷺ راوتو کې ناوخته ولې کړو، بیا یې وویل حضور ﷺ خواته الله تعالی راغی حضور ﷺ مونځ له تلو او الله تعالی حضور ﷺ منع کولو، وایي چې د چا مونځ له ځي هغه ستا سره دی. استغفر الله! د ناجوړه سوچ څنګه ناجوړه تشریح ده. (المرقات ۲/۴۵۵).

**احْتُبِسَ:** د مجهول صیغه ده یعني اودرولی شو او د معلوم صیغه هم ده یعني په خپله اودریدلو.

**فثوب:** د اقامت په معنی دي. **تتراى:** یعني دومره ناوخته شو چې مونږ کتل چې لمر خو نه دی راختلی.

**فثُوِّبَ** د مونځ د پاره اقامت کولو ته تثویب وایي. **تجوز:** یعني نبي علیه السلام مختصر مونځ ورکړ.

**على مصافكم:** مصاف صف ته ویلي شي، یعني تاسو په خپل خپل صفونو کې په خپل ځای کینئ.

**انها:** یعني دا خوب رښتني خوب دی **فادرسوها** یعني دا زده کړئ، ښه پرې ځان پوهه کړئ او بیا یې خلکو ته وښایئ، **تعلموها** علامه قرطبی رحمه الله وایي: دلته دې صیغه کې لام امر مخذوف دی: ای لتعلموها یعني نور پوهه کړه.

| |
|---|
| ﴿٥٦﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا |
| د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام به فرمایل چې کله به |
| دَخَلَ الْمَسْجِدَ : « أَعُوذُ بِاللهِ الْعَظِيمِ وَ بِوَجْهِهِ الْكَرِيمِ وَ سُلْطَانِهِ الْقَدِيمِ |
| داخلیدو مسجد ته: زه پناه غواړم په الله تعالی عظمت والا، بزرګ ذات والا، همیشه بادشاهي والا سره |
| مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ » قَالَ : « فَإِذَا قَالَ |
| د شیطان مردود نه، نبي علیه السلام فرمایي: څوک چې جومات ته د ننوتو په وخت کې دا دعاء ووایي: (نو |

ذٰلِكَ قَالَ الشَّيْطَانُ حُفِظَ مِنِّيْ سَائِرَ الْيَوْمِ»[1].

شیطان دا دغه کس په باره کې) وایي چې ټوله ورځ به زما د شر څخه محفوظ وي.

﴿۵۷﴾ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ

د حضرت عطاء بن یسار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایلي دي: ای الله! مه ګرځوه

قَبْرِيْ وَثَنًا يُعْبَدُ اِشْتَدَّ غَضَبُ اللهِ عَلٰى قَوْمٍ

قبر زما بت چې خلک یې عبادت کوي او د الله تعالی سخت غضب او غصه نازله شوې ده په هغو خلکو

اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ»[2].

چې دوي ګرځولې دي قبرونه د خپلو انبیاو ځای د سجدې.

**توضیح: وثنا یعبد:** اوثان وثن بُت ته ویلي شي او **یعبد** د عبادت کولو په معنی کې دی، یعنې زما قبر د بت خانې په شان مه جوړوئ چې خلک یې عبادت شروع کړي او لرې لرې څخه خلک راځي او سجدې کوي او طواف شروع کړي او د شریعت خلاف تعظیم شروع کړي، که دې حدیث ته وکتلی شي، نو د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټول ارشادات عملي طور باندې موجود دي، یو طرف ته د قبرونو دومره زور دی چې هغوی د پیغمبرانو ګیر چاپیره قبرونو هم عبادت شروع کړی دی دا پیشنګوی پوره شوه، دویم طرف ته الله تعالی د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې دعا قبوله کړه، چې نن سبا خلک په قبرونو باندې سجدریزه پراته دي، خو مجال نشته چې د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر ته څوک بنکته شي، (المرقات ۲/۴۵۴).

حالانکې د قبر پرستو امام د روضه اقدس په باره کې فرمایي:

سر سوئے روضہ جھکا پھر تجھ کو کیا ❁ دل تھا ساجد نجد یا پھر تجھ کو کیا؟

ان کو تملیک ملیک ❁ مالک الملک کیا پھر تجھ کو کیا؟

**اشدت غضب** دا جمله ګویا د سائل جواب کې راغلې چا سوال کړی وو یا رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاسو دا دعا دومره اهتمام سره ولې غواړئ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب ورکړو خپل امت باندې شفقت او مهرباني مقصود او مطلوب ده، ځکه چې یهودو او نصارا و باندې د الله تعالی قهر او غضب نازل شو، نو هغوئ د خپلو انبیاو قبرونه سجده ګاه جوړ کړي وو.

---

(۱) اخرجه أبوداؤد في السنن ۳۱۸/۱ رقم الحديث ٦٦١

(۲) اخرجه مالک في الموطأ ۱۷۲/۱ رقم الحديث ۷۵ من كتاب قصر الصلاة في السفر

﴿۵۸﴾ وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ الصَّلَاةَ فِي الْحِيطَانِ. قَالَ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه السلام خوښولو مونځ په حيطان کې. ويلي

بَعْضُ رُوَاتِهِ يَعْنِي الْبَسَاتِينَ [1]. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ

دي بعضې راويانو چې د حيطان نه مراد باغونه دي، امام ترمذي دا روايت نقل کړى دى وايي دا حديث

غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْحَسَنِ بن أَبِي جَعْفَر وَقد ضعفه يحيى ابْن سعيد وَغيره.

غريب دى چې نه دى منقول مګر د حسن بن جعفر نه او ضعيف ګرځولي يحيى بن سعيد وغيره.

﴿۵۹﴾ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي بَيْتِهِ

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: نبي عليه السلام وفرمايل: چې د يو سړي مونځ په خپل کور

بِصَلَاةٍ وَ صَلَاتُهُ فِي مَسْجِدِ الْقَبَائِلِ بِخَمْسٍ وَعِشْرِينَ صَلَاةً وَ صَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِي

کې د يو مونځ برابر دى او د محلې جومات کې د (۲۵) مونځونو برابر دى او مونځ يې په هغه مسجد کې

يجمع فِيهِ بخمسمائة صَلَاةٍ وَ صَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى

چې جمع کبرې هغې کې مونځ د پنځه سوه (۵۰۰) مونځونو برابر دى، او مسجد اقصى کې مونځ کول د

بِخَمْسِينَ أَلْفِ صَلَاةٍ وَ صَلَاتُهُ فِي مَسْجِدِي بِخَمْسِينَ أَلْفَ صَلَاةٍ وَ

پنځوس زرو مونځونو برابر دى او مونځ کول زما په مسجد کې هم د پنځوس زرو مونځونو برابر دى او

صَلَاتُهُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ بِمِائَةِ أَلْفِ صَلَاةٍ» [2].

مونځ کول په مسجد حرام کې د يو لک مونځونو برابر دى.

**توضيح: في بيته:** دې حديث کې د ځان ته ځان ته د مونځونو د درجاتو وضاحت بيان کړى دى چې د دې فضيلت هر يو کس واوري او عمل کې يې راولي، دې راخکوونکي او باعث ترغيب حديث کې رومبى فضيلت د هغه کس دى چې کور کې مونځ کوي، مونځ يې پرېښې نه دى، بلکې کړى يې دى، خو ځان ته يې کړى دى، ده ته د يو مونځ ثواب ملاوېږي دا کمه درجه ده. (المرقات ۲/۴۵۹). **مسجد القبائل:** يعني محلې مسجد کې مونځ وشويو مونځ د (۲۵) مونځونو برابر ثواب ملاوېږي. **يجمع فيه:** دې ځخه

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۵۵ رقم الحديث ۳۳۴

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴۵۳ رقم الحديث ۱۴۱۳

جامع مسجد مراد دی، دې کې خلک د جمعې او اختر مونځونو دپاره راجمع کېږي حالانکې حضرت عمر رضي الله عنه (۹۰۰) جامع مساجد او (۴۰۰۰) عام مساجد جوړ کړي وو، یعنې څوک چې جامع مسجد کې د جماعت سره مونځ وکړي دې ته د پنځه سوه مونځونو ثواب ملاویږي، بیت المقدس او مسجد نبوي که څوک یو مونځ وکړي، نو پنځوس زره مونځونو ثواب ملاویږي او که څوک بیت الله کې مونځ وکړي، نو ددې بدله کې ورته یو لاک مونځونو برابر ثواب ملاویږي، دلته د مونځونو د شمار ترتیب داسې دی، بعضې روایاتو کې د مسجد نبوي ثواب یو زر (۱۰۰۰) برابر ښودلی دی، دواړو روایاتو کې په ښکاره ډیر تعارض دی، خو داسې دفع کولی شي، چې شمار کې تعارض نه دی، ځکه چې یو عدد د دویم عدد نفې نه کوي، دویم جواب دا دی فضائل او درجات ډیریږي لهذا دا تضاد او تعارض نه دی، مخکې هم همدې ابوابو کې داسې قسمه احادیث او د دوی تشریح تیره شوې وه، تفصیل هلته موجود دی.

## بیت الله او د بیت المقدس زمانه

| |
|---|
| ﴿۶۰﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ مَسْجِدٍ وُضِعَ |
| د ابو ذر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: ما نبي علیه السلام ته عرض وکړو یا رسول الله! کوم مسجد جوړ |
| فِي الْأَرْضِ أَوَّلُ؟ قَالَ: «الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ» قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ أَيُّ؟ قَالَ: «ثُمَّ الْمَسْجِدُ |
| شوی اول په زمکه کې؟ نبي علیه السلام وفرمایل مسجد حرام ما عرض وکړو بیا ددې نه پس وې فرمایل مسجد |
| الْأَقْصَى». قُلْتُ: كَمْ بَيْنَهُمَا؟ قَالَ: «أَرْبَعُونَ |
| اقصی بیا ما تپوس وکړو ددې دواړو مساجدو مینځ کې څومره فرق دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل څلوېښت |
| عَامًا ثُمَّ الْأَرْضُ لَكَ مَسْجِدٌ فَحَيْثُمَا أَدْرَكَتْكَ الصَّلَاةُ فَصَلِّ»[1]. |
| کاله بیا یې وویل ټوله ځمکه ستاسو دپاره مسجد دی چې کوم ځای کې د مونځ وخت شي هلته یې کوئ. |

**توضیح: وضع في الارض اول:** و قائع الدهور یو وړوکی شان کتاب دی، دې کې د کائناتو د تخلیق متعلق ډیر څه لیکلي وو، دې کې دا هم وو، چې ټولو نه مخکې الله تعالی یوه شنه ملغلره جوړه کړه دغه ملغلرې ته الله تعالی د هیبت او د رعب په نظر وکتل، نو د ویرې څخه دغه ملغلره اوبه شو، اوس کائناتو کې ټولې اوبه دي، قرآن کریم ددې طرف ته داسې اشاره موجود ده ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ (هود:۱) بیا الله تعالی اوبو ته د رعب په نظر وکتل، نو اوبه د ویرې د وجې نه وې شیدې، نو وچې شوې، یو قسم

(۱) أخرجه البخاري ۴۰۷/۶، رقم الحديث ۳۳۶۶، ومسلم ۳۷۰/۱ رقم الحديث: ۲-۵۲۰، والنسائي ۱۲/۲، رقم الحديث: ۶۹۰، مسند أحمد ۱۵۶/۵.

لوندوالی او خټه پاتې شوه او بره لوګی پاڅیدو، دغه لوګي څخه الله تعالی آسمان جوړ کړو، قرآن کریم کې دې طرف ته داسې اشاره ده ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ﴾ (حمٓ سجدة: ۱۱) لاندې کومه خټه او لوندوالی وو دهغې څخه الله تعالی ځمکه جوړه کړه قرآن کریم کې اشاره موجود ده ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾ (نازعات: ۳۰) کوم ځای نه چې ځمکه خوره شوه، دغه ځای د ځمکې منځ او سرة الدنیا وو، او دغه ځای ټوله دنیا کې د اوچتې ډیرۍ په شان وو او دغه ځای الله تعالی د خپل کور د پاره خوښ کړو، دې ته یې حرم مکه ووئیلو، دغه ځای بیت الله جوړ شو، ټولو نه مخکې د بیت الله بنیاد فرښتو ایخی وو، او د دنیا مختلف غرونو څخه لوی لوی کاڼي د بیت الله په بنیادونو کې اچولی شوي دي.

کله چې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام دنیا ته راغی دده ته د ځانته والي ویره محسوس شوه، همدا رنګ د فرښتو سره یو ځای د بیت المعمور طواف مناظر دوی ته یادیدل، الله تعالی ته د (سراندیب) کلي ته د تلو حکم وکړو، جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام راهنمائي کوله تردې چې کلي کې داسې ځای ته ورسیدو، کوم ځای کې چې فرښتو د بیت الله بنیاد اچولی وو، الله تعالی په حکم بیت المعمور د آسمانونو څخه لاندې راوړو او په هغه بنیادونو باندې کیښودو، حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام او فرښتې یو ځای عبادت او طوافونه شروع کړل، بیا چې طوفان نوح راغی، نو الله تعالی بیت المعمور د اوه آسمانونو د بره کړو، او ځمکې کې د بیت المعمور نښې او بنیادونه د خاورې لاندې راغلل او پټ شول، دغه قواعد ښکاره کولو او دې باندې بیت الله قائم کولو حکم حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام ته وشو، نو د حضرت اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَام سره یو ځای دا کار وکړو، او بیت الله تعمیر یې وکړو، چهت نه وو، دروازه هم موجوده نه وه، د یوې دروازې ځای هغه وو، چې نن سبا موجود دی، دویمه دروازه د دغې مقابل رکن یماني طرف ته وه، بیا (تبع) بادشاه دروازې ولږولې او بیت الله ته یې پردې واچولې. بیا عمالقو د بیت الله په تعمیر کې کار وکړو، بیا قریشو بیت الله د ورانیدو څخه پس جوړ کړو، دې کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم (۳۵) کالو په عمر کې حصه اخستې وه، قریشو پکې رد و بدل وکړو، حطیم حصه یې پریښوده او د دوو پر ځای یې یوه دروازه پریښوده او دغه دروازه یې هم د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام د قد برابر ځمکې څخه اوچته کړه، بیا حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل دور خلافت کې بیت الله وران کړو او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تمنا باندې یې جوړ کړو، حطیم یې هم دننه کړو او دوه دروازې یې جوړې کړې.

حجاج بن یوسف چې غالب شو، نو بیت الله یې دوباره د قریشو په طرز باندې جوړ کړو، چې نن سبا پورې دغه شان دی، حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ څخه هارون الرشید اجازت وغوښتو چې بیت الله د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تمنا بندې جوړ کړم، حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فتوی ورکړه، اوس په بیت الله کې تغیر او تبدیل حرام دی، چې دا د بادشاهانو د تعمیر کهلونه (د لوبو څیز) ونه ګرځي، بیا د ترک

بادشاه تعمير وكړو خو تغير او تبديل يې پكې ونه كړو، نن پورې هغه شان قائم دى، بيا به قيامت ته نيږدې د بيت الله حقيقت الله تعالى د دنيا څخه وچتوي او قيامت به قائم شي. شاه عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ خپل تفسير كې د بيت الله مرحله وار تعمير بيان كړى دى، سورة بقره تفسير كې وګورئ، ما ډيرو ځايونو كې د كائناتو تخليق متعلق د شنې ملغلرې واقعه ذكر كړې ده، خو دا دومره مستند څيز نه دى.
ابن كثير د كائناتو تخليق كې نور هم تفصيل ليكلى دى، (البدايه جلد اول) كې مذكور دي، ما چې څه ليكلي دا مربوط دي او بيت الله سره يې تعلق شته، د شنې ملغلرې پيدا ښت او ددې څخه د كائناتو تخليق واقعې طرف ته (جلالين ص ۱۸۰ حاشيه ۱۳) باندې صاحب كمالين اشاره كړې ده.

**المسجد الحرام**: دې ته حرام ځكه وايي چې دې كې ښكار حرام دى. او بل دا چې په دې كې د حلال څيزونو ارتكاب حرام دى. او بل دا چې محترم او واجب الاحترام دى. **المسجد الاقصى**: ځكه ورته اقصى وايي چې د مكې او مدينې څخه ډير لرې واقع دى.

**اربعون عاما**: يعني د بيت الله او مسجد اقصى په آبادۍ او تعمير كې څلويښت كاله فاصله وه.
**سوال**: دلته مشهور اشكال دي، د بيت الله شريف جوړولو والا حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ دى او د بيت المقدس جوړونې والا حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ دى د دواړو پيغمبرانو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ترمينځ زر كاله فاصله ده، دا څنګه ممكن دى، چې دواړو كې څلويښت كاله فاصله ده؟
**جواب**: علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ او علامه بيضاوي رَحِمَهُ اللهُ ددې اشكال جواب كړى، چې د نورو شروحاتو د جواباتو څخه ډير واضح دى، هغه دا چې دلته د تعمير او ترقۍ او د بنياد كيښودو خبره نه ده، بلكې د الله تعالى د عبادت د پاره چې عبادت ګاه په ځمكه باندې بيت الله مقرر شو، نو څلويښت كاله بعد بيا بيت المقدس مقرر شو.

دې جواب باندې د حديث لفظ (وضع) واضح دلالت كوي، ځكه چې لفظ د **وضع** په ځاى د تعمير باندې ډير واضح دى، د قرآن كريم آيت مبارك ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ﴾ (آل عمران آيت: ۹۶) كې هم د **وضع** لفظ واضح دى، چې د عبادت مقرر كيدو د پاره استعمال شوى دى، ظاهري تعمير د پاره **بنا** او **بنيان** الفاظ راځي.



۲٤ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ السَّتْرِ:
## مونځ کې د ستر پټولو مسائل

قال الله تعالى: ﴿يَا بَنِي آدَمَ قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْءَاتِكُمْ وَرِيشًا﴾ (سورة اعراف آيت: ۲٦)

و قال الله تعالى: ﴿يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ (سورة اعراف آيت: ۳۱).

د مونځ صحيح کيدو دپاره ديرشرائط دي په هغې کې يو شرط (ستر) دی، يعنې شرمګاه او مستوره اعضاء پټول فرض دي. صاحب مشکوة دې مذکوره باب کې ددې سلسلې احاديث جمع کړي دي، دې څخه علاوه د هغه کپړو ذکر دی، کومې کپړې چې صحابوو اچولې وې او مونځ يې په کې کړی وو. دې باب کې صاحب مشکوة مجموعي طور باندې اتلس احاديث ذکر کړي دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:
## په يو څادر کې د مونځ کولو طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي |
| د حضرت عمر بن ابی سلمه رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: ما نبي عليه السلام وليدو چې مونځ يې کولو په |
| ثَوْبٍ وَاحِدٍ مُشْتَمِلًا بِهِ فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ وَاضِعًا |
| يوه کپړه کې چې په بدن يې اچولې وه دا کپړه، په کور د حضرت ام سلمه رضي الله عنها کې داسې يې اچولې وه |
| طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ. (متفق عليه)[1]. |
| چې دواړه غاړې د نبي عليه السلام په ولو باندې پرتې وې. |

**توضيح: في ثوب واحد:** حالت وسعت او طاقت په وخت کې درې کپړې يعنې شلوار، قميص او د پټکي استعمال مستحب دي، د وسعت او قدرت باوجود داسې کپړو کې مونځ کول مکروه دي، بالاتفاق چې ثياب بذله او ثياب مهنه وي، يعنې داسې کپړې وي چې موجب عار وي، چې واچوي، نو بنه مجلس ته په کې تلې نه شي، لکه شلوار او بنيان يا کتلی شی چې د غه يوه کې استعمال شده خرې يا شکيدلې

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱٦۹، رقم الحديث ۳۵٦، ومسلم في الصحيح ۱/۳٦۸ رقم الحديث ۲۷۸-۵۱۷، والترمذي ۲/۱٦٦ رقم الحديث ۳۳۹، أخرجه أحمد في المسند ۲/۲٤۳

کپړې وي او زړې. (المرقات ۲/۴۶۳).
که حالت د وسعت نه وي په وخت د ضرورت کې يو کپړې کې مونځ کول بغير د کراهته جائز دي بالاتفاق، دا به کتلی شي چې دغه يوه کپړه وسيع وي او څه نا څه گنجائش په کې وي. بيا د اشتمال صورت محمود او خوښ دی، اشتمال صورت او طريقه شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللَّهُ په اشعة اللمعات کې داسې ليکلې ده د څادر گس جانب د گس ولي د لاندې رابنکې نيغ به يې په ولي باندې واچوې، بيا د څادر ښې جانب د ولي په ښي طرف د لاندې رابنکلې شي او گس ولي باندې به يې واچوې، اوس د څادر دواړه طرفونه د ولو شاته لاړ شي، دغه ځای څخه به دواړه سينو طرف ته راوستی شي او غوټه به ورکړې، دې ته اشتمال وايي، (الکاشف ۲/۳۱۵، اشعة اللمعات ۳۶۹، المرقات ۲/۴۶۳).

دا په **توشح** او **فليخالف** وغيره نومونو سره هم يادېږي. غوټه لړول د اشتمال حصه نه ده صرف مضبوط کيدو د پاره که څادر اوږد وي، نو د غوټې ضرورت نشته دی.

**واضعاً طرفيه**: دا جمله د مشتملا د ضمير نه حال دی او اشتمال د صورت تفصيل او وضاحت دی.

## د مونځ کولو په وخت کې د اوږو پټول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لَا يُصَلِّيَنَّ أَحَدُكُمْ |
| دابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي: داسې مونځ دې نه کوي يو کس په تاسو |
| فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلَى عَاتِقَيْهِ مِنْهُ شَيْءٌ». (متفق عليه).[1] |
| کې په يوه کپړه کې چې د کپړې يوه حصه هم په ولو باندې نه وي. |

**توضيح: ليس على عاتقيه**: باوجود د دې نه چې کپړه کې گنجائش شته او بيا هم کپړه په ولي باندې نه وي، دې صورت کې مونځ کولو اجازت نشته دی، د مذکور حديث ظاهره الفاظو مطلب دا دی، دې کې علماوو دا حکمت بيان کړی دی، که کپړه په ولي باندې وانه چوي او دغه کپړه تهه بند او گرځوي، يعنې ښکته او بره تولو حصو د پاره يوه کپړه ده، دې صورت کې د کپړې پرېوتو ويره ده، او ستر د کولاويدو ويره هم ده او د رب په دربار کې يو قسم بې ادبي هم ده. (المرقات ۲/۴۶۴، الکاشف ۲/۳۱۵).
اوس په حديث کې کوم ممانعت دی، دغه حيثيت کې د فقهاء کرام معمولي شان اختلاف دی.
**د فقهاو اختلاف**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ او د څه سلفو علماو په نزد باندې که کپړه ډيره وي او بيا هم

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۴۷۱، رقم الحديث: ۳۵۹، ومسلم في الصحيح ۱/۳۶۸ رقم الحديث: ۲۷۷-۵۱۶، وأبو داود ۱/۴۱۱ رقم الحديث: ۶۲۶، والنسائي ۲/۷۱، رقم الحديث ۷۶۹، أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۴۳.

په ولو باندې کپړه نه اچوي په کولاو ولو سره مونځ کول جائز نه دي، بلکې مکروه تحریمي دي، ائمه ثلاثه یعنې جمهور وايي، چې ستر مکمل پټ وي، نو بیا مونځ کېږي، خو ولو ښکاره کیدو سره جواز مع الکراهت وي او دا کراهت تنزیهي دی، تحریمي نه دی.

**دلائل**: حنابلو حضراتو زیر بحث حدیث څخه استدلال کړی دی او حدیث یې په عدم جواز باندې حمل کړی دی، (المرقات ۲/۴۶۴) جمهورو د حدیث حکم په عدم جواز باندې نه، بلکې خلاف اولی باندې حمل کړی دی، هغوی فرمايي چې په دې حدیث کې د ولو پټولو حکم د یو حکمت لاندې ذکر کړی دی، هغه دا که په ولي کپړه نه وي په یو څادر صورت کې ستر ښکار کیدو ویره وي او که په لاس سره یې نیسي، نو په نوم باندې لاس کینبود و سنت فوت کېږي، بهر حال کپړه ددې نه هم کمه وه، چې د اشتمال صورت په کې نه جوړیږي، نو بیا یې مرۍ سره تړل په کار دي که ددې نه هم کم وو، بیا د ولي څخه ښکته وتړئ، چې ستر پټ شي، غیر ضرورت په حالت کې ستر کولاو ساتل کراهت څخه خالي نه دی، خاص کر که فیشن وي او ویخته انګریزي وي، بیا نو رهم په دې کې کراهت سختیږي.

﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « مَنْ
د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وايي چې: ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه اوریدلي چې فرمایل یې: چا چې
صَلَّى فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ »[1].
مونځ وکړو په یوه جامه کې هغه ته په کار دي چې ددې کپړو په دواړو طرفونو کې دې مخالفت وکړي.

﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِيْ خَمِيصَةٍ لَهَا
د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په داسې څادر کې مونځ وکړو چې په غاړو
أَعْلَامٌ فَنَظَرَ إِلَى أَعْلَامِهَا نَظْرَةً فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ :
باندې لړ کار شوی وو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه شوي کار ته وکتل نو کله چې د مونځ نه فارغ شو وې فرمایل
« اذْهَبُوْا بِخَمِيصَتِيْ هٰذِهٖ إِلَى أَبِيْ جَهْمٍ وَ ائْتُوْنِيْ بِأَنْبِجَانِيَّةِ أَبِيْ جَهْمٍ فَإِنَّهَا
دا څادر ابي جهم خوا ته ویسئ (او دا هغه ته حواله کړئ) د ابی جهم انبجانیة راوړه، ځکه دغه څادر زه
أَلْهَتْنِيْ آنِفًا عَنْ صَلَاتِيْ» (متفق علیه) وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيْ قَالَ: "كُنْتُ أَنْظُرُ
لږ ساتلی یم د خپل مونځ نه. او د بخاري په یو روایت کې دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایلي وو: ما کتلو د

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۷۱، رقم الحديث ۳۶۰، وأبو داود ۱/۱٤٤ رقم الحديث ۶۲۷، وأخرجه أحمد في المسند ۲/۲۵۵

إِلَى عَلَمِهَا وَ أَنَا فِي الصَّلَاةِ فَأَخَافُ أَن يَفْتِنَنِي [1].

مونځ په دوران کې د دغه څادر نقش او نګار ته ماته دا ویره وه، چې زما مونځ خراب نه کړي.

**توضیح: خمیصه**: دا یو داسې څادر ته ویل کېږي، چې د وریښم یا وړې څخه جوړ وي، د دې رنګ تور وي دې کې کرښې وي خاص کر د یمن ښائسته څادر ته خمیصه ویلې شي. (المرقات ۲/۴۶۵)

علامه جریري وایي:

**لبست الخميصه ابغي الخبيصه ❁ وانشبت شصي في كل شيصه**

**لها اعلام**: دا د خمیصه د پاره تاکید دی، یا یې بیان دی، ځکه چې خمیصه هغه څادر وي چې دې کې دوه یا د دې څخه ډیرې کرښې او ګلونو نقش او نګار وي په کې. **الی ابي جهم**: دا د یو صحابي نوم دی ویلې شي نبي عَلَیْهِالسَّلَامُ خوا ته دوه خمیصه څادرونه راغلي وو یو نبي عَلَیْهِالسَّلَامُ په خپله واچولو او دویم څادر یې ابوجهم ته حواله کړو، د مونځ کولو څخه پس حضور صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ هغه څادر لرې کړو او دغه دویم یې د ابوجهم څخه واپس راوړو چې ساده وو، د بعضې روایاتو څخه معلومیږي ابوجهم بطور تحفه دا څادر حضور صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ ته ورکړی وو، پیغمبر صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ د هغه د خاطره لږ ساعت د پاره اچولی ؤ، بیا یې ترې ساده راوړو ځکه چې ګلونو والا د هغه په توجه الی الله کې فرق راوستی وو.

**انبجانیة**: دا لفظ د همزې کسرې او د نون ساکن او **بآء** کسرې او د **یا** تخفیف سره ویلې شي د **انفعالیه** په شان دی.

**الهتني**: یعنې زما مخې ته چې کله نقش او نګار راغی هغې زما توجه ختم کړه او زما توجه الی الله کې یې فرق راوستو، علماء لیکي د دنیا نقش او نګار هم صفا زړونو والا متاثر کوي، امام بخاري د دې حدیث څخه استدلال کړی دی په مونځ کې داسې خیالونه راتلل د مونځ د پاره مضر نه دي، بهر حال قلوب صافیو باندې معمولي څیز ډیر اثر کوي، د تورو زړونو والا د دښه څه خیر دی، شیخ عبدالحق رَحِمَهُاللّٰهُ لمعات کې لیکلي، دا په حقیقت کې د امت د پاره تعلیم دی او حضور صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ امت ته تنبیه ورکړې ده، د دنیا نقش او نګار څخه ځان ساتئ ډیر خطرناک څیز دی، دې څخه هر یو کس متاثره کېږي. (اشعة اللمعات ۳۷۰).

**انفا: ای قریباً** (نزدې) یعنې اوس اوس **یقال انفه الشيء ای ابتداه ومنه الاستیناف**)

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۲/۱، رقم الحديث ۳۷۳، ومسلم في الصحيح ۳۹۱/۱ رقم الحديث: ۶۲-۵۵۶، وأبو داود ۵۶۲/۱ رقم الحديث ۹۱۴، والنسائي ۷۲/۲، رقم الحديث ۷۷۱، أخرجه أحمد في المسند ۱۷۷،۶

**ان يفتنني أى ان يوقعني في الفتنة والشغل:** بهر حال چې کله زړه د شيشي په شان پاک وي او دآئيني په شان روښانه وي، دې باندې معمولي د خيري هم اثر کيږي. کړه ځومره سپينه وي، دې باندې تور ټاکي ډير ښه ښکاري، اهل الله او اهل دل زړونو تعلق مع الله د وجې ځکه داسې روښانه وي، او دې په مقابله کې سياه کار او بدکار خلک دي، د دوئ په دماغو او زړه باندې د لوی ګناه اثر پته نه لږي.

﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهِ جَانِبَ بَيْتِهَا

د انس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: حضرت عائشې رضي الله عنها دخپل کور په يوه حصه کې پرده اچولې

فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَمِيطِي عَنَّا قِرَامَكِ هٰذَا فَإِنَّهُ

وه، نو نبي عليه السلام حضرت عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل: دغه پرده زما مخې نه اخوا کړه ځکه چې ددې

لَا يَزَالُ تَصَاوِيرُهُ تَعْرِضُ لِيْ فِيْ صَلَاتِيْ».[1]

تصويران په مونځ کې زما مخې ته برابر ولاړ وي.

**توضيح: قرامک:** د قاف په کسرې سره قرام هغه باريکې پردې ته ويلې شي، چې مختلف رنګونه په کې لږيدلي وي، بعضې اهل لغت وايي: قرام هرنرم باريکې کپړې ته وايي علامه توربشتي رحمه الله وايي قرام هغه پردې ته وايي چې هغې کې ګلونه او نقش او نګار وي (المرقات ۲/۴۶۷، اشعة اللمعات ۳۷۱)

**اميطي:** اماطة الاذى د لرې کولو او اخوا کولو په معنی راځي.

**تصاوير:** دې ځخه د روح والا ځناورو تصاوير مراد نه دي، بلکې دغه نقش و نګار ته تصاوير ويلې شوي دي او ممکن دي چې د روح والا تصاوير وي، او حضرت عائشة رضي الله عنها ته د ممانعت علم نه وو، چې کله پيغمبر صلى الله عليه وسلم ورته ووئيل، نو حضرت عائشه رضي الله عنها پردې لرې کړې.

﴿۶﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: أُهْدِيَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُّوجُ حَرِيرٍ

دعقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: په تحفه کې راوليږله نبي عليه السلام ته يو کس قبا دريښمو

فَلَبِسَهُ ثُمَّ صَلَّى فِيهِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيدًا كَالْكَارِهِ لَهُ ثُمَّ

نبي عليه السلام په کې مونځ وکړو بيا نبي عليه السلام ددې وجې نه لرې کړو لکه چې بد ګڼونکی وو هغه لره، بيا

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۸۴، رقم الحديث: ۳۷۴، أخرجه أحمد في المسند ۳/۱۵۱.

قَالَ : "لَا يَنْبَغِيْ هٰذَا لِلْمُتَّقِيْنَ. (متفق عليه). [۱]

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل دا (ریښمي کپړې د شرک او کفر نه) د بچ کیدو والا د پاره مناسب نه دي.

**توضیح:** اهدی: اکیدر شاه دومة الجندل د غزوه تبوک په موقع د صلحې نه پس حضور ﷺ په خدمت کې یو ریښمي قبا د تحفې په طور پیش کړه، یا د مصر شاه مقوقس هدیه رالیږلې وه، حضور ﷺ واچوله او بیا یې لرې کړه او ویې غورځوله. (اشعة اللمعات ۳۷۱).

**فروج حرير:** فروج هغه قباء ته ویلې شي، چې ګریوان یې شا طرف ته وي، فا باندې فتحه او را مشدده او جيم باندې ضمه ده.

**للمتقين:** نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا ریښمي قبا یې په هغه وخت کې اچولې وه چې حرمت نه وو راغلې ځکه یې په کې مونځ کړی ؤ او کیدی شي چې په همدغه وخت کې حرمت راغلی وي ځکه خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ډیر په سرعت سره وویستله او وې فرمایل: د متقي پرهیزګار د پاره مناسب نه دي یا د متقینو نه مراد شرک او کفر نه بچ کیدونکي خلک دي یعنې مسلمان د پاره مناسب نه دي چې ریښم استعمال کړي، بعضې علماو لیکلي چې کیدې شي چې د څه بل مصلحت د وجې نه نبي اکرم ﷺ ریښم اچولي وي او بیا یې ویستلي وي او د امت د پاره په کې تعلیم دی چې په عملي طور باندې د دې څخه نفرت وکړي او کتونکو ته هم نفرت وشي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿۷﴾ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّيْ رَجُلٌ أَصِيْدُ

د حضرت سلمة بن اکوع نه روایت دی وایي چې ما عرض وکړو: یا رسول الله! زه یو ښکاري سړی یم آیا

أَفَأُصَلِّيْ فِي الْقَمِيْصِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ: نَعَمْ وَازْرُرْهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ. [۲]

زه په یو کُرته کې مونځ کولې شم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته فرمایل: آو خو تړیې یې اګر که په اغزي سره وي.

**توضیح:** اصید: د متکلم صیغه ده یعنې زه ښکاري سړی یم اکثر ښکار کې مصروف یم (المرقات ۲/۴۶۸)

**القمیص الواحد:** ښکاري خلک اکثر ښکار څخه وروسته منډه وهي او لنګ سره سړی منډه تیزه نه شي

---

(۱) أخرجه البخاري ۱/۱۸٤، رقم الحديث ۳۷۵، ومسلم ۳/۱٦٤٦ رقم الحديث ۲۳-۲۰۷۵، أخرجه أحمد في المسند ٤/۱٤۹

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۱٦۱۱ رقم الحديث ٦۳۲

وهلی صرف يو قميص کې به د ښکار د پاره وتلو نو بيا به د مونځ وخت راتلو ، دې وجې نه د مسئلې لحاظ سره حضرت سلمة بن اکوع ته پريشاني شوه ځکه چې د قميص گريبان کولاو وو د سجدې او رکوع په حالت کې به ستر کولاو کيدو ، ځکه يې حضور ﷺ څخه يې تپوس وکړو نبي عليه السلام جواب کې وفرمايل تاسو يو قميص کې مونځ کولی شئ، که د گريبان کولاو يدو ويره وي، نو بټن ولږوئ، که بټن نه وي، نو ځنگلي ونې نه ازغی استعمال کړئ. فقهاء ليکي که يو مونځ گزار خپل گريوان نه عورت غليظه ته وگوري دې سره هم مونځ نه فاسديږي دغه رنگ يو کس ازار کې مونځ کوي او لاندې څخه ځوک دده ستر ته گوري دې سره هم مونځ کې نقصان نه راځي ستر کولاو کيدل هغه دي چې مخامخ څخه مخکې وروسته ، ښي او گس هر طرف څخه په نظر راځي.

## پرتوګ (لنګ) د ګيټو څخه لاندې ساتل سخته ګناه ده

﴿۸﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : بَيْنَمَا رَجُلٌ يُصَلِّي مسبلا إِزاره قَالَ لَهُ

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې يو کس وو مونځ يې کولو او لنګ يې زوړند وو نو وفرمايل ده ته

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ» فذهب وَتَوَضَّأَ ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ

نبي عليه السلام لاړ شه اودس وکړه هغه کس لاړو اودس يې وکړو بيا راغلو نو وويل يو سړي : يا رسول الله!

مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ ؟ قَالَ : « إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَ

تاسې ولې ده ته د اودس کولو امر کوئ؟ نو نبي کريم ﷺ ورته فرمايل: دغه کس مونځ کولو او

هُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ وَ إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ إِزَارَهُ »[1].

زوړند وو لنګ دده او الله تعالی نه قبلوي مونځ د هغه سړي چې زوړند وي لنګ دده .

**توضيح: مسبل ازاره: هو ارسال الثوب واطالته زيادة على الحد المشروع تكبرا واختيالاً** (المرقات ۲/۶۶۹) يعنې د ناز او تکبر د وجې نه پرتوګ وغيره د شرعي حد څخه لاندې ځوړند ساتلو ته ويل کيږي، اسبال صرف ازار سره خاص نه دی، بلکې شلوار، پرتوګ کپړه چې وې د ګيټو څخه ښکته ځوړند ساتل مکروه تحريمي دي، او دا اسبال دی، د لاس ګوتو باندې لستوړې راتلل هم اسبال دی، د پټکي شمله د ولې څخه ښکته راشي، دې ته هم اسبال وائي، حديث کې د ازار ذکر ځکه دی، چې دغه وخت کې د پرتوګ رواج نه ؤ ، بعضې رواياتو کې **اسبال ثوب** لفظ راغلی دی او **ثوب** هر قسم کپړې ته شامل دی،

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱۹۰/۱، رقم الحديث ۶۳۸

او دا اسبال مکروه تحریمي دی، دې حالت کې اصل مونځ کېږي، خو کامل مونځ نه کېږي او د ثواب نه محروم پاتې کېږي، دې کې سخت وعید او تغلیظ دی. د احنافو او شوافعو په نزد باندې پرتوړ د ګیټو نه ساتل مونځ کې وي یا بغیر د مونځ څخه وي، مکروه تحریمي دی، او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مونځ کې داسې اسبال ته جائز وائي، خو د مونځ څخه بهر عام وختونو کې ناجائز دی، او فرمایي تکبر، غرور، ناز او نخرې د مونځ نه علاوه وخت کې وي، مونځ کې نه وي، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دا قول شاذ دی.

**سوال:** د اکثرو خلکو دا خیال دی، چې پاجامه د ګیټو څخه لاندې زوړنده هغه وخت منع ده چې بطور تکبر وي او که نه وي یا زمونږ د پاره منع نه دی. **جواب:** جواب دا دی دا د شیطان دهوکه ده انسان ته یې ورکوي، حقیقت دا دی، پاجامه په خپله لاندې ځوړندول متکبرانه وضع ده، دې کې د تکبر سوال خامخا کیدی شي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابه وو جماعت کې سوا د ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه چاته هم اجازت نه دی ورکړی او صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عذر پیش کړو زه یې پوره خیال ساتم، خو د خیټې سوا کیدو د وجې څخه ازار ښکته زور کوي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل تاسو کې تکبر نشته دا یقین دهاني صرف صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حاصل ده، د امت بل هیڅ کس ته حاصل نه ده.

**اذهب فتوضأ:** دلته یو سوال دی چې د اسبال مرتکب دغه کس مونځ غیر مقبول دی، دې باندې پوهېږو، خو اودس کونکي کس ته دوباره د اودس کولو حکم ولې ورکړو؟ د دې بهترین جواب علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ورکړی دی، کیدای شي دغه کس ته د دوباره اودس کولو حکم ځکه وکړو چې هغه په خپله سوچ وکړي، چې رشتیا هغه د یو شنیع او قبیح فعل ارتکاب کړی دی، دغې وجې نه یې ده ته د دوباره اودس کولو حکم ورکړو چې دده په دماغو کې دا خبره راشي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په حکم باندې ظاهري پاکي سره باطني پاکي هم حاصله شي او ددې باطن تکبر او عجب په شان بیمارو څخه پاک شي (المرقات ۲/۴۶۹)

بهرحال مسلمانانو ته سوچ په کار دی، چې هغوئ مذهبي طور باندې څومره پستۍ کې تلي دي اجتماعي طور باندې د منکر ارتکاب کوي او دا منکر ګڼي هم نه، عرب او عجم علماء هم په دې بیمارۍ کې اخته دي، د مصر یو لوئ عالم چې پاجامه به یې د ګیټو څخه ښکته ساتله د پوړو نه لاندې راکوزیدو په وخت پرتوګ یې په خپې کې ونخته وغورځیدو او مړ شو الله تعالی عجیبه سزا ورکړه. او دویم که زنانه ته وګورې، نو هغوی د ګیټو څخه بره ساتي، ځه الټه نظام روان دی، یو شاعر وایي:

رنګی کو نارنګی کہا دودھ کو کھویا ✿ چلتی کا نام گاڑی رکھا یوں کبیرا رویا

## د بالغې زنانه د سر پټیدو څخه بغیر مونځ نه قبلیږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایلي دي: نه قبلیږي مونځ د |

حَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ »(۱).
بالغې ښځې مګر په لوپټې کې يې مونځ کيږي.

**توضیح:** حائض: دې ځخه بالغه زنانه مراد ده حيض نابالغې زنانه نه را وځي چې زنانه د بلوغ عمر ته ورسيږي که حيض راشي او که رانه شي حکم دادی چې د سر پټولو ځخه په غير مونځ صحيح نه دی. شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې فرمايي: سر باندې لوپټه نه ساتلو دوجې نه بطور حقارت دغه وخت کې زنانه د حائضې په نوم باندې ياديږي، حيض يو ګندګي ده. (الکاشف ۲/۳۱۹، اشعة اللمعات ۳۷۲).
ددې حديث نه معلومه شوه، چې د زنانه د سر ويخته او سر په ستر کې داخل دی. که زنانه په غير د سر پټولو ځخه مونځ وکړي، نو مونځ يې نه کيږي او دغه رنګ زنانه باريکو کپړو کې مونځ وکړي چې د ويختانو يا د بدن رنګ په نظر راشي نو مونځ يې نه کيږي، البته دا حکم د آزادې زنانه د پاره دی، د وينځو نه دی، ځکه چې د وينځې سر ستر کې داخل نه دی. د سرو ستر د زنګنونو ځخه بره او نوم ځخه ښکته حصه ده، دا د (باندیانو) هم ده او د هغوئ خيټه او ملا او پختئ (تشي) هم په ستر کې داخل دي.

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتُصَلِّي الْمَرْأَةُ |
| دام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې: ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه پوښتنه وکړه چې آيا د ښځې مونځ کيږي |
| فِيْ دِرْعٍ وَ خِمَارٍ لَيْسَ عَلَيْهَا إِزَارٌ؟ قَالَ: « إِذَا كَانَ |
| په لوپټه او قميص کې چې نه وي په دې باندې پاجامه؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل (آو کيږي) خو په دې شرط چې |
| الدِّرْعُ سَابِغًا يُغَطِّي ظُهُورَ قَدَمَيْهَا »(۲). وَ ذَكَرَ جَمَاعَةٌ وَقَفُوهُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ. |
| کرتهٔ ومره اوږده وي چې دې سره دې د خپو ظاهر پټيږي او يو جماعت دا روايت په ام سلمه موقوف کړی دی |

**توضیح:** درع: د زنانه يو قميص ته ويل کيږي ددې جمع دروع ده، (الکاشف ۲/۳۲۰، المرقات ۲/۴۷۰). امرء القيس وايي:

إلى مثلها يرنوا الحليم صبابة ۞ إذا ما اسبكرت بين درع و مجول

داسې ښځو طرف ته صابر صوفي سړی هم ډير په شوق سره ګوري چې کله هغوی خپلو قميصونو کې مستې ځي.

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۴۲۱ رقم الحديث ۶۴۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۱۵، رقم الحديث ۳۷۷، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۱۵ رقم الحديث ۶۵۵.

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۴۲۰.

**سابغاً**: کاملا واسعا یعنې سرپټولو د پاره لوپټه وي، او کولاو قمیص وي، چې خپو پورې رسیږي. بیا که شلوار او ازار هم نه وي مونځ کیږي. **ظهور قدمیها**: دې جملې څخه معلومه شوه، چې زنانه د خپو ظاهر ستر کې داخل دي، ددې پټول په مونځ کې واجب دي.

## مونځ کې سدل مکروه دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ وَ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ منع فرمایلې د سدل نه په مونځ کې او |
| أَنْ يُغَطِّيَ الرَّجُلُ فَاهُ .[1] |
| بل ددې نه چې پټه کړي سړی خوله خپله. |

**توضیح**: السدل: **في اللغة الارخاء وفي الشرع الارسال بدون المعتاد) (کذا في المرقات ۲/٤۷۲)** یعنې سدل په لغت کې ځوړندیدو ته ویل کیږي او شرع کې غیر معتاد او خلاف عادت طریقه باندې ځوړندیدو ته سدل ویلې شي. **قال ابو عبید السدل ارسال الرجل ثوبه من غیر ان ینضم جانبیه بین یدیه فان ضم فلیس بسدل و قال الخطابي السدل ارسال الثوب حتی یصیب الارض)**. حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ وایي: شریعت لباس کې عمده هئیت اختیارول حکم ورکړی دی، ددې خلاف کپړا استعمالول سدل دی، ګویا سدل دا دی چې حالت د مونځ کې کپړا وضع اصلي خلاف پرېښودلی شي، چې د وقار خلاف وي. **قال صاحب الهدایة هو ان یجعل ثوبه علی راسه وکتفیه ثم یرسل اطرفه من جوانبه**. صاحب هدایه چې د سدل کوم تعریف کړی دی چې هغې علامه ابن الهمام رَحِمَهُ اللهُ تبصره کړې: دا تعریف هغه رومال باندې هم صادقیږي چې بعضو خلکو په ولو باندې اچولی وي او زوړند یې ساتلي وي دغه خلکو ته په کار دي چې بیا دغه رومال په څمکه باندې کیږدي او مونځ وکړي. فتاوی قاضي خان دا خاص طریقې سره رومال د تاوول هم د سدل په تعریف کې داخل کړی دی، فرمایي: **هو ان یجعل الثوب علی رأسه او علی عاتقه و یجعل جانبیه امامه علی صدره (کذا في المرقات ۲/٤۷۲)**

د سدل د کراهت یوه وجه دا هم ده، پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې څخه منع فرمایلې ده او دویمه وجه یې دا ده چې د سدل په بعضو صورتونو کې دیهودو سره مشابهت موندلی کیږي او بعضو صورتونو کې اشتمال

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۱۲۳، رقم الحديث ٦٤٣، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۱۷، رقم الحديث ۳۷۸.

الصماء کې سدل داخلیږي او دا ټول منع دي.

**یغطي الرجل فاه:** مونځ کې خوله پټول منع دي عربو کې دپګړۍ استعمال عام وو هغه خلکو به دپګړۍ یو طرف باندې خوله پټوله دې سره به یې دخولې او ازوالی پټیده دې نه یې ځکه منع وفرمایله دې سره قرآت صحیح طریقې سره نه لوستل کېږي او نه سجده په صحیح طریقې سره کېږي که دخولې ځخه بدبوی یا آټکي راځي نو په لاس سره خوله پټول یو اځې جائز نه بلکې مستحب دي.

## دچپړو سره دمونځ کولو حکم:

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَالِفُوا الْيَهُودَ |
| دحضرت شداد بن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي مخالفت وکړئ د یهودو سره |
| فَإِنَّهُمْ لَا يُصَلُّونَ فِي نِعَالِهِمْ وَلَا خِفَافِهِمْ».[1] |
| (دچپړو او موزو اچولو په صورت کې مونځ کولو کې) ځکه هغوئ به موزې او بوټان نه اچول. |

**توضیح: في نعالهم:** د نعل جمع ده بوټانو ته ویلي شي، چپل که نوي وي یا صفا وي هغې سره مونځ کول مباح دي کومو علاقو کې چې دا ناجائز ګڼلې کېږي، هلته دا اباحت مؤکد کېږي، خو بوټانو اچولو کې مونځ کولو د پاره څه شرائط دي، اول دا چې چپل نرم وي چې خپې په ځمکه باندې لږیږي، که بوټان داسې سخت وي چې سجده کې خپې معلق وي، داسې بوټانو کې مونځ کول جائز نه دي، نن سبا چې بوټان او پشاوري څپلي دي، دویم شرط دا دی، چې بوټان جومات ګنده کوونکي نه وي، ددې مطلب دا دی چې دجومات ګیرچاپیره علاقه صفاستهرا وي یاخاوریځ میدان وي دې باندې تللو سره مزید صفا کېږي که دمسجد سره خواوشا علاقه صفا نه وي ګنده کوځې وي، داسې ګنده علاقو کې استعمال شده چپلو سره مسجد ته راتلل موجب تلویث مسجد دی لکه ځنګه چې د مالکیو حضراتو په مساجدو کې تلویث نمایا نظر راځي، نن سبا مساجد او ماحول د دور اول مساجد او ماحول باندې قیاس باعث خطر او قیاس مع الفارق دی. (المرقات ۲/۴۷۳).

بهر حال زیر بحث حدیث کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل امت ته دا تعلیم دی، چې یهود بوټانو کې مونځ جائز نه ګڼي او موزه نه استعمالوي، تاسو د دوئ مخالفت وکړئ او مونځ کې دا دواړه څیزونه استعمال کړئ، معلومه شوه چې ګمراه خلکو مخالفت کې یو امر مباح هم مامور به جوړیږي او د مخالفت په نیت دې مباح عمل باندې ثواب ملاویږي، د حدیث ځخه دا هم معلومیږي چې کوم ځای کې مخالفت نه وي،

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۱۲۷ رقم الحديث ۶۵۱

دا حکم ماموربه درجه کې نه وي، ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې ليکلي : زمړ په ذهن کې دا دې حديث مطلب دا راځي، چې يهوديان د بوټانو سره مونځ جائز نه ګڼي، تاسو د دوئ مخالفت وکړئ، بوټانو سره مونځ کول جائز ګڼل دا مطلب نه دی چې تاسو دا فعل شروع کړئ. (المرقات ۲/۴۷۴)

باقي پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يهوديانو د مخالفت د وجې څخه بوټانو سره مونځ کړي وو، هلته د مخالفت فضا وه، يا د جواز د پاره يې کړي وو، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي د ادب تقاضا دا ده، چې د بوټانو سره مونځ مه کوئ، بلکې بوټان او باسئ او مونځ کوئ. د دې مطلب هم دا دی، زمونږه زمانه کې ادب هم دا دی چې بوټان اوباسئ مونځ د پاره، يا مطلب دا دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ آخري عمل دې باندې دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چپلې ويستلې او مونځ به يې کولو، دا ادب دی نن سبا غير مقلدين هم کله د بوټانو سره مونځ کولو اعلان کوي، يو ځلې کرين ټاؤن محمديه مسجد کې يې اعلان وکړو چې نن د جمعې مونځ چپلو سره کوو، دا ناپوهي ده چرته د کرين ټاؤن کراچي ګنده نالي او چرته د مدينې پاکې ځمکې ته.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ |
| د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يو ځل صحابو وته مونځ ورکولو |
| إِذْ خَلَعَ نَعْلَيْهِ فَوَضَعَهُمَا عَنْ يَسَارِهِ فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ الْقَوْمُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اچانک چپړې وويستلې خپل ګس طرف ته يې کيښودلې، کله چې خلکو دا وليدو نو هغوئ |
| أَلْقَوْا نِعَالَهُمْ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ قَالَ : « مَا حَمَلَكُمْ |
| هم چپړې وويستلې، چې کله پوره کړو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ خپل نو وې فرمايل: څه شيز مجبوره کړئ تاسې |
| عَلَى إِلْقَائِكُمْ نِعَالَكُمْ ؟ » قَالُوا : رَأَيْنَاكَ أَلْقَيْتَ نَعْلَيْكَ فَأَلْقَيْنَا |
| په ويستلو د چپړو باندې هغوي عرض وکړو مونږ وکتل چې تاسو چپړې ويستلې دي نو مونږ هم وويستې |
| نِعَالَنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «إِنَّ جِبْرِيلَ أَتَانِي فَأَخْبَرَنِي أَنَّ فِيهِمَا قَذَرًا |
| چپړې، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل : ما ته جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغې هغه خبر راکړو چې زما چپړو پسې ګندګي |
| إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلْيَنْظُرْ فَإِنْ رَأَى فِي نَعْلَيْهِ قَذَرًا |
| لړيدلې ده، په تاسو کې چې څوک مسجد ته راځي نو خپلې چپړې دې ګوري که نجاست ورپسې لړيدلی |

فَلْيَمْسَحْهُ وَ لِيُصَلِّ فِيهِمَا ».[1]

دي او درته معلوم شي نو صفا يې کړئ او مونځ په کې وکړئ.

**توضيح**: **قذر**: هر هغه ګندګي چې طبيعت يې ناخوښه کړي او دې څخه ګنده بوي راشي هغه قذر دی چې ددې د پاره ضروري نه دی چې هغه نجس هم وي لکه څنګه چې بلغم دی دا قذر دی خو نجس نه دی. (المرقات ۲/۴۷۴).

**عن يساره**: دا په هغه صورت کې جائز دی، چې ګس طرف ته مونځ ګزار نه وي، ګيني راتلونکي حديث کې ددې ممانعت موجود دی، چونکې نبي عليه السلام امام دی، ځکه ستاسو ګس طرف ته څوک نه وو، بل پيغمبر صلی الله عليه وسلم د مونځ دوران کې پيزار ويستل عمل قليل دی د مونځ منافي نه دی.

**فاخبرني جبرائيل**: پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته جبرائيل عليه السلام د طبعي نظافت او د کمال احتياط په نظر اطلاع ورکړه، په بوټانو پسې ګندګي ده، ددې مطلب دا نه دی چې نجاست سره تا د مونځ څه حصه ادا کړې ده، دې حديث څخه يوه دا خبره معلومه شوه، پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته علم الغيب نه وو ګيني جبرائيل د ښودنې نه مخکې به حضور صلی الله عليه وسلم په خپله چپړې ويستلې وې، دويمه خبره دا معلومه شوه، د پيغمبر صلی الله عليه وسلم هر فعل واجب اتباع دی، ځکه چې صحابو اوليدو نو اتباع يې وکړه، که يو عمل د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د خصوصياتو څخه وي، نو په هغې کې اتباع نشته دی، دريمه خبره دا معلومه شوه، که د چپړو سره نجاست لږيدلی وي، مونځ نه کېږي او ګندګي څخه استعمال چپړې صفا کول آسان نه دي، لهذا پيزار سره مونځ کول نه دي په کار.

**فليمسحه**: که ګندګي وچه وي، نو رابنکلو سره صفا کېږي او که ګندګي لونده وي، نو وينځلو سره صفا کېږي، کېدای شي دلته د سرک ختې وي هغه داسې هم معاف دي، د بحث چيرلو ضرورت نشته، چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم بعضې مونځ تحمل نجاست سره کړی وو، يا مونځ څنګه صحيح دی؟

﴿۱٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ

دابوهريره رضي الله عنه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام وفرمايل: کله چې په تاسو کې څوک مونځ کوي

فَلَا يَضَعْ نَعْلَيْهِ عَنْ يَمِينِهِ وَلَا عَنْ يَسَارِهِ فَتَكُونَ عَنْ يَمِينِ غَيْرِهِ

نو نه دې ږدي پيزار خپل خي طرف ته او نه ګس طرف ته، چې وي به ښي طرف دده ته دويم کس مګر که

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۴۲٦ رقم الحديث ۶۵۰.

إِلَّا أَنْ لَا يَكُونَ عَنْ يَسَارِهِ أَحَدٌ وَ لِيَضَعْهُمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ ». وَ فِيْ رِوَايَةٍ:

چیرته نه وي ګس طرف ته بل څوک، بلکې ږدي دې د دواړو خپو په مینځ کې، او په یو روایت کې دي:

« أَوْ لِيُصَلِّ فِيهِمَا ».[1]

یا دې مونځ وکړي داسې حالت کې چې پیزار یې اچولی وي.

## الْفَصْلُ الثَّالِث:

﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَرَأَيْتُهُ

د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې زه داخل شوم په نبي عَلَيْهِ السَّلَام باندې نو ما ولیدو

يُصَلِّي عَلَى حَصِيرٍ يَسْجُدُ عَلَيْهِ.

نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې مونځ یې کولو په پوړ باندې او په دې باندې یې سجده کوله نو ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

قَالَ: وَ رَأَيْتُهُ يُصَلِّي فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ مُتَوَشِّحًا بِهِ[2].

وایي: ما ولیدو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونځ کولو په یوه کپړه کې چې نختي وه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام جسم پورې.

**توضیح**: **على حصير**: حصیر د کهجورو د شاخونو نه جوړه شوي پوړ ته وايي، (المرقات ۲/۴۷۶)

بعضې د دې ترجمه په بوریا سره کوي، حدیث کې **الخمرة** لفظ راغلی دی، هغه هم دلته پوړ ده، البته **حصیر** لوی او **الخمرة** ورکوټي پوړ ته ویلې شي دا حدیث په دې دلالت کوي چې د مونځ ګزار د تندي او ځمکې په مینځ کې کوم ځای حائل وي هغې باندې مونځ کول جائز دي، دلته چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په پوړ باندې مونځ کړی دی، د دې څخه دا خبره هم ثابت کیږي، د پوړ څخه علاوه کپړو او قالینو باندې مونځ کول هم جائز دي، اګرچې دې د پاره علماو سره ځان له دلائل دي خو دلته اشاره هم دلیل دی. (المرقات ۲/۴۷۶).

د مالکیو حضراتو مشر قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ځمکې باندې بغیر د څه څیز څخه مونځ کول افضل دي، ځکه چې سر او تندې خالص په خاورو باندې کیښودو سره اعلی درجه حضوع او خشوع حاصلیږي دا د مونځ اصل روح دی، که مجبوري وي، یخنی یا ګرمي څخه د بچ کیدو ضرورت وي، نو

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۲۸ ، رقم الحديث ۶۵۴ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۴۶۰ رقم الحديث: ۱۴۳۲.
(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳۶۹ رقم الحديث ۲۸۱ ۵۱۹.

يا پوړ و غيره اچول بهتر دي.

بعضې حضرات وايي كوم څيزونه د ځمكې څخه راوتي وي هغې باندې مونځ جائز دی. خو كوم چې راوتي نه وي د ځمكې څخه، لكه كپړې وغيره، هغې باندې مونځ بهتر نه دی. او ريدلي مو دي چې حجاج بن يوسف خالي ځمكې باندې سجده كول ضروري گڼله او پوړ وغيره باندې مونځ كول ناجائز گڼل، تعجب په دې دی چې څومره ډيرو بې گناه مسلمانانو قاتل دلته دومره احتياط كوي او د انسانانو د قتل گناه يې هيره وي، بهرحال د جمهورو علماو په نزد باندې پوړ او كپړې وغيره باندې مونځ كول جائز دي.

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| حضرت عمرو بن شعيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كړې دي او هغه وايي چې: |
| رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي حَافِيًا وَ مُنْتَعِلًا [1]. |
| ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ليدلی چې مونځ به يې كولو كله خپې ابله او كله د پيزار سره. |

## په يو څادر كې مونځ كول څنگه دي

| |
|---|
| ﴿١٧﴾ وَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ: صَلَّى جَابِرٌ فِيْ إِزَارٍ قَدْ عَقَدَهُ |
| د محمد بن منكدر نه روايت دی وايي چې: مونځ وكړو جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو اځې په لنگ كې چې تړلی يې ؤ |
| مِنْ قِبَلِ قَفَاهُ و ثيابه مَوْضُوعَة على المشجب قَالَ لَهُ قَائِلٌ تُصَلِّي |
| خپل څټ طرف ته او كپړې يې زوړندې وې په كوتنۍ باندې، چا ترې تپوس وكړو: تا مونځ وكړو يو اځې |
| فِيْ إِزَارٍ وَاحِدٍ فَقَالَ إِنَّمَا صَنَعْتُ ذَلِكَ لِيَرَانِيْ أَحْمَقُ مِثْلُكَ وَ أَيُّنَا |
| په لنگ كې نو جواب يې وركړو: ما دا كار په دې وجه وكړو چې ما وگوري يو احمق ستا په شان او د چا |
| كَانَ لَهُ ثَوْبَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [2]. |
| سره وې دوه جامې په زمانه د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كې. |

**توضيح: المشجب:** ميم كسره او شين ساكن جيم باندې فتحه ده. (الكاشف ۲/۳۲۴، المرقات ۲/۴۷۷)

**(عيدان يضم رؤسها يخرج بين قوائمها و توضع عليها الثياب)** د پوهيدو د پاره ددې ترجمه كوتنۍ.

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۱۷۲، رقم الحديث ۶۵۳

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۴۶۷، رقم الحديث ۳۵۲، وأخرجه أحمد في المسند ۳/۳۳۵

سره کولی شي، خو حقیقت کې دا یو داسې څیز دی، چې کورونو کې نصب کولی شي، د تکون په شکل باندې وي، ددې لاندې کله یو ښېه او کله درې ښېې وي، ددې بره حصه کې ډیر کوتیانې جوړې وي. دې ته د ضرورت کپړې اچولی شي، مخکې زمانې کې به دې ته مشکیزې ځوړندولی شوې، چې اوبه یخې وی، نن سبا هم دا څیزونه موجود دي، د کپړو وغیره د پاره استعمالیږي.

حضرت جابر رضي الله عنه د شریعت مطهره حدودو ظاهر کولو د پاره داسې وکړه د کپړو په موجودګی کې یو کپړې کې مونځ وکړو، یو تابعي دوی ولیدلو او خیال یې وکړو چې خلاف سنت کار کوي، نو زریې اعتراض وکړو، حضرت جابر رضي الله عنه سختی سره جواب ورکړو چې سنت طریقې ته ولې خلاف سنت وایې ته احمق یې، د نبي علیه السلام په زمانه کې د یوې کپړې نه ډیرې چا سره وې، د غه یوې کپړې کې به یې مونځ کولو، دا جائز دي.

غرض یې دا ؤ چې حضرت جابر رضي الله عنه د دغه کس د عدم جواز نظریه رد کړه، کله چې ستر پټ وي، نو یو کپړه کې مونځ جائز او صحیح دی او شریعت کې د جواز حد تعین فرمایې، دې څخه دا نه معلومیږي چې داسې افضل دي، افضل هغه دی چې درې کپړې مونځ د پاره استعمال شي، لکه چې راتلونکې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روایت کې تصریح موجود ده او هغه د صحابو مکالمې ذکر دي د جواز او افضلیت او د ادب ځایونه ځانله ځانله دي.

تاسو په یو مثال سره ځان پوه کړئ یو خادم ته یو کس ویل چې بازار ته لاړ شه او مڼه راوړه هغه کس لاړو او مڼه یې په خپله لمن کې په زولی کې راوړه او خپل مخدوم ته یې په ځمکه باندې مخامخ واچوله، دغه کس د آقا حکم پوره کړو، نامناسبې طریقې سره او دغه رنګ د آقا په حکم باندې بله مڼه راوړه او صفا یې کړه او په یو ښکلي لوخي کې یې واچوله او د بره یې پرې یو دوه ګلونه هم کیښودل او د آقا مخې ته یې په دسترخوان وغیره باندې کیخودله، ده هم حکم پوره کړو، خو په صحیح طریقې باندې، دا صورت د مونځ هم دی، د الله تعالی حکم پوره کولو د پاره یوه کپړه هم کافي ده، خو د ادب تقاضا بله ده. نن سبا غیر مقلدین د آدابو دا ښائسته طریقې پریږدي مونځونو کې داسې شکل اختیار کړي، چې په خپله انسان ته ښه نه لږي، نو د کائناتو خالق ته به څنګه ښه ولږي.

چون بشنوی سخن اهل دل مگو که خطاء است ❁ سخن شناس نه ئی دلبر اخطاء این جااست

نه هر جائی مرکب توان تاختن ❁ که جاه یا سپر باید انداختن

هزار نکته باریک تر ز مو این جااست ❁ نه هر که سر بتراشد قلندری داند

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ : اَلصَّلَاةُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ سُنَّةٌ كُنَّا نَفْعَلُهُ |
| د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه نه روایت دی وایي: مونځ کول په یوې کپړې کې سنت دي مونږ به د غسې |

| |
|---|
| مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يُعَابُ عَلَيْنَا . فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ : إِنَّمَا كَانَ |
| مونځ کولو د نبي عليه السلام په زمانه کې او مونږ ته به چا بد نه ويل ، نو ابن مسعود رضي الله عنه وايي دا په هغه |
| ذَاكَ إِذْ كَانَ فِي الثِّيَابِ قِلَّةٌ فَأَمَّا إِذْ وَسَّعَ اللهُ فَالصَّلَاةُ فِي الثَّوْبَيْنِ أَزْكَى[1]. |
| وخت کې چې کله کپړې کمې وې او س الله کپړو کې وسعت را وستی نو په دوه کپړو کې مونځ کول بهتر دي |

**توضيح**: سنة: اى جائزة يعني يو کپړه کې مونځ کول جائز دي مونږ به په يوه کپړه کې مونځ کولو چا هم څه طعن نه دی کړی، حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه د مونځ جواز خبره کوي چې : که يوه کپړه وي، نو مونځ په کې جائز دی. (المرقات ۲/۴۷۷).

**فقال ابن مسعود** :مخکني زمانه کې د کپړو تنگۍ طرف ته اشاره کړې ده، دغه وجې نه په يوه کپړه کې د جواز مونځ فرمايلی وو.

**ازكى**: يعني کله چې الله تعالى وسعت وکړي او کپړه موجود وي، يا د جواز د حد څخه وتل د افضل په حد باندې عمل کول په کار دي، او هغه دا چې دوو کپړو کې مونځ افضل او پاکه خبره ده.
نن سبا غير مقلدينو آزاد خيالو ته د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه خبره ياد ساتل په کار دي او په هغې باندې عمل کول په کار دي د ليوانو جوړيدو څخه څه فائده ده.



(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۴۱/۵.

# بَابُ السُّتْرَةِ:

## د سترې بيان

دې باب کې ټول اتلس (۱۸) احاديث مذکور دي، دې کې سترې نه علاوه د مونځ ګزار مخې ته تيريدو باندې وعيد او د مونځ ماتيدو څيزونو بيان دی.

**ستره**: سين باندې ضمه ده او تا ساکنه ده، لغت کې د يو څيز شا او اړخ او د پردې په معنی کې ده، ددې اصطلاحي مفهوم دا دی، چې مونځ ګزار مخې ته و دريدونکي څيز ته ستره ويلې شي، چې دې سره د مونځ ګزار د سجده ګاه پټه ولړيږي او تلونکي خلک ګناه ګار نه شي، ستره کې ديوال، لرګي، ستن وغيره استعمالولی شي، يعنې هر هغه څيز چې انسان ته د لرې نه په نظر باندې راځي سترې د پاره ضروري ده، چې اوږدوالې يې کم از کم يو ګز وي او د زياتوالي يې هيڅ مقدار نشته د غه شان پلنوالي کې يې هم څه حد معلوم نه دی، که ودريدل يې ممکن نه وي، نو بيا سور کينبودل په کار دي، پدې شرط سره چې ستره لويه وي، شوافع دوه ثلث ذراع په طول کې جائز ګڼي، د سترې پلنوالې کم از کم د يو ګوتې برابر وي. چې په نظر راځي د امام ستره د مقتديانو د پاره کافي ده ځان له ځان له سترې ته ضرورت نشته، که يو کس د مقتديانو صفونو منځ کې تيريږي، نو دوی په دې وعيد کې نه راځي کوم چې احاديثو کې موجود دی، د امام ستره د مقتديانو د پاره کافي ده، که يو کس طولا صفونو کې مخکې راځي يا بهر وځي دا د احاديثو د وعيد څخه خارج دی، اګر چې بغير ضرورت داسې کول مناسب نه دي. خو اصل وعيد عرضاً تلونکي د پاره دی، د غه رنګ که يو مسجد شپيته (۶۰) قدمونو څخه ډير کولا وي. نو بيا د مصلی مخې ته دومره حد کې تيريدل په کار دي، چې د مونځ ګزار نظر پرې نه لړې، ﮩ هغه خپل سجدې ځای ته ګوري، که مسجد ددې څخه کم وي، نو بيا مخې ته مطلقاً تيريدل منع ۔ي که دسترې دپاره لرګی نه وي. نو بيا محرابي شکل يو کرښه ستره جوړول هم جائزدي حديث کې ددې کړ راغلی دی اګر چې احنافو فقهاو د هدايې والا شان د کرښې حيثيت لره ستره کې نه دی شامل کړی. د مام مالک رَحِمَهُ اللهُ يو قول دا هم دی، چې د امام ستره صرف د امام ستره ده او مقتديانو د پاره امام په خپله ستره ده.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ:

## يوه تاريخي ستره

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَغْدُو إِلَى الْمُصَلَّى |
| : ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې : نبي عَلَيْهِ السَّلَام د سحر په وخت کې عيدګاه ته تشريف راوړو |

| |
|---|
| وَ الْعَنَزَةُ بَيْنَ يَدَيْهِ تُحْمَلُ وَ تُنْصَبُ بِالْمُصَلَّى بَيْنَ يَدَيْهِ فَيُصَلِّيْ إِلَيْهَا .[1] |
| او نيزه يې ورولهٔ د دوي مخې ته، چې کومه به دوي مخې ته ودروله او دوي به هغې ته مونځ کولو . |

**توضيح**: **العنزة**: د عين فتحې سره او نون او زا باندې هم فتحه ده، داسې نيزې ته ويلې شي، چې د عصا څخه اوږده وي، خو د اوږدې نيزې څخه وړه وي، که نون ساکن وويلې شي، نو عنزة چيلی ته ويلې شي، دلته ددې نيزې څخه خاص تاريخي نيزه مراد ده.(المرقات ۲/۴۷۹).

واقعه داسې وه، جنګ بدر کې حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو کافر حمله وکړه چې د هغه نوم عبيده بن سعيد وو، چې اسلحه کې پټ وو، صرف سترګې يې په نظر راتلې، حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه حمله وکړه او نيزه يې ورته په سترګو کې ورکړه هغه راپريوتو او مړ شو، خو زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خپله نيزه راويستل مشکل شو، دوی په هغوئ باندې لوی بوج واچولو او نيزه يې تري ويستله، چې هغې سره نيزه کږه شوه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې تاريخ ژوندی ساتلو د پاره دا نيزه سترې د پاره استعمالوله، يا صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يا عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يا عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، په دور خلافت پورې دا تاريخي نيزه خلفاء راشدينو استعمالوله، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې نيزې نه د سترې کار هم اخيستو، او د ځمکې د نرمولو د پاره به يې هم استعمالوله او جنګ بدر تاريخي فتحې ياد ساتلو طرف ته به يې اشاره هم فرمايله.

تنصيب: د نصب کولو او دخخولو په معنی ده، بالمصلی دې څخه مراد عيدګاه ده، عيدګاه کولاو ميدان کې وه ديوال مخامخ نه وو، ځکه ستره نصب کول ضروري وو.

## د سترې مخې ته تيريدل جائز دي :

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ وَ هُوَ بِالْأَبْطَحِ |
| د حضرت ابو جحيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي ما وليدو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مکه مکرمه کې دابطح په مقام کې |
| فِيْ قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ وَ رَأَيْتُ بِلَالًا أَخَذَ وَضُوءَ |
| په سرې چمړې والا خيمه کې او ما وليدو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې اخيستې وې باقي مانده اوبه دا ودس د |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَأَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُوْنَ ذٰلِكَ الْوَضُوءَ فَمَنْ أَصَابَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه او ما وليده نور خلک چې تيزي يې کوله د دغه اوبو په حاصلولو کې نو چا ته چې ملاو شوې |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۶۳/۲، رقم الحديث ۹۷۳، وابن ماجة ۴۱۳/۱، رقم الحديث:۱۳۰۴. أخرجه أحمد في المسند ۱۴۵/۲

مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهٖ وَ مَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا

ددې نه څه اوبه نو مږلي به يې په خپل بدن يا خوله باندې ، او چا ته چې به څه ملاو نه شو نو د بل کس د

أَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهٖ ثُمَّ رَأَيْتُ بِلَالًا أَخَذَ عَنَزَةً

لوند والي نه به يې څه حاصل کړل ځان پسې به يې مږلې ،بيا ما وليدو بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې نيزه يې په ځمکه

فَرَكَزَهَا وَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِيْ حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مُشَمِّرًا صَلَّى إِلَى الْعَنَزَةِ

کې ښخه کړه نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره کرخو والا جوړه اچولې وه او لمن يې اوچته کړې وه او نيزې ته مخامخ

بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَ الدَّوَابَّ يَمُرُّوْنَ بَيْنَ يَدَيِ الْعَنَزَةِ .(متفق عليه)[1].

او دريدو او صحابو ته يې دوه رکعته وکړه او ما وکتل چې سړي او ځناور به د سُترې مخې ته تيريدل.

**توضيح: الابطح**: دا د مکې څخه منی ته چې ځي نږدې د يوې کولاو ناليه نوم دی، چې المحصب ورته هم ويلي شي، دغه ځای کې ډير ميده کاڼي دي ، ځکه ورته ابطح او محصب ويلي شي، چې د ميده کاڼو په معنی کې دی. (المرقات ۲/۴۷۹، اشعة اللمعات ۳۷۵)

**أدم**: دا د اديم جمع ده، د چرمې په معنی کې دی.

**الوَضوء**: د واو فتحې سره هغه اوبو ته ويل کېږي چې د اودس څخه پس باقي پاتې شي او هغه اوبو ته هم ويل کېږي چې د اعضاو څخه منفصل کېږي او پريوځي، صحابو بطور تبرک دا اوبه استعمالولی او دا اوبه د تبرک د پاره شايان شان هم دي، چې دا د پيغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعضاء او عبادت کې استعمال شوې مبارکې اوبه دي.

**حلة حمرا**: يعني داسې جوړه وه چې دې کې سرې وې (سرخ) کرخې خالص سور نه وو ، ځکه چې دغه د سړو د پاره جائز نه دی. **مشمرا**: تشمير په حالت د کپړو راغونډولو کې زر تلو ته ويلي شي.

**يمرون**: مرور تلو ته ويلي کېږي، يا تيريدو ته، دې کې **تغليب العقلاء على غير العقلاء** دی، يعنې صيغه د مذکر عاقل ده، خو مراد صرف عقلاء نه دي، بلکې ځناور هم مراد دي، ظاهره ده، چې خلک سترې مخې ته تيريدو او بيان کيدو څخه مقصود هم دا دی، چې سُتره کافي ده، که سُتره وي نو مخې ته تيريدو کې هيڅ گناه نشته، بلکې جائز دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۸۵،رقم الحديث ۳۷۶، ومسلم في الصحيح ۱/۳۶۰ رقم الحديث ۲۵۰-۵۰۳

## د څناور نه ستره جوړول هم جائز دي

﴿۳﴾ وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَرِّضُ رَاحِلَتَهُ

حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت كوي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام د خپلې سورلۍ مخې ته كېنوؤ

فَيُصَلِّي إِلَيْهَا. (متفق عليه) وَزَادَ الْبُخَارِيُّ قُلْتُ:

هغې طرف ته يې مونځ كولو. او مزيد بخاري دا هم نقل كړي دي چې ما تپوس وكړو د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه

أَفَرَأَيْتَ إِذَا هَبَّتِ الرِّكَابُ. قَالَ: كَانَ يَأْخُذُ الرَّحْلَ

چې اوښ به چيرته تللو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به څه كول؟ ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي: نبي عَلَيْهِ السَّلَام به كجاوه مخې

فَيُعَدِّلُهُ فَيُصَلِّي إِلَى آخِرَتِهِ. [1]

ته كېښوده او د هغې روستني لرګي طرف ته به يې مونځ كولو.

**توضيح: يعرض**: صيغه باب ضرب يضرب څخه ده، يو څناور په سور كې كېنول مراد دي، چې د مونځ ګزار او قبلې په منځ كې ستره جوړه شي، باب **تفعيل** څخه هم دا معنى مراد ده.

**افرايت**: يعنې ماته خبر راكړه او ماته ووايه.

**اذا هبت**: **هبوب** د خوب څخه پاڅيدو يا يو څناور كيناستو نه پس پاڅيدو ته ويلي شي، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ وايي، هبوب لفظ د تللو د پاره بطور مجاز استعمال شوى دى، يعنې كله څناور موجود نه وي، بلكې د څريدو يا او به څښلو د پاره تلې وي، بيا ستره كوم څيز نه وي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي اذا هبت اى قامت للسير، دې كلام څخه اندازه لږي، چې څناور دوران مونځ كې پاڅيږي لاړ شي، بيا به څه كېږي، حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته جواب وركړو، بيا به پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كيجاوه د سترې د پاره كېښوده، د حديث سياق او سباق تقاضا دا ده، د مونځ په دوران كې څناور تللو څخه پس سترې په باره كې سوال وكړو او جواب د دغې متعلق راغلى او كيجاوه صحيح كول مونځ په دوران كې عمل قليل دى. يو لاس سره كېږي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ دې اشارې څخه زه د دې سياق او سباق كې خبره كوم، ورنه په يو شرح كې هم تشريح ما نه ده ليدلې، عام شراحو هغه مطلب اخيستى، كه يو څناور د څريدو د پاره تلى ؤ او سترې د پاره څه نه وو، نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به څه كول، ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب وركړو: بيا به نبي عَلَيْهِ السَّلَام د كجاوې نه ستره جوړه كړه، خو دا مطلب سياق او سباق څخه ډير لرې وو، د

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۵۷۰، رقم الحديث ۵۰۷، ومسلم في الصحيح ۱/۳۵۹ رقم الحديث: ۲۴۷-۵۰۲.

سترې د پاره ځناور متعین نه وو، ستره هر څیز څخه جوړیږي، بیا ددې سوال او جواب څه مطلب دی.

**الركاب:** ددې نه مراد اوښ دی، ددې مفرد راحله ده، خپلې صیغې نه ددې مفرد نه راځي قاموس کې دي **رکاب** بر وزن **کتاب** ددې مفرد **راحله** ده، او ددې جمع **رکب** بر وزن **کتب** دی، **رکابات** او **رکائب** هم راځي. (كذا في اللمعات) **يعدله:** دتعدیل څخه دی برابراو نیغ معنی کې دی.

- **الى اخرته:** کجاوې دواړه طرف ته لرګي لږیدلي وي، یو ددې مخکې حصه کې چې دا سور په لاس کې نیسي او یو ددې په آخره کې وي، چې دې ته سور تکیه لږولې وي. اخرة د آخري لرګي نوم دی. هغې ته مؤخره الرحال هم ویلې شي، چې راتلونکي حدیث کې دي، دې حدیث کې د ځناورو ذکر دی فقها لیکي که یو انسان د مونځ ګزار مخې ته ناست وي، نو دده پشت یعنې ملا دې ستره جوړه کړي، خو چې مخامخ نه وي.

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِذا وَضَعَ |
| دحضرت طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي چې کله سُتره جوړه کړي |
| أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ |
| یو کس دستاسو نه خپلې مخې ته په شان دوروستنې لرګی دکجاوې نو هغه ته په کار دي چې مونځ وکړي |
| وَلَا يُبَالِ مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذٰلِكَ» (رَوَاهُ مُسلم). (۱) |
| او پرواه دې نه کوي که مخې ته یې څوک تیریږي. |

**توضیح: ولايبال:** یعنې سُترې نه پس د چا پروا مه کوئ، چې څوک مخې ته تیریږي، ځکه چې د سترې په موجودګی کې د مونځ ګزار په مونځ کې اثر نه پیروځي، اطمینان سره مونځ کوئ، دې صورت کې **لايبال** تعلق د مونځ ګزار سره دی او دا احتمال هم دی، چې د **لايبال** تعلق د تیریدونکي سره وي، مطلب دا چې کله ستره موجود وي، نو مونځ ګزار مخې ته تیریدونکي ته پروا نه ده په کار، چې زه د مونځ ګزار مخې ته زم، بلکې بغیر د خطرې څخه دې تیریږئ د سترې په موجودګی کې تیریدل جائز دي، هیڅ قسم د غم ضرورت نشته. (المرقات ۲/۴۸۳، اشعة اللمعات ۳۷۶).

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۳۵۸ رقم الحديث: ۲۴۱-۴۹۹، وأبو داود ۱/۴۴۲ رقم الحديث ۶۸۵، والترمذي ۱/۱۵۶ رقم الحديث ۳۳۵، وابن ماجة ۱/۳۰۳، رقم الحديث ۹۰۴ أخرجه أحمد في المسند ۱/۱۶۱

## مونځ ګزار مخې ته په تیریدلو باندې لویه ګناه ده

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي جُهَيْمٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ
دابو جهیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایي که چیرته معلوم شي تیریدونکي
بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ
د مونځ ګزار مخې ته ددې په سزا باندې، نو او دریدل څلویښت کاله به بهتر وګڼي ددې نه چې تیر شي د
بَيْنَ يَدَيْهِ» قَالَ أَبُو النَّضْرِ: لَا أَدْرِي قَالَ: «أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ سَنَةً». (متفق عليه)[1].
مونځ ګزار مخې ته، ابو نضر وایي: ما ته پته نشته چې څلویښت ورځې که میاشتې او که کاله یې ویلي.

**توضیح: ماذا علیه:** یعنې مونځ ګزار مخې ته تیریدو والا ته که په عین الیقین معلوم شي چې دې تیریدو باندې څومره سخته سزا ده، نو څلویښت کاله به انتظار وکړي او د مونځ ګزار مخې ته به تیر نه شي. (المرقات ۲/۴۸۳)

انسان پنځه منټه انتظار کې سترې کېږي، نو څلویښت کاله انتظار به څومره سخت وي او ددې سزا په بدله کې څلویښت کاله انتظار هم کم دی، ځکه چې د تیریدو سزا ډیره سخته ده. (اشعة اللمعات ۳۷۶).

**اربعین:** دې لفظ کې شک پریوتو چې د اربعین تمیز څه دی، آیا څلویښت ورځې یا څلویښت میاشتې یا څلویښت کاله. د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو روایت امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ په مشکل الاثار کې بیان کړی دی هغه کې سل کاله د انتظار کولو ذکر دی، امام طحاوي دا ثابت کړو زیر بحث حدیث کې د څلویښتو څخه څلویښت کاله مراد دي، بعضې روایاتو کې **اربعین خریفاً ای سنة**.

علماء لیکي وعید هغه تیریدونکي په باره کې دی، چې د مونځ ګزار مخې ته عرضا تیریږي همدا رنګې دا هغه صورت دی چې تیریدونکی د مونځ ګزار د سجدې په ځای تیریږي، بعضې د مونځ ګزار بدن سره مس کیدو قید هم لږولی دی، بهر حال وعید سخت دی، علماء د مجبورۍ د وجې څخه حرمین شریفین ددې څخه مستثنی کړي دي، ورنه بیا هلته تولـه ورځ انسان یو طرف ته نه شي تلې، ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ کعبه د خلکو دپاره ستره ګرځولې ده. (**کذا في المرقات ۲/۴۸۳**)

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۵۸۴، رقم الحديث: ۵۱۰، ومسلم في الصحيح ۱/۳۶۳ رقم الحديث: ۲۶۱-۵۰۷، وأبو داود ۱/۴۴۹ رقم الحديث ۷۰۱، والنسائي ۲/۶۶، رقم الحديث: ۷۵۶

## مونځ ګزار مخې ته تيريدونکي ته دې سوک ورکړي شي او ودې درولی شي

﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ

دحضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي: چې کله مونځ وکړي يو کس يو

إِلَى شَيْءٍ يَسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ فَأَرَادَ أَحَدٌ

داسې څيز طرف ته چې هغه ستره وي د خلکو نه بيا که اراده وکړه يو کس (يعني مونځ ګزار او دسترې په

أَنْ يَجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلْيَدْفَعْهُ فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ».

مينځ) د تيريدو نو وې دروه او که وې نه مني، نو قتل يې کړه ځکه چې (داسی صورت کې) دا شيطان

هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ وَلِمُسْلِمٍ مَعْنَاهُ.[1]

دی (دا الفاظ د بخاري دي او مسلم دا روايت بالمعنی نقل کړی).

**توضيح: فليدفعه:** عمل کثير سره دفع کول اجماعاً مفسد الصلوة دی، همدا رنګې د دفاع دا حق سترې کيښودو نه پس دی او که مونځ ګزار ستره نه وي ايښودې، نو جرم د مونځ ګزار دی، (المرقات ۲/۴۸۵) باقي پاتې شوه دا مسئله چې دفاع کول اولی او بهتر دي يا غير اولی دي. دې کې تفصيل دی نفس دفاع مباح ده، خو دفاع نه کول امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې اولی ده، جمهورو فقهاو په نزد باندې دفاع کول وجوبي حکم نه دی، کوم آحاديثو کې چې د دفاع حکم راغلی، هغه د بيان رخصت د پاره دی يا شروع کې وجوب وو، بيا منسوخ شو. (کذا في الزيلعي)

**فليقاتله:** د جګړې په معنی کې دی، د قتل په معنی کې نه دی، د قتال مفهوم د قتل نه جدا دی، خو بعضې رواياتو کې فليقتله الفاظ راغلي دي، دې نه په ښکاره قتل مراد دی، اوس که يو کس ظاهري حديث باندې عمل وکړو او دفاع يې وکړه هغه کس واقعي وهلی شي، قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ فرمايي د دفاع حد پورې دفاع کولو شخه که څوک مړ شو، علماء په دې اتفاق دی، چې قصاص نشته، خو ديت کې اختلاف دی، بعضې ديت واجب ګڼي بعضې يې واجب نه ګڼي.

**فانه شيطان:** اوس دا کس د شيطان والا کار کوي، د شيطان په شان سرکشۍ باندې راکوز شوی دی، د شيطان په شان شو، که يو مونځ ګزار د لارې په منځ باندې ودريدو، نو ګناه په هغه باندې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۷۱/۱، رقم الحديث ۵۰۹، ومسلم في الصحيح ۳۶۲/۱ رقم الحديث ۲۵۹-۵۰۵، وأبو داود ۱۹۹/۱ رقم الحديث ۷۰۰، والنسائي ۶۶/۲، رقم الحديث ۷۵۷، وابن ماجة ۳۰۷/۱، رقم الحديث ۹۵۴

## مونځ ګزار مخې ته زنانه، خر، او د سپي تیریدلو حکم

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَقْطَعُ الصَّلَاةَ |
| د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمایلي دي: باطلوي مونځ |
| الْمَرْأَةُ وَ الْحِمَارُ وَ الْكَلْبُ . وَ يَقِي ذٰلِكَ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ ». [1]. |
| ښځه، خر او سپی او کیخودی شي د کیجاوې وروسته لرګي په شان یو څیز د سترې د پاره. |

**توضیح: تقطع الصلوة:** د دې حدیث ظاهري الفاظ دې باندې دلالت کوي، که د یو مونځ ګزار مخې ته خر، سپی او ښځه تیره شي، نو د دې مونځ باطل شو، دې دریو څیزونو د دغه کس مونځ باطل کړو.

سوال دا دی، دا حدیث دغه رنګ په ظاهر باندې دی، یا د نورو احادیثو د وجې نه د دې ظاهر مؤول بتاویل دی، دې کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۲/۴۸۶).

**د فقهاء کرامو اختلاف:** درې واړو ائمو امام مالک، امام ابو حنیفه او امام شافعي رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد ښځه، خر او سپی یا د دې نه علاوه بل یو انسان یا ځناور که د مونځ ګزار مخې ته تیر شو د هغه سره مونځ نه باطلیږي امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهرو په نزد باندې ښځه، خر او د سپي تیریدو سره مونځ فاسدیږي. امام احمد رَحِمَهُ اللهُ نورو احادیثو کې د ښځې او خر تیریدو باره کې شک کې پریوتي دي او فتوی یې ورکړې ده، چې صرف سپي تیریدو سره مونځ ماتیږي، بیا سپو کې د تور سپي قید بعضې روایاتو کې دی، نو صرف تور سپی قاطع الصلوة وګرځولی شو، باقي نور څیزونه قاطع صلوة نه دي.

**دلائل:** امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهر زیر بحث حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نه استدلال کړی دی، دې کې درې څیزونه واضح طور باندې قاطع صلوة دي، په ابو داود شریف کې دا الفاظ دي:

(**قال يقطع الصلوة المراة الحائض والكلب**) (ص، ۱۰۳)

جمهور د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت څخه استدلال کوي، په مشکوة کې (ص، ۷۴) باندې موجود دی، الفاظ دا دي: (**لا يقطع الصلوة وادرؤا ما استطعتم**) (ابو داود)

همدارنګې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت نمبر (۸) په مشکوة کې (ص، ۷۴) باندې موجود دی، د دې څخه یې هم استدلال کړی، د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نمبر (۹) په مشکوة کې (ص ۷۴) باندې موجود دی، د دې څخه یې هم استدلال کړی دی، دغه رنګ حضرت فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نمبر (۱۳) څخه هم جمهورو استدلال کړی دی. د دې ټولو احادیثو څخه معلومه شوه، چې ښځه،

---

(۱) مسلم ۱/۳۶۵ رقم الحدیث . ۲۶۶- ۵۱۱، واخرج ابن ماجه أوله ۱/۳۰۵ رقم الحدیث ۹۵۰

خر او سپی قاطع صلوة نه دي، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زوردار انداز سره ددې تردید وکړو او وې فرمایل: (شبهتمونا بالحمر والکلاب) (بخاري ص ۷۳).

**اول جواب:** د حنابلو او اهل ظواهرو د پیش کړو دلائلو جواب دا دی، قطع صلوٰة څخه مراد خشوع او خضوع او تعلق مع الله خاص رابطه ده هغه ختمیږي. دې څیزونو کې سپی او خر مضر بالجسم دي. او ښځه مضر بالمیل والحسن ده، دا درې واړه انواع د شیطان د وسوسو مراکز دي، ددې په ذریعه شیطان د مونځ ګزار نورانیت او وصل مع الله او توجه او ځان له والی ختمیږي، خو مونځ نه فاسدیږي. دغه رنګ به ټولو روایاتو کې تطبیق راشي. **دویم جواب:** ددې حضراتو روایات د جمهورو د روایاتو مخې ته منسوخ دي، په خپله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه څیزونو سره مونځ قطع کیدلو قائل وو او دغه روایاتو راوي دی، خو بعد کې د عدم قطع فتوی ورکوله دا د نسخ دلیل دی.

**دریم جواب:** ددې دریو څیزونو په فساد کې مبالغې طرف ته اشاره شوې ده، ددې فتنه لویه او سخته ده، مونځ کې دې څخه بچ شئ، دا د احتیاط او احتراز طرف ته توجه راولي.

## مونځ ګزار مخې ته د ښځې په راتلو سره مونځ نه باطلیږي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ وَأَنَا مُعْتَرِضَةٌ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د شپې مونځ کولو او زه د اسې پرته وم |
| بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ كَاعْتِرَاضِ الْجَنَازَةِ.[1] |
| په مینځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام او د قبلې کې لکه څنګه چې جنازه د مونځ ګزار مخې ته پرته وي. |

## مونځ ګزار مخې ته د خر په تیریدو سره مونځ نه باطلیږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى أَتَانٍ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې زه یو ورځ سور راغلم په خربانده او زه په دې وخت کې بلوغت |
| الِاحْتِلَامَ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ بِمِنًى إِلَى غَيْرِ جِدَارٍ |
| ته نږدې وم او نبي عَلَيْهِ السَّلَام منی کې د خلکو سره مونځ کولو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مخې ته دیوال نه وو (یعنې |
| فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ فَنَزَلْتُ فَأَرْسَلْتُ الْأَتَانَ تَرْتَعُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام ستره نه وه ودرولې) زه د بعضې صفونو مخې ته تیر شوم د خر څخه کوز شوم هغه مې پرینوده |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۴۹۲، رقم الحديث: ۳۸۲، ومسلم في الصحيح ۱/۳۶۶ رقم الحديث ۲۶۷-۵۱۲

وَ دَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَلَيَّ أَحَدٌ [1].

او ځړيدلو او زه صف کې دا خل شوم ، ما ته چا هم څه ونه ويل.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## خط رابنکلو سره سترې نه کار اخيستلى شي يا نه شي اخيستلى

«۱۰» وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ

دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل : کله چې مونځ کوي په تاسو کې څوک

فَلْيَجْعَلْ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ شَيْئًا فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيَنْصِبْ عَصَاهُ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ عَصًى

نو خپلې مخې ته څه ودروئ ، او که څه پيدا نه شو نو خپله امسا مخې ته ودروئ ، او که امسا هم نه وي

فَلْيَخْطُطْ خَطًّا ثُمَّ لَا يَضُرُّهُ مَا مَرَّ أَمَامَهُ». [2]

نو يو خط راکاږئ، نو بيا که دهغې مخې ته څوک تيرشي څه نقصان نه کوي.

**توضيح: فلينصب عصا:** دې حديث کې مونځ ګزار د پاره د سترې سهولياتو بيان شوى دى، يوه آساني او سهولت دا دى، که يو کس سره د سترې د پاره هيڅ هم نه وي، نو امسا دې د سترې په ځاى باندې استعمال کړي او که ځمکه سخته وه امسا په ځمکه باندې نه ننوته، بيا امسا طولاً په ځمکه باندې کيښودو سره کافي ده، (المرقات ۳۸۸-۲/۳۸۹)

په شرح **منية المصلى** کې ليکلي دي که يو کس خپله عصا د سترې د استعمال په وخت کې ځمکه کې دننه کولو په ځاى طولا مخې ته کيږدي، نو د بعضې علماو په نزد باندې د سترې عمل پوره شو، خو د بعضې علماو په نزد باندې د سترې په ځاى دا عمل کافي نه دى. کفايه کې ليکلي که مونځ ګزار عصا په ځمکه کې د دننه کولو په ځاى مخې ته کيږدي، نو عرضاً دې نه يږدي، بلکې طولاً په کار ده. دې حديث څخه مونځ ګزار ته دا سهولت هم ملاؤ شو ، که مونځ ګزار سره هيڅ څيز د سترې د پاره نه وو، لاس کې عصا هم نه وه، نو خپلې مخې ته دې خط راکاږي دا ستره د مونځ ګزار د پاره کافي ده، دې سره د مونځ ګزار د زړه څخه شک او شبهات او وسوسې ختميږي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ قول قديم او د امام احمد بن

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۷۱/۱،رقم الحديث ۴۹۳، ومسلم في الصحيح ۳۶۱/۱ رقم الحديث:۲۵۴-۵۰۴، وأبو داود ۴۵۸/۱ رقم الحديث :۷۱۵.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۴۴۳/۱ رقم الحديث : ۶۸۹ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۳۰۳/۱ رقم الحديث: ۹۴۳.

حنبل رَحِمَهُ اللهُ دا مسلک دی، خط راښکل د سترې دپاره کافي دي، د احنافو متاخرينو علماو دا قول اختيار کړی، د حنفيو اکثرو علماو او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد خط راښکل د سترې د پاره کافي نه دي، دې سره امتياز نه حاصليږي. او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ قول جديد دا هم دی، صاحب هدايه هم دا قول اخيستی دی، د کرښې اعتبار نشته، بهرحال حديث کې اضطراب هم دی، خو د کرښې ذکر او ددې ثبوت حديث کې موجود دی. (المرقات ۲/۴۸۹)

بيا د خط راښکلو مسئله کې د علماو اختلاف دي، يعنې طريقه کې، بعضې د محرابي خط خبره کړې ده، بعضو طولا خط راښکلو ته ترجيح ورکړې ده، بعضې عرضاً خوښ کړی دی، محرابي شکل ډېر باعث اطمينان دی او عام احنافو په نزد باندې د خط اعتبار شته. د صاحب د هدايه قول معتبر نه دی، محقق ابن همام او امام ابويوسف خط راښکلو ته راجح ويلي دي.

## ستره نژدې او درول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ |
| د حضرت سهل بن ابی حثمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: کله چې مونځ کوي يو |
| إِلَى سُتْرَةٍ فَلْيَدْنُ مِنْهَا لَا يَقْطَعِ |
| څوک په تاسو کې سترې طرف ته، نو هغه ته په کار دي چې سترې سره نژدې او درېږي چې مات نه کړي |
| الشَّيْطَانُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ». [1] |
| شيطان په ده باندې مونځ دده. |

## ستره بالکل مخامخ مه دروئ

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ: مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي |
| د مقداد بن الاسود نه روايت دی وايي چې: ما نبي عَلَيْهِ السَّلَام کله هم نه دی ليدلی چې مونځ يې کړې وي |
| إِلَى عُودٍ وَلَا عَمُودٍ وَلَا شَجَرَةٍ إِلَّا جَعَلَهُ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ |
| لرګي، ستنې او يا ونې طرف ته، بلکې هغه به د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ښي طرف يا چپ طرف وريځو ته مخامخ وو |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۴٤٦ رقم الحديث ٦٥٥

وَلَا يَصْمُدُ لَهُ صَمَدًا .⁽¹⁾

او نبي عَلَيْهِالسَّلَام به دې ته مخامخ قصد نه کولو.

**توضيح: ولا يصمد:** اى لا يقصد قصداً يعنې بالكل تندي او ستر ګو ته مخامخ کېښودو اراده به يې نه کوله بلکې ستره به يې ښي يا ګس طرف ته کېښوده، چې بت پرستو سره مشابهت رانه شي. ځکه اسلام د توحيد څخه ډک مذهب دی، چې په دې کې شک هم نشته، چې څوک خيال وکړي چې دا کس دې ستنې ته ولاړ دی، او ددې عبادت کوي، ددې وجې نه حضور صَلَّىاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ سترې ته مخامخ د ودريدو قصد نه کولو. بلکه چپ يا ښي طرف وروځې ته به يې مخامخ کېخوده ددې وجې نه اسلام د جنازې په مونځ کې رکوع او سجده نده ايخې دې د پاره چې کوم مشرک د شرک په شبهه کې پرې نه وځي (المرقات۲/۴۹۰)

## خرو او سپو لوبې کولې او مونځ جاري ؤ

﴿۱۳﴾ وَ عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : أَتَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ نَحْنُ فِيْ

د فضل بن عباس رَضِيَاللهُعَنْهُ روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِالسَّلَام تشريف راوړو يوورځ زمونږ خواته او مونږ به

بَادِيَةٍ لَنَا وَ مَعَهُ عَبَّاسٌ فَصَلَّى فِيْ صَحْرَاءَ

خپل ځنګل کې وو حضرت عباس رَضِيَاللهُعَنْهُ هم د نبي عَلَيْهِالسَّلَام سره ؤ، نبي عَلَيْهِالسَّلَام ځنګل کې مونځ (داسې

لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ وَ حِمَارَةٌ لَنَا وَ كَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ

طريقې) سره کولو چې د نبي عَلَيْهِالسَّلَام مخې ته ستره نه وه زمونږ خرو او سپو د نبي عَلَيْهِالسَّلَام مخې ته لوبې

فَمَا بَالَى بِذٰلِكَ .⁽²⁾

کولې او نبي عَلَيْهِالسَّلَام د هغې پروا نه کوله.

**توضيح: بادية لنا:** د اهل عربو د ستور وود موسم په اعتبار سره بعضې ورځې به يې په صحرا کې خيمې لږولې، دې مقصد د پاره د هغوی خپلې خپلې علاقې مختص وی، د غه علاقې به په باديه سره يادېدې، يعنې ځنګلي چراګاه (اشعة اللمعات ۳۷۸) د دغې ځنګلي چراګاهونو تذکره عربو په خپلو اشعارو کې کوله دا د دوئ د تمدن يوه حصه وه اکثر به د دوئ جګړې د چراګاه د وجې شروع کيدې، د حضرت ابن

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۴۴۵ رقم الحديث : ۶۹۳

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۴۵۹ رقم الحديث ۷۱۸ .

عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم يو ځنګلي صحرائي علاقه وه فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې تذكره كوي، دا باجان سره نبي عَلَيْهِ السَّلَام زمونږ چراګاه ته تشريف راوړو او په كولاو ميدان كې يې مونځ وركړو، مخې ته يې ستره نه وه او خرې او سپي، خپل منځ كې لوبو كې مشغول وو، او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هيڅ پروا نه كوله.

**حمارة:** دا د حمار ميم صاحبه خرې ته ويلى شي، او (اتان) هم ورته ويلى شي.

**كلبة:** دا د كلب ميم صاحبه سپې ته ويلي شي، دا دواړه چونكې د شيطان د كيناستو مراكز دي، ځكه د دوئ خپل منځ كې ژوره رشته وي، دې حديث كې كوم ځاى نه دا خبره معلومه شوه، چې سپئ او خرې مخې ته تيريدو باندې مونځ نه باطليږي، هلته دا خبره هم معلومه شوه چې صحرا كې بغير د سترې مونځ شوى دى، ځكه ستره واجب نه بلكې مستحب ده.

## يو ځيز تيريدلو سره مونځ نه باطليږي

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ |
| د ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام فرمايي: نه ماتوي مونځ د يو مونځ ګزار |
| شَيْءٌ وَادْرَأُوا مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ »[1]. |
| مخې ته تيريدونكى هيڅ ځيز، تاسو حتى الامكان هغوى منع كوئ، ځكه چې تيريدونكى شيطان دى. |

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

| |
|---|
| ﴿١٥﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَايَ فِي قِبْلَتِهِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام مخې ته داسې اوده وم چې زما دواړه خپې قبلې طرف ته وې |
| فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي فَقَبَضْتُ رِجْلَيَّ وَ إِذَا |
| كله چې به نبي عَلَيْهِ السَّلَام سجده كوله نو زما په خپو به يې چونګاري لګولې ما به خپې راغونډې كړې او كله چې |
| قَامَ بَسَطْتُهُمَا قَالَتْ: وَ الْبُيُوتُ يَوْمَئِذٍ لَيْسَ فِيهَا مَصَابِيحُ.[2]. |
| به نبي عَلَيْهِ السَّلَام پاڅيدو نو ما به خپې خورې كړې، عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي دغه ورځو كې كوركې چراغ نه وو. |

---

(١) أخرجه أبو داود في السنن ١/١٦٠ رقم الحديث ٧١٩.

(٢) أخرجه البخاري في الصحيح ١/٥٨٨ رقم الحديث: ٥١٣، ومسلم ١/٣٦٧ رقم الحديث: ٢٧٢- ٥١٢، وأخرجه أبو داود في السنن ١/١٥٧ رقم الحديث: ٧١٢.

**توضیح:** په دې حدیث څخه دا خبره معلومه شوه، چې ښځې مسح کولو سره اودس نه ماتیږي، دویمه خبره دا معلومه شوه، عمل قلیل حرنز دی، او دریمه دا چې ښځه محارم وي مونځ نه باطلیږي، څلورمه خبره دا معلومه شوه، هغه وخت کې کورونه ډیوه او ډریا انتظام نه وو، حضرت عائشه رضي الله عنها خپل عذر داسې بیانوي، پنځمه خبره دا معلومه شوه، که یو کس د تهجدو مونځ کوي او بل ملاست وي نو اجازت شته. (المرقات ۲/۴۹۱).

## سل کالو پورې انتظار کول

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ يَعْلَمُ أَحَدُكُمْ

د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام فرمایي: که چیرته پوهه شي یو کس په تاسو

مَا لَهُ فِي أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْ أَخِيهِ مُعْتَرِضًا فِي الصَّلَاةِ كَانَ لَأَنْ

کې چې خپل مسلمان ورور مخې ته چې هغه مونځ کوي عرضاً تیریدل څومره لویه ګناه ده نو ددې د پاره به

يُقِيمَ مِائَةَ عَامٍ خَيْرٌ لَهُ مِنَ الْخُطْوَةِ الَّتِي خَطَا»[1].

سل کاله ودریدل د یو قدم مخکې تلو څخه بهتر وي.

## څمکه کې ننوځه خو د مونځ ګزار مخې ته مه تیریږه

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ كَعْبِ الْأَحْبَارِ قَالَ: لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي

د کعب احبار رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: که چیرته پوهه شي یو تیریدونکي مخکې د مونځ کوونکي

مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يُخْسَفَ بِهِ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ.

چې ددې څه سزا ده نو دې کس د پاره په خپله څمکه کې ننوتل دا بهتر دي د مونځ ګزار مخې ته تیریدو نه.

وَ فِي رِوَايَةٍ: أَهْوَنَ عَلَيْهِ[2].

او یو روایت کې د بهتر په ځای ډیر آسان لفظ دی.

(۱) ابن ماجه في السنن ۱/ ۳۰۴ رقم الحديث ۹۴۶

(۲) أخرجه مالك في الموطأ ۱/۱۵۵، رقم الحديث ۳۵، كتاب قصر الصلوة في السفر

## درې لاسه فاصله باندې تیریدل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ |
| د ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِالسَّلَام فرمایي: چې کله مونځ کوي یو په تاسو کې په |
| إِلَى غَيْرِ السُّتْرَةِ فَإِنَّهُ يَقْطَعُ صَلَاتَهُ الحِمَارُ وَالخِنْزِيرُ وَاليَهُودِيُّ وَالمَجُوسِيُّ وَالمَرْأَةُ |
| غیر د سُترې نه، نو ماتیږي مونځ دده په مخې ته تیریدو د خر، خنزیر، یهودي، مجوسي او ښځې سره |
| وَ تُجْزِئُ عَنْهُ إِذَا مَرُّوا بَيْنَ يَدَيْهِ عَلَى قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ». [1] |
| خو که د یو کاڼي ویشتو مسافت سره څوک تیر شي، نو هیڅ باک نشته. |

**توضیح: الیهودي والمجوسي:** یهودي او مجوسي او خنزیر هم د خرې او سپو په شان د شیطان مراکز دي، لهذا د دوی تیریدل د مونځ گزار مخې ته د مونځ گزار د الله تعالی سره تعلق، خشوع او خضوع کې فرق راولي.(المرقات ۲/۴۹۴) فصل اول حدیث نمبر (۷) کې توضیح او تشریح او ددې حدیث وضاحت یو شان دی، هلته یې او گورئ، دغه حدیث روایت په خپله ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنهُ کوي، چې دې کې د مونځ باطل کیدو حکم مذکور دی او دغه حضرت ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنهُ حدیث نمبر (۹) کې بیان فرمایي خره د مونځ گزارو مخې ته څریده چا پرې هم انکار ونه کړو، ددې نه معلومه شوه، چې په خپله ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنهُ د خپل روایت نه رجوع وکړه، دا ددې روایت منسوخ کیدو دلیل دی، یا دغه توجیه او تطبیق دی، چې حدیث نمبر (۷) تشریح کې مذکور دی.

**قذفة بحجر:** حجر کاڼي ته ویلي شي او قذف ویشتو په معنی کی دی، واړه کاڼي خلک په گوتو کې مږي او بیا یې غورځوي دې ته قذف ویلي شي، کیدی شي دلته دغه فاصله مراد وي، کوم چې منی کې جمرات په کاڼو ویشتل کېږي او دغه فاصله د دریو لاسونو په فاصله باندې وي.

ددې حدیث مطلب دا شو، چې دا څیزونه د مونځ گزار مخې ته درې لاسه فاصله باندې تیر شي، د مونځ گزار هیڅ نقصان نه کېږي او تیریدونکي د پاره هم څه حرج نشته.د فقهي کتابونو کې فقهاو بحث کړی دی، د مونځ گزار مخې ته د تیریدو حد څه دی او هغه فاصله څه ده، بعضې فقهاوو درې ذراع یعنې درې لاسه قول کړی دی، دغه رنگ دې حدیث کې دې طرف ته اشاره ده، لهذا درې ذراعه فاصله کې دننه تلل منع دي، بعضې څلویښت ذراعه فاصلې په منځ کې منع فرمایي، دې نه پس جائز دي، بعضې فقهاء پنځه ذراعه کې دننه، بعضې فقهاء وایي د سجدې ځای کې دننه منع دي، بعضې دوه یا درې

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۱۵۳ رقم الحدیث ۷۰۴

صفونو کې د ننه تلل منع فرمايلي .شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي صحيح خبره دا ده چې کله څوک خشوع او خضوع والا مونځ کزار مونځ کوي او د قيام په حالت کې د سجدې ځای ته ګوري د کوم ځای پورې تلونکي په نظر راځي، هغه ځای پورې تيريدل منع دي، ځکه چې مونځ ګزار د قيام په حالت کې ځای د سجدې ته ګوري او په رکوع کې قدمونو ته، سجده کې خپلې پوزې ته، قعده کې خپلې غارې (څټ) ته نظروي او سلام په وخت کې خپلو اوګو ته ګوري. (اشعة اللمعات ۳۷۹).

قاضي خان او صاحب د هدايه موضع سجود په منځ کې د تيريدو ځخه منع ليکلې، حديث کې سخت وعيد د هغه کس د پاره دی، چې د مونځ ګزار د سجدې په ځای کې تيريږي دا اسانه او واضحه خبره ده.

بيا مسئله هغه وخت ده، چې کله صحرا يا کولاو ميدان کې يا شپيته(٦٠) ګزه لوی مسجد وي، سرې مخې ته تير شي، که مسجد وړوکی وي، نو انسان د مونځ ګزار مخې ته يو ځای کې هم نه شي تيريدی، ځکه چې ټول مسجد موضع واحد دی، مونځ ګزار ته هم په کار دي چې د اخوا ديخوا مطالعه دې نه کوي،بلکې الله تعالی طرف ته دې متوجه شي، چې د تيريدونکي والاطرف ته يې احساس هم نه وي، آخر خپل رب طرف ته ولاړ دی.

**حکايت**: يو ځلې مجنون په يو ځای کې د ليلی په غم کې ډوب روان ؤ، چې تيريدل يې د مونځ ګزار مخې ته وشو، مونځ ګزار مجنون ډير ورټو، چې زه مونځ ته ولاړ يم او ته زما مخې ته تيريږې، مجنون ورته وويل، چې ته د چا د پاره مونځ کوې، هغه ورته وايي الله تعالی ته ولاړ يم، مجنون ورته وايي ته حقيقي الله تعالی ته ولاړ يې چې زه دې وليدم او زه د مجازي ليلی په غم کې دومره ډوب يم چې ما ته ونه ليدې.



۲۸ ربيع الاول ۱۴۱۰هـ

# بَاب صِفَة الصَّلَاة:
## د مونځ د کيفيت بيان ؛

و قال الله تعالى: ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ (البينة آيت ۵) و قال الله تعالى ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ (مدثر آيت: ۳) و قال الله تعالى. ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ (اعلى آيت ۱۵) ﴿قُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ (بقرة آيت: ۲۳۸) ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ (مزمل آيت ۲۰) قال الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ﴾ (حج آيت ۷۷)

دې باب کې صاحب د کتاب شل احاديث راجمع کړي. دې کې د مونځ د شروع نه واخله تر آخره پورې ټول کيفيات او د مونځ پوره ترکيب او ترتيب ذکر کړې شوی، سجده، رکوع، تکبير تحريمه او رفع يدين تعدد جلسه او تعديل ارکان مکمل بيان دی. د دې مجموعې نوم صفة الصلوة ئې ايخودی شوی دی

## الفَصْل الأول:
## په مونځ کې تعديل ارکان واجب دي او که فرض؟

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: يو سړی داخل شو په نبي عليه الصلاة والسلام باندې او نبي عليه السلام |
| جَالِسٌ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَصَلَّى |
| ناست وو د مسجد په يو طرف کې نو هغه مونځ وکړو (خو تعديل ارکان، قومه او جلسه لحاظ يې ونه کړو) |
| ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَعَلَيْكَ السَّلَامُ |
| بيا نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو او سلام يې وکړو نبي عليه السلام د سلام جواب ورکړو او ورته يې فرمايل |
| ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ». فَرَجَعَ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ |
| لاړ شه بيا مونځ وکړه ځکه چې تا مونځ ونه کړو هغه لاړو د مخکې په شان يې مونځ وکړو او راغی بيا يې عليه السلام |
| فَقَالَ: «وَعَلَيْكَ السَّلَامُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» |
| ته يې سلام وکړو نبي عليه السلام د سلام جواب ورکړو او وې فرمايل چې لاړ شه مونځ بيا وکړه تا مونځ نه دی |

فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ أَوْ فِي الَّتِي بَعْدَهَا عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللهِ
کړي (دغه رنګ درې ځلې وشو) دریم ځل یا څلورم ځل دې کس عرض وکړو: یا رسول الله! ما ته وښایه

فَقَالَ: «إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ
(چې څنګه مونځ وکړم) نبي عليه السلام ورته وفرمایل: چې کله د مونځ کولو اراده وکړې نو ښه طریقې سره

ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ
اودس وکړه بیا قبلې ته مخ کړه او تکبیر ووایه بیا قرآن کریم کې چې کوم (سورة) تاته آسان وي هغه ووایه

ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا
بیا صحیح طریقې سره رکوع وکړه بیا سر اوچت کړه تردې چې نیغ ودرېږې بیا اطمینان سره سجدې ته لاړ

ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ
شه بیا سر اوچت کړه په اطمینان سره کېنه بیا دوباره سجدې ته لاړ شه بیا سر اوچت کړه او اطمینان سره

جَالِسًا». وَفِي رِوَايَةٍ: «ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا ثُمَّ افْعَلْ ذَٰلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا». (متفق عليه)[1]
ناست اوسه، یو روایت کې دا الفاظ هم دي: بیا سر اوچت کړه او نیغ او درېږه بیا ټول مونځ داسې پوره کړه.

**توضیح**: ان رجلا: د دغه کس نوم خلاد بن رافع انصاري رضي الله عنه وو، دا بدري صحابي دی او بدر کې شهید شوی دی، لهذا دا واقعه د جنګ بدر څخه مخکې ده، دې حدیث ته حدیث المسيء للصلوة نوم ورکولی کېږي. (المرقات ۲/۴۹۴).

**فصل**: د دې نه د تحية المسجد مونځ مراد دی او دغه وخت صحابه و تحية المسجد څخه راغلل او حضور صلى الله عليه وسلم سره یې په آدب باندې مصافحه کوله.

**فانک لم تصل**: حضور صلى الله عليه وسلم خلاد بن رافع انصاري رضي الله عنه ته دوباره د مونځ حکم ځکه ورکړو، چې هغه سجده، رکوع او قعده کې تعدیل ارکان نه وو کړي.

**سوال**: حضور صلى الله عليه وسلم مخې ته خلاد بن رافع انصاري رضي الله عنه مونځ کې غلطي کوله او حضور صلى الله عليه وسلم ده ته غلطي نه ښودله، بلکې بار بار یې ورته د غلط مونځ حکم ورکولو دا تقریر علی

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۳۷، رقم الحديث: ۷۵۷، ومسلم في الصحيح ۱/۲۹۸ رقم الحديث: ۴۵-۳۹۷، وأبو داود ۱/۵۳۴ رقم الحديث ۸۵۶، والنسائي ۱/۱۹۳، رقم الحديث ۱۰۵۳.

الخطاء دی او نبي عَلَيْهِ السَّلَام د طرف نه تقریر علی الخطاء محال دی داسی ولې وشو؟

**جواب:** نبي عَلَيْهِ السَّلَام بار بار ده ته حکم ځکه ورکړو چې ستا مونځ صحیح طریقې سره اداء نه شو، لاړشه بیا صحیح طریقې سره مونځ وکړه، د مونځ د اعادې دا حکم تقریر علی الخطاء نه دی، بلکې تنبیه علی الخطاء دی.

**سوال:** دلته دویم سوال دا دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اول ځل دغه صحابي ته صحیح طریقه ولې نه ښودله دریم ځل پورې د مونځ دوباره کولو څه حکمت وو؟

**جواب:** کیدای شي نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا کتل چې آیا دا کس دا غلطي د عدم علم د وجې نه ده، بیا یې ورته صحیح طریقه اوښودله. ددې سوال دویم جواب دا دی، چې بار بار د مونځ کولو حکم ځکه ورکولو، چې بار بار غلطۍ څخه پس صحیح طریقه وکړي، نو دا اوقع فی النفس ده، بیا به چرته هم غلطي نه کوي. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلاد بن رافع انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطالبې باندې صرف مونځ نه بلکې د اودس څخه واخله د مونځ ټول ارکان تفصیل وښودو، او د امت مخکې د مونځ کولو صحیح طریقه راغله.

**ثم اقرأ:** یعنې تکبیر تحریمې نه پس قرآن وایه، چې کوم آسان ځای وي هغه وایه، دا فریضه قرآت طرف اشاره ده او دالفاظو اندازه داسې ده چې مطلق قرات فرض دی د فاتحې ذکر نشته اگرچې مسند احمد، سنن بیهقي او ابن حبان کې **ثم اقراء بأم القرآن** الفاظ راغلي، دغه اختلاف رارواندی.

**حتی تطمئن راکعاً:** د مونځ هر رکن په خپل ځای اداء کول او هر رکن کې ددې مقدار ودریدل چې د بدن هر جوړ په خپل ځای نیغ شي دې ته تعدیل ویلی شي.

**د فقهاو اختلاف:** ټولو فقهاو اتفاق دی چې قومه، جلسه، رکوع او سجده کې تعدیل کوئ خو اختلاف په دې کې دی چې ددې تعدیل حیثیت څه دی. امام شافعي، امام احمد بن حنبل او امام ابو یوسف رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد باندې تعدیل ارکان فرض دي. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او قاضي ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ یو ځلې سبحان الله مقدار پورې ودریدلو ته فرض وایي. او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ درې ځله سبحان الله په مقدار وقفه کولو ته فرض ویلي. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مسلک دلته واضح نه دی. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې تعدیل ارکان فرض نه دي بلکې واجب دي.

**دلائل:** جمهورو د تعدیل ارکان په فضیلت باندې د حضرت خلاد بن رافع انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زیر بحث حدیث څخه استدلال کوي، (المرقات ۲/۴۹۴)

دې حدیث کې د مانځه د اعادې حکم دی، چې د فرضیت دلیل دی، همدارنګې دې کې **فانک لم تصل** سره د مونځ بالکل نفې کړې ده دا هم د فرضیت دلیل دی، بل په دې حدیث کې د طمانیت حکم او امر شوې او مطلقاً امر فرضیت د پاره وي، دغه رنګ د ترمذي یو روایت دی چې الفاظ یې دا دي: **لا تجزئ**

**صلوة لا يقيم الرجل فيها يعني صلبه في الركوع والسجود** دي نه هم جمهور د تعديل اركان د فرض کيدو استدلال کړی دی. امام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله د قرآن کريم آيت ﴿**ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا**﴾ نه استدلال کړی دی، د طرز استدلال داسې دی، سجده د **وضع الجبهة على الارض** نوم دی او رکوع مطلق انحناء ته ويلې شي، اوس دې باندې د تعديل ارکان اضافه خبر واحد سره په آيت باندې اضافه ده، دا مناسب نه دی، مطلق رکوع او سجده فرض ده او تعديل ارکان د حديث د وجې واجب دي، همدارنګه د فرضو د ثبوت د پاره نص د قطعي الثبوت والدلالة ضرورت دی، دلته حديث قطعي الثبوت نه دی، اګر چې قطعي الدلالة دی ظني الثبوت قطعي الدلالة نص څخه فرض نه بلکې واجب ثابتيږي، دغه رنګ د احنافو دويم دليل مسند احمد، طبراني هغه روايت دی چې هغې کې د مونځ د سرقې بيان دی، الفاظ يې دا دي: **ان اسوء السرقة من يسرق من صلوته قالوا کيف يسرق من صلاته قال لا يتم رکوعها ولا سجودها**، دې حديث کې تعديل ارکان نه کولو والا کس ته د مونځ غل ويلی شوی دی، ليکن دده مونځ باطل نه کړی شو، نو دا د وجوب دليل دی، که تعديل فرض وی، نو تعديل ماتيدو سره به مونځ باطليده، خود بطلان حکم نه لږوي.

**جواب**: احنافو د خلاد بن رافع انصاري رضي الله عنه روايت محمل بنودلو د پاره ډير جوابونه کړي دي.

**اول جواب**: ترمذي کې خلاد بن رافع انصاري رضي الله عنه حديث په آخر کې حضور صلی الله علیه وسلم دا ارشاد دی: (**اذا فعلت ذلک فقد تمت صلوتک وان انقصت منه شيئا انتقصت من صلوتک**)

دې عبارت باندې راويانو کړې ده: (**وکان هذا اهون عليهم من الاولى انه من انتقص من ذلک شيئا انتقص من صلوته ولم تذهب کلها**) ددې حاصل دا شو، رومبی صحابه د حضور صلی الله علیه وسلم د ارشاد (**انک لم تصل**) نه پريشانه شو، چې تعديل نه کولو سره به مونځ فوت کيږي، چې آخره کې حضور صلی الله علیه وسلم وضاحت وکړو، نو صحابو ته تسلي وشوه، چې مونځ بالکليه نه ځي بلکې ناقص کيږي، دې څخه فرضيت نه ثابتيږي، د جمهورو دليل (**انک لم تصل**) څخه احناف دويم جواب دا ورکوي چې، دا نفې د کمال ده د اصل مونځ نفي مراد نه ده.

**دريم جواب**: دې اصل کې دا اختلاف د اعتقاد دی چې هغوی ورته فرض وايي، مونږ تعديل ته واجب وايو، د عمل په اعتبار سره هيڅ اختلاف نشته، ځکه چې د واجب ترک کولو سره احناف هم د مونځ اعاده لازمي ګڼي، د اختلاف اصل بنياد پديکې دی، چې احناف د دلائلو د تفاوت د وجې فرض او واجبو کې تفاوت کوي، او نورو ائمو په نزد باندې د واجبو درجه ډيره واضح نه ده، د احتياط په اعتبار

سره د جمهورو مسلک بهتر دی، احنافو تعدیل ته فرض نه دي ویلي، د احنافو خلک په دې باندې پوهه شو، چې تعدیل هیڅ څیز نه دی، حالانکې افغانستان او بلوچستان او سرحد کې خلک د مونځ په تعدیل ارکان کې ډیر کمزوروالی کوي.

**د حضرت شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ رائې:** حضرت شاه صاحب رَحِمَهُ اللهُ فرمایي تعدیل ارکان مسئله کې چې کوم مشهور اختلاف دی، دا اختلاف حقیقي نه دی، بلکې لفظي دی، ځکه چې د تعدیل ارکان درې درجې دي: (۱) یو رکن کې دومره توقف کول چې د بدن اعضاء حرکت انتقالیه بند شي او هر یو عضوې ته قرار راشي، د تعدیل ارکان طمانیت دا درجه اتفاقي طور باندې فرض ده. (۲) یو رکن کې دومره توقف کول چې یو ځل سبحان الله په کې وویل شي دا درجه واجب ده. (۳) یو سرې درې ځلې سبحان الله ویلو په مقدار توقف وکړي، دا د سنت درجه ده. د دریو وارو دا نتیجه راووته کوم چې تعدیل ارکانو ته فرض وایي هغوي رومبۍ درجه مراد اخیستې ده او څوک چې تعدیل ته واجب وایي هغوي دویمه درجه خپله کړې او کوم چې ورته سنت وایي هغوي دریمه درجه مراد اخیستې ده.

۲۹ ربیع الاول ۱۴۱۰هـ

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ نقشه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَفْتِحُ الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ وَ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مونځ شروع د تکبیر نه کوله او د |
| الْقِرَاءَةِ بِـ ( الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ) وَ كَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ |
| قرائت شروع به یې د الحمد لله نه کوله او چې کله به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رکوع کوله نو نه به یې اوچتولو سر خپل |
| وَ لَمْ يُصَوِّبْهُ وَ لٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ وَ كَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ |
| او نه به یې ډیر ښکته کولو بلکې درمیانه حالت کې به وو، او چې کله به یې د رکوع نه سر اوچت کړو نو |
| لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِمًا وَ كَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ لَمْ |
| سجده به یې نه کوله ترڅو چې به نیغ او دریدلی نه وو او چې کله به یې د سجدې نه سر اوچت کړو نو نه به یې |
| يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ جَالِسًا وَ كَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ وَ كَانَ يَفْرِشُ |
| کوله سجده ترڅو چې برابر ناست نه وو او د هر دوه رکعاتو نه پس به یې التحیات ویله او خوروله به یې |
| رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَ يَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى وَ كَانَ يَنْهٰى عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ وَ |
| کسه خپه او نبي خپه به یې نیغه او دروله او نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به د شیطان د ناستې نه منع فرمایله او منع |

| |
|---|
| يَنْهَى أَنْ يَفْتَرِشَ الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ السَّبُعِ وَ كَانَ يَخْتِمُ |
| به یې کوله د دې نه چې خورې کړي سړی څنګلې په شان د خورولو د لاسونو د ځناورو او ختمولو به یې |
| الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ. (رَوَاهُ مُسْلِم)(۱) |
| مونځ خپل په سلام ګرځولو سره. |

**توضیح: القراءة بالحمدلله:** یعنې حضور صلى الله عليه وسلم به چې قرآت شروع کولو، نو د الحمدلله نه به یې شروع کولو، دې جملې نه دا واضحه شوه چې حضور صلى الله عليه وسلم به مونځ کې بسم الله په مزه ویله او چې قرآت به یې شروع کولو نو په تیزه باندې به یې د الحمد لله نه شروع کوله، بسم الله په تیزه یا په مزه ویلو کې د علماو اختلاف دی. اختلاف په حقیقت کې په دې باندې متفرع دی، چې آیا بسم الله جزء د قرآن کریم دی او که نه؟ که جزء د قرآن کریم وي، نو د هر سورت جزء دی یا نه؟ دې کې هم د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۲/۴۹۹).

**آیا بسم الله د هر یو سورت جزء دی؟:** د جمهور امت په دې باندې اتفاق دی، چې بسم الله د قرآن کریم جزء دی او دا یو آیت دی، صرف امام مالک رحمه الله طرف ته منسوب دی، چې په سورة نمل کې بسم الله د قرآن کریم جزء نه دی، دا اختلاف د سورة نمل بسم الله څخه علاوه کې دی، سورة نمل جزء کیدل او قرآن کریم کیدل اتفاقي امر دی، اوس خپلو کې اختلاف شو، آیا بسم الله د هر سورت جزء دی یا صرف بین السورتین کې فصل د پاره ده.

**د فقهاو اختلاف:** حضرت امام شافعي رحمه الله په نزد باندې بسم الله د هر سورت داسې جزء دی، څنګه چې د سورت نمل جزء دی، امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد باندې بسم الله د هر سورت جزء نه دی، بلکې دا د سورت په شروع کې صرف بین السورتین د فصل د پاره ده، لهذا دا یو آیت دی، چې دا د دې مقصد د پاره ډیرو ځایونو کې ذکر شوې ده، د شوافعو په نزد باندې دا ډیر آیتونه دي، یو آیت نه دی، د بسم الله متعلق د حنابلو حضراتو اقوال مختلف دي، ځکه د دې ذکر کولو ضرورت نشته دی، خو دومره یاد ساتئ چې هغوی په دې مسئله کې احنافو طرف ته نیږدې دي.

**دلائل:** امام شافعي رحمه الله او د ده موافقین حضرات د جزئیت د بسم الله د پاره د ابو هریره رضي الله عنه د روایت څخه استدلال کړې دی، الفاظ یې دا دي: (۱) **عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم انه كان يقول الحمد لله رب العلمين سبع آيات احداهن بسم الله الرحمن الرحيم.**

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۳۵۷ رقم الحديث. ۲۴۰-۴۹۸، وأبو داود ۱/۴۹۴ رقم الحديث: ۷۸۳.

د بسم الله جزئیت باندې د ام سلمه رضي الله عنها د یو روایت څخه استدلال کړی دی:

**(۲) عن ام سلمة انه قرا م الفاتحة وعد بسم الله الرحمن الرحيم والحمدلله رب العالمين.**

شوافعو حضراتو په جزئیت د بسم الله باندې د ابوداود د روایت څخه هم استدلال کړی دی:

**(۳) عن انس بن مالک قال رسول الله صلى الله عليه وسلم انزلت على آنفا سورت فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم انا اعطيناک الکوثر حتى ختمها)**

(۴) شوافعو ددې څخه هم استدلال کړی دی چې بسم الله د هر سورت سره قلم وحی سره بالالتزام داسی لیکلي ده چې چاته وهم هم نه کېږي، چې بسم الله د هر سورت جزء نه دی، بسم الله د هر سورت جزء دی دا د فاتحې جزء هم دی او چې فاتحه مونځ کې ویلي شي، نو بسم الله به هم په جهري مونځونو کې په جهر سره وائي، چې د فاتحې جزء پاتې نه شي.ائمه احناف او ملکري یې فرمایي بسم الله د قرآن کریم یو آیت دی چې فصل بین السورتین دی دا د یو سورت جزء هم نه دی، هو سورت نمل کې د یو آیت حصه ده.خپل مدعا باندې احناف د یو څو احادیثو څخه استدلال کوي:

(۱) حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دی چې حدیث قدسي دی، مشکوة (ص، ۷۸) باندې مذکور دی، الفاظ دا دي: (**قال الله تعالى قسمت الصلوة بيني و بين عبدی نصفين ولعبدی ما سال فاذا قال العبد الحمدلله رب العالمين قال الله تعالى حمدني عبدي**). دې حدیث کې سورت فاتحه یو یو آیت ولوستلو، خو بسم الله ذکر په کې نشته، بسم الله د یو سورت جزء هم نه دی.

(۲) د احنافو دویم دلیل د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه هغه روایت دی، چې هغې کې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم سورت ملک دیرش آیتونه شمار کړل الفاظ دا دي:(**عن ابي هريرة انه صلى الله عليه وسلم قال سورت في القرآن ثلاثون آية شفعت لصاحبه حتى غفرله، تبارک الذي بيده الملک**)

که بسم الله د سورت جزء وګڼلی شي، بیا سورت ملک د دیرشو په ځای یو دیرش آیتونه په کار دي او حدیث کې د دیرشو ذکر دی.

(۳) احنافو د ابن عباس رضي الله عنه مشهور روایت څخه استدلال کړی دی چې دې کې ابن عباس رضي الله عنه صفا ویلي دي بسم الله د دوو سورتونو په مینځ کې جدائي او فصل د پاره راغلي ده، الفاظ دا دي: **عن ابن عباس كان النبي صلى الله عليه وسلم لا يعرف السورة حتى ينزل عليه بسم الله الرحمن الرحيم.**

(۴) احنافو او ملکرو یې هغه مضبوط دلیل څخه هم استدلال کړی دی، چې د ټولو قراو او علماو او فقهاو په نزد دې باندې اتفاق دی، چې سورة کوثر درې آیتونه دی، او سورة اخلاص څلورو باندې مشتمل دی، که بسم الله د هر سورت جزء وګڼلی شي، نو سورة کوثر څلور او اخلاص پنځه آیتونه

جوړیږي، حالانکې دا داجماع امت خلاف ده، او دغه رنګ د قرآن کریم د سورتونو په ټولو آیتونو کې به اختلاف راوچت شي تردې چې سورة فاتحه او وه آیتونه به اته(۸) آیتونه شي.

**جواب**: شوافع د حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت نه استدلال کړی، ددې جواب دا دی چې د حدیث په سند کې اضطراب دی، ځکه چې بعضې محدثینو ددې سند کې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه د نوم ذکر کولو شک کړی دی همدارنګې ددې حدیث مرفوع او موقوف کیدو کې محدثین اختلاف کوي، ددې دوارو وجهو څخه دا حدیث ضعیف دی، همدارنګه د حضرت ابو هریره رضي الله عنه او ام سلمه روایتونو کې تعارض دی، ام سلمه رضي الله عنها روایت کې بسم الله الحمد لله رب العالمین یو آیت دی، حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت کې بسم الله مستقل آیت دی. (و اذا تعارضا تساقطا)

**دویم جواب** دا دی، دا حدیث خبر واحد دی، او خبر واحد ته قطعي علم حاصل نه دی او بسم الله د فاتحې او یا د هر سورت جزء ګرځولو د پاره قطعي علم ته ضرورت دی دا په عقل سره نه بلکې په نقل سره ثابت کیږي ددې روایت په مقابله کې نور روایات قوي دي، ددې نه معلومه شوه، چې بسم الله د فاتحې جزء نه دی، څنګه چې حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه حدیث قدسي مروي دی. د شوافعو د دویم او دریم دلیل جواب دا دی چې دا اخبار آحاد دي، دې نه قطعي علم نه حاصلیږي او د بسم الله د سورت د پاره جزء کیدل په قطعي علم سره کیږي، دویم جواب دا چې د بسم الله ذکر هغه احادیثو کې د جزئیت په طور نه دی، صرف تبرک د پاره دی، دا احادیث د هغه قوي او مشهور احادیثو په مقابله کې دي، چې هغې کې بسم الله د سورت فاتحې او یا د نورو سورتونو د پاره جزء نه دی، لهذا دې ډیرو احادیثو ته ترجیح ورکړی شوې ده. د شوافعو حضراتو څلورم دلیل چې حقیقت کې عقلي دلیل دی د هغې جواب دا دی، چې ددې دلیل څخه دا ثابتیږي، چې بسم الله د قرآن کریم جزء دی، چې فصل بین السورتین د پاره دی، دې څخه دا نه ثابتیږي، چې بسم الله د هر سورت یا د فاتحې جزء دی. (تعلیق الفصیح)

**په مونځ کې بسم الله په مزه وویلی شي او که په تیز آواز باندې؟** بسم الله د هر سورت جزء دی او که نه دی، دې اختلاف باندې د فقهاو یو بل اختلاف متفرع دی، هغه دا چې بسم الله په جهري مونځ کې د سورت فاتحې څخه مخکې جهراً ویل په کار دي یا سراً.

**د فقهاو اختلاف**: د امام مالک رحمه الله مسلک دا دی د فاتحې نه مخکې بسم الله بالکل نه دي ویل په کار نه سراً او نه جهراً، یعنې بسم الله ویل مسنون نه دي. د جمهورو فقهاو په نزد بسم الله سراً ویل سنت دي، د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې جهري مونځ کې بسم الله په اوچت آواز سره ویل سنت دي.

**دلائل**: امام مالک رحمه الله بسم الله بالکل نه ویلو باندې د حضرت انس رضي الله عنه روایت څخه استدلال کړی دی، الفاظ یې دا دي: (عن انس قال صلیت خلف النبي صلی الله علیه وسلم و ابي بکر و عمر و عثمان

وعلى فلم اسمع احدامنهم يقرأ بسم الله الرحمن الرحيم. (رواه مسلم)
امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د حضرت عبد الله ابن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت څخه استدلال کړی دی، احنافو د دلائلو په ضمن کښ به راشي، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث څخه هم استدلال کړی دی، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الحمد لله رب العالمين څخه قرآت شروع کولو، لهذا بسم الله ويل مسنون نه دي. شوافع حضرات بسم الله په اوچت آواز سره وئيلو باندې د حضرت نعيم بن مجمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت څخه استدلال کړی دی الفاظ یې دا دي: (صليت وراء ابي هريرة فقراء بسم الله الرحمن الرحيم ثم قراء بام القرآن الخ. (رواه ابن خزيمة و ابن حبان والنسائي). شوافع د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت څخه استدلال کړی دی چې د مشکوة (ص۸۰) باندې فصل ثاني کښ رومبی حديث دی: عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال كان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يفتتح صلوته ببسم الله الرحمن الرحيم.
شوافعو حضراتو د صحابوا و تابعينو څه آثار هم استدلال کښ راوړي دي، چې طحاوي نقل کړي دي.
(۱) احناف او ملکري یې د زير بحث صحيح او صريح حديث څخه ترک الجهر بالتسمية باندې استدلال کړی دی چې واضح دی. (۲) احناف مشکوة (ص۷۹) باندې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت څخه استدلال کړی دی چې الفاظ یې د مالکيو د په دلائلو په ضمن کښ نقل شوي دي.
(۳) ائمه احنافو مشکوة (ص۷۸) باندې د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت څخه هم استدلال کړی دی، دې کښ دا الفاظ دي: (استفتح القراءة بالحمد لله رب العالمين. (رواه مسلم)
(۴) امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ترک جهر بالبسملة د پاره يو باب تړلی دی، او دې کښ یې هغه روايت نقل کړی کوم چې يزيد بن عبد الله د خپل پلار عبد الله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه داسې روايت کوي: عن ابن عبد الله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال سمعني ابي و انا في الصلوة أقول بسم الله الرحمن الرحيم فقال لي اى بني محدث اياک والحدث... الخ (ترمذي، ص ۵۷)
ددې روايت نه احنافو استدلال کړی دی او وايي دې صحابي جهر د بسم الله ته بدعت وئيلی دی، ددې په مقابله کښ د استحباب وغيره يو روايت هم نه شي اخيستی، ځکه چې دا د مبيح او محرم مسئله ده.
(۵) د مسند احمد يو روايت دی چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه منقول دی، چې صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به بسم الله په اوچت آواز سره نه ويله، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه امام طحاوي نقل کړی دی، چې دوی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات پورې بسم الله په اوچت آواز نه ده فرمايلې د ابن ماجه په روايت کښ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما بسم الله په اوچت آواز نه ده ويلې، د ابن ماجه په روايت کښ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې شاته مونځ کړی دی دې ټولو

حضراتو بسم الله په مزه باندې ويلې ده. امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو روايت نقل كوي، عكرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې كله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بسم الله په اوچت آواز سره ويلو متعلق معلومات وشو، نووې فرمايل (ذلک فضل الاعراب) يعنې بسم الله په اوچت آواز سره ويل دبې علم خلكو كار دى، دې ټولو رواياتو نه ائمه احناف دبسم الله په قلاره ويلو استدلال وكړو.

**جوابات**: د ټولو نه مخكې دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ د استدلال نه جواب وركولې شي هغوي چې د كومو احاديثو نه استدلال كړې دى، هغې كې د بسم الله په اوچت آواز د ويلو نفې ده، د بسم الله بالكل ويلو نفې نه ده، دا وجه ده چې احنافو په دغه رواياتو سره بسم الله په مزه ويلو باندې استدلال كړې دى. ائمه احناف او شوافعو حضراتو دليل د حضرت نعيم بن مجمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه يو جواب دا وركړې دى، چې دې سره جهر بالبسملة باندې استدلال يقيني نه دى، ځكه كله ويونكې په مزه وايي، خودا په هغه انداز سره وي چې نزدې والا يې آوري، دلته دغه احتمال دى، او چې كله احتمال راشي، نو استدلال باطل شي.

**دويم جواب** دا دى ممكن دى چې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تعليم د پاره داسې كړې وو، ځكه چې موقع د تعليم وه، په وچت آواز باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسپخين مونځ كې قرآت هم كړې دى.

**دريم جواب** دا دى د جهر والا روايات معلل بالشذوذ دي، ځكه چې دغه رنګ مسئله كې صرف يو يا دوه راويانو بيان كول باعث علت وي، يا جواب داسې دى چې د جهر والا روايات د هغه رواياتو ځنې كمزوري دي، چې كوم كې د مزه ويلو تذكره ده. شوافعو چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د كوم روايت ځنې استدلال كړې دى، صاحب ترمذي هغه نقل كولو نه پس وايي: **(هذا حديث ليس اسناده بذاک)** يعنې ددې حديث سند قوي نه دى، دې ځنې علاوه شوافعو چې كومو آثارو او رواياتو ځنې استدلال كړې دى دغه ټولو باره كې دارقطني داسې ليكلي: **(وعن الدار قطني انه قال لم يصح عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في الجهر حديث)** (كذا في اللمعات)

دار قطني متعلق راځي چې ده مصر كې په **جهر بالبسملة** باندې يو كتاب وليكلو، د تياريدو نه پس يو مالكي عالم ده ته قسم وركړو چې ماته په دې كې يو حديث هم صحيح وښايه چې جهر بالبسملة باندې دلالت كوي، هغه په جواب كې وفرمايل چې د جهر په باره كې يو حديث هم صحيح نه ملاويږي (كذا في اشعة اللمعات ۳۸۱) حازمي وايي چې د جهر بالبسملة احاديث اګر چې د صحابو نه منقول دي، ليكن ددې اكثره حصه د ضعف نه خالي نه ده. بهر حال خلاصه دا شوه چې د جهر روايت يا ضعيف نا قابل استدلال دى، يا جهر تعليم د امت دپاره وختي او عارضي وو.

**په قعده كې د ناستې بهتره طريقه څه ده؟ وكان يفترش رجله اليسرى**: دې حديث كې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په قعده كې د ناستې طريقه بيان كړې ده، يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې كله قعده كې ناسته كوله، نو

ګسه خپه به یې خوروله او ښۍ خپه به یې ودروله، اوس په دې کې د فقهاوو اختلاف دی، آیا افضله طریقه داده چې دې حدیث کې مذکوره ده یا تورک طریقه باندې ناسته افضله ده کوم چې راتلونکي حدیث کې ذکرده.

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رحمه الله مسلک دا دی، چې اوله قعده کې افتراش افضل دی او دویمه قعده کې تورک بهتر دی، ځکه چې دویمه قعده کې ډېر ساعت پورې ناسته وي او تورک طریقه باندې ناسته کول آسان وي. د امام احمد بن حنبل رحمه الله مسلک دا دی، که مونځ د دوو قعدو والا وو، نو آخري قعده کې تورک کول په کار دي، که مونځ د یوې قعدې یا یو تشهد والا وو، نو دې کې افتراش کول په کار دي. امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په نزد باندې دواړو قعدو کې افتراش ضروري دی، تورک صرف د مجبورۍ د وجې نه دی.

**دلائل**: شوافع د حضرت ابو حمید ساعدي روایت څخه استدلال کوي او تورک داسې کولی شي چې سرین په قعده کې کیني او دواړه خپې ښي طرف ته وباسي او چپ ورک یعنې مقعد باندې کیني، ابو حمید ساعدي په روایت کې دویمه قعده کې تورک حکم صراحتاً مذکور دی. (اشعة اللمعات ۳۸۱).

ائمه احناف د زیر بحث حدیث حضرت عائشه رضي الله عنها په مسلم کې روایت څخه استدلال کړی دی چې دې کې د قعده اولی او ثانیه قید نشته، بلکې دا مذکور دي، چې د حضور صلی الله علیه وسلم معمول دا وو مونځ کې چې ښی خپه ولاړه او ګسه خپه به یې خوره وه، یاد ساتئ دا اختلاف د افضل دی د جواز او عدم جواز نه دی. دواړه طریقې جائز دي، البته احنافو افتراش له ځکه ترجیح ورکړې ده، چې دې کې مشقت وي او عبادت هغه افضل دی چې هغې کې مشقت وي. **کان افضل الاعمال احمزها ای اشدها** او احنافو د تورک والا احادیث حالت ضعف باندې حمل کړي دي. (اشعة اللمعات ۳۸۱).

**په قعده کې دشیطان په شان نه کیني**: **عقبة الشیطان**: دویم حدیث کې **(اقعاء الکلب)** لفظ راغلی دی، د دواړو مطلب یو دی، عقبة الشیطان او اقعاء الکلب یو صورت دا دی چې انسان خپلې خپې او او زنګونان ودروي او کوناټو باندې کیني او دواړه لاسونه په ځمکه باندې کیدي لکه څنګه چې سپې کیني په مونځ کې داسې ناسته د ټولو فقهاو په نزد باندې مکروه ده، که سړی معذوره وي هغه ځانته خبره ده. علامه طیبي رحمه الله فرمایي چې د اقعاء صورت دا دی چې یو سړی د خپلو خپو په پوندو باندې مقعد کیدي او کیني. د لغت په اعتبار سره د عقبه دا صورت ډېر واضح دی، ځکه چې (عقب) بښنګرې (ګیټې) ته ویلي شي. (اشعة اللمعات ۳۸۱، الکاشف ۲/۳۳۹)

**یفترش الرجل**: یعنې سړي ته د مونځ په دوران کې په حالت سجده کې دواړه لاسونه داسې خورول منع دي لکه څنګه چې درنده کیني او دغه وخت کې خپل مخې ته دواړه لاسونه په ځمکه خواره کړي، دې سره سړی ناراسته کېږي او مونځ کې غفلت پیدا کېږي.

**رجل:** يعني لفظ د سري ويلو سره دې طرف ته اشاره ده چې ښځې ته د سجدې په حالت کې لاس سره د ټولو اعضاو له راغونډول او ځمکې سره يو شان کول په کار دي، ځکه چې دا د دې د ستر سره مناسب دي.

**بالتسليم:** يعني سلام به يې اړولو او مونځ به يې د السلام عليکم په الفاظو سره ختمولو، دا مسئله (توضيحات جلد اول، ص ۵۰٦) باندې ليکلې ده هلته يې وګورئ. دې حديث کې د وه الفاظ د لغت په اعتبار سره د حل کولو دي. يو لفظ **لم يشخص** دا د **نصر ينصر** څخه او چتيدو او کږه کولو په معنی کې دی او دلته د باب افعال نه د سر او چتيدو او آسمان طرف ته د او چتيدو په معنی کې دی، مطلب دا دی، چې په رکوع کې حضور ﷺ د اسې اعتدال کړی دی، چې د حضور ﷺ سر، ملا او ولې به يې برابر وو، د دېنه به حضور ﷺ سر مبارک نه او چتولو.

**ولم يصوبه:** دا صيغه د باب **تفعيل** ده د تصويب نه سر ښکته کول او لاندې وړلو په معنی دی، مطلب دا شو چې نبي عليه الصلاة والسلام به په حالت د رکوع کې سر داسې اعتدال سره کينولو چې د حضور ﷺ سر او ملا به يې برابر وو، دې نه به حضور ﷺ سر ښکته نه وړلو، هر مسلمان مونځ ګزار ته په کار دي، چې دې د حديث په تعليم باندې غور کولو سره عمل وکړي.
فقهاء کرام ليکي: په رکوع کې سر او ملا داسې نيغه ساتئ که د اوبو نه ډک جام په ملا باندې کيښودئ چې د اوبو نه يوه قطره هم پرې نه وځي. (المرقات ۲/۴۹۹).

## تکبير اولی کې لاسونه د کوم ځای پورې اوچتول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي حميد السَّاعِدِيّ قَالَ: فِيْ نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه متعلق روايت شوې چې د نبي عليه السلام د صحابو په يو جماعت کې وويل چې |
| أَنَا أَحْفَظُكُمْ لِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَأَيْتُهُ إِذَا كَبَّرَ |
| ما ته ښه ياده ده د نبي عليه السلام د مونځ طريقه، ما نبي عليه الصلاة والسلام ليدلی چې کله به يې تکبير کولو نو |
| جَعَلَ يَدَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ وَ إِذَا رَكَعَ أَمْكَنَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ |
| خپل دواړه لاسونه به يې د اوګو پورې وړل او چې رکوع ته به تللو نو دواړه ځنګونان به يې په لاسونو مضبوط |
| ثُمَّ هَصَرَ ظَهْرَهُ فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ اسْتَوَى حَتَّى يَعُوْدَ كُلُّ فَقَارٍ |
| نيول او خپله ملا به يې ښکته کوله او خپل سر به يې اوچتولو نو نيغ به او دريدو تر دې چې ټول جوړونه به |
| مَكَانَهُ فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا |
| يې برابر شو او چې سجدې ته به تللو نو دواړه لاسونه به يې په ځمکه کينبودل نه به يې خورول او نه به يې |

| |
|---|
| قَابِضِهِمَا وَ اسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ |
| راغوندول او دخپو ګوتې به يې قبلې طرف ته مخامخ کولې او دوو رکعتونو پوره کولو نه پس به کيناستو |
| جَلَسَ عَلٰی رجله الْيُسْرَى وَ نصب الْيُمْنٰى وَ إِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ قَدَّمَ |
| نو په ګسه خپه باندې به کيناستو او ښۍ خپه به يې نيغه ساتله او چې آخري رکعت به يې وکړونو مخکې |
| رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَ نَصَبَ الْأُخْرَى وَ قَعَدَ عَلٰی مَقْعَدَتِهِ [1]. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ). |
| به يې راوويستله ګسه خپه او ښۍ خپه به يې سيده اودروله او په کوناټو باندې به کيناستو. |

**توضيح: انا احفظكم**: حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه چونکه د اکابرو صحابو نه وو او قديم الاسلام هم دی او احاديثو بيان کولو کې مکثرينو صحابو څخه دی، ځکه يې کم عمر او کم صحبت والا صحابو ته وفرمايل چې زه د نبي عليه السلام مونځ د ټولو نه ډير محفوظ کونکی يم د دوئ مبارک تعلق د خدره قبيلې سره دی او انصارو د مدينې څخه دی، د اکثرو صحابو او تابعينو استاد دی (سنـ۷۴هـ) د څلوراتيا (۸۴) کالو په عمر کې وفات شوی دی او جنت البقيع کې دفن دی. (المرقات ۲/۵۰۱، اشعة اللمعات ۳۸۲).

**حذاء منكبيه**: يعنې تکبير تحريمې کې حضور صلی الله عليه وسلم خپل دواړه لاسونه د خپلو وُلو (کندهو) پورې اوچتول، يو څو احاديثو کې دغه شان الفاظ دي، مثلاً "**حذو منكبيه**" "**حيال منكبيه**" په دې کې د ولو پورې د لاسونو اوچتولو ذکر دی، بعضې احاديثو کې د غوږونو برابر لاسونه اوچتولو ذکر دی مثلاً مسند احمد، دارقطني روايت کې "**حتى تكون ابهاماه حذاء اذنيه**" الفاظ راغلي، بعضې رواياتو کې "**الى همحاذى اذنيه**" الفاظ راغلي دي، دې کې د غوږونو پوس والي پورې لاسونو وچتيدو اشاره ملاويږي او بعضې رواياتو کې "**الى فروع اذنيه**" الفاظ راغلي، دې کې د غوږونو بره حصې پورې لاسونو وچتيدو اشاره ملاويږي، ددې درې قسمه رواياتو په بنياد د فقهاء کرامو معمولي شان اختلاف دی، چې لاسونه کوم ځای پورې وچت کړی شي. د شوافعو او مالکيو حضراتو په نزد باندې د ولو پورې لاسونه اوچتولو معمول دی او د دوئ په نزد باندې افضل دی. امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد باندې درې اقوال دي، ولو پورې، غوږونو پورې او اختيار او مشهور اول قول دی. او غير مقلدين د سينې اوچتوالي پورې په لاس اوچتولو قائل دي. (المرقات ۲/۵۰۱).

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۰۵، رقم الحديث: ۸۲۸.

ائمه احناف د غوږونو د پوس والي پورې لاسونو وچتيدو ته افضل وايي دا مسلک ډير ښه دی. يعني د غوږونو دپوس والي پورې لاسونو وچتيدو سره سينې او د ولو پورې لاسونو ورلو باندې هم عمل راځي او دې نه علاوه په محدود مسلک باندې عمل راځي دا اختلاف دعدم جوازنه دی بلکې دا افضل دی.

شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې ليکلي ، دا هم ممکن دی په مختلفو وختونو کې په مختلفو حالاتو کې د لاندې دغه ټولو طريقو باندې عمل کولی شي(اشعة اللمعات ۳۸۲)

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په دې ټولو احاديثو باندې عمل کولو دپاره يو توجيه ښودلې ده، هغه وايي د تکبير تحريمې په وخت کې د لاسونو تلي د ولو مخامخ ګوتې د غوږونو مخامخ وي او دګوتو سرونه د غوږونو د بره حصې سره برابر وي، دې وجې نه ټولو احاديثو باندې عمل راځي او احاديثو کې تطبيق هم راغی.

**امکن يديه:** يعني د رکوع په حالت کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مضبوطۍ سره په دواړو لاسونو باندې ځنګونان نيولي وو ، دغه حالت کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګوتې مبارکې کولاو وې، سجده کې به نبي عَلَيْهِ السَّلَام ګوتې يو ځای کړې او په ځمکه باندې به يې مضبوطۍ سره ولږولې. علماء وايي د رکوع په حالت کې ګوتې کولاو ساتئ او د سجدې په حالت کې ګوتې مضبوطۍ سره په ځمکه باندې يو ځای کوئ، د تکبير تحريمې او قعدې په صورت کې په خپل طبعي حالت باندې پريږدئ.

**هصر ظهره:** يعني ملا دومره ښکته کوئ چې سر او د بدن وروسته حصې سره برابر وي. (هصر) باب ضرب ځخه راښکل، ښکته کول نزدې کول او ماتولو په معنی کې راځي، دلته د ښکته کيدو په معنی دی. څنګه چې امرؤ القيس وايي:

**هصرت بغودي راسها فتمايلت ❁ على هضيم الكشح ريا المخلخل**

**غير مفترش:** يعني ستاسو لاسونه په ځمکه باندې ايخودی شوي وو ، خو څنګلې به د ځمکې ځخه جدا وې. د افتراش سبع په شان نه دی.

**ولا قابضهما:** يعني څنګلې اوپتون به يې د خيټې نه لرې ساتلوتلي اوګوتې به يې په ځمکه باندې مضبوطۍ سره کيښودې،ليکن پتون او څنګلې به يې د خيټې او ځمکې نه دومره لرې ساتلې که د چيلۍ بچی د دوی د سينې لاندې تيريدل وغواړي نو تيريدی شي، د قابض دا مطلب هم کيدی شي، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په ځمکه باندې ګوتې خورولې راغوندولې به يې نه.

## د سمع الله لمن حمده مطلب

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا |
| دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به او چتول دواړه لاسونه د ولو پورې چې کله به يې |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| افْتَتَحَ | الصَّلَاةَ | وَ | إِذَا | كَبَّرَ | لِلرُّكُوعِ | وَ | إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ | مِنَ الرُّكُوعِ |

مونځ شروع کولو او چې کله به یې تکبیر ویلو د رکوع د پاره، او چې کله به یې پورته کولو سر د رکوع نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَفَعَهُمَا | كَذَٰلِكَ | وَ | قَالَ | : | سَمِعَ | اللّٰهُ لِمَنْ |

نو هم دواړه لاسونه به یې اوچتول همدا رنګې، او ویل به یې الله د هغه چا تعریف قبول کړو چا چې د هغه

حَمِدَهُ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَ كَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ.(۱)

حمد بیان کړو، ای زمونږ ربه! ستا د پاره تعریف دی، او نبي عَلَیْهِ السَّلَام به نه کول دا رنګې په سجدو کې.

**توضیح: سمع الله لمن حمده:** دلته د **سمع** معنی قبول کولو ده، یعنې الله تعالی د دغه کس حمد قبول کړو چا چې دده حمد وکړو. **لمن:** کې لام د نفع د پاره دی، یعنې الله تعالی د حمد کونکي د فائدې دپاره دهغه حمد قبول کړو. **حمده:** کې هٔ ساکنه ده چې د سکتې او د استراحت دپاره ده. (اشعة اللمعات ۳۸۳)

**ربنالک الحمد:** دا الفاظ احادیثو کې درې قسمه راغلي دي. **ربنالک الحمد، ربنا و لک الحمد، اللهم ربنا و لک الحمد.** ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي آخري دوه جملې د اولنۍ جملې څخه افضل دي، د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ د دور څخه او وروسته د علماو په معمول کې دا دعا داسې ده: **ربنا و لک الحمد حمدا کثیر طیبا مبارکا فیه.**

**په تحمید او تسمیع کې تقسیم:** زیر نظر حدیث کې امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي امام به تحمید او تسمیع دواړه وایي، ځکه چې د حدیث نه دا طریقه معلومیږي، د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا مسلک دی، امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي د تقسیم په طور باندې **سمع الله لمن حمده** به امام وایي او **ربنالک الحمد** دې مقتدیان وایي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ دې حدیث نه استدلال کړی دی، ابن ماجه څخه علاوه د سننو په ټولو کتابونو کې مذکور دي، الفاظ دا دي، **عن ابي هريرة قال قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنالک الحمد.** (اشعة اللمعات ۳۸۳)

د استدلال طریقه داسې ده چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امام او ماموم په منځ کې دا کلمات تقسیم کړي

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۱۸، رقم الحديث: ۷۳۵، ومسلم في الصحيح ۱/۲۹۲ رقم الحديث: ۲۲-۳۹۰، وأبو داود ۱/۱۶۳ رقم الحديث: ۷۲۲، والنسائي ۲/۱۲۲، رقم الحديث: ۸۷۸.

دي او تقسيم د شركت منافي دى، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ زير بحث حديث په حالت د امامت باندې نه محمول كوي، بلكې وايي چې دا د منفرد مونځ طريقه ده او منفرد به دواړه جملې وايي.

**في السجود:** يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدې ته تلو وخت كې او واپس كيدو وخت كې رفع اليدين نه كول، شوافع حضرات اگر چې د رفع اليدينو قائل دي، خو هغوئ صرف ركوع ته تلو په وخت او واپس كيدو په وخت كې رفع اليدين كوي او تكبير تحريمې په وخت كې كوي، دې ځخه علاوه د رفع اليدينو قائل نه دي. د سجدې په وخت كې اگر چې رفع اليدين د احاديثو ځخه ثابت دي، خو شوافع دا منسوخ گڼي، په احاديثو كې د دغې واضح طور باندې تذكره موجود ده. او احناف د ركوع په وخت كې رفع اليدين منسوخ گڼي د رفع اليدينو مسئله مخكې راتلونكې ده.

۲ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ

## په مونځ كې د رفع اليدين مسئله:

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ : أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ |
| د نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې : ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به چې كله مونځ شروع كولو نو تكبير به يې ويلو |
| وَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ إِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ إِذَا |
| او خپل دواړه لاسونه به يې اوچتول او چې كله به ركوع ته تللو نو دواړه لاسونه به يې اوچتول او چې كله |
| قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ |
| به يې سمع الله لمن حمده وويل نو دواړه لاسونه به يې اوچتول، او چې كله به پاڅيدو د دوه ركعتو نه نو |
| رَفَعَ يَدَيْهِ وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1]. |
| دواړه لاسونه به يې اوچتول، او رسوي دا حديث ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته. |

**توضيح: واذا ركع رفع يديه:** دې نه مخكې حديث نمبر(۴) او زير بحث حديث نمبر(۵) او راتلونكې احاديثو كې د ركوع حالت كې رفع اليدين كولو مسئله بيان شوې ده. اصل بحث ته تللو نه مخكې يو ځو خبرې ضروري دي: **اوله مسئله:** رومبى مسئله د رفع اليدين حكم او د دې شرعي حيثيت دى نو پيژندل په كار دي چې يو د تكبير تحريمې په وخت كې د لاسونو اوچتولو حكم دى. نو د جمهورو په نزد باندې دا سنت دي دې كې خاص اختلاف نشته، د بعضې اهل ظواهرو او داؤد ظاهري په نزد باندې دا فرض دي،

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۲۲، رقم الحديث ۷۳۹.

اهل روافضو زیدیه فرقې هم اختلاف کړی دی، تکبیر تحریمې نه علاوه مقاماتو کې د رفع الیدینو حکم افضل او غیر افضل حیثیت لري یا دیرنه دیر د سنت اختلاف دی.

**دوهمه مسئله**: دویمه مسئله دا ده چې د رفع الیدین ثبوت په مونځ کې کوم کوم ځای کې دی، لکه څنګه چې مخکې تیر شو چې تکبیر تحریمي کې رفع الیدین د ټولو په نزد باندې سنت دي دې کې څه خاص اختلاف نشته، د تکبیر تحریمي نه علاوه شپږ ځایونو کې داسې دي چې هغې کې د رفع الیدینو ثبوت په احادیثو کې ملاویږي هغه مقامات دا دي: (۱) **رفع الیدین عند الرکوع** (۲) **رفع الیدین عند الرجوع عن الرکوع** (۳) **رفع الیدین عند الذهاب الی السجدة** (۴) **عند الرجوع عن السجدة کما في النسائي** (۵) **رفع الیدین عند القیام الی الرکعة الثالثة کما في ابي داؤد ص ۱۰۲** (۶) **رفع الیدین في کل تکبیرة عند الرفع والخفض کما في مسند احمد**. دې شپږو مقاماتو کې صرف دوه ځایونه داسې دي چې د رفع الیدین او عدم رفع الیدین کې اختلاف دی هغه رکوع ته د تلو په وخت او واپس کیدو په وخت کې دې نه علاوه څلور ځایونه په هغې کې رفع الیدین د ټولو ائمه په نزد منسوخ شوي دي لهذا د رفع الیدین نوم کله چې هم راشي نو د هغې نه مراد دغه دوه مقامات دي.

**دریمه مسئله**: دریمه مسئله دلته دا ده چې رفع الیدینو کې لاس کوم ځای پورې او چتول په کار دي دا مسئله حدیث نه مخکې حدیث نمبر (۳) تشریح کې په تفصیل سره تیره شوې ده هلته یې اوګورئ.

**په رفع الیدینو کې د فقهاو اختلاف او ددې پس منظر**: بهر حال دا مسئله د دور صحابو نه مختلف فیها راروانه ده د تابعینو په دور کې هم په دې کې اختلاف وو، څوک رفع کونکي وو او څوک د ترک رفع قائل وو داسې ښار نه وو چې په هغه کې دواړو طرف والا خلک نه وو، خو په دنیا کې کوفه واحد داسې ځای وو چې هغې کې رفع الیدینو والا هیڅوک هم نه وو، ټول د رفع الیدینو د ترک قائل وو د هغې وجه دا ده چې کوفه د اکابرو صحابو د تعلیم مرکز وو او هلته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه معلم عام وو دهغه د تعلیم دا آثر وو دهغه نه پس دهغه د شاګردانو او د امام ابوحنیفه رحمه الله د تعلیم دا آثر وو غرض دا چې د رفع الیدینو مسئلې په شروع کې طرفینو کې سخت والی نه وو وروسته سخت والی راغی اهل مکو د ابن زبیر رضي الله عنه د تعلیم د وجې نه رفع الیدین شروع کړل او بیا حضرت امام شافعي رحمه الله دا مسئله دیره په سختۍ سره خپله کړه، دې نه پس خلکو په دې باندې تحقیقي کتابونه ولیکل ټولو نه مخکې امام بخاري رحمه الله جزء رفع الیدین کتاب ولیکو امام بیهقي، علامه ابن عبد البر او حافظ ابن قیم رحمه الله دې باندې کتابونه ولیکل د امام بخاري رحمه الله کتاب په جواب کې محمد بن عمرو مروزي رحمه الله رفع الیدینو باندې یو تحقیقي کتاب ولیکو. علامه زاهد کوثري رحمه الله لیکلي چې رفع الیدینو باندې بهترین او مفید کتاب او د ټولو نه مدلل کتاب د شاه انور شاه کشمیري رحمه الله (**نیل الفرقدین في رفع**

**الیدین او بسط الیدین لنیل الفرقدین**) دی. امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د رفع الیدینو ثبوت باندې په خپل کتاب کې (۱۳) احادیثو استخراج کړی دی، علامه ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللهُ (۲۳) احادیثو استخراج کړی دی، امام بیهقي رَحِمَهُ اللهُ د (۳۰) احادیثو ذکر کړي دي، حافظ عراقي رَحِمَهُ اللهُ رفع الیدینو ثبوت کې (۵۰) احادیث راوړي دي. ذې وجې نه امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ آخر وویل چې رفع الیدین مسئله کې عدم رفع الیدین والا سره چرته هم صحیح روایت نشته. حضرت انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ ددې دعوې متعلق فرمایي د روایاتو د تحقیق نه پس دا خبره صفا واضحه شوه چې نه دا دعوې صحیح ده او نه هغه کثیر روایات کوم چې قائلین د رفع الیدینو نقل کړي دي د هغوی دعوې لره ثابتوي. دوي چې کوم ډیر روایات نقل کړي دي هغې کې د بعضو تعلق د **رفع الیدین عند السجدة** دی او بعضې **عند القیام الی الرکعة الثالثة** سره دی بعضې **عند السلام** وغیره سره دی بعضې **عند الرکوع** سره او بعضې ناقابل استدلال دي شاه صاحب رَحِمَهُ اللهُ وایي د رفع الیدینو په سلسله کې درې قسمه روایات دي: (۱) اول هغه روایات دي چې ناطق برفع الیدین دي. (۲) دویم هغه روایات دي چې ناطق بعدم رفع الیدین دي. (۳) دریم هغه روایات دي چې ساکت عنها دي، یعنې رفع الیدین او عدم رفع الیدین باندې ناطق روایات دواړو طرف نه تقریباً برابر دي او کوم روایات ساکت عنها دي دا چې کوم طرف سره ولګي، نو د هغوئ تله درنه وي: که احناف خپل طرف نه ساکت عنها روایات تلې کې شمار کړي چې عدم رفع الیدینو باندې دال دي، ځکه چې مقام تعلیم کې د سائل سوال په جواب کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذکر نه وو کړی. دا دې طرف ته ښکاره اشاره ده چې خاموش روایات د ترک رفع الیدین دلائل دي. دې اعتبار سره د ترک رفع الیدین روایات ډیرېږي، نو دا دعوای صحیح نه ده چې دغه طرف سره صحیح روایات نشته.

د رفع الیدین او عدم رفع الیدین مسئله کې دا خبره هم یاد ساتئ چې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په غزه کې پیدا شوی وو، بیا یې مکې ته هجرت وکړو، نو دوي د اهل مکې په طرز عمل باندې عمل وکړو او هلته حضرت ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تعلیم د وجې نه رفع الیدین کیدل د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ عام دستور دا وو چې دوي به د اهل مدینې تعامل په ټولو مسائلو کې مخې ته کینبودو. د مدینې والا هم د ترک رفع الیدین قائل وو، نو دوي هم دا واخیستو. او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ عادت او فقهي مزاج دا وو چې دوي به د حدیث په ظاهر باندې عمل کولو دا وجه ده چې د کثرت روایاتو د وجې نه د دوي اقوال به ډیر وو. د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ فقهي مزاج دا وو چې دوی همیشه د شریعت مطهره د قواعد کلیه لحاظ کړی دی د کلیاتو د حفاظت د پاره یې په جزئیاتو کې تاویل کړی دی، خو کلیات یې برقرار ساتلي دي دا وجه ده که مسلک د احنافو ته څومره سطحې نظر باندې او ګوری، نو جزئیات به ددې منافي نظر باندې راځي \

او ځو مره ژور نظر باندې چې او ګورئ، نو دا مسئله په ټولو احاديثو باندې پوره منطبق په نظر راځي.

**د امام ترمذي رحمه الله راى:** امام ترمذي په سنن ترمذي کې د رفع اليدينو د پاره باب تړلى دى، د دواړو قسمه احاديثو استخراج يې کړى دى او دواړو باندې يې تبصره هم فرمايلې ده او خپل اظهار يې هم کړى دى، چنانچه د رفع اليدينو په ثبوت باندې يې تبصره کړې ده هغه فرمايي: (**و بهذا يقول بعض اهل العلم**) يعني په رفع اليدين باندې عمل کولو والا او رفع اليدين رائې ساتلو والا يو څو علماء دي او چې کله رفع اليدين او ترک رفع اليدين والا حديث باندې تبصره کولو وخت کې د خپلې رائې اظهار فرمايي، نو وايي: (**و به يقول غير واحد من اهل العلم. ص،۵۹**) يعني ترک رفع اليدين قول د ډو مره علماوو رائې ده چې په شمار کې راوستل مشکل دي.

**د شيخ عبدالحق رحمه الله راى:** دوي فرمايي دې مسئله کې جانبينو کې احاديث موجود دي اګر چې رفع اليدينو احاديث ډير دي خو دويم طرف ته هم احاديث موجود دي او دا يو اوږد بحث دى دا تعارض دا سې لرې کولى شي يا خو په احاديثو کې به د تطبيق قول کولى شي چې حضور صلى الله عليه وسلم کله رفع اليدين کړي او کله يې نه دي کړي. چې په کوم هم عمل کولى شئ نو ويې کړئ دواړه جائز دي، صحابو رضي الله عنهم چې حضور صلى الله عليه وسلم په کوم حالت کې ليدلى دى، نو نقل کړي دي.

(۲) يا يو منسوخ ګڼلى شي يعني رفع اليدين شروع کې وو بيا منسوخ شو حالانکې لوى لوى صحابه رضي الله عنهم مثلاً عمر رضي الله عنه او علي رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه رفع اليدين نه کول دا د دې حکم منسوخ کيدو دليل دى. (۳) او که فرض کړى که دواړه وي بيا به عدم رفع اليدين ته ترجيح وي، ځکه چې عدم رفع اليدين کې د حرکت په نسبت سره سکون دى چې د مونځ حالت کې ډير مناسب دى، ځکه چې د مونځ متعلق قرآن کريم کې فرمايي: ﴿**قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ**﴾ (**بقرة آيت: ۲۳۷**) اى ساكتين.

او حديث کې دا الفاظ راغلي دي: (**اسكنوا في الصلوة**) يعني خاموشئ سره مونځ کوئ.

بهر حال د جانبينو مسلکي تحقيق به ستاسو مخې ته راشي. راځئ چې وې ګورو:

**۳ ربيع الثاني ۱۴۱۰هـ**

**دلائل:** د رفع اليدينو مثبتينو او غير مثبتينو دلائل ذکر کولو نه مخکې يو ځلې بيا د دوي مذاهبو باندې نظر اچوو. امام شافعي رحمه الله او د امام احمد بن حنبل رحمه الله او يو قول د امام مالک رحمه الله دې طرف ته تلى دى چې عند الرکوع رفع اليدين څنګه چې شروع کې سنت عمل وو اوس هم سنت عمل دى. امام ابو حنيفه، سفيان ثوري، ابراهيم نخعي رحمهم الله او د مشهور مختار قول مطابق د امام مالک رحمه الله په نزد باندې عند الرکوع رفع اليدين نشته، لکه مخکې رفع اليدين وو وروسته کې بيا منسوخ

ګڼلي شو، دغه رنګ عند الرکوع هم یا منسوخ شو یا موقوف دي. لهذا عدم رفع راجح ده. احناف وایي د نسخ ددې احتمال د وجې نه رفع الیدین په ځای عدم رفع افضل او اولی ده، ځکه چې رفع الیدینو کې خطره ده چې منسوخ حکم باندې عمل او نه شي او منسوخ حکم باندې عمل کول حرام دي د سنت فضیلت حاصلولو کې په ناجائزو کې د پرېوتو احتمال راغی، ځکه اولی او افضل ترک رفع الیدین وګرځولی شو، حالانکې د احادیثو انبار دواړو طرف ته دی.

**د شوافعو او حنابلو دلائل:** (۱) شوافع او حنابله زیر بحث حضرت نافع او ابن عمر رضي الله عنهما روایت نه استدلال کړی دی. (۲) دې حضراتو دې نه مخکې حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت نمبر (۴) نه استدلال کړی دی. (۳) شوافع او حنابله زیر بحث حدیث نه پس حضرت مالک بن حویرث رضي الله عنه روایت نه هم استدلال کړی دی. (۴) د رفع الیدین قائل خلکو حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه حدیث نمبر (۸) نه هم استدلال کړی دی. (۵) مثبتینو د رفع الیدینو حضرت ابو حمید ساعدي رحمه الله او بل حدیث نمبر (۱۲) نه هم استدلال کړی دی. مشکوة ص۷٦ باندې دي چې دې ټولو احادیثو کې **عند الرکوع او عند الرفع عن الرکوع** په وخت کې د رفع الیدینو تصریح موجوده ده او دا په مطلوب باندې واضح دلائل دي.

**د احنافو او مالکیو دلائل:** په رفع الیدینو کې احناف او مالکیو دلائل ډیر زیات دي، د مالکیه حضراتو مسلک اګر چې احنافو په شان دی او مشهور هم دا دی، خو ددې دلائلو احناف ډیره تذکره کوي، ځکه خو د احنافو نوم اخیستلی کېږي، چونکې رفع الیدینو باندې د احنافو دلائل مندرجه ذیل دي:

**(۱) (عن علقمة قال قال لنا ابن مسعود الا اصلی بکم صلوة رسول الله فصلی ولم یرفع یدیه الا مرة واحدة مع تکبیرة الافتتاح) (ابوداود، ترمذي، مشکوة ص۷۷)**

**(۲) (وعن البراء ابن عازب قال کان النبي صلی الله علیه وسلم اذا کبر لافتتاح الصلوة رفع یدیه حتی یکون ابهاماه قریباً عن شحمتی اذلیه ثم لا یعود) (طحاوي ص۱۵۴)**

برنې احادیث امام ترمذي فی الباب عن البراء بن عازب په عنوان کې ذکر کړي دي.

**(۳) وعن ابن عمر مرفوعا ان النبي صلی الله علیه وسلم کان یرفع یدیه اذا افتتح الصلوة ثم لا یعود. (رواه البیهقي فی الخلافیات باسناد صحیح کذا في معارف السنن)**

**(٤) وعن ابن عباس رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم قال لا یرفع الایدی الا في سبع مواطن: (۱) في افتتاح الصلوة (۲) واستقبال القبلة (۳) وعلی الصفا (٤) والمروة (٥) والعرفات (٦) وبجمع (۷) وعند الجمرة (طبراني والبخاري فی جزء رفع الیدین) بحواله تنظیم الاشتات)**

(۵) (وعن ابن مسعود عن النبي صلى الله عليه وسلم انه كان يرفع يديه في اول تكبيرة ثم لا يعود) (طحاوي، ص۱۵٤ و كذا في الترمذي والنسائي)

(٦) و عن جابر بن سمرة قال خرج علينا رسول الله فقال مالي اراكم رافعي أيديكم كانها اذناب خيل شمس اسكنوا في الصلوة. (مسلم)

د مسلم په دې روايت باندې مخالفين خفه کېږي د دې حديث تعلق سلام په وخت کې رفع يدين دي دې نه نبي عليه السلام منع فرمايلې ده، استدلال کولو والا وايي: حديث مبارک کې چې اسکنوا في الصلوة کوم الفاظو ارشاد فرمايي مونږ دې نه استدلال کوو چې مونځ کې سکون او کم نه کم حرکات مطلوب دي چې قرآن کريم کې اشاره ده ﴿قُومُواْ لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ (بقرة آيت:۲۳۸) اى ساکنين ساکتين عابدين.

(۷) عن عباد بن الزبير ان النبي صلى الله عليه وسلم اذا افتتح الصلوة رفع يديه في اول الصلوة ثم لم يرفعها في شئ حتى يفرغ. (رواه البيهقي في الخلافيات)

(۸) و عن مجاهد قال صليت خلف ابن عمر فلم يكن يرفع يديه الا في التكبيرة الاولى من الصلوة) (مصنف ابن ابي شيبة، بيهقي، طحاوي)

(۹) رُوي عن ابن عباس قال كان النبي صلى الله عليه وسلم يرفع يديه كلما ركع و كلما رفع ثم صار الى افتتاح الصلوة وترک ما سوا ذلک. (كذا في التعليق الصبيح بحواله تنظيم الاشتات)

(۱۰) عن الاسود قال رايت عمر بن الخطاب يرفع يديه في اول تكبيرة ثم لا يعود. (مصنف ابن ابي شيبة طحاوي)

قال و رائيت ابراهيم النخعي والشعبي يفعلان كذلک. (مصنف ابن ابي شيبة و طحاوي ص ۱۵٦)

(۱۱) عن عاصم بن كليب عن ابيه ان علياً رضي الله عنه كان يرفع يديه في اول تكبيرة من الصلوة ثم لا يرفع بعد. (رواه الطحاوي باسنادين جيدين ص ۱۵۴)

(۱۲) ورای عبدالله بن الزبير رجلا يرفع يديه من الركوع فقال "مه" كان هذا شئ فعله النبي صلى الله عليه وسلم ثم تركه. (كذا في التعليق الصبيح بحواله تنظيم الاشتات)

(۱۳) و عن المغيرة بن شعبة قال قلت لابراهيم حديث وائل رضي الله عنه انه رأى النبي صلى الله عليه وسلم

**يرفع يديه اذا افتتح الصلوة واذا ركع و اذا رفع راسه من الركوع فقال ان كان وائل رضي الله عنه راه مرة يفعل فقد راه عبدالله خمسين مرة لا يفعل ذلک. (طحاوي ص ۱۵۴)**

**و في البدائع رُوي عن ابن عباس رضي الله عنه انه قال العشرة الذين شهدلهم النبي صلى الله عليه وسلم بالجنة ماكانوا يرفعون ايديهم الا في افتتاح الصلوة. (كما في العيني. ج۳. ص۷)**

دټولو احادیثو مرفوعو اوآثار منقولو نه دا خبره واضحه شوه چې درفع الیدینو په مسئله کې دواړو طرف ته داحادیثو ذخیره موجود ده، یاخو دواړه جانب احادیثو کې تطبیق صورت پیدا کول په کار دي کوم عمل کوم ځای کې رائج دی هغې باندې هلته عمل کول په کار دي او جائزدواړه ګڼل په کار دي.

ابن حزم په خپل مایه ناز تصنیف (المحلي ج۳ ص ۲۳۵) کې لیکلي چې کله د جانبینو نه د احادیثو صحت معلوم شو، نو اوس دواړه عمله مباح دي یو عمل هم فرض نه دی، پس مونږ ته داسې او په دې نیت مونځ کول په کار دي که مونږ رفع الیدین وکړو ، نو مونږ داسې مونځ وکړو ، څنګه چې حضور صلى الله عليه وسلم کړی دی او که مونږ رفع الیدین ونه کړه، نو بیا هم مونږ د حضور صلى الله عليه وسلم په طریقه مونځ وکړو. د ابن حزم عربي الفاظ دا دي: **فلما صح انه عليه السلام كان يرفع في كل حفض و رفع بعد تكبيرة الاحرام و(كان)لا يرفع (ايضا)كان كل ذلک مباحا لا فرضا وكان لنا ان نصلي كذلک فان رفعنا صلينا كما كان رسول الله يصلي و ان لم نرفع صلينا كما كان رسول الله يصلي(المحلى ج۳ ص۲۳۵)**

که د تطبیق صورت چاته خوښ نه وي، نو بیا د رفع الیدینو احادیث منسوخ یا موقوف ګرځول په کار دي یا د عدم رفع الیدینو احادیث راجح ګرځول په کار دي، لکه څنګه چې په دې بحث کې د شیخ عبدالحق رائې ددې بحث لاندې لیکلی شوې ده (اشعة اللمعات ۳۸۳).

**٤ ربيع الثاني ١٤١٠هـ**

**سوالات او جوابات**: (۱) **سوال**: مندرجه ذیل روایاتو باندې مخالفینو څه نا څه اعتراض کړی دی تاسو ددې قسم روایاتو نه څنګه استدلال کوئ؟

**جواب**: که د مخالفینو ټول اعتراضات وکتلی شي، نو اصولي طور باندې ددې اعتراض خلاصه دا ده چې په دې روایاتو کې یا ارسال دی یا غرابت او تفرد دی یا په دې کې ادراج دی.

**واضح جواب** دا دی دا روایات ډیرو طریقو سره وارد دي، نو د تعدد طرف سره تفرد او غرابت او ادراج ختمیږي باقي پاتې شو بعضې روایاتو مرسل کیدل، نو غرض دا دی د جمهورو په نزد ارسال معتبر دی مونږ جمهور سره یو و او هغوي زمونږ سره دي.

**سوال**: مثبتين د رفع اليدينو حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حديث نمبر (۲۰) باندې اعتراض کړی دی چنانچه سنن ترمذي کې امام ترمذي حضرت عبد الله ابن مبارک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حواله سره او ويل او فرمايي د ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حديث ثابت دی کوم چې د رفع اليدينو متعلق دی، خو د ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت ثابت نه دی دې کې عدم رفع اليدين ذکر دی. (ترمذي، ص ۵۹)

صاحب مشکوة د ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دغه روايت د اصل مبحث نه لرې فصل ثالث (ص ۷۷) کې ذکر کړی دی او بيا دې باندې د امام ابوداؤد په حوالې سره يې اعتراض کړی دی. **(و قال ابوداؤد ليس هو بصحيح على هذا المعنى)**

**جواب**: ددې سوال اولنی جواب دا دی چې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت چې کومو واسطو سره امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ ته رسيدلی هلته د دې طويلې سلسلې سند نه وو، صرف يو يا دوه واسطې وې، اوس د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ نه پس مونږ پورې د طويل سند د وجې نه که روايت کې ضعف راشي دې نه د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ مستدل ته څوک نقصان نه شي رسولی. يوه قاعده او ضابطه درجې لرې دا جواب چې هر ځای جاري وي. د امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰهُ دويم جواب دا دی چې د رفع اليدينو متعلق حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه دوه روايات منقول دي، يو مرفوع قولي دی او دويم مرفوع فعلي دی يعنې ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل فعل او نبودو حديث ته يې مرفوع وويله يا خپل قول ويلو سره حديث ته يې مرفوع وويله. حضرت عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُ اللّٰهُ مرفوع قولي باندې رد کوي چې دا ثابت نه دی، نو مرفوع فعلي ته هغوئ غير ثابت څنګه وايي هغه په خپله د مرفوع فعلي راوي دی، لکه نسائی (ص، ۱۲۸) کې واضح طور باندې موجود دی. خامخا ابن مبارک رَحِمَهُ اللّٰهُ مرفوع قولي نه انکار کوي او ددې احناف هم قائل دي حالانکه احناف مرفوع فعلي ثابت ګڼي او ددې نه استدلال کوي او د مرفوع قولي نه احناف استدلال نه کوي ددې الفاظ دادي: **(ان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم يرفع يديه الا في اول مرة)** (ترمذي)

د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د روايت مدار عاصم بن کليب رَحِمَهُ اللّٰهُ باندې دی او د مسلم راويانو نه دی، لهذا مرفوع فعلي ثابت نه دی په خپله امام ترمذي دې کتاب کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فعلي روايت متعلق فرمايي دا روايت حسن دی او ډيرو خلکو په دې باندې عمل دی دغه شان جرح او تعديل کې يحيی بن سعيد القطان المغربي رَحِمَهُ اللّٰهُ نه (**الوهم والايهام**) کې دا الفاظ نقل دي: **(انه صحيح حديث ابن مسعود رضی الله عنه)** دغه رنګ ابن حزم اندلسي رَحِمَهُ اللّٰهُ دې حديث ته صحيح ويلي دی او دار قطني ورته هم صحيح ويلي دي **(کذا في عرف الشذي)**.

همدارنګې عبدالله ابن عبدالبر، علي المدني، يحی بن معين، امام ذهبی او ابن منده رَحِمَهُمُ اللهُ ورته صحيح ويلي دي، صاحب مشکوة چې د امام ابوداود په حوالې سره کوم اعتراض کړی دی.

**قال ابوداود: ليس بصحيح على هذا المعنى)** ددې جواب هم دغه دی چې دا د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوع قولي حديث باندې اعتراض دی دا جواب په حقيقت کې د صاحب مشکوة غلطی پېولو د پاره وو او دومره لوی کس غلطی نه د بې کيدو د پاره دی. ورنه امام ابوداود د براء بن عازب رَحِمَهُ اللهُ روايت ته ليس بصحيح ويلي دی حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت باندې ابوداود اعتراض نه دی کړی، لکه څنګه چې د ابوداود سياق او سباق نه واضح دی او که بالفرض امام ابوداود د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت باندې اعتراض کړی وي ددې جواب دا هم کيدای شي چې امام ابوداود دا ضعف على المعنى سره مقيد کړی وي، يعنې روايت صحيح وي نورو راويانو نقل کړي وي سند صحيح دی خو د خاص معنى په اعتبار سره ضعيف دی. باقي مثبتين د رفع اليدينو دلائلو کې د ټولو نه ډير معتمد او مستند او مضبوط او محفوظ روايت د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی ددې باره کې مثبتين حضرات وايي چې د دوي لکه د سند سلسلة الذهب ده، څکه چې نجوم السماء نقل کړی دی او حجة الله على العلمين دی. راځئ چې لږ وينو ددې حيثيت څه دی ټولو نه مخکې خبره دا ده ددې روايت موقوف کيدو او مرفوع کيدو کې اختلاف دی اګر چې امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ مرفوع له ترجيح ورکړې ده. خو امام ابوداود رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب (ص، ۱۰۸) باندې ددې د مرفوع او موقوف کيدو باندې کافي بحث کړی دی او س ددې حديث بنيادي عمارت کمزوری شو. کيدی شي چې دا موقوف وي او په موقوف باندې شوافعو حضراتو په نزد استدلال کول جائز نه وي. دويمه خبره دا چې ددې حديث صحيح کيدو باوجود په دې کې شپږ قسمه اضطراب دی: (۱) امام مالک رَحِمَهُ اللهُ چې کله (مدونه) کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نقل کوي، نو هلته رفع اليدين صرف تکبير تحريمه کې ثابت دي. (۲) موطا امام مالک کې صرف عند الرکوع رفع يدين ثابت دي. (۳) موطا امام محمد کې عند الرکوع او عند الرفع عن الرکوع رفع اليدينو ثابت دي. (۴) د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ کتاب صحيح بخاري کې صرف عند السجدتين رفع اليدين ثابت دي. (۵) او دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت چې کله امام بخاري جزء رفع اليدين کې ذکر کوي، نو هلته دريم رکعت د پاره د ودريدو په وخت کې رفع اليدين ذکر دي. (۶) طحاوي وغيره کې دې روايت نه

**(رفع يدين عند كل خفض ورفع)** يعنې هر تکبير په وخت کې رفع اليدين ثابت دي د دومره اضطراب او اختلاف د وجې نه روايت د خپل مقام نه ډير ښکته راځي.

آخر کې خلاصه دا راوته چې د رفع اليدينو مسئله اولی او غير اولی، افضل غير افضل ده جائز او غير جائز مسئله نه ده يا دا سې وويل شي چې رفع اليدين مسئله د اسلام شروع کې وه يا چې مونځ کې څنګه باقي تغيرات او تنسيخات اوشو، نو د رفع اليدينو مسئله هم موقوف او منسوخ شوه، دا څه

فرض کلام یا څه مفروضه نه ده بلکې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت دی نسخ باندې دال دی. حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه روایت نسخ باندې دال دی ځکه دده حدیث منسوخ کیدو قوي احتمال پیدا شو، نتیجه دا راوته چې یو طرف ته رفع الیدین سنت دي او دویم طرف ته د نسخ قوي احتمال دی او منسوخ باندې عمل کول حرام دي او س سنت څېلول او حرامو کې د پریوتو مقابله شوه. داسې سنت ترک کول اولی او افضل دي چې دې باندې عمل کولو سره سړی حرامو کې مبتلا کېږي دې وجې نه احنافو ترک د رفع الیدین ته اولی وایي چې منسوخ عمل باندې عمل سره خطره رانه شي.

**(۳) سوال:** مثبتین د رفع الیدینو الا که دا اعتراض وکړي چې منسوخ کیدو باندې تاسو سره څه دلیل دی؟

**جواب:** ددې اعتراض اول جواب خو همدغه دی چې مندرجه بالا آحادیث او آثار تصریحات او توضیحات دې خبره باندې واضح دلیل دی چې دا حکم مخکې وو بیا موقوف او منسوخ شو دویم الزامي جواب دا دی چې د رفع الیدینو شپږ مقاماتو نه باقي څلور مقاماتو کې تاسو حضرات رفع یدین ترک کولو سره دې څلورو مقاماتو کې د رفع الیدینو حکم په خپله منسوخ تسلیموئ دې څلورو مقاماتو دپاره کوم جواب ستاسو وي هغه زمونږ هم دی فرق صرف دومره دی تاسو څلور مقاماتو کې او مونږ شپږ مقاماتو کې دا عمل منسوخ ګڼو.

**د امام ابو حنیفه رحمه الله او د امام اوزاعي رحمه الله مناظره:** ملا علي قاري رحمه الله مرقات کې د رفع الیدینو دې بحث کې لیکلي چې صاحب د فتح القدیر ابن همام د هدایه شرح کې د رفع الیدینو بحث کې لیکلي چې یو ځلې امام ابو حنیفه رحمه الله او اوزاعي رحمه الله مکه مکرمه کې دار الحناطین کې یو ځای شو دواړو رفع الیدین مسئله کې بحث شروع کړو. (المرقات ۲/۵۰۴).

**امام اوزاعي رحمه الله:** امام اوزاعي رحمه الله د امام صاحب رحمه الله نه داسې سوال وکړو چې تاسو رکوع ته تلو وخت کې او واپس رکوع نه د راتلو په وخت کې لاس ولې نه اوچتوئ؟

**امام ابو حنیفه رحمه الله:** مونږ رفع الیدین ځکه نه کوو چې په دې کې د حضور صلی الله علیه وسلم نه صحیح حدیث منقول نه دی.

**امام اوزاعي رحمه الله:** صحیح حدیث ولې نشته حالانکې ماته زهري ویلي دي او هغه د سالم نه او سالم خپل پلار نه حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه داسې نقل کوي: **(ان رسول الله کان یرفع یدیه اذا افتتح الصلوة وعند الرکوع وعند الرفع منه)**

**امام ابو حنیفه رحمه الله:** ددې په جواب کې امام ابو حنیفه رحمه الله عدم رفع الیدین د پاره سند سره داسې حدیث بیان کړی: **(حدثنا حماد عن ابراهیم عن علقمة والاسود عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ان النبي صلی الله علیه وسلم کان لا یرفع یدیه إلا عند الافتتاح ثم لا یعود)**

**امام اوزاعي** رَحِمَهُ اللهُ: امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ عُلوِ سند طرف ته اشاره کولو سره وویل زه تاته د زهري، سالم او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سند نه حدیث بیانوم او ته حماد ابراهیم سند نه زما مخې ته حدیث بیانوي.

**امام ابو حنیفه** رَحِمَهُ اللهُ: امام صاحب فرمایي وګوره شیخ حماد رَحِمَهُ اللهُ د شیخ زهري رَحِمَهُ اللهُ نه لوی فقیه دی دغه رنګ ابراهیم نخعي د شیخ سالم رَحِمَهُ اللهُ نه فقه کې لوی دی او شیخ علقمه رَحِمَهُ اللهُ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه فقاهت کې څه کم نه دی اګرچې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته شرف د صحابیت د وجې نه لوی مقام حاصل دی، شیخ اسود رَحِمَهُ اللهُ بغیر د مقابلې پاتې شو دې وجې نه زمونږ زنو رهم ډیر شو. او حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به څه وایم هغه د فقاهت امام او د فضیلت سپوږمی ده حضرت امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ سند او چت کېدو او عالي کېدو سره خپل سند ته ترجیح ورکولو کوشش کوي امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د راویانو د فقاهت د وجې نه خپل روایت ته ترجیح ورکړې ده. دې مسئله کې طرفینو کې وسعت او ګنجائش دی سختې کولو ضرورت نشته غیر مقلدین دې مسئله کې سختي کوي او صحیح لارې نه تجاوز کوي او دا اختلاف د جائز او ناجائز اختلاف ګڼي او خلک یو طرف احادیثو نه تشویش کې مبتلا کوي او د فضیلت بحث په فرضیت درجه کې ساتي. د دوي په نزد یوه قاعده ده هغه دا چې مونځ کې سنت پریښودو سره مونځ فاسدیږي او رفع الیدین سنت دې پریښودو سره مونځ باطل شو حالانکې دا قاعده د هغوئ خپله ده د. امت د علماو او فقهاو د دې سره څه تعلق نشته.

## تکبیر تحریمه کې لاسونه د غوږونو پورې او چتول په کار دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ مَالِك بنِ الْحُوَيْرِث قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ |
| د مالک ابن حویرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلاَةُ وَالسَّلَامُ به چې کله تکبیر تحریمه ویله نو |
| رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ وَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَقَالَ : |
| او چتول به یې دواړه لاسونه تر غوږونو د نرمۍ پورې او چې کله به یې پورته کولو سر د رکوع نه نو ویل به یې |
| سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ . وَ |
| سمع الله لمن حمده ، او دغه شان به یې کول (یعنې دواړه لاسونه به یې د غوږونو نرمیو پورې وړل) او |
| فِيْ رِوَايَةٍ : حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوْعَ أُذُنَيْهِ . (متفق علیه)[1] |
| په یو روایت کې دي: چې دواړه لاسونه به یې د غوږونو بره حصې پورې وړل. |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۱۹، رقم الحديث : ۷۳۷، ومسلم في الصحيح ۱/۲۹۳ رقم الحديث: ۲۵-۳۹۱، أخرجه احمد في المسند ۳ /٤٣٦

**توضیح**: ددې حدیث تشریح تکبیر تحریمې په وخت دواړه لاسونو د اوچتیدو په وخت کې مسئله او مکمل اختلاف مخکې حدیث نمبر (۳) کې تیر شوی دی هلته یې وګورئ دلته دې حدیث کې یې د لاسونو اوچتولو حد د غوږونو برنی حصې پورې د وړلو بیان کړی دی دا د احنافو مستدل دی او کوم حضرات چې صرف سینې پورې لاسونه اوچتوي هغوی ته په کار دي چې دا حدیث د نظره ونه غورځوي او څه همت دې وکړي لږ اوچت دې یې وړي. (المرقات ۲/۵۰۱).

۵ ربیع الثاني ۱٤۱۰هـ

## په مونځ کې د جلسې استراحت حکم

﴿۷﴾ وَ عَنْهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي فَإِذَا

د مالک بن حویرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل دي چې وي لیدو نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مونځ کولو باندې چې کله به نبي عَلَيْهِ السَّلَام

كَانَ فِيْ وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِهِ لَمْ يَنْهَضْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا.[1]

په طاق رکعت کې ؤ نو نه به پاڅیدو ترڅو پورې به سیده شوی نه وو.

**توضیح**: **في وتر من الصلوة**: مطلب دا دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې مونځ کولو اولنی یا دریم رکعت آخري سجدې نه سر اوچتولو نه پس به لږ کیناستو استراحت به یې وکړو او بیا به بل رکعت د پاره پاڅیدو د فقهاو اصطلاح کې دې عمل ته جلسه د استراحت ویلی شي. (المرقات ۲/۵۰۵).

**لم ینهض**: د پاڅیدو په معنی کې دی یعنې ترڅو چې تاسو به استراحت نه وي کړی د غه وخت پورې تاسو دویم یا څلورم رکعت ته مه پاڅئ.

**د فقهاو اختلاف**: جلسه استراحت کې د فقهاو اختلاف دی آیا دا د عبادت حصه او مسنون عمل دی یا په وخت د مجبورۍ کې عمل دی. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دې ته مطلقا سنت وایي که د عذر په وخت کې وي یا بغیر د عذر وي دا د عبادت یوه حصه ده او سنت دي هغه فرمایي داسې د ناستې نه پس د پاڅیدو هم دا طریقه ده چې دواړو لاسونو سره د ځمکې نه په تکیا سره پاڅي دا مسنون دي. امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ او د مختار قول مطابق او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دا جلسه د استراحت د عبادت سنت یا د مستحباتو د قسم نه نه ده، بلکې دا د عذر د وجې نه په حالت د مجبورۍ کې کولی شي او دا په حالت د مجبورۍ باندې محمول دی. (المرقات ۲/۵۰۵، اشعة اللمعات ۳۸۴).

**دلائل**: حضرت امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دلیل زیر بحث د حضرت مالک بن حویرث روایت دی چې خپل

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲ /۳۰۲، رقم الحديث ۵۲۳

مقصد باندې واضح دليل دی د جمهورو دليل د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دی چې ترمذي کې په دې الفاظو منقول دي: **عن ابي هريرة قال كان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ينهض في الصلوة على صدور قدميه) (ترمذي ص ٦٤)**

امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ د مالک بن حويرث روايت نه پس متصل دا حديث نقل کړو او په دې باندې يې د اهل علمو عمل ښودلی شي، دې نه معلومه شوه دا حديث صحيح دی او په کثرت سره امت په دې باندې عمل کړی اګرچې د دې حديث په يوه طريقه سند کې خالد بن اياس راوي ته ضعيف ويلی شوی دی، خو د يوې طريقې د وجې نه د اصل حديث صحت نه متاثر کېږي دا روايت مصنف ابن ابی شيبه رَحِمَهُ اللهُ کې داسې منقول دي: **عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انه كان ينهض في الصلوة على صدور قدميه ولم يجلس** د غه شان روايت حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مصنف بن ابی شيبه کې نقل دي (المرقات ٢/٥٠٦)

بلکې د شعبي په حوالې سره ابن ابی شيبه داسې وايي: **عن الشعبي قال كان عمر و علي و اصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ينهضون في الصلوة على صدور اقدامهم) (كذا في اشعة اللمعات ٢/٣٨٤، المرقات ٢/٥٠٦)**

په مصنف عبد الرزاق کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متعلق دا روايت داسې منقول دی: **عبد الرزاق عن ابن عينيه عن ابن ابي ليلى قال سمعت عبد الرحمن بن يزيد يقول رمقت عبد الله بن مسعود في الصلوة فرايته ينهض ولا يجلس قال ينهض على صدور قدميه في الركعة الاولى والثالثه.)**

علامه ابن دقيق العيد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دا خبره عجيبه ده، يو عمل ته استراحت هم وايي او بيا سنت هم وايي حالانکې د عبادت مدار په تکليفاتو باندې دی استراحت باندې نه دی.

جمهورو باب التشهد د فصل ثاني په آخري حديث نمبر (٩) کې هم استدلال کړی دی کوم چې مشکوة (ص ۸۵) کې مذکور دي الفاظ يې دا دي: **وعن عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال كان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في الركعتين الاوليين كان على الرضف حتى يقوم. (رواه الترمذي)**

ياد ساتئ علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ د تشريح مطابق دا حديث د جمهورو دليل دی ورنه نور شارحينو د دې مطلب تشهد د قعده اولی بيان کړی دی.

**جواب:** جمهورو شوافعو ته د دې دليل دا جواب ورکړو، مالک بن حويرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت حالت د عذر باندې محمول دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حالت د عذر يا ضعف د وجې نه دا عمل کړی دی او په حالت عذر کې داسې کول ښه لري.

**دويم جواب** دا دی د ابن حويرث رضي الله عنه روايت بيان جواز باندې محمول دی بهر حال د فقهاو دا اختلاف د جواز او عدم جواز نه دی بلکې د اولی او غير اولی اختلاف دی.
باقي شوافعو چې د غازي ودريدو کومه طريقه بيان کړې ده چې دواړه لاسونو سره په ځمکه تکيا کوي جمهور دې باره کې فرمايي، حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت کې ممانعت دا سې راغلی دی باب التشهد کې حديث نمبر(۹) د لاندې ددې بحث ان شاء الله راځي.

## په مونځ کې به لاسونه څنګه کيخودلی شي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ وَائِلِ بْنِ حَجَرٍ اَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ |
| د وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: دوي وليدو نبي علیه السلام چې اوچتول به يې دواړه لاسونه |
| حِيْنَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ ثُمَّ الْتَحَفَ بِثَوْبِهٖ ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى |
| په وخت د شروع کولو د مونځ کې د تکبير دپاره بيايې لاسونه کپړه کې دننه کړل بيايې کيښودو ښي لاس |
| عَلَى الْيُسْرٰى فَلَمَّا اَرَادَ اَنْ يَّرْكَعَ اَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنَ الثَّوْبِ ثُمَّ رَفَعَهُمَا |
| په چپ لاس باندې بيا چې رکوع ته د تلو اراده يې وکړه نو بيايې دواړه لاسونه د کپړې نه را بهر کړه او اوچت يې |
| وَ كَبَّرَ فَرَكَعَ فَلَمَّا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَفَعَ يَدَيْهِ فَلَمَّا |
| کړل او تکبير ويلو سره رکوع ته لاړ چې کله **سمع الله لمن حمده** يې وويله نو لاس يې اوچت کړو بيا چې کله |
| سَجَدَ سَجَدَ بَيْنَ كَفَّيْهِ[1]. (رَوَاهُ مُسْلِم). |
| يې سجده کوله نو سجده يې وکړه د دواړه لاسونو په مينځ کې. |

**توضيح: ثم وضع يده اليسرى:** دې کې دريو مسائلو طرف ته اشاره ده ددې تفصيل ضروري دی دې کې د اثمو اختلاف هم دی خو دا د جواز او عدم جواز اختلاف نه دی اولی او د غير اولی دی. (المرقات ۲/۵۰۷).

**اوله مسئله او د فقهاو اختلاف:** په حالت د قيام کې لاس تړل مسنون دي يا پرېښودل مسنون دي دې کې د نقهاو اختلاف دی د جمهور وسلفو او خلفو مسلک دا دی وضع د يدينو سنت ده يعني مونځ کونکې چې کله مونځ کې او دريږي نو لاسونه دې وتړي لاسونه تړلي ساتل سنت دي ارسال سنت نه دی. د امام مالک رحمه الله مشهور قول د ارسال دی يعني لاسونه په حالت قيام کې نوم باندې نه کيښودل، بلکې

---

(۱) أخرجه مسلم ۳۰۱/۱ رقم الحديث ۵۴ ۴۰۱

زورند په کار دي دويم قول د جمهورو په شان دی لاسونه تړل سنت دي، ارسال يدين کې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د قياس نه استدلال کړی چې يو کس بادشاه ته مخامخ مونځ کې ودريږي نو د رعب او هيبت ويره وي لاسونه ځوړند په کار دي وضع يدين نه ده په کار. جمهورو د زير بحث حديث نه استدلال کړی چې خپل مقصد کې واضح تر دی دې نه پس حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نمبر (۹) نه استدلال کړی دی يا فصل ثاني حديث نمبر (۱۴) حضرت قبيصه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه استدلال کړی دی. دې ټولو احاديثو په موجودګۍ کې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د قياس هيڅ مقام نشته (المرقات ۲/۵۰۸)

همدارنګه دا ډير احاديث په شيعو او روافضو باندې حجت دی دوي به د مسلمانانو سره عبادت کې د اشتراک د وجې نه لاس نه تړل، بلکې دوي په هر يو عمل کې د مسلمانانو نه جدا جدا دي، څنګه چې د هغوي طريقه ده د شيعه باطل خيال دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې منافقينو مونځ کې د دوکې په غرض باندې لاسونه تړل د قرآن آيت ﴿يَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ﴾ (توبة آيت: ۶۷) کې تحريف کولو سره ددې نه استدلال کوي.

**دوهمه مسئله او د فقهاو اختلاف**: کله چې دې حديث کې د لاس کيخودو صراحت راغلی، نو اوس د جمهورو په منځ کې اختلاف راغلی چې لاس کوم ځای کيخودی شي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ، سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول مطابق مونځ کې لاس نوم نه لاندې کيښودل افضل دي. د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد او يو غير مشهور قول کې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد مونځ کې لاس سينې دلاندې او د نوم د بره کيښودل افضل دي (**كذا في رحمة الامة في اختلاف الائمة ص۳۲**)

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د صحيح ابن خزيمه د روايت نه استدلال کړی دی الفاظ يې داسې دي: (**فوضع يده اليمنى على اليسرى على صدره**) دې روايت کې لاس د سينې د بره کيښودو ذکر دی او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ يو قول هم داسې دی. ائمه احناف او حنابله د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د آثر نه استدلال کړی دی.

الفاظ يې دا دي: (**قال من السنة وضع الكف على الكف في الصلوة تحت السرة**). (**المرقات ۲/۵۰۹**) دا روايت سنن بيهقی، ج ۲، ص۳۱ باندې نقل کړی دی او بذل المجهود، ج۲، ص۲۳) نقل کړی دی. مصنف ابن ابی شيبة کې، ج۱، ص۳۹۸) باندې راوړی، دغه رنګ ابن ابی شيبة رَحِمَهُ اللهُ حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دې الفاظو سره نقل کړی دی. (مصنف ابن ابی شيبة ج۱ ص۳۹۸).

**ياد ساتئ**: د لاس تړلو يا کيښودو په مقام په تعين کې څومره روايات دي اصول جرح او تعديل پيش نظر دې ټولو کې کلام دی، احنافو چې د کومو رواياتو نه استدلال کړی دی، نو په دې باندې د شوافعو مستدلات په نسبت کم کلام شوی دی بهر حال دا د افضل او غير افضل مسئله ده بيا بيان د جواز د پاره دغه رنګ عمل شوی دی دې کې څه لويه جګړه نشته. امام ترمذي داسې فيصله کړې ده:

**والعمل علی هذا عند اهل العلم من اصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ومن بعدهم یرون ان یضع الرجل یمینه علی شماله في الصلوة ورای بعضهم ان یضعهما فوق السرة ورأی بعضهم ان یضعهما تحت السرة وکل ذلک واسع عندهم (ترمذی، ج۱، ص۵۹)**

امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ددې فیصلې نه دا معلومه شوه چې لاس د نوم نه بره وي یا ښکته تولو کې ګنجائش دی خو فوق الصدر ذکر نه کولو باندې امام ترمذي غیرمقلدین حضرات پریشانی کې واچول د دوي د عمل څه ګنجائش په نظر نه راتلو، افسوس سره ویلې کېږي چې بعضې حضرات دې کې دومره غلو کوي چې د سینې نه بره او مرۍ نه ښکته لاسونه ایږدي دا کوم سنت دي کوم کسان چې د نوم نه ښکته لاس ږدي هغوئ له هم احتیاط په کار دی چې ډیر ښکته لاس مه ایږدئ لاندې عورت غلیظه دی چې د لاس څه حصه د نوم نه ښکته او څه نوم د پاسه وي دا مستحسن دی.

**دریمه مسئله او د فقهاو اختلاف:** د لاس کیښودو په کیفیت کې هم اختلاف دی بلکې ائمه احناف خپل منځ کې هم اختلاف دی ددې وجه دا ده بعضې روایاتو کې وضع الکف علی الکف ذکر دی، لکه څنګه چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایاتو کې دي بعضې روایات کې ښې لاس په چپ لاس باندې کیښودل روایات شته، لکه د حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت نمبر (۹) دی بعضې روایاتو کې د (رسغین) ذکر هم دی علماء کرامو په کې بهترین تطبیق کړی دی دې نه تولو روایاتو باندې په آسانه عمل کېږي مثلاً د ښي لاس تلی د چپ لاس په پشت باندې کیښودی شي او ګوتو سره د ګس لاس د ګټو احاطه وشي او د ښي لاس باقي درې ګوتې د چپ لاس په مروند باندې کیښودی شي دغه رنګ کف او اسفین اوذراع والا تول روایاتو باندې عمل راځي دا خبره ځان سره ساتئ. بعضې خلک پوره لاسونه دولونیږدې پورې وري اویو بل لاس په کې پټوي او سینې باندې دبره ږدي دا مسنون شکل نه دی.

**من الثوب:** ددې معلو میږي حضرت وائل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یخنی موسم کې ولیده څکه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس په کپړو کې پټ کړی وو.

**بین کفیه:** مسنون طریقه دا ده د سجدې په حالت کې دواړه لاسونه د غوږونو سره داسې کیږدئ که د غوږونو نه څه پریوځي نو د لاسونو شا باندې به پریوځي، بلکې سر او لاس برابر اندازه باندې کېږدئ.

**وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څوک وو؟** وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لوی شان والاصحابي دی (المرقات ۲/۵۰۶).

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په آخري عمر کې یې ایمان راوړی ؤ د حضر موت او سیدونکی ؤ او قبائلي سردارانو نه ؤ او دده پلار د حضرموت وغیره بادشاه ؤ وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غالباً سنة الوفود کې مدینې منورې ته په خپله رضا او رغبت سره راغلې ؤ او اسلام یې قبول کړو او صحابو ته یې بشارت ورکړی ؤ چې لرې علاقې حضرموت نه وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان کیدونکی راروان دی چې الله تعالی او دهغه د رسول یې د

زړه په مينه او محبت سره ومنل او د هغه ځای د باشاهانو د کورنۍ نه ؤ، کله چې حضرت وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ورسيدو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې ښائسته استقبال وکړو او ځان ته يې نزدې کړو او بيا يې خپل څادر ورته خور کړو او دده په حق کې يې دا دعاء وکړه: (اللهم بارک في وائل وولده وولد ولده) (المرقات ٢/٥٠٦) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپلې علاقې سردار مقرر کړو حضرت وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډير د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ کيفيت بيان کړی دی دده د پلار نوم حجر دی اول حا بيا جيم. وروسته د حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دور خلافت کې وفات شوی دی.

﴿۹﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: كَانَ النَّاسُ يُؤْمَرُونَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ الْيَدَ الْيُمْنَى عَلَى ذِرَاعِهِ الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]

د حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: خلکو ته به حکم کيدلو چې مونځ گزار به ښي لاس په گس (چپ) لاس باندې په مونځ کې.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ ثُمَّ يَقُولُ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ ثُمَّ يَقُولُ وَهُوَ قَائِمٌ: «رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ» ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَهْوِي ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجد ثمّ يكبر حين يرفع رَأْسه يَفْعَلُ ذَلِكَ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا حَتَّى يَقْضِيَهَا وَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الثِّنْتَيْنِ بَعْدَ الْجُلُوسِ (متفق عليه)[2]

د حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله د مونځ اراده کوله تکبير تحريمه به ويله په وخت د اودريدو کې بيا يې تکبير ويل د رکوع ته تللو په وخت کې بيا يې ويل: سمع الله لمن حمده. چې کله به يې د رکوع نه خپله ملا را اوچته کړه، بيا په ولاړه ولاړه ربنا لک الحمد ويلو، بيا يې تکبير ويله چې کله د سجدې د پاره ښکته کېدو بيا يې تکبير ويله چې کله د سجدې نه را اوچتيدو او کول به يې دا رنگې په ټول مونځ کې او کله چې به د دوو رکعاتو نه پس پاڅيدلو، نو تکبير به يې ويله.

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ٢/٢٢٤، رقم الحديث ٧٤٠

(۲) أخرجه البخاري ٢/٢٧٢، رقم الحديث ٧١٩، ومسلم ١/٢٩٣ رقم الحديث ٢٧-٣٩٢، والنسائي ٢/٢٣٣، رقم الحديث: ١١٥٠.

## طول قیام افضل دی که کثرت در کعاتونو؟

﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَفْضَلُ الصَّلَاةِ طُولُ الْقُنُوتِ»[1]

د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي د ټولو نه بهتر مونځ دا دی چې په هغې کې قیام اوږد وي

**توضیح**: **طول القنوت**: لفظ قنوت ډیرو معانو او مطالبو باندې راځي قنوت بمعنی سکوت هم دی، په معنی د خشوع او خضوع هم دی، په معنی د قیام هم دی، دعا هم ده، قنوت نازله ته هم ویلی کېږي او د دې معنی طاعت هم دی د لته د طول قنوت نه مراد قیام دی په مونځ کې یعنې مونځ کې ډیر وخت پورې او دریدل قرآن کریم لوستل افضل دي. (المرقات ۲/۵۱۰).

څوک چې نفل مونځ کوي د دې دوه طریقې کیدی شي رومبی طریقه دا ده انسان مونځ ډیر ساعت پورې ولاړ د قرآن کریم لوستل کوي او اوږده رکعتونه وکړي دې ته طول قیام ویلي کېږي. دویمه طریقه دا ده سړی قیام او قرآت اوږد نه کړي بلکې په دغو مره وخت کې مختصر مختصر ډیر رکعاتونه وکړي دې ته کثرت سجود ویلي کېږي، دې باندې د ټولو اتفاق دی چې د دواړه طریقې جائز او باعث ثواب او اجر دي، خو دې کې بحث دی چې دې کې کومه طریقه ډیره افضل ده. د شوافعو، احنافو او جمهورو په نزد باندې طول قیام افضل دی، ځکه چې دې کې تلاوت قرآن دی، او په مانځه کې تلاوت د مانځه د تسبیحاتو نه افضل دی، (المرقات ۲/۵۱۱).

د بعضې سلفو په نزد باندې کثرت سجود افضل دی ځکه چې حدیث کې راغلي دي چې بنده کله سجده کې وي نو الله تعالی ته ډیر نزدې حالت کې وي د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ یو قول هم دغه رنګ دی چې تکثیر سجود افضل دی اګر چې د دوي مسلک هغه دی کوم چې بیان شو. (**کذا في معارف السنن**)

د جمهورو په رائی کې ډیر وزن دی یو خو ځکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله طول قیام افضل ګڼلی دی، دویم دا چې قرآن کریم طول قیام کې ډیر ویلي کېږي او تلاوت افضل دی تسبیحاتو ته، حالانکې کثرت تسبیحات کثرت سجود او رکعات سره وي بعضې دواړه برابر حسابوي، بعضې خلک شپه د طول قیام د پاره او ورځ کثرت سجود د پاره افضل وایي. شارحینو د دې حدیث داسې تشریح کړې ده ما چې بره وضاحت کړی دی تشریح کې دا ډیره واضحه ده باقي سجده افضل ده یا قیام افضل دی د دې بحث ان شاء الله په **باب السجود** کې راځي.

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۲۰ رقم الحديث ۱٦٤-۷۵٦

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ مکمل نقشه:

﴿۱۲﴾ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ فِيْ عَشْرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د حضرت ابو حميد ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ده د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د لسو صحابو جماعت ته ويل

أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا فَاعْرِضْ.

ماته د تاسو ټولو نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ طريقه ښه معلومه ده د صحابو جماعت وويل صحيح ده بيان يې

قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ

کړئ ده وويل نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به چې مونځ ته اودريدو نو خپل دواړه لاسونه به يې اوچت کړه داوږو برابر

ثُمَّ يُكَبِّرُ ثُمَّ يَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ وَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ

او تکبير به يې ويلو بيا يې قرآت کولو بيا يې تکبير وويله او خپل دواړه لاسونه يې اوچت کړه داوږو پورې

ثُمَّ يَرْكَعُ وَ يَضَعُ رَاحَتَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَعْتَدِلُ فَلَا

بيا يې رکوع وکړه او کيخودل دواړه لاسونه په زنګونونو باندې او ملا به يې سيدها کوله او سر به يې نه ډير

يُصَبِّيْ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُ ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيَقُوْلُ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ

ښکته کولو او نه ډير اوچتولو بيا د سر اوچتيدو سره سمع الله لمن حمده وويله او اوچتول به يې دواړه لاسونه

حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ مُعْتَدِلًا ثُمَّ يَقُوْلُ: «اللهُ أَكْبَرُ» ثُمَّ يَهْوِيْ إِلَى الْأَرْضِ سَاجِدًا

داوږو پورې او سيدها به اودريدو بيا تکبير ويلو سره ځمکې طرف ته ښکته کيدو او سجده به يې کوله

فَيُجَافِيْ يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَ يفتح أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ

په حالت د سجده کې يې خپل دواړه لاسونه د پټونانو نه جدا ساتل او د خپلو خپو ګوتې به يې قبلې طرف ته

ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَ يُثْنِيْ رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا

کولې بيا به يې د سجدې نه سر اوچت کړو او کسه خپه به يې خوره کړه او په هغې باندې به سيدها کيناستو

ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتَّى يَرْجِعَ كل عظم إِلَى مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا ثُمَّ يَسْجُدُ ثُمَّ يَقُوْلُ: «اللهُ أَكْبَرُ» وَ

ترڅو چې هر يو اندام به په خپل ځای برابر شو بيا به تکبير وويله او سجدې ته به تلو بيا الله اکبر وويله او

يَرْفَعُ وَ يَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا ثُمَّ يَعْتَدِلُ حَتَّى

سجدې نه به يې سر اوچت کړو بيا به يې ګسه خپه تاؤ کړه دې باندې به اطمينان سره کيناستو تردې چې د

يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ إِلَى مَوْضِعِهِ ثُمَّ يَنْهَضُ ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذَلِكَ ثُمَّ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ

بدن هراندام به په خپل ځای برابر شو بيا يې دويم رکعت کې همدارنګې کول چې دوه رکعتونه پس اودريدو

كَبَّرَ وَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا كَبَّرَ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ

نو الله اکبر به يې وويلو دواړه لاسونه به يې اوږو پورې رسولو لکه څنګه چې يې د مونځ شروع کې تکبير

ثُمَّ يَصْنَعُ ذَلِكَ فِي بَقِيَّةِ صَلَاتِهِ حَتَّى إِذَا كَانَتِ السَّجْدَةُ الَّتِي

کولو او باقي مونځ به يې هم په همدې طريقې سره کولو او چې کله به يې هغه سجده وکړه چې ددې نه پس

فِيهَا التَّسْلِيمُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَ قَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ

سلام ګرځول وي نو رابهر به يې کړه خپله چپه خپه او ګس طرف ته به د تورک په حالت کې کيناستو او

ثُمَّ سَلَّمَ . قَالُوْا : صَدَقْتَ هٰكَذَا كَانَ يُصَلِّي .[1]

بيا به يې سلام واړولو صحابو ورته وويل تا رښتيا وويل نبي عَلَيْهِ السَّلَام داسې مونځ کولو.

(وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ وَ ابْنُ مَاجَهْ مَعْنَاهُ وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَ

ترمذي او ابن ماجه دا روايت بالمعنی نقل کړی ، او امام ترمذي وايي : دا حديث حسن او صحيح دی او

وَ فِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ مِنْ حَدِيثِ أَبِي حُمَيْدٍ : ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ

دابوداؤد په يو روايت کې دابوحميد نه دا الفاظ مروي دي بيا چې به رکوع ته تلونو داسې به يې کيښودل

يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا وَ وَتَّرَ يَدَيْهِ

دواړه لاسونه په زنګونانو باندې ګوياچې په مضبوطۍ سره يې نيولي وو او خپل لاسونه د کمان په شان به

فَنَحَّاهُمَا عَنْ جَنْبَيْهِ وَ قَالَ : ثُمَّ سَجَدَ

يې ايښې وو او څنګلې به يې د خپلو دواړو اړخونو نه لرې ساتلې ،او راوي وايي :بيا سجدې ته لاړو نو

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ١/٦٧، رقم الحديث ٧٣٠ ، وأخرجه الترمذي في السنن ٢/١٠٥، رقم الحديث ٣٠٤، وأخرجه ابن ماجه في سننه ١/٣٣٧ رقم الحديث ١٠٦١

| |
|---|
| فَأَمْكَنَ أَنْفَهُ وَ جَبْهَتَهُ الْأَرْضَ وَ نَحَّى يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَ وَضَعَ كَفَّيْهِ |
| خپله پوزه او تندی به یې په ځمکه کینبودو او لاسونه د پټونانو نه جدا او ساتل او کیخودل به یې دواړه لاسونه |
| حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَ فَرَّجَ بَيْنَ فَخِذَيْهِ غَيْرَ حَامِلٍ بَطْنَهُ عَلَى شَيْءٍ مِنْ فَخِذَيْهِ حَتَّى فَرَغَ |
| داوږو برابر او دواړه پټونان به یې کولاو ساتل او خپله خیټه به یې دواړونه جدا کړه تردې چې د سجدې نه فارغ |
| ثُمَّ جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ الْيُمْنَى عَلَى قِبْلَتِهِ وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُمْنَى |
| شو او بیا به کیناستو چپه خپه یې خوره کړه او د ښي خپې شا یې قبلې طرف ته کړو ښي لاس یې په ښي زنګون |
| وَ كَفَّهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى وَ أَشَارَ بِأُصْبُعِهِ يَعْنِي السَّبَّابَةَ. |
| باندې او ګس لاس یې په ګس زنګون باندې کینبودو او اشاره یې وکړه په سبابې ګوتې سره د ( اشهدان |
| وَ فِي أُخْرَى لَهُ : وَ إِذَا قَعَدَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ |
| لااله الاالله ویل) په وخت کې . او د ابوداؤد په یو بل روایت کې دي چې : دوه رکعته وکړي او کیني او |
| قَعَدَ عَلَى بَطْنِ قَدَمِهِ الْيُسْرَى وَ نَصَبَ الْيُمْنَى وَ إِذَا كَانَ فِي الرَّابِعَةِ |
| ګسه خپه باندې به کیناستو او ښي خپه به یې سیدها اودروله ، او چې څلورم رکعت باندې به کیناستونو |
| أَفْضَى بِوَرِكِهِ الْيُسْرَى إِلَى الْأَرْضِ وَ أَخْرَجَ قَدَمَيْهِ مِنْ نَاحِيَةٍ وَاحِدَةٍ. |
| چپ کوناټي به یې د ځمکې سره ملاؤ کړو او دواړه خپې به یې یو طرف ته ویستې. |

**توضیح: الا اعلمکم**: ممکن دی حضرت ابو حمید الساعدي موجوده لسو صحابو نه په عمر کې لوی وو، ځکه یې وفرمایل زه ستاسو نه ډیر پوهه یم.(المرقات ۲/۵۱۱).

شیخ عبدالحق رَحِمَهُ‌اللّٰهُ لمعات کې لیکي که یو کس تاسو کې ځان ته لوی عالم وایي د فخر او تکبر د پاره نه وي بلکې حقیقت ښکاره کولو د پاره داسې وکړي دا جائز دي که یو کس د لوی والي او تکبر د پاره او نفساني اغراضو د لاندې ځان ته لوی عالم وایي دا ناجائز دي.(اشعة اللمعات ۳۸۵).

**ثم یکبر**: دا جمله دې باندې دلالت کوي چې تکبیر تحریمه کې اول لاس اوچتولی شي او چې کله لاسونه د غوږونو برابر شي بیا د الله اکبر ویل په کار دي احنافو فقهاو کې د صاحب هدایه وغیرو اکثر فقهاو دا رائی ده البته امام ابو یوسف رَحِمَهُ‌اللّٰهُ او طحاوي په نزد باندې معارنت بهتر دی. یعنې کوم وخت چې لاس اوچت کړي هغه وخت الله اکبر ویل په کار دي.

**یصبي**: باب تفعیل نه دی سر ښکته کیدو معنی باندې دی دلته رکوع کې سر ښکته کولو په معنی کې دی.

**ولايقنع**: باب **افعال** نه دی رکوع کې سر ډېر اوچت کولو ته ويلي کېږي او ددې نه منع کړی دی.

**يثني: ثني يثني** د تاويدو په معنی کې دی، قعده کې ناستې د پاره خپه تاوول او په هغې باندې د ناستې کيفيت يې بيان کړی دی.

**و وتر يديه: توتير** باب **تفعيل** نه دی په کمان باندې چله خيژولو ته ويلي کېږي

**فنحاهما**: دې الفاظو نه ددې تغير مقصود دی، څنگه کمان باندې چله خيژولی شي دغه وخت کې کمان دواړه جانب جدا کېږي دغه رنگ دلته لاس اړخ نه جدا وي.

**فامکن انفه و جبهته**: معلومه شوه چې د سجدې صحيح کيدو د پاره ضروري دي چې پوزې او تندی دواړه ځمکه باندې جوښت کيخودل شي د ټولو احاديثو نه دا معلوم شو که چا د عذر نه او مجبورۍ د وجې دواړو کې يو سره سجده وکړه نو بغير کراهت نه جائز دی، خو که بغير د څه عذر او مجبورۍ چا يو عضوه باندې سجده وکړه هغې کې دا تفصيل دی که صرف تندي باندې سجده وکړه او پوزه يې استعمال نه کړه دا مکروه ده البته سجده وکړه مونځ يې وشو او که تندې يې استعمال نه کړو صرف پوزې باندې سجده وکړه نو امام صاحب په نزد باندې دې صورت کې کراهت سره سجده او شوه مونځ صحيح دی، ليکن امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ او محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې دې صورت کې سجده صحيح نه ده، ځکه مونځ فاسد شو د احناف فتوای دې باندې ده.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ: أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ |
| د حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: ما نبي عَلَيْهِ السَّلَام وليدو چې کله او دريده د مونځ |
| رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وَحَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |
| د پاره نو اوچت يې کړه دواړه لاسونه د ولو برابر او دواړه گوتې يې دغوږونو پورې وې وړې بيا يې تکبير |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: يَرْفَعُ إِبْهَامَيْهِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ [1]. |
| وکړو. او دابوداود په يو روايت کې دي چې تاسو گوتې دغوږونو نرميو (پوڅکيو) پورې وړې. |
| ﴿۱٤﴾ وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّنَا |
| قبيصه بن هلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام مونږ ته مونځ کولو نو |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۲۵ رقم الحديث ۷۲٤

فَيَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ. (۱)

وي نيولو خپل ښي لاس سره چپ لاس.

# د تعديل اركان تعليم

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ رِفَاعَةَ بن رَافِع قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ فَصَلَّى فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ جَاءَ

حضرت رفاعة بن رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي: يو كس مسجد ته راغې او مونځ يې وكړو بيا د نبي عَلَيْهِ السَّلَام خدمت

فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعِدْ صَلَاتَكَ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ»

كې حاضرشو سلام يې وكړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: خپل مونځ دوباره وكړه ځكه چې تا مونځ نه دی كړی

فَقَالَ: عَلِّمْنِي يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ أُصَلِّي؟ قَالَ:

هغه غرض وكړو يا رسول الله! تاسو ماته د مونځ طريقه وښائي چې مونځ څنګه وكړم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل

«إِذَا تَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَمَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَقْرَأَ فَإِذَا رَكَعْتَ

چې كله تاسو قبلې ته مخ كړئ نو الله اكبر ووايئ بيا سورة فاتحه او څه چې الله وغواړي وايي او چې ركوع

فَاجْعَلْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَ مَكِّنْ رُكُوعَكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ فَإِذَا

ته ځئ نو خپل لاسونه په زنګونانو باندې ږده او ركوع كې قائم اوسه او خپله ملا همواره ساته او چې ركوع

رَفَعْتَ فَأَقِمْ صُلْبَكَ وَ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى تَرْجِعَ الْعِظَامُ إِلَى مَفَاصِلِهَا فَإِذَا سَجَدْتَ

نه سر اوچت كړې نو خپله ملا نيغه كړه او سر اوچت كړه تردې چې هر عضو برابر شي او چې كله سجده كوې

فَمَكِّنِ السُّجُودَ فَإِذَا رَفَعْتَ فَاجْلِسْ عَلَى فَخِذِكَ الْيُسْرَى ثُمَّ

نو ښه طريقې سره سجده وكړه او چې د سجدې نه سر اوچت كړې خپل ګس پتون باندې كېنه بيا دغه رنګ

اصْنَعْ ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ وَ سَجْدَةٍ حَتَّى تَطْمَئِنَّ. هٰذَا

په هر ركوع او سجده كې كوه تردې چې ركوع، سجده، قومه او جلسه په اطمينان سره وكړې. د حديث دا

«لَفْظُ» الْمَصَابِيحِ ". وَ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ مَعَ تَغْيِيرٍ يَسِيرٍ وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ وَ النَّسَائِيُّ

الفاظ مصابيح كې دي، ابوداؤد دا معمولي تغير او تبديل سره نقل كړي، همدارنګې ترمذي او نسائي

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۲/۲، رقم الحديث ۲۵۲، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/ ٦٦ رقم الحديث: ۷۰۹.

مَعْنَاهُ . وَ فِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ قَالَ : « إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ

هم بالمعنى دا نقل كړي د ترمذي يو روايت كې دا الفاظ هم دي چې :تاسو كله د مونځ اراده وكړئ داسې

فَتَوَضَّأْ كَمَا أَمَرَكَ اللهُ بِهِ ثُمَّ تَشَهَّدْ فَأَقِمْ

اودس وكړئ څنګه چې الله تعالى امر كړى بيا كلمه شهادت ووايې بيا نبې طريقې سره مونځ وكړئ او د

فَإِنْ كَانَ مَعَكَ قُرْآنٌ فَاقْرَأْ وَ إِلَّا فَاحْمَدِ اللهَ وَ كَبِّرْهُ وَ هَلِّله ثُمَّ ارْكَعْ ».[1]

قرآن څه حصه ووايه چې تاته ياده وي او كه ياده نه وي الحمد لله الله اكبر او لا اله الا الله ووايه بيا ركوع وكړه

**تشريح**: د دې احاديثو تشريح وغيره مخكې شوې ده دلته د ذكر كولو ضرورت نشته.

## يو سلام سره دوه دوه نفل كول افضل دي يا څلور څلور؟

﴿١٦﴾ وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «الصَّلَاةُ مَثْنَى مَثْنَى

د فضل بن عباس نه روايت دى وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرمايلي دي: چې مونځ دوه دوه ركعته دى

تَشَهُّدٌ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَ تَخَشُّعٌ وَ تَضَرُّعٌ وَ تَمَسْكُنٌ ثُمَّ تُقْنِعُ

تشهد دى په هر دويم ركعات كې او د( مونځ روح ) خشوع ، عاجزي او اظهار د غريبى دي ،بيا اوچت

يَدَيْكَ يَقُول تَرْفَعُهُمَا إِلَى رَبِّكَ مُسْتَقْبِلًا بِبُطُونِهِمَا وَجْهَكَ

كړه خپل رب ته دواړه لاسونه،راوي وايي :اوچت كړئ خپل رب ته داسې لاسونه چې د لاسونو تلي خولې

وَ تَقُولُ يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَ مَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ

طرف ته وي(كومه چې د دعاء طريقه ده)او دا ووايي :اى زماربه!اى زماربه!او څوك چې داسې ونه كړي

فَهُوَ كَذَا وَ كَذَا ». وَ فِي رِوَايَةٍ : « فَهُوَ خِدَاجٌ ».[2]

نو دده مونځ داسې دى او هغه دى ( ناقص دى ) د يو روايت الفاظ دا دي : چې دده مونځ ناقص دى.

**توضيح**: **الصلوة مثنى مثنى**: يعني نفل مونځ دوه دوه ركعته دى دې باندې د ټولو اتفاق دى نفل مونځ دوه دوه ركعته په يو سلام سره هم جائز دي او څلور ركعاته هم جائز دي خو دا د افضل او غير افضل اختلاف شو. (المرقات ۲/۵۲۱).

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۵۳۷ رقم الحديث ۷۵۹ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲ /۱۰۵، رقم الحديث ۳۰۲

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۲۵ رقم الحديث ۳۸۵ ، وأحمد في المسند ۱ /۲۱۱

**د فقهاؤ اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي كه ورځ وي يا شپه نفل دوه ركعته مطلقا افضل دي د صاحبينو په نزد باندې ورځ كې څلور څلور او د شپې دوه دوه نفل كول افضل دي. د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې مطلقا څلور ركعاته نفل كول افضل دي.

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ زير بحث حديث د فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او هر هغه حديث نه استدلال كړى دى چې په هغې كې مثنى مثنى ذكر دى. صاحبينو د شپې دوه دوه ركعاته نفلو كولو افضليت په تراويح مونځ باندې قياس كړى دى او د ورځې افضليت د پاره يې هغه دليل وركړى دى كوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دليل دى. اوس به راشي امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څلور ركعاته افضليت باندې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت نه استدلال كړى دى هغه فرمايي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسخوتن نه پس څلور ركعات نفل كولو باندې دوام فرمايلى وو د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مروي بخاري شريف كې حديث داسې دى فرمايي: (**ما كان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يزيد في رمضان ولا في غيره على احدى عشرة ركعة يصلي اربعا فلا تسال عن حسنهن و طولهن ثم يصلي اربعا فلا تسأل عن حسنهن و طولهن ثم يصلي ثلاثا.... الخ**) (بخاري، ج ۱ص ۱۵٤)

امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ يو عقلي دليل نه استدلال كړى هغه داسې چې هر هغه عبادت افضل دى چې هغې كې مشقت ډير وي او په يوې تحريمه باندې څلور ركعاته كولو كې مشققت ډير وي ځكه دا افضل دى.

**جواب**: دا ټول جائز اعمال دي صرف افضليت كې اختلاف دى، لهذا د جواب ضرورت نشته علماء احناف فرمايي مثنى مثنى چې كوم حديث دى دې كې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ ګزار د ادنى ركعتونو ذكر كړى دى افضليت خبره نشته مطلب دا چې دوه دوه ركعتونو نه كم مونځ نشته. صاحبينو ته جواب دا دى تراويح چونكې ډيرې دي ځكه هلته سهولت وركړى شوى دى او په دوه دوه ركعاتو باندې عمل شوى دى.

**د مونځ نه پس دعاء غوښتل په كار دي**: دې حديث كې د مونځ نه پس دعا غوښتلو ترغيب ذكر دى خو ذكر كولو نه مخكې د يو څو مشكل الفاظو تشريح ضروري ده:

**تخشع**: باب **تفعل** مصدر دى مرفوع دى د عاجزۍ په معنى دى. (المرقات ۲/۵۲۱).

**تشهد**: دا هم د باب **تفعل** نه مصدر صيغه ده مرفوع دى او مثنى مثنى نه پس خبر ثاني دى يعنې هر دوه ركعتونو كې يو تشهد ضروري دى. **وتضرع**: دا هم د باب **تفعل** نه د مصدر صيغه ده كثرت سره دعا غوښتل او سوال كول او ژړا كولو په معنى كې دى ددې تعلق ظاهري جسم سره دى.

**وتمسكن**: باب **تفعل** نه د مصدر صيغه ده د ذلت افتقار او احتقار د اظهار په معنى كې دى دا ټول په

ترکیب کې مرفوع واقع دي. **ثم تقنع یدیک**: باب افعال نه د مخاطب صیغه ده اقناع د اوچتیدو په معنی سره راغلې دلته دعا کې لاس اوچتول مقصود دي.

**یقول**: دا کلام د ابن عباس رضي الله عنه دی د حضور صلی الله علیه وسلم د کلام تفسیر بیانوي یعنې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي تاسو دعا کې دواړه لاسونه اوچتوئ او د الله تعالی مخې ته داسې کیفیت جوړ کړئ چې د لاسونو تلي ستا مخ طرف ته وي. (المرقات ۲/۵۲۲).

**وتقول یارب**: دا د مرفوع حدیث حصه ده یعنې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي تاسو دعا کې داسې وایې: کذا و کذا یعنې چا چې د مونځ نه پس دعا ونه غوښتله نو دده مونځ ناقص دی دې مطلب د پاره دویم حدیث کې خداج لفظ راغلی چې د نقص او نقصان په معنی راغلی دی دې نه معلومه شوه فاتحه نه لوستلو سره مونځ کې نقص راځي مونځ نه باطلیږي سوچ په کار دی آیا دعا نه غوښتلو سره مونځ باطل شو نه بلکې نقص په کې راغي. شیخ عبد الحق رحمه الله وایي: **دل الحدیث علی استحباب الدعاء بعد الصلوة**، د حدیث نه د مونځ نه پس دعا غوښتل مستحب ثابت شو.

**د فرضو نه پس د دعاء ثبوت**: نن نه څه وخت مخکې سنتو نه پس اجتماعي دعا شته یا نشته باندې سخت اختلاف وو خو اخره کې اهل بدعت د مسلمانانو عام ماحول ته کتلو سره خاموشه کیناستل او اوس یوه بله مسئله پیدا شوې ده آیا فرائضو نه پس اجتماعي دعا ثابت ده یا نه ده، جمهور عجم د فرائضو نه پس لاس اوچتول ضروري ګڼي او په خپله لاس اوچت کړي او دعا غواړي جزیره عرب کې مسلمانان د فرضو نه پس دعا د پاره لاس نه اوچتوي نو د عجمو علماو هم هغوئ ته وکتل او د هغوئ په نقش قدم باندې د تلو کوشش کوي. مفتي هند کفایت الله صاحب رحمه الله د فرائضو او سنتو نه پس دعا غوښتل یا نه غوښتل متعلق **النفائس المرغوبة في حکم الدعاء بعد المکتوبة** په نوم یو کتاب لیکلی دی دا په حقیقت کې یوه فتوی ده دې باندې د مختلف ملکونو سل (۱۰۰) علماو دستخط دی دې کې مفتي صاحب رحمه الله د فرضو نه پس دعا غوښتلو باندې یو لوی کلام کړی دی د ثبوت دا یو عمیق تحقیق دی کتاب فصل اول نه حضرت مفتي صاحب رحمه الله د دلائلو سره د سنتو نه پس اجتماعي دعا نفي کړې ده او فصل دوهم نه د فرائضو نه پس د دعا غوښتلو ثبوت باندې یولس احادیث ذکر کړي دي. او بیا مختلف علماو نه د جواز او عدم جواز متعلق فتوای اخستې ده ددې په جواب کې د مختلفو علماو دا جواب دی د ټولو جواباتو عبارت نیږدې نیږدې داسې دی. فرائضو سره متصل د دعاء غوښتل د سنت موافق دي ددې ثبوت احادیثو کې موجود دی خو د سنتو او نوافلو نه پس خاص التزام سره دعا غوښتلو ثبوت احادیثو کې موجود نه دی بلکې دا التزام بدعت دی دا ترک کول ضروري دی. (نفائس مرغوبه ص۶۱)

حضرت مفتي صاحب رَحِمَهُ اللهُ چې د کومو احادیثو نه استدلال کړی دی په هغې کې واضح طور باندې فرائضو نه پس دعا غوښتلو ذکر شته خو سوال کونکی وايي چې لاس اوچتوي او اجتماعي دعا غوښتل ذکر او ثبوت يو حديث کې هم نشته ددغې وجې اهل حديث او د حرمينو علماو او د جزيره عرب علماء او د عجمو بعضې او قليل علماو د فرائضو نه پس لاس اوچتول او اجتماعي دعا غوښتل صحيح نه ګڼي خو فرائضو نه پس د دعا قائلين دوي ته يو څو جوابونه ورکوي :(۱) لاس اوچتول د دعا آداب نه دي چې د دعا ثبوت دی نو رفع اليدين ثبوت په خپله باندې وشو .(۲) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نوافلو نه پس دعا غوښتې هغې کې لاس اوچت کړی دی فقهاو دا عمل د فرائضو نه پس سره لګولی دی او په دې عمل شروع شو فيض الباري شرح بخاري کې شاه انور شاه صاحب رَحِمَهُ اللهُ دې باندې باريک او طويل کلام کړی دی. (۳) د مذاهب اربعو علماء دې دعا ته مستحب ويلو سره ډير وخت په دې باندې عمل کړی وو لهذا نن سبا د اختلافاتو اعتبار نشته. والله اعلم بالصواب.

(۴) زيربحث حديث واضحه عاجزی سره لاس اوچت او ژړا سره دعا غوښتلو ترغيب ورکوي حديث کې يو احتمال بل هم شته د هغې واضح مطلب دا دی دا معامله مونځ کولو نه پس دعا غوښتلو ده ځکه شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې د فرائضو نه پس اجتماعي دعاء غوښتل مستحب ګڼلي ده .

**خداج**: يعنې څوک چې داسې دعاء نه غواړي نو د هغوي مونځ ناقص دی دلته د **خداج** دې لفظ نه مراد نقصان دی ، يو حديث کې **فاتحه خلف الامام** پريښودو باره کې د **خداج** لفظ استعمال شوی دی ، ددې نه معلومه شوه د فاتحې لوستل فرض نه دي بلکې واجب دي ورنه د **خداج** لفظ به نه استعماليدلی بلکې د **باطل** لفظ به استعمال شوی وی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## امام ته په اوچت آواز سره تکبيرونه ويل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ : صَلَّى لَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ |
| د سعيد بن حارث بن معلی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: مونږ ته مونځ راکړو ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او |
| فَجَهَرَ بِالتَّكْبِيرِ حِينَ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ وَ حِينَ سَجَدَ وَ حِينَ رَفَعَ |
| تکبير يې په جهر سره وويل کله چې د سجدې نه يې سر اوچت کړو او چې کله سجدې ته لاړو همدارنګې يې |

مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ وَ قَالَ : هٰكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ .(رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).[1]

وکړل او چې کله يې د دوه رکعاتو نه سر او چت کړو نو هم دا رنګه يې وکړل او وې ويل ما نبي عليه السلام دا سې ليدلى و.

**توضيح: حين رفع راسه:** دې دريو مقاماتو کې تيز آواز سره د تکبيراتو ذکر ځکه کړى دى چې بحث په دې کې وو يا دې وجې نه چې خلکو د سنتې د وجې نه تکبيرات ويل پرېښودي وو يا دې وجې نه د دريو ذکر بطور نمونه وو او باقي تکبيرات يې په دې قياس کړل .(المرقات ۲/۵۲۳).

شيخ عبد الحق رحمه الله په لمعات کې ليکي چې د بنو مروان دور کې حضرت ابو هريرة رضي الله عنه مونځ ورکولو يو ځل دا بيمار شو نو مونځ ابو سعيد خدري رضي الله عنه ورکړو او دې دريو ځايونو کې يې په اوچت آواز تکبيرات وويل چې مونځ يې ختم کړو چا وويل خلکو ته ستا مونځ نا آشنا ښکاره شو تاسو په منبر کيناستئ او ويې فرمايل قسم په خدائى ما ته د هيچا څه پرواه نشته چې ما سره مونځ کې اختلاف وکړي يا ونه کړي ما حضور صلى الله عليه وسلم وليدو هغوئ به دا سې مونځ کولو . شيخ لمعات کې دا هم ليکلي د مروان ملګري او به خپله هغه په مونځ کې تکبيرات د اوچت آواز په ځاى په مزه وويل دې وجې نه حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم د مونځ حواله ورکړه، امام ته په کار دي چې هغه خلکو ته نه ګوري بلکې مسنونه طريقه دې اختيار کړي او په تيز آواز دې تکبيرات وايي .

## بغير د سوچه په لويو باندې اعتراض نه دى په کار :

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ | وَ | عَنْ | عِكْرِمَةَ | قَالَ : | صَلَّيْتُ | خَلْفَ | شَيْخٍ بِمَكَّةَ |
| د حضرت عکرمه رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: ما مونځ وکړو د يو بوډا پسې په مکه مکرمه کې (يعني | | | | | | | |
| فَكَبَّرَ | ثِنْتَيْنِ | وَ عِشْرِينَ | تَكْبِيرَةً | فَقُلْتُ | لِابْنِ | عَبَّاسٍ : | |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه) هغه په مونځ کې دوه ويشت تکبيرات وويل نو ما وويل ابن عباس رضي الله عنه ته | | | | | | | |
| إِنَّهُ | أَحْمَقُ | فَقَالَ | ثَكِلَتْكَ | أُمُّكَ | | | |
| دا سړى احمق دى (چې دومره ډير تکبيرات وايي) ابن عباس رضي الله عنه وويل : ستا مور دې په تا وژاړي | | | | | | | |
| سُنَّةُ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ.[2] | | | | | | | |
| دا طريقه خو د ابو القاسم محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ده. | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۳۰۲ رقم الحديث ۸۲۵

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۲۷۲ رقم الحديث ۷۸۸

**توضیح**: عکرمة: دا عکرمه تابعي دی د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شاګرد دی دده بې ځایه جرات ته وګوره په یو صحابي باندې غلط اعتراض کوي علم ورسره نشته او په علم والاو باندې اعتراض کوي دا کلام د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په محبت او د دفاع کې لیکم ورنه زما د پاره عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د سر تاج دی. ( المرقات ۲/۵۲۳).

**څلور رکعاتو کې دوویشت تکبیرات وي**: سنة ابي القاسم: شارحینو لیکلي دي د مروان په دور کې هغوی تکبیرات په مزه شروع کړي وو حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دده دې غلطی ښکار شوی وو کله چې دوی حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اوچت آواز سره تکبیراتو باندې ولیدو نو سخت تعجب کې شو او اعتراض یې وکړو ، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ښه ورته او وې فرمایل تکبیرات د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت دي ددې حدیث نتیجه او د مخکیني حدیث نتیجه یو دی ددې وخت تکبیراتو کې د حکومت طرف ته څه فرق راغلی وو ځکه عامو خلکو ته التباس وشو.(المرقات ۲/۵۲۴).

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ مُرْسَلًا قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الصَّلَاةِ |
| د علي بن الحسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مرسلا روایت دی دا وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به تکبیرویلو په مونځ کې |
| كُلَّمَا خَفَضَ وَ رَفَعَ فَلَمْ تَزَلْ تِلْكَ صَلَاتُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| چې کله ښکته کیدو رکوع ته او سجدې ته تلو کې او کله چې به پاڅیدو نو تکبیر به یې ویلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| حَتّٰى لَقِيَ اللهَ تَعَالٰى[1]. |
| به همیشه داسې مونځ کولو تر دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله تعالی سره ملاقات وکړو یعنې وفات شو. |

## رفع الیدین صرف تکبیر تحریمه په وخت کې دي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ : قَالَ لَنَا ابْنُ مَسْعُودٍ : أَلَا أُصَلِّي |
| د حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې : ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته وویل : آیا زه مونځ وکړم |
| بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ فَصَلَّى |
| تاسې ته د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ په شان ؟ نو مونږ ته ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په شان مونځ وکړو |

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۷۶/۱ رقم الحدیث :۱۷ من کتاب الصلاة.

وَ لَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً مَعَ تَكْبِيرَةِ الِافْتِتَاحِ .[1]

او پورته یې نه کړل لاسونه خپل مګر یو ځل یې او چت کړل او هغه هم صرف په تکبیر تحریمه کې.

وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَيْسَ هُوَ بِصَحِيحٍ على هٰذَا الْمَعْنٰى.

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ

د حضرت ابو حمید ساعدي رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام به چې کله مونځ ته او دریدو نو

اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ قَالَ : الله أكبر .[2]

قبلې ته به یې مخ کولو (بیا) دواړه لاسونه یې او چت کړل او (دې نه پس) یې تکبیر وویلو.

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه الصلاة والسلام مونږ ته د ماسپښین مونځ راکړو

وَ فِي مُؤَخَّرِ الصُّفُوفِ رَجُلٌ فَأَسَاءَ الصَّلَاةَ فَلَمَّا سَلَّمَ

او په آخري صف کې یو کس ولاړ وُ هغه صحیح طریقې سره مونځ ونه کړو چې دغه کس سلام واړه وو نو

نَادَاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « يَا فُلَانُ أَلَا تَتَّقِي اللهَ ؟ أَلَا تَرَى كَيْفَ

نبي علیه السلام ورته آواز ورکړو: ای فلان! د الله تعالی نه، نه ویرېږې، آیا تا ته معلومه نه ده چې تا څنګه

تُصَلِّي ؟ إِنَّكُمْ تُرَوْنَ أَنَّهُ يَخْفَى عَلَيَّ شَيْءٌ مِمَّا تَصْنَعُونَ وَاللهِ إِنِّي لَأَرَى مِنْ خَلْفِي كَمَا أَرَى

مونځ وکړو ته خو پوهېږې چې څه کوې ما ته به پته نه وي، په الله قسم! زه وینم شا ته شیزونه لکه څنګه

مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ» [3].

چې زه وینم د مخې شیزونه.

**توضیح: من خلفي:** یعني په خدای قسم زه په مونځ کې د خپل شا ته خلک وینم څکه په مونځ کې خلاف سنت کار مه کوئ د دې حدیث نه معلومه شوه چې حضور صلی الله علیه وسلم شا ته او مخکې یو شان ګوري.

**سوال:** دې ځای کې دا سوال پیدا کېږي الله تعالی علم غیب خپله خاصه ګرځولې ده، د قرآن ډېر آیتونه او

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۱۷۷، رقم الحديث . ۷٤۷، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/٤۰، رقم الحديث : ۲۵۷.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۲٦٤ رقم الحديث ۸۰۳

(۳) أخرجه أحمد في المسند ۲/٤٤۹.

د انبیاء کرامو او د بزرګانو ډیرې قصې په دې دلالت کوي د غیب علم الله تعالی سره خاص دی د احادیث مقدسو ډیر روایات په دې باندې دال دي علم الغیب د الله تعالی خاصه ده دې حدیث نه دا تاثر ملاویږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عالم الغیب دی او هغه په وروستو مخکې او پټ څیزونو باندې پوهیږي ددې تعارض جواب څه دی؟

**جواب:** شارحینو په دې روایاتو کې ډیر توجیهات کړي دي او ددې تعارض ډیر جوابونه یې کړي دي:

(۱) ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حالت مونځ کې انکشاف تام ورته کیدو او ددې وجې نه په دوی باندې د تجلیاتو مکمل نزول به کیدو د دې وجې نه بطور خرق عادت دوی ته وروستو مخکې څیزونه په نظر راتلل، دا کیفیت د مونځ نه بهر نهٔ و دې وجې نه دوی د مونځ نه علاوه د علم الغیب نفې کړې ده د دغې ددې حدیث سره تعارض نشته (کذا في المرقات بتفسیر یسیر). (المرقات ۲/۵۲٦)

(۲) شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې لیکلي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کې وروستو او مخکې یو شان څیزونه ښکاریدل معجزه وه دوی حقیقي سترګو سره وروستو مخکې کتل. (اشعة اللمعات ۳۹۲).

د شیخ په دې جواب کې څه بُعد نشته ځکه چې د وحې کنکشن کله شروع کېږي نو انبیاء کرامو ته هر یو څیز ښکاري او هغه علم بیا علم الغیب نه وي. علامه بوصیری رَحِمَهُ اللهُ وایي :

تبارک الله ما وحی بمکتسب ۔۔۔ ولا نبي علی غیب بمتهم

سعدي بابا د حضرت یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ او د حضرت یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ د فراق په باره کې داسې وایي:

یکی پرسید ازاں گم کرده فرزند ❁ کہ اے روشن گہر پیر خرمند
ز مصرش بوئے پیراہن شمیدی ❁ چرا در چاہ کنعانش نہ دیدی
بگفت احوال ما برق جہان است ❁ دمے پیدا ودیگر دم نہان است
گہے برطارم اعلی نشینم ❁ گہے بر پشت پائے خود نہ بینم

(۳) بعضو شارحینو دا جواب ورکړی دی کیدی شي وحې یا الهام په طور باندې معلومیده بهر حال څنګه چې وي خو دا حالت مستمره نه وو بلکې د مونځ سره محدود وُ او شارحین په احادیثو کې محنت او کوشش کوي او ددې جوابات ورکوي چې دا په خپله ددې خبرې دلیل دی چې د امت محمدیه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عقیده د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د غیب دان نه ده.

علم غیبے کس نمی داند بجز پروردگار ❁ ہر کہ گوید ما بدانم تو از و باور مدار
مصطفی ہرگز نہ گفتی تا نہ گفتی جبرئیل ❁ جبرئیلش ہم نہ گفتی تا نہ گفتی کردگار



# بَابُ مَا يُقْرَأُ بَعْدَ التَّكْبِيرِ:

# تكبير تحريمې نه پس دعاګانې

قال الله تعالىٰ: ﴿ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ ﴾ (سورة طور: ۴۸/۴۹)

﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ﴾ (سورة حجر آيت: ۹۸)

﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾ (سورة واقعة آيت: ۹۶)

د تكبير تحريمې نه پس د مونځ په شروع كې د صحيحو احاديثو نه يو څو دعاګانې او اذكار ثابت دي مثلاً (سبحانك اللهم.. الخ) ثناء ويل مشهور دي دغه رنګ (اني وجهت وجهي... الخ ويل هم ثابت دي، امام مالك رَحِمَهُ اللهُ وايي تكبير تحريمه او فاتحې په مينځ كې مسنونه دعا نشته الله اكبر نه پس فاتحه شروع كول په كار دي لكه څنګه چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايات راغلي دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام فاتحې سره قرآت شروع كولو د جمهورو فقهاؤ په نزد دې موقعه باندې څه نا څه دعا ويل په كار دي آحاديثو كې د دعاګانو ذكر شته بيا د جمهورو خپل منځ كې اختلاف دى د احنافو او حنابلو په نزد (سبحانك اللهم... الخ) ويل افضل دي.

بيا د ټولو اوږدو دعاګانو په باره كې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي نوافلو او فرائضو دواړو كې د دې ويل مستحب دي خو ټولې ويلې شي يا بعضو باندې اكتفاء وكړي.

د امام صاحب په نزد باندې فرائضو كې صرف (سبحانك اللهم... الخ) ويل په كار دي او باقي دعاګانې په تهجد او نوافلو كې په كار دي په فرائضو كې داسې دعا رانه شي چې د مونځ باطل كيدو خطره په كې وي همدارنګه مونځ دروند جوړ نه شي او په قوم باندې بوج جوړ نه شي.

امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ او ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ فرمايي فرائضو كې ثناء او (اني وجهت وجهي... الخ) دواړه يو ځاى ويل په كار دي دې نه علاوه نه دي ويل په كار.

شوافع وايي كه احاديثو كې د ټولو دعاګانو ذكر ملاويږي هغه نوافل او تهجد و باندې محمول دي فرائضو كې د احتياط په بنياد عامې دعاګانې نه دي ويل په كار.

يا دغه دعاګانې تكبير تحريمې نه مخكې ويل په كار دي يا كله نا كله فرائضو كې ويل په كار دي ظاهري حديث نه دغه معلوميږي چې نوافلو سره سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرائضو كې هم دا دعاګانې كړي دي كلا يو كس د احتياط په بنياد يې وايي ويلې شي ثواب ورته ملاويږي البته نوافلو كې اوږدې او مختصرې ټولې ويلې شي او فرائضو كې مختصر ويل په كار دي فرض مونځ په اوږديدو باندې په قوم

باندې بوج جوړ نه شي حضور ﷺ امامان د فرض او ږد مونځ نه منع کړي وو او سخت د خفګان اظهار يې کړی وو که يو کس يوائې مونځ کوي يا نوافلو کې وي د هغه د پاره منع نه دی په دې شرط چې صرف مسنون دعاګانې وايي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل:

## د تکبیر تحریمې نه پس يو څه خاموشي سنت ده :

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يسكت بَيْنَ التَّكْبِير |
| د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روايت دی وايي چې :نبي علیه الصلاة والسلام به خاموش کيدو په مينځ د تکبير |
| وَ بَيْنَ الْقِرَاءَةِ إِسْكَاتَةً قَالَ أَحْسِبُهُ قَالَ هنيّة فَقلت بِأَبِي وَ أُمِّي يَا رَسُولَ اللهِ |
| تحريمې او د قرآت کې ، ما يو ورځ عرض وکړو : يا رسول الله ! په تاسو دې زما مور او پلار قربان شي |
| إِسْكَاتُكَ بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَ الْقِرَاءَةِ مَا تَقُولُ قَالَ : « أَقُولُ |
| تاسو د تکبير تحريمې او قرآت په مينځ کې خاموش پاتې کېږې څه وايي تاسو ؟ وي فرمايل : زه وايم |
| اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَ بَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ |
| دا دعاء: ای الله ! لرې والی پيدا کړې په مينځ زما او په مينځ د ګناهونو زما کې لکه څنګه چې تا لرې والی |
| بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ اللَّهُمَّ نَقِّنِي مِنَ الْخَطَايَا كَمَا |
| پيدا کړې دی د مشرق او مغرب په مينځ کې ، ای الله ! ما د ګناهونو نه داسې پاک کړې لکه څنګه چې |
| يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ اللَّهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِالْمَاءِ والثلج وَالْبرد» (متفق عليه)[1] |
| سپينې کپړې نه خيرې لرې کولې شي، ای الله! زما ګناهونه د اوبو، واورې او ګلې سره ووينځې . |

**توضيح: اسكاتة:** يعنې لږ ساعت د پاره حضور ﷺ اودريدو دغه دوران کې به دوی څه ويل دې متعلق حضرت ابو هريره رضی الله عنه د نبي علیه السلام نه تپوس وکړو چې تاسو دغه وخت کې څه وايي حضور ﷺ د دعاء نښاندهي وکړه. (المرقات ۵۲۷-۲/۵۲۸).

**بالماء:** خيرې لرې کولو د پاره عام طور او به استعماليږي که هغه نه وي نو د ګلې او يا د واورې او به هم

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۲۷/۲،رقم الحديث ۷۴۴، ومسلم في الصحيح ۱۱۹/۱ رقم الحديث.۱۴۷-۵۹۸، وأبو داود ۴۹۳/۱ رقم الحديث ۷۸۱، والنسائي ۵۰/۱، رقم الحديث. ۱۰

استعمالولی شي د درې څيزونو ذکر ځکه دی ترڅو چې د طهارت د ټولو طريقو ذکر اوشي او د عموم پاکۍ مقصد حاصل شي حديث کې د سپينې کپړې ذکر ځکه وشو دې باندې ګندګي ښکاري او د وينځلو سره ښکاري چې خيرې ختم شو يا نه. د ګناه د وينځلو کومه دعا ده دا تشبيه او تمثيل دی مراد د ګناهونو بخشش دی حقيقت کې وينځل مراد نه دي، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه يو قول منقول دی تکبير تحريمې نه پس متصل فاتحه شروع کول په کار دي ثناء يا نورې دعاګانې مسنون نه دي خو د جمهورو دې باندې اتفاق دی تکبير تحريمې نه پس بطور خاص ثناء ويل مسنون دي تفصيل تير شوی دی.

## په مونځ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوردې دعاګانې

﴿۲﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَفِي رِوَايَةٍ:

د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې کله مونځ ته اودريدو او يو روايت کې دي

كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ ثُمَّ قَالَ: « وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي

چې مونځ به يې شروع کولو نو تکبير تحريمه به يې ويله بيا به يې ويل: ما خپل مخ هغه ذات طرف ته متوجه

فَطَرَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضَ حَنِيفًا

کړی چې د آسمان او ځمکو پيدا کونکی دی او حال دا چې زه حق طرف ته متوجه کيدونکی يم او بيزاره يم

وَ مَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ إِنَّ صَلَاتِي وَ نُسُكِي وَ مَحْيَايَ وَ مَمَاتِي

د باطل دين نه او د هغه خلکو نه، نه يم کوم چې شرک کوي، زما مونځ، زما عبادت، زما ژوند او زما مرګ

لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا شَرِيكَ لَهُ وَ بِذَلِكَ أُمِرْتُ

د الله تعالی د پاره دی چې د دوارو جهانو رب دی او څوک شريک يې نشته او ما ته د دې حکم شوې دی

وَ أَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ اللَّهُمَّ أَنْتَ الْمَلِكُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَنْتَ رَبِّي وَ أَنَا عَبْدُكَ

او زه د مسلمانانو نه يم اې الله! ته بادشاه يې ستا نه سوا بل معبود نشته، ته زما رب يې او زه ستا بنده يم ما

ظَلَمْتُ نَفْسِي وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي جَمِيعًا إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ

خپل نفس باندې ظلم کړی زه د خپلو ګناهونو اقرار کوم ته زما ګناهونه معاف کړې، او نشته دی بخشش

إِلَّا أَنْتَ وَ اهْدِنِي لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ لَا يَهْدِي لِأَحْسَنِهَا

کوونکی په غير د تا نه بل څوک او ښه اخلاقو طرف ته زما رهنمائي وکړې غير د ستا نه بل څوک ښه اخلاقو

إِلَّا أَنْتَ وَ اصْرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا لَا يَصْرِفُ عَنِّي سَيِّئَهَا
طرف ته رهنمائي کونکی نشته او بد اخلاق زما نه لرې کړې ځکه چې نه مې شي بچ کولی د بد اخلاقی
إِلَّا أَنْتَ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ وَ الْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ
نه په غير د تا نه بل څوک زه ستا خدمت کې حاضر يم او ستا حکم منلو ته تيار يم ټولې نيکی ستا په لاس
وَ الشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ أَنَا بِكَ وَ إِلَيْكَ
کې دي، او گناهونه ستاسو طرف ته منسوب نه دي زه ستاسو د سبب نه يم او ستاسو طرف ته رجوع کوم
تَبَارَكْتَ وَ تَعَالَيْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَ أَتُوبُ إِلَيْكَ » وَ إِذَا رَكَعَ
ته د برکت والا يې او دې خبرې نه اوچت يې زه تا نه بخښنه غواړم او تا ته توبه کوم او چې کله رکوع کوي
قَالَ : « اللَّهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَ بِكَ آمَنْتُ وَ لَكَ أَسْلَمْتُ
نو وايي به اى الله ! ما ستا د پاره رکوع کړې او په تا باندې مې ايمان راوړی او ستا د پاره مې اسلام راوړی
خَشَعَ لَكَ سَمْعِي وَ بَصَرِي وَ مُخِّي وَ عَظْمِي وَ عَصَبِي » فَإِذَا رَفَعَ
نېکه کيږي ستا د پاره زما اوريدل زما تندی زما د ماغ زما هډوکي او زما پټې، چې کله د رکوع نه سر اوچت
رَأْسَهُ قَالَ: « اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا بَيْنَهُمَا
کړي نو وايي به اى الله! زمونږ ربه! ستا د پاره حمد دی د آسمانونو او ځمکو برابر او څه چې د دې مينځ کې
وَ مِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ » وَ إِذَا سَجَدَ قَالَ : « اللَّهُمَّ لَكَ
دی د هغې برابر او د هغه څيز برابر چې وروستو پيدا شي او چې کله سجده کوي نو وايي به: اى الله! ستا د پاره
سَجَدْتُ وَ بِكَ آمَنْتُ وَ لَكَ أَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي
ما سجده کړې ده، تا باندې مې ايمان راوړو او ستا د پاره مې اسلام قبول کړو زما مخ هغه ذات ته سجده
خَلَقَهُ وَ صَوَّرَهُ وَ شَقَّ سَمْعَهُ وَ بَصَرَهُ
وکړه چې هغې دا پيدا کړې دی ته يې صورت ورکړو د ده سترگې خلاصې شوي غوږونه خلاص شو، الله
تَبَارَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ » ثُمَّ يَكُونُ مِنْ آخِرِ مَا يَقُولُ بَيْنَ التَّشَهُّدِ وَ التَّسْلِيمِ:
تعالى ډير برکت او بهترين پيدا کونکی دی بيا به وايي په آخر کې هغه چې وايي د تشهد او د سلام په مينځ
« اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَسْرَفْتُ
کې: اى الله ! زما مخکې او وروستو، پټ او ښکاره ټول گناهونه معاف کړې او کوم اسراف چې ما کړی

وَ مَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ

هغه هم راته معاف کړي، او هغه ګناه مې هم معاف کړې چې د هغې علم ما نه ډیر ستا سره وو او ته خپل

الْمُقَدِّمُ وَ أَنْتَ الْمُؤَخِّرُ

بندګانو کې چا ته وغواړې مخکې کوې یې (عزت ورکوې) او چا ته چې وغواړې وروسته کوې یې او

لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَ فِي رِوَايَةٍ لِلشَّافِعِيِّ :

ستا نه غیر بل هیڅوک معبود نشته. او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په روایت کې (ړومبی دعا کې د فِي یدک)

« وَ الشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ وَ الْمَهْدِيُّ مَنْ هَدَيْتَ

نه پس دا الفاظ دي یعنې ګناه ستا طرف ته منسوب نه ده او هدایت یافته هغه دی چې تا ورته هدایت کړی

أَنَا بِكَ وَ إِلَيْكَ لَا مَنْجَى مِنْكَ وَ

وي. او زه ستا د قوت د وجې نه یم، او ستا طرف ته رجوع کونکی یم، نشته نجات ستا ذات نه علاوه او

لَا مَلْجَأَ إِلَّا إِلَيْكَ تَبَارَكْتَ ». [1].

نشته ده پناه خو ستا ذات طرف ته او ته بابرکت یې.

**توضیح: مخ:** مخ مغز او کودی ته ویلي شي او عصبی پټوته عصب ویلي شي. (اشعة اللمعات ۳۹۴).

**ملأ السموات:** یعنې د ځمکې او آسمانونه برابر دې دغه دواړه ډک شي.

**من شئ بعد:** یعنې د ځمکو او اسمانونو نه علاوه کوم څیزونه چې معدوم وي خو ممکن الوجود دي ددې برابر حمد او ثنا ستا دپاره (بعد) یعنې **بعد المذکورات في السموات والارض.**

**وشق سمعه:** الله تعالی خپل قدرت کامله سره رحم کې د انسان او حیوانیو تصویر او یوه خاکه جوړوي چې بالکل اوبو او هوا باندې وي دغه خاکه کې سترګې، غوږونه، پوزه او خوله مقاماتو باندې صرف یو ټک لګیدلی وي بیا دغه ځایونو کې الله تعالی مناسب سترګې غوږونه، خوله و غیره جوړ کړي دې حدیث کې ددې ذکر شوی دی د انسان او ځناور تصویر کشي الله تعالی فرمایي او بیا دغه شق باندې انسان او حیوان جوړ شي دا دیو شکر مقام دی او خصوصي انعام دی دې وجې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې ذکر

[1] اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۳۴ رقم الحديث ۲۰۱-۷۷۱، وابو داود ۱/۴۸۱ رقم الحديث ۷۶۰.

کړي: ﴿ فَتَبَارَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ﴾ (سورة المؤمنون آيت : ١٤).

**الشر ليس اليک:** يعني د آدب او احترام او د تعظيم او عظمت د وجې نه د شر نسبت الله تعالى طرف ته نه دی شوی، ځينې څنګه الله تعالى د خير خالق دی دغه رنګ د شر خالق هم دی ها تخليق شر دا خو کمال دی خو ارتکاب د شر دې کې قباحت دی.

## يوه لويه دعاء

﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ رَجُلًا جَاءَ فَدَخَلَ الصَّفَّ وَ قَدْ

دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: يو ورځ يو کس راغی او د مونځ صف کې داخل شو او بره او

حفزه النَّفس فَقَالَ : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيرًا

خکته کيده ساه يې (يعني ساه ساه کيدو) او وې ويل : الله تعالى ډير لوی دی ټول تعريفونه الله لره دي

طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَاتَهُ قَالَ: «أَيُّكُمُ الْمُتَكَلِّمُ

داسې تعريفونه چې ډير پاکيزه او برکت والا دي نو کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونځ وکړو وې فرمايل چا وويل

بِالْكَلِمَاتِ ؟ » فَأَرَمَّ الْقَوْمُ . فَقَالَ : « أَيُّكُمُ الْمُتَكَلِّمُ بِالْكَلِمَاتِ ؟ » فَأَرَمَّ الْقَوْمُ.

دا کلمات؟ ټول خلک خاموش شو بيا يې وفرمايل : چا وويل دا کلمات بيا هم چا جواب ورنه کړو نو بيا

فَقَالَ : « أَيُّكُمُ الْمُتَكَلِّمُ بِهَا فَإِنَّهُ لَمْ يَقُلْ بَأْسًا » فَقَالَ

يې وفرمايل : دا کلمات چا ويلي دي (ويريږئ مه) چا چې دا کلمات ويلي هغه ګناه نه ده کړې ،نو وويل

رَجُلٌ : جِئْتُ وَ قَدْ حَفَزَنِي النَّفَسُ فَقُلْتُهَا.

يو کس يا رسول الله! کله چې زه راغلم نو زما ساه بره او ښکته کيده ما دا کلمات ويلي دي ،نبي عَلَيْهِ السَّلَام

فَقَالَ: « لَقَدْ رَأَيْتُ اثْنَيْ عَشَرَ مَلَكًا يَبْتَدِرُونَهَا أَيُّهُمْ يرفعها » [1].

وفرمايل: ما وليدل چې دولس فرښتو مخکې والی کولو چې دا کلمې به الله تعالى ته مخکې څوک وړي.

**توضيح: حفزه النفس:** حفز ضرب يضرب نه د وروستو نه ديکه ورکولو په معنى کې دی محاوره ده حفز الليل النهار يعني شپې ورځې له لرې کړو دلته د ساه بره ختلو په معنى کې دی ډير تيز راتلو د وجې نه ساه يې تله راتله ګويا ګويا دا ورته ديکه ورکوي.(المرقات ۵۳۵-۲/۵۳۶).

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۴۱۹ رقم الحديث:۱۴۹-۶۰۰، وأبو داود ۱/۲۰۵ رقم الحديث ۷۶۳، والنسائي ۲/۱۳۲، رقم الحديث۹۰۱.

**فأرم القوم**: دا خاموش کیدو ته ویلي شي دا لفظ د ځناورود پاره استعمالیږي خاموشۍ کې مبالغه ده.

**بأسا**: یعني ووایه دا کلمات چا ویلي دي ده خو څه غلط کار نه وو کړی د ویرید و ضرورت نشته چونکې حضور ﷺ یو کس متعین کړی نه وو ځکه صحابه کرام خاموش وو که چرته متعین کړی وی نو بیا جواب ورکول واجب وو.

بعضې روایاتو کې د دیرش فرښتو ذکر وو (**رایت بضعة وثلاثین ملکا**) په دې تفاوت باندې شیخ عبدالحق رحمه الله عجیبه عارفانه کلام کړی دی دې سره ظاهري تعارض لرې شو فرمایي دغه صحابي چې کومه دعاء ویلې ده که مکررات او زائد حروف ترې لرې کړی شي، نو د اصل جوهر په اعتبار سره دا حروف دولس (۱۲) پاتې شو ځکه دولس (۱۲) فرښتو ذکر فرمایلی دی، که ددې دعاء مکررات او زائد شمار کړی شي دا حروف دیرش (۳۰) جوړیږي ځکه یې د دیرشو فرښتو ذکرفرمایلی دی ددغه صحابي د اخلاص د وجې نه او د کلماتو د عظمت د وجې نه فرښتو په منډه منډه دا کلمات اوچت کړل او رب خوا ته یې ویوړل.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## د تکبیر تحریمې نه پس ثناء ویل ثابت دي:

﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام به چې کله مونځ شروع کولو نو (د تکبیر

قَالَ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى

تحریمې نه پس به یې) ویل: ای الله ته پاک یې، او مونږ ستا پاکي بیانو، او مبارک دی نوم ستا او اوچت

جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد.

دی شان ستا او ستا نه غیر بل معبود نشته.

وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَارِثَةَ وَقَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[1]

**توضیح**: **سبحانک اللهم**: د ائمه احنافو او حنابلو په نزد باندې تکبیر تحریمې نه پس ثناء ویل افضل

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱۹۱/۱ رقم الحدیث ۷۷٦، وأخرجه الترمذي في السنن ۱۱/۲، رقم الحدیث: ۲٤۳.

دي او دا حديث دغه حضراتو مستدل دی، شوافعو حضراتو (اني وجهت...الخ) دعا ته افضل ويلي ده خو ثناء والا حديث د نورو احاديثو په وجه مشهور او معروف دی، علامه طيبي رحمه الله فرمايي د ثناء والا د حضرت عائشه رضي الله عنها دا حديث حسن مشهور دی او دې باندې خلفاء راشدينو نه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه عمل فرمايلی دی، علامه طيبي رحمه الله دا حديث قوي کيدو باندې خپله شرح کې عمده او طويل کلام کړی دی. شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کې وايي د حارثه يو طريق د وجې نه ددې حديث نورو طرقو ته ضعيف نه شو ويلي. (الكاشف ۳۵۹-۲/۳۶۰).

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَن جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ : أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي صَلَاةً قَالَ: |
| د جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې ما نبي عليه الصلاة والسلام په مونځ کولو ليدلی چې ويل به يې |
| « اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا وَ |
| الله لوی دی، الله لوی دی، الله لوی دی، او حمد دی الله لره ډير حمد، او حمد دی الله لره ډير حمد، او |
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا وَ سُبْحَانَ اللهِ بُكْرَةً وَ أَصِيلًا » ثَلَاثًا « أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ |
| حمد دی الله لره ډير او پاکي بيانوم د الله تعالی سحر او مابنام درې (۳) ځله، او زه پناه غواړم د شيطان د |
| مِنْ نَفْخِهِ وَ نَفْثِهِ وَ هَمْزِهِ ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَ ابْنُ مَاجَةَ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ : « وَ |
| تکبر، ويختو او وسوسو نه. دا حديث ابو داؤد او ابن ماجه نقل کړی، البته ابن ماجه نه دی ذکر کړې : و |
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا » . وَ ذَكَرَ فِيْ آخِرِهِ : « مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ » وَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : |
| الحمد لله كثيراً، او آخر کې يې ذکر کړي دي: من الشيطان الرجيم او ويلي دي حضرت عمر رضي الله عنه |
| نَفْخُهُ الْكِبْرُ وَ نَفْثُهُ الشِّعْرُ وَ هَمْزُهُ الْمُوْتَةُ .[1] |
| د شيطان نفخ نه تکبر او نفث نه ويخته او همز نه ليونتوب مراد دی. |

**توضيح: نفخه** : دې نه شيطان تکبر او خپله خوښه مراد ده اصل نفخ پو کي وهلو په معنی کې دی شيطان انسان داسې ګيروي انسان خپل ځان ته ډير لوی وايي بيا ځان خوښي او تکبر کې مبتلا کيږي، مطلب دا چې شيطان انسان کې د ننه د تکبر پو کی وهي. حکيم الامت اشرف علی تهانوي رحمه الله ملفوظات کښې وايي: هر حيوان د خپلې خولې نه غتيږي او وده کوي (يعني خوراک وکړي نو غټ شي) ليکن انسان د

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۱۸۶، رقم الحديث ۷٦٤، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/٢٦٥، رقم الحديث ۸۰۷.

غوړونو د لارې نه ځېل تعریفونو اورېدو سره غټېږي.

**نفث**: اصل کې هغه پوک ته ویلې کېږي چې یو څیز باندې دم کولو وخت کې وهلې شي دې کې معمولي شان تهوک هم وي دلته سحر او جادو مراد دی چې شیطان یې په یو انسان باندې کوي یا د یو په ذریعې سره بل باندې کولی شي، څنګه ﴿وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ﴾. **همزة**: ددې نه مراد طعن، یعنې غیبت کول دي په قرآن کریم کې ﴿هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ﴾ په دې معنی سره دی، بعضې شارحینو د همزه نه د شیاطینو وسوسه مراد اخلي، د قرآن کریم ﴿مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ﴾ دې معنی سره دی.

**قال عمر** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ددې الفاظو چې کوم تفسیر کړی دی په هغې کې دوی د نفث نه ګنده او قبیح اشعار مراد اخیستي کوم چې شیطان د انسان په تخییل کې اچوي او دوي په دې ویلو باندې آماده کوي ددې مضمون هم قبیح وي او ددې معانی هم قبیح وي.

**الموتة**: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د همزه نه جنون مراد اخیستی، ابلیس یو انسان طرف ته متوجه کیدو سره وسوسې اچولې تردې چې انسان پاګل او لیونتوب ته ورسوي. دلته دا خبره یاد ساتئ ددې حدیث الفاظ معانې او مطالب چې شارحین کوم ذکر کوي دا هغه وخت دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ددې تفسیر ثابت نه وی که د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ طرف ته بره منسوب شده تفسیر ثابت شي بیا د بل تفسیر او تشریح ته اعتبار نشته دغه مطلب به وي کوم چې عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ذکر کړی دی.

## په مونځ کې د سکتاتو حکم

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ: أَنَّهُ حَفِظَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَكْتَتَيْنِ: |
| د سمره بن جندب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ده یادې ساتلې وې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه دوه سکتې (خاموش کیدل) |
| سَكْتَةً إِذَا كَبَّرَ وَ سَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ |
| یوه سکته د تکبیر تحریمې ویلو نه پس، او بله سکته به یې هغه وخت کوله چې کله به فارغ شو د قرائت |
| غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَصَدَّقَهُ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ.[1] |
| غیر المغضوب علیهم ولا الضالین نه، نو تصدیق وکړو ددې قول حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. |

**توضیح**: **سکتتین**: مونځ کې یو سکته یعنې خاموشي شروع کې تکبیر تحریمې نه پس او سورة فاتحې نه

(۱) أخرجه أبو داؤد ۱۹۲/۱ رقم الحديث ۷۷۹، والترمذي ۳۰/۲، رقم الحديث ۲۵۱، وابن ماجه ۲۷۵/۱ رقم الحديث: ۸٤٤

مخکې ده دا سکته دعاء استفتاح او تسمیه او تعوذ د پاره ده او دا د ټولو فقهاو په نزد باندې مسلم ده. دویمه سکته د فاتحې په ختمیدو باندې ده دا سکته د شوافعو او حنابلو په نزد باندې مسنون ده چې مقتدیان په کې سورة فاتحه او وایي. دریمه سکته قبل الرکوع د سورة په اختتام باندې ده دې آخري سکته کې د احنافو په خپل مینځ کې اختلاف دی بعضې احناف سکتې ته بهتر وایي او بعضې وصل ته افضل وایي احناف محدثین سکتې ته افضل وایي، خو د مالکیو او احنافو کوم واضح مذهب دی هغه دا دی اول سکتې نه پس بله سکته نشته چې هغې ته مسنون وایي، البته په آحادیثو کې درې سکتات ذکر دي، دې نه انکار نه شي کولی.(المرقات ۲/۵۴۲،اشعة اللمعات ۳۹۷).

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَهَضَ مِنَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله پاڅیدو دویم رکعت کولو ته

استفتح الْقِرَاءَةَ ب «الْحَمد لله رب الْعَالمين» وَلَمْ يَسْكُتْ.[1] (هَكَذَا فِي صَحِيحِ مُسْلِمٍ).

نو شروع کولو به یې قرائت په الحمد لله رب العلمین باندې او خاموش کیدو به نه.

وَذَكَرَهُ الْحُمَيْدِيُّ فِي أَفْرَادِهِ وَكَذَا صَاحِبُ الْجَامِعِ عَنْ مُسْلِمٍ وَحْدَهُ.

**توضیح: استفتح القرآة:** حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ویل غواړي، کله چې به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دریم رکعت د پاره قیام کولو نو زر به یې قرآت شروع کولو او خاموشي به یې اختیاروله. (المرقات ۲/۵۴۴، اشعة اللمعات ۳۹۷)

دې مقام کې دا وهم کیدی شي چې کله مونځ گزار د دویمې شفعې د پاره قیام کوي نو دا یو نوی مونځ شروع کېږي دې مقام کې (سبحانک اللهم ... الخ) ویلو د پاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کیدی شي سکته کړې وه دې وهم لرې کیدو د پاره حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي داسې نه ده یعنې دې مقام نه پس حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (الحمد لله .... الخ) نه قرآت شروع کولو او سکوت به یې نه کولو یعنې داسې طویل سکوت به نه وو څنگه چې اول رکعت کې وو هلته ثناء، تعوذ او تسمیه ویلې کېږي، دلته صرف تسمیه ویلې کېږي. علامه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ عرف الشذي کې فرمایي د احنافو په نزد د هر رکعت په شروع کې بسم الله ویل مسنون دي بعضې احنافو واجب ویلې دي که په ویره سره هیر شي، نو سجده سهوه کولی شي فتوی سنت او استحباب باندې ده.

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۱۹ رقم الحديث ۱۴۸-۵۹۹

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۸﴾ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ
د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې کله مونځ شروع کولو نو تکبير به يې ويلو
ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ صَلَاتِيْ وَ نُسُكِيْ وَ مَحْيَايَ وَ مَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ
بيا يې وويل: زما عبادت زما مونځ زما ژوندا او زما مرګ د الله پاک د پاره دی چې رب دی د ټولو مخلوقاتو چې
لَا شَرِيْكَ لَهُ وَ بِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَ أَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّٰهُمَّ
څوک يې هم شريک نشته او په دې ما ته حکم کړې شوی، او د ټولو نه مخکې زه مسلمان يم، اې الله! زما
اَهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَعْمَالِ وَ أَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ لَا يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا
رهنمائي وکړه نيک اعمالو او ښه اخلاقو طرف ته، چې رهنمائي نه شي کولی ښه اخلاقو طرف ته په غير ستا نه
إِلَّا أَنْتَ وَ قِنِيْ سَيِّئَ الْأَعْمَالِ وَ سَيِّئَ الْأَخْلَاقِ لَا يَقِيْ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ». (۱).
او ما بچ کړې د بدو اعمالو او بدو اخلاقو نه چې د بدو اعمالو او اخلاقو نه بچ کولی شي.

﴿۹﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مسلمة قَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَامَ يُصَلِّيْ تَطَوُّعًا
د محمد بن مسلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې کله د نفل مونځ کولو د پاره ودريدو نو
قَالَ: «اَللهُ أَكْبَرُ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضَ
ويل به يې الله ډير لوی دی ما خپل مخ هغه ذات طرف ته متوجه کړو چې هغه آسمان او ځمکې پيدا کړي دي
حَنِيْفًا مُسْلِمًا وَ مَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ». وَ ذَكَرَ الْحَدِيْثَ مِثْلَ حَدِيْثِ
په داسې حال کې چې زه توحيد خپلوونکی يم او مشرکانو نه نه يم. او ذکر يې کړو حديث په شان د حديث د
جَابِرٍ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: «وَ أَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ». ثُمَّ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ أَنْتَ
جابر خو د وانا من المسلمين په ځای وانا اول المسلمين الفاظ ذکر کړي، بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام وويل اې الله! ته
الْمَلِكُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ وَ بِحَمْدِكَ» ثُمَّ يَقْرَأُ (۲).
بادشاه يې ستا نه سوا معبود نشته ته يو يې او ستا د پاره تعريف دی.

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۲۹/۲ رقم الحديث: ۸۹۶

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۱۳۱/۲ رقم الحديث. ۸۹۸.

۷ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ:
# په مونځ کې د قرآت بيان

قال الله تعالى: ﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ (سورة اعراف آيت:۲۰٤)

﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ (سورة نمل آيت: ۹۸)

﴿فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ (سورة مزمل آيت: ۲۰)

د فقهاء کرامو په مينځ کې په مسائلو کې کله اختلاف د شرعي حکم د ناسخ او منسوخ صحيح ادراک نه کيدو د وجې نه وي، او کله اختلاف په يو حکم کې د دنه په استنباط او استخراج کې د اسبابو او عللو د اختلاف د وجې نه وي، او کله د مجتهدينو په اجتهاد کې تخلف وي او کله فهم او ادراک معاني کې فرق راځي او کله د يو حکم متعلق کثرت نصوص او د دې کې تفاوت د اختلاف ذريعه جوړيږي، چونکې په هغې زمانې کې د ابلاغ د ذرائعو کموالی وو لرې علاقو نه به خلک مدينې ته راتلل او نبي عليه السلام نه به يې يو حکم زده کړو او واپس به تلل او په دې باندې به يې هميشه د پاره عمل کولو او وروستو به حکم کې تبديلي راغلې وه ځکه چې دوی به د نبي عليه السلام نه يو حکم زده کړې وُ په هغې باندې قائم به وُ او راتلونکي خلکو د پاره به د اختلاف ذريعه جوړه شوه، د دې وجې نه فقهاء کرامو ته چې کله الله تعالى د دې احکامو جمع او ترتيب موقع ورکړه نو نصوصو کې معمولي يا غير معمولي فرقونه مخې ته راغلل الله تعالى دې دوی ته جزاء خير ورکړي دوي لوی تکاليف او چت کړل د شريعت مقدسه احکامات يې د عمل د پاره عوامو مخې ته کيښودل، د دې بې شماره مسائلو کې ځای پر ځای فروعاتو کې اختلاف کيدل يو فطري امر دی او دا اختلاف زحمت نه دی، بلکې رحمت دی څومره چې هم د شريعت احکاماتو کې فقهاء کرامو اختلاف کړی دی د دې ټولو نه لوی اختلاف قرائت خلف الامام کې دی، ځکه چې د يو طرف نه ويلې کيږي چې دا سې کول فرض دي او د دويم طرف نه ويلي کيږي فرض نه دي، بلکې ناجائز دي، د دې وجې نه قرآت خلف الامام مسئله هميشه موضوع د بحث پاتې شوې ده، دلته هم د دې متعلق يو څو ابحاث حاضر خدمت دي.

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

﴿۱﴾ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ

د عباده بن صامت رضي الله عنه روايت دی وايي چې نبي عليه السلام فرمايي نه دي کامل مونځ د هغه چا چې ويې نه

يقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ» .(متفق عليه) وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: «لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَصَاعِدًا»[1].

لوستله فاتحه. او د مسلم يو روايت کې دي چې د هغه کس مونځ ونه شو چې فاتحه او نور څه يې ونه ويل.

**توضيح: لاصلوة:** مونځ کې د قرآت متعلق دري ابحاث اهم او مشهور دي دې کې د فقهاو اختلاف دی اول بحث د فاتحې رکنيت او عدم رکنيت کې دی.(المرقات ۲/۵۴۶، اشعة اللمعات ۳۹۸).

دويم بحث په دې کې چې په څو مره رکعاتو کې قرآت فرض دی، دريم بحث قرآت خلف الامام کې دی.

**اول بحث: په بيان د رکنيت او عدم رکنيت د فاتحې کې** : مونځ کې څو مره مقدار قرآن لوستل فرض دي او کو مه حصه متعين کول فرض دي آيا فاتحه رکن صلوة دی يا نه دې کې فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف:** امام شافعي، امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمُ اللَّهُ يعنې جمهور فرمايي سورة فاتحه مونځ کې متعين طور باندې لوستل فرض دي او دا رکن صلوة دی که فاتحه ونه لوستل شي مونځ ونه شو باقي قرآن کريم چې څو مره هم ويلي شي. امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ او صاحبين فرمايي فاتحه متعين طور باندې لوستل رکن صلوة نه دی بلکې رکن **صلوة قدر ماتجوز به الصلوة** دی که هغه آيت طويله وي يا قصيره وي يعنې دو مره قرآت مونځ کې فرض دی چې څو مره سره مونځ جائز کېږي که واړه درې آياته وي يا طويل يو آيت وي د آحاديثو مبارکو د وجې نه فاتحه مونځ کې لوستل بالخصوص واجب دی که يو کس مونځ کې باقي قرآت وکړي او فاتحه لوستل اونه کړي فرض قرآت خو اداء شو فاتحې د وجې نه واجب پاتې شو مونځ ناقص شو، لهذا سجده سهوه کول لازم دي، چې جبيره نقصان وشي يا د مونځ اعاده وکړي.

**دلائل:** د جمهورو دليل د عباده بن صامت زير بحث حديث دی دې کې مذکور دي عدم قرآت فاتحه نه مونځ کالعدم شمار وي معلوم شو چې خاص طور باندې فاتحه ويل مونځ کې فرض دي دې پرېښودو سره مونځ نفي کېږي او چاته چې دا مقام حاصل وي هغې ته رکن وايي ، لهذا سورة فاتحه رکن صلوة ده او د مالکيو حضراتو په نزد باندې سورة فاتحې سره سورت ملاوول هم فرض دي يعنې دواړه رکن صلوة دي د ائمه احنافو دليل ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ (مزمل آيت: ۲۰) قرآن آيت مطلق ذکر دی ددې تقاضا ده مطلق قرآن مونځ کې وويل فرض او رکن صلوة دي. دلته د فاتحې تعين او تخصيص نشته، لهذا دغه رکن نه شي کيدی د فاتحې تخصيص د خبر واحد حديث نه شوی دی او حکم چې د خبر واحد نه ثابت شي هغه فرض نه شي کيدی، بلکې واجب ورته ويل په کار دي او دا د احنافو مذهب دی مطلق قرآن لوستل فرض او رکن صلوة دی او خاص کر فاتحه لوستل واجب دي دا ځکه چې د فرض او

---

(۱) أخرجه البخاري ۲/۲۳۶،رقم الحديث ۷۵۶، ومسلم ۱/۲۹۵ رقم الحديث ۳۴-۳۹۴، وأبو داود ۱/۵۱۴ رقم الحديث ۸۲۲.

رکن مقام قطعي او یقیني وي او قطعي حکم دا ثبات د پاره دلیل قطعي په کار دی ځکه چې دلائل څلور قسمه دي: (۱) **قطعي الثبوت قطعي الدلالة**. (۲) **قطعي الثبوت ظني الدلالة**. (۳) **ظني الثبوت قطعي الدلالة**. (٤) **ظني الثبوت ظني الدلالة**. اولني قسم نه فرض ثابتیږي، دویم قسم نه واجب، دریم قسم نه سنن مؤکده وغیره ثابتیږي او څلورم قسم نه مستحبات ثابتیږي. مذکوره زیر بحث حضرت عبادة بن صمت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث خبر واحد دی دا ظني الثبوت قطعي الدلالة دی دې نه فرض یا رکن نه ثاتیږي. بلکې صرف واجب ثابتیږي او د وجوب فاتحه احناف قائل دي دا حدیث د احنافو مسلک مخالف نه دی او د دوي مسلک د حدیث مخالف دی همدا رنګې د **لاصلوة** دوه مفهومه اخیستی شي، یو مفهوم دا دی چې دې نه بالکل اصل صلوة نفي مراد واخیستی شي او دویم مفهوم دا چې دې نه کمال صلوة نفي مراد واخیستی شي. د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت دا دویم مفهوم متعین کوي دې کې (**فصلو ته خداج غیر تمام**) الفاظ راغلي، یعنې د مونځ وجود شته خو د سورة فاتحې نه لوستلو د وجې نه ناقص دې دا هغه وخت چې کله سړی امام یا منفرد وي مقتدي نه وي.

**الزامي جواب** دا دی: حدیث کې **ما زاد** او **فصاعدا** الفاظ هم دي نو آیا د فاتحې نه علاوه بل څه هم رکن صلوة دی.

**دویم بحث: په څومره رکعاتو کې قرآت فرض دی**: دې باندې د ټولو اتفاق دی چې مونځ کې قرآت فرض دی خو اختلاف دې کې دی چې فرض مونځونو کې څومره رکعتونو کې قرآت فرض دی.

**د فقهاو اختلاف**: امام زفر رَحِمَهُ اللَّهُ او حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد باندې صرف یو رکعت کې قرآت فرض دی ځکه فاقرأو حکم دی دې کې تکرار نه دی او امر د تکرار تقاضا هم نه کې یو رکعت کې قرآت فرض کافي دی. (اشعة اللمعات ۳۹۸).

امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي درې رکعاتو کې قرآت فرض دی، ځکه چې درې رکعاته اکثر دي او **للاکثر حکم الکل** مسلمه قاعده ده ګویا د مالکیو په نزد باندې څلور رکعتونو کې قرآت فرض دی خو درې رکعتونو کې د ویلو حق اداء کیږي. (اشعة اللمعات ۳۹۸) امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد باندې د فرائضو ټولو رکعتونو کې قرآت فرض دي او ضم د سورة د فرض اول رکعت کې او دویم کې نه واجب دی او نه سنت دی. بلکې مستحب دی مشهور قول مطابق د حنابلو هم مسلک دا دی چې ټولو رکعتونو کې قرآت فرض دی دا حضرات د قرآن مطلق حکم ته ګوري دې کې د قرآت لوستلو حکم دی، د ائمه احنافو مشهور او مفتی به قول دا دی که څلور رکعاتو والا مونځ وي نو په اولو دوو رکعتونو کې بقدر ثلاث آیات قصار مطلق قرآت فرض دی. او خاص کر فاتحه واجب ده البته دوو رکعتونو نه پس قرآت ویل

ضروري نه دي كه فاتحه و وايي يا تسبيحات يا خاموش پاتې شي.

**دريم بحث: قرآت خلف الامام:** مجموعي طور سره مونځ درې قسمه باندې دى(۱) صلوة الامام.(۲) صلوة المأموم.(۳) صلوة المنفرد. بيا يو مونځ جهري دى يو سري دى، نو امام د پاره دغه رنګ د منفرد د پاره جهري او سري مونځونو کې مطلق قرآت بالاجماع فرض دى او مأموم او مقتدي باندې امام نه وروسته سورة ويل بالاتفاق واجب نه دي او س يو صورت پاتې شو امام نه وروسته مقتدي باندې سورة فاتحه ويل څنګه ده دې کې اختلاف دى.

**د فقهاو اختلاف:** قرآت خلف الامام ويل او نه ويلو کې فقهاوو ډير لوى اختلاف کړى دى، ځکه چې يو فريق لو ستلو ته فرض وايي او دويم فريق ورته ناجائز او حرام وايي دا اختلاف بهر حال صحابه وو دور نه دى خو هغه دور کې دې کې دومره شدت او سختي نه وه. علامه بدر الدين رَحِمَهُ اللهُ (۸۰) صحابه شمار کړي دي چې قرآت خلف الامام د ترک قائل دي دې کې عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ، ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نوم ونه شامل دي د دې مسئلې نوم قرآت خلف الامام دى خو د دې نه فاتحه خلف الامام مراد اخستل متعين شو جمهور فقهاء يعني امام صاحب، امام مالک، احمد بن حنبل، سفيان ثوري، اوزاعي او عبد الله ابن مبارک رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد باندې جهري مونځ کې امام پسې وروسته فاتحه ويل جائز نه دي. بيا ائمه ثلاثو نه امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمَا اللهُ په نزد باندې سري مونځ کې قرآت خلف الامام مستحب دى، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه سري او جهري مونځ کې فاتحه خلف الامام باره کې پنځه اقوال معارف السنن کې ذکر دي:(۱) ويل واجب دي(۲) مستحب (۳) مباح(۴) مکروه تنزيهي(۵) مکروه تحريمي دي. د احنافو په نزد باندې مکروه تحريمي ته ترجيح حاصل ده، د علماء احنافو نه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ طرف ته صاحب هدايه دا خبره منسوب کړې ده د هغه په نزد باندې سري مونځ کې قرآت خلف الامام مستحب دى دغه رنګ ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ او نورو علماء هم ويلي دي، د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد مستحب دى، خو که د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ کتابونو ته رجوع اوشي، نو موجوده حالت کې د هغې کتابونو نه معلوميږي چې د هغه په نزد باندې قرآت خلف الامام په هيڅ حالت کې جائز نه ګڼي مؤطا امام محمد رَحِمَهُ اللهُ کې فرمايي: **( لا قرآة خلف الامام فيما جهر فيه ولا فيما لم يجهر بذلک جاءت عامة الاثار وهو قول ابي حنيفة رَحِمَهُ اللهُ)**(ص ۹۴)

دغه رنګ هغه کتاب الاثار کې قرآت خلف الامام روايات جمع کوي فرمايي **( وبه نأخذ لا نرى القرآة خلف الامام في شئ من الصلوة يجهر فيه او لم يجهر )** (ص، ۹۵)

دې رواياتو نه معلومه شوه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ مسلک دې مسئله کې هغه دى چې د عامو احنافو دى

اوس هم صاحب هدایه اعرف ببیان مسلک الاحناف دی. همدا رنګه ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې وايي : **والامام محمد من ائمتنا يوافق الشافعي في القرآءة في السرية وهو اظهر في الجمع بين الروايات الحديثية** (مرقات ج ۲ ص ٤٠١) (المرقات ۲/۵۸۰).

یعنې زمونږ د احنافو ائمو نه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ سري مونځونو کې قرآت خلف الامام کې د شوافعو موافق دی او د احادیثو ټولو روایاتو جمع کولو د پاره دا مسلک ډیر واضح دی او دا د امام مالک مسلک هم دی، (المرقات ۲/۵۸۰).

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د فصل ثاني د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث نمبر ۳۱ د لاندې لیکلي: **و مفهومه انهم كانوا يسرون بالقرآءة فيما كان يخفى فيه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وهو مذهب الاكثر وعليه الامام محمد من ائمتنا (مرقاة ج ۲ ص ۳۰۲)** (المرقات ۲/۵۸۲).

غالباً د شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ هم دا رایه ده چې سري مونځ کې قرآت خلف الامام بهتر دی اوس هم د ائمه احنافو مسلک فتوای داسې نه ده کاش چې سري مونځ کې د احنافو قرآت خلف الامام ویلو فتوای ورکولی او شوافع جهري کې د نه ویلو فتوای ورکولی، نو دواړو مسلکونو کې به په دې اختلاف کې کموالی راغلی وی او ټولو نصوصو کې به تطبیق راغلی وی، بلکې د مالکیو او حنابلو مسلک دی مفتي کفایت الله رَحِمَهُ اللهُ تعلیم الاسلام کې لیکلي:

**سوال**: قرآت خلف الامام نه څه مراد دي؟ **جواب**: قرآت قرآن کریم لوستلو ته ویل کېږي.

**سوال**: مونځ کې څومره قرآن ویل په کار دي؟ **جواب**: کم از کم یو آیت لوستل فرض دي او سورة فاتحه لوستل واجب دي او د فرض ړومبی رکعت او دویم رکعت او نماز وتر او سنت او نفل ټولو رکعتونو کې سورة فاتحې نه پس یو بل سورة یا لوی یو آیت یا واړه درې آیاتونه لوستل واجب دي.

**سوال**: آیا سورة فاتحه د ټولو مونځونو هر رکعت کې لوستل واجب دي؟ **جواب**: د فرض دریم او څلورم رکعت نه علاوه د هر مونځ که فرض وي یا واجب یا سنت یا نفل هر رکعت کې سورة فاتحه لوستل واجب دي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې مقتدي باندې د امام نه وروسته فاتحه لوستل فرض دي.

**۸ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ**

**دلائل**: شوافع حضرات د زیر بحث حدیث د حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه استدلال کوي، د شوافعو دویم دلیل خواته د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی، دې کې (خداج غیر تمام) الفاظ راغلي، یعنې چا چې مونځ کې فاتحه ونه ویله دده مونځ ناقص او نا تمام دی. چا سوال وکړو ای ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله چې مونږ د امام نه وروسته یوو دغه وخت کې قرآت په دوران کې فاتحه څنګه

ولولو هغه جواب ورکړو ددې خلاصه دا ده: فاتحه زړه کې وايه، خو پرېږده يې مه، فاتحه لوی فضيلت لري او حديث کې په دې باندې د صلوة اطلاق شوی دی، بهر حال د شوافعو اصل دليل کوم چې خپل مدعا باندې واضح دی هغه مشکوة ص ۸۱ باندې فصل ثاني کې د حضرت عباده بن صامت حديث نمبر (۳۰) دی. (المرقات ۲/۵۸۰).

ددې نه علاوه شوافعو حضراتو صحابه کرامو څه آثارو نه هم استدلال کړی دی، جمهورو کې مالکيو او حنابلو احاديث قرآت خلف الامام رواياتو کې تطبيق پيدا کړی، کوم ځای کې چې د امام نه وروسته د لوستلو ممانعت راغلی هغه جهري مونځ کې دی او کوم ځای کې چې د فاتحه خلف الامام لوستلو حکم دی هغه سري مونځ کې دی کاش ټول امت په دې باندې جمع کيدی. جمهورو کې ائمه احنافو د پاره د دوه قسمه دلائلو ضرورت دي يو هغه دليل چې په هغې کې جهري مونځ کې فاتحه خلف الامام ممانعت ذکر دی او دويم دليل هغه دی چې هغې کې سري مونځ کې فاتحه خلف الامام نه لوستلو ثبوت وي. چونکې دا مسئله ډېره نازکه ده، دلته څکه د دلائلو تفصيل به وي.

**د احنافو اولني دليل**: جهري مونځ کې فاتحه خلف الامام نه ويلو باندې احنافو او جمهورو سره د قرآن کريم آيت دليل کې: ﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ (اعراف آيت: ۲۰۴)

دلته دوه لفظه دي يو **فاستمعوا** دی ددې تقاضا دا ده چې کله قرآن لوستلی کېږي تاسو خاموش کينئ.

دويم لفظ **انصتوا** دی ددې مطلب دا دی چې کله قرآن لوستلی کېږي ته اګر چې هغه نه اورې بيا هم خاموش کينه. دې صورت کې استمعوا او انصتو د لغت په اعتبار سره فرق دی او دا فرق مفسرينو تسليم کړی دی، لهذا دا دليل د احنافو دواړو دعوو باندې واضح دليل دی، امام نه وروسته جهري مونځ وي يا سري مونځ وي ټولو کې قرآت نشته او که استمعوا او انصتوا مفهوم جدا جدا نه وي، بلکې يو وي، چې کله قرآن کريم لوستل کېږي تاسو خاموش کيني، نو دې صورت کې دا آيت جهري مونځ کې امام نه وروسته لوستل نه کول د احنافو د پاره واضح دليل دی.

**سوال**: شوافعو او خاص کر غير مقلدينو دې استدلال باندې اعتراض کړی دی دا آيت د جمعې خطبې متعلق نازل دی، لهذا د خطبې وخت کې خاموش کيناستل په کار دي مونځ سره ددې تعلق نشته.

**جواب**: د مفسرينو او جمهورو علماو په نزد باندې دا آيت د مونځ متعلق نازل شوی دی، حافظ ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ وايي: **قال احمد اجمع الناس على انها نزلت في الصلوة. (فتاوی ابن تيميه ج ۲۲ ص ۲۹۵)**

امام المفسرين محمد بن جرير طبري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دې آيت شان نزول کې درې قسمه اقوال مشهور دي، اول د مونځ متعلق دی، دويم دا چې ددې تعلق د خطبې سره دی، دريم دا چې دا آيت د خطبې او مونځ دواړو متعلق دی او ابن جرير رَحِمَهُ اللهُ دريم قول راجح کړ ګرځولی دی.

**دویم جواب** دا دی چې صحیح ده دا آیت د جمعې خطبې باره کې دی نو چې کله د خطبې یو څو آیتونو د وجې استماع او انصاف حکم دی نو د مونځ قرآت کې بدرجه اولی په کار دی، ځکه چې مونځ کې ډیر زیات آیتونه لوستل کیږي.

**دریم جواب**: د قرآن کریم آیتونو کې عموم د الفاظو اعتبار سره وي خصوص مورد او خصوصي واقعې ته اعتبار نه وي. **کمال في الاصول.**

**څلورم جواب**: د سورة اعراف دا آیت مکي دی او خطبه جمعه یا عیدین خطبه مشروعیت او شروع مدینه منوره کې شوي د نو آیت د خطبې سره څنګه تعلق ممکن دی (**کذا قال شیخ الاسلام ابن تیمیه رَحِمَهُ اللّٰهُ**) غیر مقلدین حضرات چې کله د دې آیت د جواب نه عاجز کیږي، نو بیا سورة د فاتحه د قرآن کریم نه خارجوي. ما په خپله د یو غیر مقلد نه آوریدلي وو وایي سورت فاتحه قرآن نه دی. لهذا امام کله فاتحه وایي، نو مقتدي له خاموش کیدل ضروري نه دي.

**دویم دلیل**: د احنافو او جمهورو دویم دلیل د ابوموسی اشعري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث دی مشکوة کې (ص۷۹) باندې موجود دی ترتیب په اعتبار سره فصل اول حدیث نمبر (۵) دی یو اوږد حدیث دی دې کې دا الفاظ دي (**واذا قرآء فانصتوا**) یعنې کله چې امام قرآن لولي تاسو خاموش کیږئ دا حدیث امام مسلم شریف (ج۱، ص۱۷۴) باندې نقل کړی دی او تاکید سره یې دې حدیث ته صحیح ویلي اګرچې حدیث بعضې طرقو کې دا جمله نشته مخکې تفصیل را روان دی.

**سوال**: شوافعو حضراتو د ابوموسی اشعري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دې روایت باندې دوه اعتراضات کړي اول اعتراض دا دی د دې روایت په سند کې سلیمان تیمي رَحِمَهُ اللّٰهُ دی او دا مدلس دی او دلته قتادة رَحِمَهُ اللّٰهُ عنعنې سره نقل کوي او د مدلس عنعنه قبول نه وي دویم اعتراض دا دی و **اذا قرا فانصتوا** کومه جمله چې ده د، قتادة رَحِمَهُ اللّٰهُ نه صرف یو شاګرد د هغه سلیمان تیمي رَحِمَهُ اللّٰهُ نقل کوي د قتادة نور شاګردان دا جمله نه نقل کوي سلیمان تیمي رَحِمَهُ اللّٰهُ دې جملې نقل کولو کې منفرد دی، لهذا دا جمله معتبره نه ده.

**جواب**: د اولني اعتراض جواب دا دی چې د بعضې مدلسینو د ثقتوب د وجې نه د هغه عنعنه قبول وي لکه قتاده، اعمش او سلیمان تیمي، لهذا دلته هم دده عنعنه قبول ده محدثینو تصریح کړې ده د صحیحینو روایاتو کې که د مدلس عنعنه راشي هغه مقبول ده، ځکه چې د صحیحینو ټولو روایاتو په صحت باندې د علماء اتفاق دی که هغوئ د عنعنه سره د مدلس روایت نقل کوي. نو پوره تحقیق سره یې نقل کوي. امام نووی رَحِمَهُ اللّٰهُ یو ځای کې وایي: (**فقد قدمنا في مواضع من هذا الشرح ان ما رواه البخاري و مسلم عن المدلسین و عنعنوه فهو محمول على انه ثبت من طریق آخر سماع ذلک

**المدلس هذا الحديث فيمن عنعنه منه و اکثر هذا او کثير منه يذکر مسلم وغيره سماعه من طريق آخر متصلا به) (مسلم ج۱ ص۲۰۹)**

دشوافعو دااعتراض ځکه بې ځای دی چې دا روايت ابوداود وغيره کې مذکور دی هلته عنعنه نشته.

د دويم اعتراض جواب دا دی قتادة نه( **و اذا قرآء فانصتوا**) جمله صرف سليمان تيمي نه ده نقل کړې بلکې دده متابع موجود دي چنانچه صحيح ابو عوانة روايت کې قتادة نه ابو عبيده نقل کړی دی او بيهقي او دار قطني او بزار روايت کې حضرت قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه عمر بن عامر او سعيد بن ابی عروبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نقل کوي، لهذا سليمان تيمي رَحِمَهُ اللهُ د حضرت قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نورو شاګردانو نده ذکر کړې نو دا مخالفت نه شو امام مسلم دې جملې ته صحيح ويلې ده، ځکه چې هغه نه د هغه شاګرد ابوبکر رَحِمَهُ اللهُ تپوس وکړو، د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کې چې کومه **و اذا قرآء فانصتوا** جمله ده دا څنګه ده امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي :(**هو صحيح عندي**).

**فقال لم لم تضعه ههنا فقال ليس کل شئ عندي صحيح وضعته ههنا**: يعني شاګرد تپوس وکړو چې دا جمله صحيح ده بيا کتاب کې د ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې حديث کې درج ولی نه کړه،امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ جواب کې فرمايي دا ضروري نه ده چې زه هر صحيح حديث دلته جمع کوم ډير زيات صحيح آحاديث دي، خو ما دلته جمع نه کړل لکه څنګه چې دا حديث دی دې کې دا جمله ده البته زه چې کوم حديث جمع کوم هغه به ضرور صحيح وي، ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه د احنافو صرف يوه دعوای ثابت کېږي چې جهري مونځ کې قرآت خلف الامام نشته.

**دريم دليل**: د ائمه احنافو او جمهورو دريم دليل د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دی دا ابوداود، امام نسائي او ابن ماجه نقل کړی دی او مشکوة کې ص۸۱ باندې مذکور دی (المرقات ۲/۵۸۲) او د شمار په اعتبار سره حديث نمبر ۳۳ دی الفاظ يې دا دي **عن ابي هريرة** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **قال قال رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **انما جعل الامام ليئوتم به فاذا کبر فکبر واذا قرآ فانصتوا (رواه ابوداود) (المرقات ۲/۵۸۲)**.

**سوال**: شوافعو دې روايت باندې اعتراض کړی دی، دې کې يو راوي ابو خالد دی چې ضعيف دی، لهذا استدلال صحيح نه دی.

**جواب**: ددې اعتراض جواب دا دی علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ابوخالد په ثقاتو کې شمار کړی، دغه رنګ صديق حسن خان ده ته ثقه ويلې دی همدارنګه ابو خالد متابع د محمد بن سعد انصاري هم دی علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ فتح الملهم کې فرمايي دې حديث کې **و اذا قرآء فانصتوا** الفاظ هم نه وی نو بيا هم دا حديث عدم قرآت خلف الامام باندې واضح دليل دی، ځکه چې بخاري، مسلم او نورو احاديثو

کتابونو کې و **اذا قرآء فانصتوا** جملې نه علاوه حدیث بکثرت موجود دی هغې کې مقتدي ته د امام د اتباع حکم شوی دی او د امام اتباع تکبیر کې دا ده تاسو هم تکبیر کوئ رکوع کې اتباع دا ده تاسو هم رکوع له ځئ، سجده کې اتباع دا ده تاسو هم سجده کوئ، قیام کې هم اتباع دا ده تاسو هم قیام کوئ سوچ کول په کار دي قرآن لوستلو کې د امام د اتباع طریقه څه ده آیا لوستل دي یا خاموش کیدل دي، بخاري روایت کې دي چې کله جبرائیل وحې راوړه او قرآن به یې لوستلو، نو حضور ﷺ به ورسره هم په مزه مزه لوستل د قرآن آیت راغی ﴿فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾ دې **فاتبع قرآنه** تفسیر کې حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي (**ای استمع له وانصت**) دې نه ښکاره معلومه شوه چې د قرآن لوستلو وخت کې د امام اتباع دا ده مقتدي دې خاموش وي، خواه قرآن اوري یا نه اوري، ځکه چې دا ذمه داري امام په خپله پوره کوي د ابوهریره رضي الله عنه دا حدیث هم احنافو دواړو دعوو د پاره دلیل جوړیږي.

**څلورم دلیل**: د ائمه احنافو څلورم دلیل د حضرت جابر رضي الله عنه روایت دی الفاظ یې دا دي: (**عن جابر قال قال رسول الله ﷺ من کان له امام فقراءة الامام له قراءة**) طحاوي دا روایت مختلفو طرقو سره ذکر کړی دی دغه رنګ امام محمد رحمه الله مؤطا کې دا ذکر کړی دی **همدارنګې** مسند ابی حنیفه کې هم موجود دی او بیهقي او دارقطني هم دا نقل کړی دی ددې اکثر طرقو کې ضعف دی او بعضې طرق بالکل صحیح دي.

**سوال**: دارقطني دې روایت مرفوع کیدو باندې اعتراض کړی (**لم یسنده عن موسی بن ابي عائشه غیر ابي حنیفة والحسن بن عمارة وهما ضعیفان**) یعنې ددې روایت مرفوع نقل کولو کې صرف دوه راویان دي یو امام ابوحنیفه رحمه الله او دویم حسن بن عماره رحمه الله دی او دا دواړه ضعیف دي.

**جواب**: علامه بدرالدین عیني رحمه الله فرمایي که دارقطني کې معمولي شرم او حیا وی دا سې خبره به یې کله هم نه کوله بیا د دوي خپلو شوّافعو دارقطني باندې داسې قلم اوچت کړی دی چې پاش پاش کړی یې دی، بیا اصحاب الجرح والتعدیل علماء وایي ائمه اربعو باندې تفصیلي جرح هم معتبر نه ده بلکه علماء جرح و التعدیل د امام ابوحنیفه رحمه الله زبردست توثیق کړی دی چنانچه یحیی بن معین فرمایي: **ابو حنیفه رحمه الله ثقة مامون ما سمعت احداً ضعفه و شعبة بن الحجاج یکتب الیه ان یحدث**) همدارنګه شعبه بن الحجاج هغه صدوق فی الحدیث سره ښایسته الفاظو سره یاد کړی دی هغه لیکلي دي: **قال شعبة بن الحجاج ابو حنیفة ثقة من اهل الدین و الصدق ولم یتهم بالکذب وکان مامونا فی دین الله صدوقا في الحدیث**) یاد ساتئ شعبه د امام صاحب رحمه الله لوی استاذانو کې دی،

بهر حال د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ شان ډير لوی دی امام بخاري او مسلم استاذ في الحديث شيخ عبد الرزاق صاحب رَحِمَهُ اللهُ المصنف د امام ابو حنيفه شاګرد دی. هغه چې کله خپل کتاب کې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ حديث نقل کوي، فرمايي اخبرنا ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ ..الخ شيخ عبد الرزاق خپل کتاب مصنف کې تقريبا اويا ۷۰ روايات امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه اخيستي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د امام صاحب د شاګردانو شاګردان دي ځکه امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي (**الناس عيال في الفقة على ابي حنيفة**) دارقطني له مناسب نه وو چې د خپلې سلسلې لوی فقيه او امام باندې داسې حملې کوي، ځه بس صحيح ده مونږ داسې سند راوړو چې هغې کې امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نشته.

**(عن اسحاق الازاق عن سفيان و شريک عن موسی بن ابي عائشة عن ابراهيم عن جابر قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة)**

دريم سند واخله چې تسلي دې وشي: **عن اسحاق الازاق عن سفيان الثوری و شريک عن موسی ابن ابي عائشة عن شدادبن الهادعن جابر قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة**. دا ټول راويان مرفوع دي دا آخري سندٌ خو على شرط مسلم دی او که دارقطني په ضد وي چې دا حديث مرسل دی مونږ دې ته وايو چې زمونږ نزد باندې او جمهورو علماو په نزد باندې مرسل روايت حجت دی اګر چې دارقطني په نزد باندې حجت نه دی نو مونږ دده درد نه شو کمولی دا روايت د احنافو دواړو دعوو د پاره بهترين دليل دی ددې مطلب دا دی چې سري او جهري دواړو کې مونځ د امام قرآت کافي دی د مقتديانو د پاره.

**پنځم دليل: عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال تكفيک قراءة الامام خافت وجهر (دار قطني)** بعضو دې روايت باندې د منکرحکم لګولې خو ابن قدامه رَحِمَهُ اللهُ وايي ددې روايت باندې د فقهاو د مذهب بنياد قائم دی او د فقهاو مسلک چې کومو رواياتو باندې قائم وي دغه رواياتو ته منکر نه شي ويلی دا د ائمه احنافو د مسلک د پاره واضح دليل دی د احنافو دواړه دعوې دې نه ثابت دي.

**شپږم دليل**: د ائمو احنافو شپږم دليل د مشکوة (ص۸۱) باندې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی دې کې دا الفاظ دي (**قال فانتهى الناس عن القرآءة مع رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**) شمار لحاظ سره دا حديث (۳۱) دی دا حديث جهري مونځ کې قرآءة خلف الامام نه کولو باندې واضح دليل دی د جمهورو دلائلو نه دليل دی همدا رنګې ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **متاخر في الاسلام** دی کيدی شي دا روايت د قرآءت باقي احاديثو ناسخ دي.

**سوال**: په دې حدیث باندې د شوافعو طرف نه یو اعتراض دی هغه دا فانتهی الناس جمله د زهري ده د صحابي نه ده دا روایت مرسل دی او د: جمله مرفوع نه ده.

**جواب**: احناف ددې اعتراض جواب ورکوي حقیقت دا دی دا د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نقل شوې جمله ده د زهري نه ده شوافعو ته وهم وشو. او دو همه واقعه داسې وه چې زهري دا روایت بیانولو کله چې **فانتهی الناس** پورې ورسیدو آواز په مزه شو داوریدونه، نو شاګردانو یو بل نه تپوس وکړو: **ماقال الزهري** یعني زهري څه وویل چې کله د هغه آواز په مزه شو ویلو والا وویل **قال الزهري فانتهی الناس**. نو آئنده نقل کونکي ته شبه او شوه دا قول د امام زهري دی، د صحابي نه دی. حالانکې هلته ابوداود شریف (ص،۱۴۰) کې تصریح موجود ده (**قال قال ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فانتهی الناس**) دویم جواب دا دی څه مرسل دی نو څه وشو جمهور خو مرسل د زړه نه مني دا روایت هم قابل قبول دی دې روایت نه هم د احنافو یوه دعوای ثابت کېږئ، جهري مونځ کې فاتحه خلف الامام لوستلو نه خلک منع شي.

**اوم دلیل**: د احنافو مضبوط دلیل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت او واقعه ده چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مسجد نبوي ته داخل کیدو په وخت کې اومندلو په حالت رکوع کې او دغه دروازې نه نیت وتړو او رکوع په حالت کې صف طرف ته په منډه باندې ورسیدو مونځ نه فارغیدو نه پس تاسو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه د مسئلې تپوس وکړو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: **زادک الله حرصاً ولا تعد**. (**مشکوة ص ۹۹**)

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته مونځ واپس کیدو ونه فرمایل، بلکې د شوق زیاتیدو دعا یې وغوښتله الله تعالی دې ستا د نیکۍ طرف ته شوق زیات کړي، داسې بیا مه کوه بلکې صف کې شامل کېږه بیا تکبیر تحریمه کوه کوم مونځ چې دې ګیر کړو هغه کوه او کوم چې قضاء شو هغه اداء کړه.

د حدیث دې واقعه کې شوافع هیڅ تاویل نه شي کولی او دا مضبوط دلیل دی د امام قراءت د مقتدي قراءت دی جدا لوستلو ضرورت نشته که نه نو فرض پرېښودو سره مونځ څنګه صحیح کیدی شي، دلته یو ضابطه او اصل دی دې وجې نه شوافع دغه رنګ مسلک باندې مجبور کړي دي هغه دا چې د شوافعو په نزد باندې امام او مقتدي په منځ کې مونځ کې اتحاد نشته، بلکې صرف عمل اشتراک دی او د هر یو خپل عملي دی، څکه هر یو ته فاتحه لوستل په کار دي د امام ویل د هغه د پاره دي او مقتدي دې په خپله وایي، د احنافو په نزد باندې صرف اشتراک عمل نه دی، بلکې اتحاد عمل هم دی، لهذ قرآت الامام د مقتدي قرآت هم دی. بهر حال دا روایت هم د احنافو د پاره د دواړو دعوو دلیل دی.

**اتم دلیل**: حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې کوم کس مونځ وکړي او فاتحه ونه لولي نو د هغه مونځ ونه شو (**الا ان یکون وراء الامام**) که د امام نه وروستو وي، نو بیا بغیر د فاتحې نه مونځ صحیح دی. ترمذي، موطأ، امام مالک او طحاوي دا روایت نقل کړی دی دا روایت د احنافو دسري او جهري

دوارو مونځونو د پاره واضح دلیل دی.

**نهم دلیل**: د احنافو نهم دلیل د حضرت ابو هریره رضي الله عنه هغه مشهور حدیث دی چې شوافع یې خپل دلیل کې پیش کوي خو حقیقت کې هغه د احنافو دلیل دی الفاظ یې دا دي: (**وعن ابي هريرة قال قال النبي صلى الله عليه وسلم من صلى صلوة لم يقرآء فيها بأم القرآن فهي خداج ثلاثا غير تمام**) (**مسلم شريف**) طرز استدلال دا سې دی فاتحه نه لوستلو د وجې نه حضور صلى الله عليه وسلم د مونځ گزار مونځ ناقص گرځولی دی باطل یې نه دی فرمایلی، که فاتحه فرض وی بیا به مونځ باطل وی پرېښودو سره.

**سوال**: دې استدلال باندې اعتراض دی ای احنافو تاسو په خپله منئ چې بغیر د فاتحې نه مونځ ناقص دی، نو تاسو بیا ناقص مونځ ولې کوئ او دې نقصان او چتیدو باندې دومره زور ولې ورکوئ.

**جواب**: مونځ باندې ډیر وختونه راغلي وو یو وخت داسې وو مونځ کې خبرو کولو اجازت وو بیا هغه حکم موقوف شو او امام سره جهري مونځ کې قرآن لوستل باقي وو هغه هم موقوف شو او سري مونځ کې لوستل باقي پاتې شو بیا دا هم موقوف شو صرف فاتحه لوستل حکم باقي پاتې شو، بره حدیث کې مذکور دي، بیا دا حکم موقوف شو او د امام قرآت د مقتدیانو د پاره کافي وگرځولی شو باقي بند کړی شو چې کله د امام لوستل حکمي طور باندې د مقتدیانو لوستل دي اوس دا نقصان ختم شو، لهذا د مقتدیانو د فاتحې نه بغیر مونځ ناقص نه دی.

**لسم دلیل**: د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه علقمة روایت کوي، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي کاش چې د دغه کس خوله د خاورو نه ډکه شي، چې څوک د امام نه وروسته لوستل کوي. (**رواه طحاوي باسناد حسن**) دغه شان عطاء بن یسار د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه نه روایت کوي هغوي وایي امام نه وروسته یو مونځ کې به هم څه نه وایي، دغه رنگ ابو حمزه رحمه الله فرمایي ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس وکړو چې امام مخامخ وي آیا زه د هغه نه وروسته لوستل او کړم، ابن عباس رضي الله عنه جواب کې وفرمایل نه مه یې لولئ. (طحاوي، ص ۱۵۱)

دې ټولو روایاتو نه ثابته شوه، چې د امام او مقتدي مونځ کې وحدت او اتحاد راغلی امام ځکه مقرر شو چې مقتدي دده اتباع وکړي، د امام مونځ ضامن دی او د مقتدي مونځ متضمن دی، اوس که مقتدي هم لوستل شروع کړي، نو دا د اصول اقتداء او اصول اتباع خلاف دی، خو دا یاد ساتئ دا قاعده صرف قرآن کریم لوستلو متعلق ده، ځکه چې د قرآن متعلق (**استمعوا و انصتوا**) حکم راغلی دی او نور اذکار د امام نه وروسته لوستل منع نه وي دده مثال باندې ځان پوهه کړئ، مثلاً یو جرگه او یو معزز وفد بادشاه خواته ځي قاعده ده چې رومبی ټول د بادشاه دربار کې حاضریدو سره سلام وکړي بیا ټول یو ملگری د خبرو پیش کولو د پاره وکیل جوړ کړي او د وکیل خبره د ټولو خبره وي او بادشاه مخکې د

ټولو خبرو کولو د آدابو خلاف ګڼلی کېږي چې کله وکيل خبره کوي ټول دده د خبرې تائيد کوي. بالکل دغه رنګ صف کې خلک ودرېږي او د الله تعالی په حضور کې ټول ثناء اوايي بيا خاموش شي او امام درخواست پيش کولو د پاره فاتحه اوايي بيا آخره کې ټول مقتديان پرې آمين اوايي دستخط پرې وکړي او ددې مضمون تائيد کوي، دلته د ټولو لوستلو سره اصول وکالت او اصول اقتداء د خرابيدو خطره وي، دلته چونکې درخواست د هدايت طلب کيدو د پاره دی، ځکه حکم کېږي قرآن وايي دا هدايت دی، ځکه امام سورة ملاو کړي قرآن وايي او چې کله درخواست قبول شي، نو ټول کيني او بطور شکر التحيات لولي او بيا تلل او رخصتي په سلام سره کوي.

**بل يکه مباحثه**: منقول دي امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ سره قرآت خلف الامام باندې بعضې علماو مباحثه وکړه، هغوی وويل بحث او مناظرې د پاره يو جماعت تشکيل کړئ، هغوی يو جماعت جوړ کړو امام صاحب ورته وويل ما سره به مناظره کې يو کس خبرې کوئ يا ټول. هغوی وويل يو کس امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وويل د يو کس خبره به د ټولو خبره وي يا د هغه خپله خبره به وي وفد او ويل نه هغه زمونږ نمائنده او وکيل دی د هغه خبره به د ټولو خبره وي امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وويل چې بس مناظره وشوه هغوی کې چې کوم کم فهم والا وو هغوی شور وکړو چې نه اوس مناظره به کوو د هغوی ماهرينو وويل ځئ تاسو د شکست اقرار خو په خپله وکړو. ګويا امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ دوي ته عملي طور باندې وويل چې زما مخې ته بطور وکيل يو کس خبره کوي او د هغه خبره د ټولو خبره ده او ټول به خبرې نه کوي، نو دا قاعده دلته د مونځ متعلق هم ده، مونځ کې ددې نه انحراف ولې کوئ. دا وجه ده مصنف عبدالرزاق کې د ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ دا قول مذکور دی په اسلام کې ړومبی بدعت دا شروع شو چې خلکو د امام نه وروسته لوستل شروع کړل (كذا في الجوهرة النقي) په ظاهره دې عبارت کې مقصد جهري مونځونو کې لوستل بدعت دی، سري مونځ کې نه دی دې باندې د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ يو عبارت دلالت کوي وايي: (**نحن نقول كل صلوة صليت خلف الامام يقراء قراءة لايسمع فيها قراء فيها**) (**كتاب الام، ج۷، ص ۱۵۳**) يعنې مونږ وايو هر هغه مونځ چې د امام نه وروسته وشي او امام داسې قرآت کوي چې اوريدلی کېږي نه (يعنې سري قرائت) داسې صورت کې مقتدي قرآت وکړي. دې عبارت نه ښکاره ده چې د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ قول جديد د امام مالک او د احمد هغې په شان دی، جهري مونځ کې د امام نه وروسته لوستل مه کوئ او سري کې کوئ.

**۱۹ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ**

**د شوافعو د دلائلو جوابات**: د شوافعو حضراتو د دلائلو په ضمن کې درې مشهور حديثونه پيش شوي وو چې د هغې جواب ورکولی شي شوافعو حضراتو د زير بحث حضرت عبادة بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

روايت نه استدلال کړی دی کوم چې صحيحينو کې مذکور دي د هغې جواب مخکې ورکړی دی دا خبر واحد دی دې نه فرضيت ثابت نه دی فرضيت د ثبوت د پاره قطعي الثبوت او قطعي الدلالة نص ته ضرورت دی دا دلته نشته.

**دويم جواب**: د حضرت عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم روايت چې صحيحينو کې منقول دی **(لاصلوة لمن لايقراء بفاتحة الکتاب)** دلته دې باندې قرآت خلف الامام باندې استدلال نه شي کولی، دې روايت کې قطعا دا تصريح موجوده نه ده چې دا مونځ د منفرد دی، يا د امام دی، يا د مقتدي دی. دې نه خو صرف دا معلوميږي چا چې فاتحه ونه لوستله د هغه مونځ نه دی شوی، د دې متعلق مونږ هم وايو د منفرد او امام مونځ بغير د فاتحې صحيح نه دی. (المرقات ۲/۵۷۷).

د قرآت خلف الامام دا سې قسمه رواياتو توجيه امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ دا سې کړې ده او دا سې جواب سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ ورکړی دا قسمه روايات د منفرد او امام باره کې دي، د سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ قول په ابوداود ص ۱۱٦ کې دی. احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ قول ترمذي (ص، ۵۰) باندې مذکور دی، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ يو قول ابن قدامه المغني کې نقل کړی عبارت يې ډير مزيدار دی ځکه يې کتو نکو ته هديه کوم: **قال احمد ماسمعنا احدا من اهل الاسلام يقول ان الامام اذا جهر بالقرآءة لا تجزئ صلوة من خلفه اذا لم يقراء وقال هذا النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واصحابه وهذا مالک في اهل الحجاز و هذا الثوري في اهل العراق وهذا الاوزاعي في الشام وهذا الليث في اهل المصر . ماقالوا الرجل صلى و قراء امامه ولم يقرء هوصلوته باطل.**

د دې کلام مطلب دا دی احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ما په اهل اسلامو کې د يو نه هم نه دي اوريدلي چې دا وايي که امام جهر سره قرآت کوي او مقتدي قرآت نه کوي د هغه مونځ نه کېږي، بيا يې وفرمايل لږ او ګورئ دا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه مدينه کې موجود دي او دا امام مالک حجاز کې موجود دی، دا سفيان ثوري په عراق کې هغه او ګوره، اوزاعي شام کې دی او ليث بن سعد مرکز علم مصر کې دی دا ټول حضرات د دغه کس مونځ نه شي باطل کولی چې د هغه امام قرآت کوي او هغه په خپله قرآت نه کوي. امام ترمذي هم فاتحه خلف الامام نه لوستلو مونځ صحيح ګرځولی دی او فرمايي چې کوم خلک د مونځ فاسد کيدو خبره کوي هغه د تشدد نه کار اخلي او بيا وايي احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : عباده بن صامت رَحِمَهُ اللهُ روايت منفرد باره کې دی. عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې روايت دريم جواب دا ورکړی، دلته لاصلوة کې لا کلمه د نفی د کمال د پاره ده د دغه رنګ يو څو احاديثو کې نفی د کمال د پاره ده. مثال په طور باندې : **(لاصلوة لجار المسجد، الا في المسجد. لا ايمان لمن لا عهد له. ليس**

**المسکین الذي ترده التمرة والتمرتان. لایومن احدکم حتی اکون احب الیه من والده وولده. لایومن من یشبع و جاره جائع.**

بهر حال حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث کې اصل د صلوة نفی نه ده. بلکې د کمال نفی ده دا مونږ هم وایو او منو یې. خلاصه دا حدیث ډیر قوي دی، خو مدعا باندې نص نشته. حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یو روایت هغه دی چې سننو کې مذکور دي چې هغه صاحب مشکوة کې (ص۸۱) باندې نقل کړی دی شمار په ترتیب سره حدیث نمبر (۳۰) دی دې حدیث کې قصه هم ده او خپل مدعا باندې صریح نص هم دی خو دغه حدیث د ثبوت په اعتبار سره کمزوری دی. ددې کمزورۍ د وجې نه امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰهُ ورله د حسن درجه ورکړه او بخاري او مسلم نقل کړی دی ددی کمزورۍ وجه دا ده د سند په اعتبار سره دا حدیث مضطرب دی، ځکه چې مکحول کله محمود بن ربیع نه نقل کوي او کله په منځ کې د نافع واسطه ذکر کوي کله مکحول او عباده بن صامت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په منځ کې واسطه راځي کله دوه واسطې راځي همدارنګه دا جواب هم ورکولی شي حضرت عباده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ کوم دور کې د فاتحې ذکر فرمایلو. دا دویم دور وو وروسته دریم دور چې کله راغی دا حکم موقوف شو. لکه مخکې چې بیان شوی دی په مانځه باندې د تغیراتو درې دوره راغلل. همدارنګې علماء اصولو په نزد دا قاعده ده چې د نهې نه پس کومه استثناء راځي، هغه د اباحت فائده ورکوي، یعنې امر بعد الحظر اباحت فائده کوي، لهذا فاتحې فرضیت ددې نه نه ثابتیږي. (**قال الشیخ گنگوهي**)

**الزامي جواب** دا دی: حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زیر بحث حدیث کې په بعضې طرقو کې (**فصاعداً**) او **مازاد** او **ماتیسر** الفاظ راغلي حالانکې شوافع حضرات مقتدي باندې ضم د سورت واجب نه وایي صرف فاتحه پرې فرض کوي، یعنې د حدیث بعضې حصه باندې عمل کوي او بعض باندې عمل نه کوي، تردې ځای پورې د شوافعو حضراتو دوه دلائل جواب شول، د دوی دریم دلیل حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه روایت دی چې هغې کې فاتحې نه بغیر مونځ ته خداج ویلي شوی دی. حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي زړه کې وایي، خو فاتحه مه پرېږدئ، ددې جواب دا دی په اصل کې دا روایت د احنافو دلیل دی، ځوک چې فاتحې ته واجب وایي. شوافع خو فاتحې ته فرض وایي بیا مونځ ته ناقص څنګه ویلي شي بیا خو باطل شو، بیا هم احناف یو جواب دا ورکوي سفیان ثوري رَحِمَهُ اللّٰهُ او احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ دا حدیث منفرد د پاره ګرځولی دی باقي (**اقراء في نفسک**) مطلب دا دی چې په زړه کې د فاتحې تصور کوه ددې په معنی کې غور کوئ ددې په معانی کې غور کوئ، ورنه زړه کې قرآت نه کېږي د چا په نزد باندې دغه قرآت معتبر نه دی چې د هغې الفاظ په ژبه باندې ونه لوستل شي باقي د الزام په طور مونږ د شوافعو نه الزامي تپوس کوو چې مقتدي به فاتحه کوم وخت کې وایي که

تاسو وایې چې د ثناء وخت کې دې وائې، نو کتاب الام کې ښکاره امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ منع فرمايلې ده.
که تاسو وایې چې سکتاتو کې دې وایي، چې کله امام فاتحه ختمولو کې سکتات کوي یا بل ځای کې سکته وکړي. ددې جواب دا دی، که امام منځ کې سکته ونه کړي تاسو به څه کوئ او که دامین په وخت کې سکته کې یې وایي، نو هلته دومره وخت نشته چې فاتحه وشي او که امام د مقتدي انتظار کوي، بیا هغه پیش امام پاتې نه شو، ځکه چې امام مونځ کې د مقتدي تابعداري کوي او دا د قلب د موضوع دی.
نو اوس تاسو اوایې چې مقتدي به په جهري مونځ کې څه وخت فاتحه ووایي؟
ما چې څه ولیکل د فحولو علماو تحریراتو په رڼا کې مې ولیکل، زه د حدیث بې ادبي نه کوم، بلکې زه الله ته التجا کوم، چې ای زما مولی زما قلم د بې ادبۍ، گستاخۍ، دانسته وغیر دانسته غلطۍ نه وساتي، دا د حق او باطل مسئله نه ده، احادیثو په رڼا کې اجتهادي نقطه نظر سره اختلاف دی، ای الله!
زما دنیا او آخرت کې حفاظت وفرمایي. آمین یا رب العلمین

## د سورة فاتحې فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا |
| د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي: چا چې مونځ وکړو او وې نه لوستله په |
| بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ ثَلَاثًا غَيْرُ تَمَامٍ» فَقِيلَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ: |
| دې کې سورت فاتحه دده دا مونځ ناقص دی درې ځله نا پوره دی، ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وشو چې |
| إِنَّا نَكُونُ وَرَاءَ الْإِمَامِ قَالَ اقْرَأْ بِهَا فِي نَفْسِكَ فَإِنِّي |
| کله مونږ د امام نه وروسته يو (هغه وخت يې هم وايو) هغه وویل آو خو زړه کې په مزه وایې ځکه چې ما: |
| سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «قَالَ اللهُ تَعَالَى قَسَمْتُ الصَّلَاةَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه اورېدلي چې الله تعالی فرمایي ما مونځ خپل ځان او د بنده په مینځ کې تقسیم کړی دی |
| نِصْفَيْنِ وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ فَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ: (اَلْحَمْدُ |
| نیم زما او نیم زما د بنده او چې بنده څه غواړي هغه به ورته ورکولی شي چې کله بنده ووایي ټول تعریفونه |
| لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) قَالَ اللهُ تَعَالَى حَمِدَنِي عَبْدِي وَإِذَا |
| الله تعالی لره دي چې د ټول جهان رب دی نو الله تعالی فرمایي: زما بنده زما تعریف بیان کړو او چې کله |
| قَالَ: (اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ) قَالَ اللهُ تَعَالَى أَثْنَى عَلَيَّ عَبْدِي |
| بنده ووایي: الله تعالی ډیر مهربان او نهایت رحم والا دی، الله تعالی فرمایي زما بنده زما ثناء بیان کړه |

وَ إِذَا قَالَ ( مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ) قَالَ مَجَّدَنِيْ عَبْدِيْ
او چې کله بنده ووايي حاکم دی الله تعالی د قيامت په ورځ الله تعالی فرمايي زمابنده زما د تعظيم اظهار

وَ إِذَا قَالَ : ( إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَ إِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ) قَالَ
وکړو او چې کله بنده ووايي مونږ خاص ستا عبادت کوو او خاص ستا نه مدد غواړو الله تعالی فرمايي

هٰذَا بَيْنِيْ وَ بَيْنَ عَبْدِيْ وَ لِعَبْدِيْ
دا زما او زما د بنده په مينځ کې دی (يعنې عبادت الله دپاره دی او مدد غوښتل د بنده دپاره دي) او زما بنده

مَا سَأَلَ فَإِذَا قَالَ ( اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ
چې څه غواړي هغه به ورته ملاويږي ، او چې کله بنده ووايي : ای الله! مونږ ته په نيغه لار روان کړه لار

الَّذِيْنَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا
د هغه خلکو چې هغوي باندې تا انعام کړې وي ،نه په لار د هغه چا چې غضب کړې وي تا او نه په لار د

الضَّالِّيْن ) قَالَ هٰذَا لِعَبْدِيْ وَ لِعَبْدِيْ مَا سَأَلَ »[1].
ګمراهانو الله تعالی فرمايي دا زما د بنده دپاره دی او بنده چې څه غواړي هغه ته به ملاويږي.

**توضيح: ثلاثا**: يعنې خداج لفظ حضور صلی الله علیه وسلم درې ځلې وويله.

**ام القرآن**: د سورة فاتحې نوم دی، دې ته ام الکتاب هم ويل کيږي وجه دا ده سورة فاتحه د ټولو مضامينو د قرآن اصل او بنياد دی، د قرآن ټول مضامين ددې ګيرچاپيره ګرځي.

**غير تمام**: دا د خداج تفسير دی او دې نه واضحه کيږي، چې فاتحه رکن صلوة نه دی. د شوافعو خيال دی چې دا رکن صلوة دی، د احنافو په نزد باندې قرآن مطلق رکن صلوة دی، حضور صلی الله علیه وسلم چې کله اعرابي په مونځ باندې پوهه کولو ويې فرمايل (**اقراء ما تيسر معک من القرآن**).

**خداج**: بمعنی **ذات خداج** دی. **فقيل لابي هريرة**: سره معلومه شوه چې د سلفو صالحينو په نزد امام نه وروسته فاتحه ويل متعارف نه دی بلکې نه ويل متعارف دي، ځکه د ابو هريره رضی الله عنه نه سوال کيږي

**في نفسک**: يعنې په مزه يې وايه، احناف دې ته قلبي تصور او فاتحه کې غور، فکر باندې حمل کوي او

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۹۶/۱ رقم الحديث ۳۸-۳۹۵، وأخرجه أبوداود السنن ۵۱۲/۱ رقم الحديث :۸۲۱، والترمذي في السنن ۱۸۴/۵ رقم الحديث . ۲۹۵۳

دا قرآت د چا په نزد باندې هم معتبر نه دی معلومه شوه چې د امام نه وروسته فاتحه لوستل منع دي.
(المرقات ۲/۵۴۷). **قسمت**: د متکلم صیغه د تقسیم نه ده او اوس دا حدیث قدسي جوړ شو.

**الصلوة**: فاتحه باندې اطلاق الصلوة وشو او دا د اطلاق الکل علی الجزء قبیلې نه دی. کیدی شي دې نه حضرت ابوهریره رضي الله عنه بطور استنباط او اجتهاد فرضیت د فاتحې ثابت کوي، علماء احناف وفی روایة حنابله فرمايي دا اجتهاد مرفوع حدیث مقابله کې فائده مند نه دی، شیخ عبد الحق رحمه الله وایي دې استنباط کې خفا او پټ والی دی.

**نصفین**: دا تنصیف د ایتونو په اعتبار سره دی، ځکه چې فاتحه مجموعي اعتبار سره اوه آیتونو باندې مشتمله ده، **صراط الذین انعمت علیهم** چې یو آیت شمار کړی دی په دې باندې وقف کړی دی. درې آیتونو کې د الله تعالی تعریف دی او درې آیتونو کې د بنده طرف نه سوال دی او یو آیت **ایاک نعبد و ایاک نستعین** مشترک دی، ړومبی نیم د الله تعالی تعریف دی او دویم نیمه حصه د بنده سوال دی.

**ولعبدی ما سال**: یعني د بنده سوال زه قبلوم.

**مجدني عبدي**: کرم عالي او شرف ته مجد ویلې کېږي. علماء لیکي کله ذاتي شرافت نبه افعالو سره یو کېږي هغه ته مجد او مجید ویلې کېږي، د حضرت ابوهریره رضي الله عنه دا حدیث دې باندې واضح دلیل دی چې (**بسم الله الرحمن الرحیم**) د سورة فاتحې جزء نه دی که جزء شي، بیا فاتحه د اوو په ځای اته آیتونه ګرځي. دا ددې حدیث منافي دی همدارنګه د تقسیم په اعتبار سره بسم الله نه شامل کول ددې خبرې دلیل دی دا د فاتحې جزء نه دی او دا د امام صاحب رحمه الله مسلک دی.

## په مونځ کې بسم الله په مزه ویل په کار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَبَا بَكْرٍ وَ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: حضور صلی الله علیه وسلم، حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت |
| عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ بِـ«الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ». [1] |
| عمر رضي الله عنه به د مونځ شروع په الحمد لله رب العالمین سره کوله. |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۲۶، رقم الحديث ۷۴۳، ومسلم في الصحيح ۱/۲۹۹ رقم الحديث ۵۰-۳۹۹، وأبو داود ۱/۴۹۴ رقم الحديث ۷۸۲، والنسائي ۲/۱۵، رقم الحديث ۹۰۷

**توضیح: کانوا یفتحون الصلوة:** جهري مونځ کې الحمد لله شروع کولو نه مخکې بسم الله په مزه ویل په کار دي، د احنافو مسلک دا دی، یو روایت کې دي چې امام باندې د دریو څیزونو اخفاء ضروري دی. یو اعوذ بالله دویم بسم الله او دریم آمین، دلته ښکاره د روایت نه ثابتیږي چې بسم الله په مزه ویل په کار دي، د دې مسئلې مکمل تفصیل **باب صفة الصلوة** حدیث نمبر ۲ کې لیکلی شوی. (المرقات ۲/۵۵۱).

## په مونځ کې د آمین ویلو فضیلت

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام فرمایي: کله چې امام آمین ووایي تاسو

فَأَمِّنُوا فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ

هم آمین ووایي، ځکه چې د کوم کس آمین د فرښتو د آمین سره یو ځای شي الله تعالی معاف کوي دده

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ). [1] وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ: "إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ

مخکینې ګناهونه. او په یو روایت کې دي چې نبي علیه السلام فرمایي: چې کله امام ووایي: **غیر المغضوب**

عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) فَقُولُوا: آمِينَ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ

**علیهم ولا الضالین** نو تاسو آمین ووایي ځکه چې د کوم کس چې آمین د فرښتو آمین سره یو وو نو معاف

لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ وَ لِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ وَ فِي أُخْرَى

به شي ده ته مخکینې ګناهونه دا الفاظ بخاري کې دي، د مسلم حدیث الفاظ د دې په شان دي. او په یو بل

لِلْبُخَارِيِّ قَالَ: «إِذَا أَمَّنَ الْقَارِئُ

روایت د بخاري کې دي چې: نبي علیه السلام وفرمایل: چې کله قرآن کریم لوستونکي آمین ووایي تاسو هم

فَأَمِّنُوا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تُؤَمِّنُ فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ

آمین ووایي ځکه چې (دغه وخت) فرښتې آمین وایي او د چا چې آمین د فرښتو آمین سره یو ځای شونو

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۲/۲۶۲، رقم الحدیث ۷۸۰، ومسلم في الصحیح ۱/۳۰۷ رقم الحدیث ۷۲ - ٤١٠، وأبو داود ۱/۵۷۶ رقم الحدیث ۹۳۶، والترمذي ۲/۳۰ رقم الحدیث ۲۵۰، وابن ماجة ۱/۲۷۷، رقم الحدیث ۸۵۱

غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ».

معاف به شي ده ته مخکيني ټول ګناهونه.

**توضيح: فأمنوا:** يعني تاسو هم آمين ووايي ځکه چې فرښتې هم آمين وايي او هغه معصوم مخلوق دي، د هغوئ دعا قبليږي، که چرته د هغوئ د دعا الفاظو سره ستاسو الفاظ ملاو شو، نو ستاسو به صغائر ټول ګناهونه معاف شي، چې ددې نه مخکې شوي دي. مقتدي داسې آمين صرف جهري مونځ کې کولی شي، سري مونځ کې داسې مقارنت امکان نشته، باقي دا مسئله آمين په مزه لوستل يا اوچت آواز سره دا مسئله فصل ثاني حديث نمبر (۳۲) کې ان شاء الله تفصيل سره راځي. (المرقات ۲/۵۵۳).

## د مقتدي د مونځ طريقه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: "إِذَا صَلَّيْتُمْ |
| د ابو موسی اشعري رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: کله چې تاسو مونځ کوئ نو |
| فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا |
| برابروئ خپل صفونه بيا دې يو کس ستاسو امام جوړ شي چې هغه الله اکبر ووايي تاسو هم الله اکبر وايي |
| وَ إِذَا قَالَ (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِم وَلَا الضَّالِّين) فَقُولُوا آمِينَ يُجِبْكُمُ اللهُ |
| کله چې امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي تاسو آمين ووايئ قبوله به کړي الله تعالى ستاسو |
| فَإِذَا كَبَّرَ وَ رَكَعَ فَكَبِّرُوا وَارْكَعُوا فَإِنَّ الْإِمَامَ |
| دعا او چې کله امام الله اکبر ووايي او رکوع ته لاړ شي تاسو هم الله اکبر ووايئ او رکوع ته لاړ شئ ځکه امام |
| يَرْكَعُ قَبْلَكُمْ وَ يَرْفَعُ قبلكُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| رکوع کوي مخکې د ستاسو نه، او ستاسو نه مخکې سر اوچتوي، نو نبي عليه السلام وفرمايل چې: د امام |
| «فَتِلْكَ بِتِلْكَ» قَالَ: «وَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا اللَّهُمَّ |
| مخکې سر اوچتول د رکوع کولو بدله ده او چې کله ووايي امام سمع الله لمن حمده نو تاسو ووايئ اللهم |
| رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ يَسْمَعُ اللهُ لَكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِم وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَ قَتَادَةَ: |
| ربنالک الحمد اوري الله تعالى ستاسې حمد. او د مسلم يو روايت کې د ابو هريرة او قتادة نه مروي دی |

« وَ إِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا ». [1]

چې کله امام قرآت کوي تاسو خاموش اوسئ.

**توضيح: فتلک بتلک** : امام رکوع ته تاسو نه مخکې ځي تاسو وروسته ځئ خو امام رکوع نه ستاسو نه مخکې را اوچتيږي او تاسو رکوع کې يئ، رکوع کې او سيدل ستاسو او ستاسو امام برابر برابر شو.

**يسمع الله لکم** : الله تعالى ستاسو دعا اوريدلو سره قبول فرمايي، تحميد او تسميع مکمل تفصيل او فقهاوو اختلاف **باب صفة الصلوة** کې حديث نمبر (۴) لاندې ليکلى شوي دي. (المرقات ۲/۵۵۵).

خلاصه دا شوه که منفرد سړى **سمع الله لمن حمده** او **ربنا لک الحمد** دواړه وو ايي او که په يو باندې اکتفاء وکړي جائزده، دا حديث دا امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دليل دى، امام چې کله د رکوع نه اوچت شي هغه دې **سمع الله لمن حمده** وو ايي تاسو **ربنا لک الحمد** وو ايي، يعنې تقسيم کار دى، خو امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي امام، مقتدي او منفرد ټول دغه کلمات اداء کړئ. صاحبين فرمايي امام دې دواړه کلمات وايي.

## په مونځ کې د اول رکعت د اوږدولو مسئله :

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْأُولَيَيْنِ |
| حضرت قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د ماسپخين د مونځ اولني دوه رکعتو کې سورة |
| بِأُمِّ الْكِتَابِ وَ سُورَتَيْنِ وَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَ يُسْمِعُنَا |
| فاتحه او دوه سورتونه لوستل او په وروستي دوه رکعتو کې سورة فاتحه ويله او اورولو به يې مونږ باندې |
| الْآيَةَ أَحْيَانًا وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهَكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهَكَذَا فِي الصُّبْحِ [2] |
| کله کله يو آيت او اوږدولو به يې اول رکعت د دوهم نه دغه رنګ يې د مازيګر او سحر مونځ کې هم کولو. |

**توضيح: يقرا في الظهر**: يعنې ماسپخين کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عام معمول دا وو، چې قرآت به يې په مزه کولو. خو کله کله به يې ماسپخين مونځ کې مونږ ته يو سورت يا آيت په اوچت آواز آورولو دا عمل تعليم د امت د پاره وو، چې دا معلومه شي چې سورت فاتحې نه پس بل سورت لولئ. او د ملاويدو

(۱) أخرجه مسلم ۱/۳۰۳ رقم الحديث ۶۲-۴۰۴، وأبو داود ۱/۵۹۴ رقم الحديث ۹۷۲، والنسائي ۲/۱۹۶، رقم الحديث ۱۰۶۴.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۶۰، رقم الحديث ۷۷۶، ومسلم في الصحيح ۱/۳۳۳ رقم الحديث ۱۵۴-۴۵۱.

طريقه ځه ده د ماسپښين قيد اتفاقي دی احترازي نه دی، بلکې هغوی ماز يگر کې هم داسې کول، دا تول د امت تعليم د پاره وو.

**ويطول**: د باب تفعيل نه د طوالت په معنی دی، دې حديث نه معلوميږي چې اول رکعت د دويم نه طويل کول په کار دي. دې مسئله کې د فقهاو معمولي شان اختلاف دی.(المرقات ۲/۵۵۷).

**د فقهاو اختلاف**: امام مالک، امام شافعي، امام احمد بن حنبل او امام محمد رَحِمَهُمُ اللهُ مسلک دا دی. چې ټولو مونځونو کې اولنی رکعت د نورو رکعتونو په نسبت ډير اوږد کوئ. امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ او امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې صرف د سحر مونځ کې دا خصوصيت دی، چې ړومبی رکعت اوږد کولی شي، باقي ټولو مونځونو کې د رکعتونو حيثيت برابر دی، البته کوم رکعتونو کې چې ضم د سورة نه وي د هغې حيثيت جدا دی.

**دلائل**: جمهور زير نظر ابو قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نه استدلال کړی دی هغې کې ماسپښين او ماز يگر او د سحر ړومبی رکعت اوږد کولو ذکر دی او د ماښام او ماسخوتن مونځ يې باقيو باندې قياس کړی دی عبد الرزاق معمر نه نقل کړي دي، زمونږ خيال دی ړومبی رکعت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه اوږد کړی دی، چې خلک ړومبی او مومي، امام ابوداود هم داسې ليکلي، امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ړومبی رکعت اوږد کول سحر سره خاص دی، ځکه چې د سحر وخت د غفلت دی، که نفس قرآت ته او گورئ، نو استحقاق قرآت کې دواړه رکعتونه برابر دي، ځکه مقدار قرآت کې هم دواړه برابر کيدل په کار دي، خو صرف دې عارض د وجې نه ړومبی رکعت طويل کړی دی، راتلونکې متصل روايت کې في کل رکعة قدر ثلاثين آية امام صاحب دليل دی، ځکه هلته يې د دواړو رکعتونو قرآت برابر ښودلی دی. امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ړومبی رکعت دعا استفتاح او تعوذ باندې مشتمل دی، ځکه اوږد کيږي، قرآت د وجې نه صرف سحر مونځ کې د اوږدولو خصوصيت دی. خلاصة الفتاوی کې ليکلي امام محمد رَحِمَهُ اللهُ او جمهورو مسلک راجح او خوښ دی يعنې ړومبی رکعت اوږد کول بهتر دي.

## په مونځ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قيام مقدار:

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كُنَّا نَحْزُرُ قِيَامَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الظُّهْرِ |
| د ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې مونږ به اندازه کوله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د قيام په ماسپښين |
| وَالْعَصْرِ فَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ قَدْرَ قِرَاءَةِ ( الم تَنْزِيلُ |
| او ماز يگر کې مونږ اندازه وکړه د قيام په اولنيو دوه رکعتو د ماسپښين کې په اندازه د ويلو د الم تنزيل |

| |
|---|
| السَّجْدَةِ ) وَ فِيْ رِوَايَةٍ : فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ قَدْرَ ثَلَاثِيْنَ آيَةً وَ |
| السجدة او په يو روايت کې دي: چې په هر رکعت کې ديرش آيتونو د لوستلو په قدر قيام کولو او مونږ |
| حَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ قَدْرَ النِّصْفِ مِن ذَلِك و حَزَرْنَا قِيَامَهُ فِيْ |
| اندازه کړه قيام په آخري دوه رکعتو کې په اندازه د نيم ددې اولنيو رکعتو ، او اندازه کړو مونږ قيام په |
| الرَّكْعَتَيْنِ الْأُوْلَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى قَدْرِ قِيَامِهِ فِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ |
| اولني دوه رکعتونو د مازيګر په اندازه د قيام د آخري دوه رکعتونو د ماسپخين آخري او آخري رکعتونو د |
| الْعَصْرِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ ذَلِكَ . [1] |
| مازيګر کې ددې نصف بقدر قيام مونږ اندازه کړې ده. |

**توضيح:حزرنا:** حزر نصر ينصر نه اندازې کولو په معنی سره دی(المرقات ۲/۵۵۷،اشعة اللمعات ۴۰۳)
چونکې مازيګر او ماسپخين قرآت سري وي، څکه د قيام مقدار د اندازې نه معلومولی شي، کله چې خلک نيک وو، نو د قرآن سورتونو نه به يې د مسافت اندازه لګوله زمونږ د نيکونو دا رواج وو چې د لارو اندازې يې د سورة ياسين او کهف نه معلومولې، يو وويل کله د کلي نه څم، نو دوه ځله سورة ياسين لوستلو سره کور ته رسيږم، دويم به وويل زه يو ځلې لوستلو باندې کور ته رسم، دغه رنګ اندازه به صحابه کرامو لګوله، حضور ﷺ د ماسپخين او مازيګر اول دوه رکعتونو کې قيام الم تنزيل السجدة مقدار فرمايي . او دويم روايت کې دي چې تاسو هر رکعت کې ديرش آيتونو لوستلو په مقدار قيام کولو، مطلب دا دی چې نبي علیه السلام هر رکعت کې الم تنزيل السجدة بقدر قرآت کوئ.

**قدر النصف من ذلک:** پوره حديث باندې پوهيدو د پاره ځان داسې پوهول په کار دي چې نبي علیه السلام د ماسپخين اول دوه رکعته د قيام اندازه کله مونږ د ماسپخين د آخري رکعتونو د قيام نه کوله، داسې معلوميږي چې آخري رکعتونو قيام د اول رکعتونو نه نصف مقدار سره دی، يعنې ړومبو رکعتونو کې قرآت اوږد وي او آخري رکعتونو کې ددې نيم وي او چې د مازيګر مونځ اندازه لګوو، نو د مازيګر اول رکعتونو د قيام مقدار د ماسپخين آخري دوو رکعتونو د قيام مقدار دی. او مازيګر آخري دوو رکعتونو قيام مقدار د مازيګر اول دوو رکعتونو د قيام مقدار نيم دی.ټول شارحين ليکي ددې حديث نه

---

[1] أخرجه مسلم ۱/۳۳۴ رقم الحديث ۱۵۶-۴۵۲، وأبو داؤد ۱/۵۰۵ رقم الحديث ۸۰۴، والنسائي ۱/۲۳۷، رقم الحديث: ۴۷۵

معلومیږي حضور ﷺ د مونځ آخري دوو رکعتونو کې قرآت کولو او بیا فرمایي دا مسلک د امام شافعي رحمه الله دی، آخري دوو رکعتونو کې قرآت کول په کار دي، بیا فرمایي دا د امام شافعي رحمه الله قول جدید دی، قول قدیم کې په دې آخري دوو کعتونو کې قرآت د سورة ضروري نه دی او فتوی دې باندې ده او دغه د احنافو مسلک دی. آخري دوو رکعتونو کې سورت ملاوول او لوستل نشته، که حضور ﷺ لوستلی وي.

نو د بیان جواز د پاره دې تولو شارحینو برعکس شارح مشکوة علامه شمس الدین رحمه الله صاحب (التعلیق الفصیح ص۱۲۵) کې لیکلي، دې حدیث کې واضح اشکال دی او هغه دا دی چې مازیګر اول دوه رکعتو کې ضم د سورت وي او د ماسپخین آخري دوو رکعتونو کې ضم سورت نشته، نو دواړو کې مقدار څنګه یو کیدی شي، ددې جواب شیخ شمس الدین دا ورکړو. دلته دې مونځونو او ددې رکعتونو قرآت کې مساوات او برابري مراد نه ده او دې حدیث کې د قرآت مساوات ذکر نه دی، بلکې دلته صرف د قیام ذکر دی، د حضور ﷺ قیام اول رکعت کې څومره دی او آخري رکعتونو کې څومره دی کیدی شي حضور ﷺ آخري دوو رکعتونو کې فاتحه دا سې ترتیل سره لوستلې وي چې اول رکعتونو د وخت سره د هغې وخت نیم کېږي. خلاصه دا چې دلته د قیام مقدار خبره ده د قرآت خبره نه ده، اولنو دوو رکعتونو کې فاتحې نه پس ضم سورت کېږي او آخري دوو رکعتونو کې نه کېږي، نو دغه د اول رکعتونو په نصف مقدار کې دي، ډیر ژور وضاحت وشو، د حدیث مطلب واضح او مناسب دی. احناف فقهاء لیکي آخري دوو رکعتونو کې مسنون دا ده چې فاتحه وویلی شي، ورنه تسبیحات وکړه یا خاموش شه اختیار دی. زه وایم که چرته امام نه وروسته مقتدیان آخري رکعتونو کې فاتحې د لوستلو اهتمام وکړي اول رکعتونو کې فاتحه نه لوستل د لوستلو قائمقام شي، او اختلاف نه به بچ شي.

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ بِـ(اللَّيْل |
| د جابر بن سمرة رضي الله عنه روایت دی وایي چې نبي علیه السلام به ویلو د ماسپخین په مونځ کې سورة واللیل |
| إِذَا يَغْشَى) وَفِي رِوَايَةٍ بِـ(سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) وَفِي الْعَصْرِ نَحْوَ ذَلِكَ |
| اذا یغشی او یو روایت کې دي چې سورة سبح اسم ربک الاعلی یې ویلو او مازیګر مونځ کې هم دغه شان |

وَ فِي الصُّبْحِ أَطْوَلَ مِنْ ذٰلِكَ[1].

لوستلو او سحر مونځ کې ددې نه یې اوږد قرآت کولو.

## د ماښام په مونځ کې قرآت

﴿۹﴾ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ

د حضرت جبیر بن مطعم رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې: ما اوریدلي چې نبي علیه السلام به د ماښام مونځ

بِـ « الطُّورِ ».[2]

کې سورة طور ویلو.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ

دام الفضل بنت حارث رضي الله عنها نه روایت دی وايي چې: ما اوریدلي چې نبي علیه السلام به لوستلو د ماښام

بـ ( الْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا )[3].

په مونځ کې والمرسلات عرفا.

**توضیح**: (یقراء في المغرب بـ المرسلات: بعضې روایاتو کې دي چې نبي علیه السلام به ماښام مونځ کې سورة اعراف، سورة انفال او سورة دخان لوستلو، دلته حدیث سره د نورو احادیثو ذکر شریکیږي.

دې ټولو احادیثو نه دا خبره واضحه کیږي، مونځ کې یو رکعت سره څه خاص سورة متعلق نه دی او نه مونځ سره څه خاص سورة یا آیت تړلی دی. (اشعة اللمعات ۴۰۴)

دویمه خبره دا زده کول په کار دي، چې هغه اوږده سورتونه حضور صلی الله علیه وسلم لوستلي دي. دا په ښکاره معلومیږي، یا خو دا د هغه معجزه وه، یا دا اوږده سورتونه لوستل دې باندې محمول دي، حضور صلی الله علیه وسلم مونځ کې ددې یوه حصه لوستلې ټول سورت مراد نه دی. اګر چې نوم د پوره سورت دی. یا تاسو ډیرو رکعتونو کې یو سورت تقسیم کړی لوستلی وو.

(۱) أخرجه مسلم ۳۳۷/۱ رقم الحدیث ۱۷۰ ۴۵۹، وأبو داود ۵۰۶/۱ رقم الحدیث ۸۰۶، والنسائي ۱۶۶/۲، رقم الحدیث ۹۸۰.

(۲) أخرجه البخاري في الصحیح ۲۴۷/۲، رقم الحدیث ۷۶۵، ومسلم في الصحیح ۳۳۷/۱ رقم الحدیث ۱۷۴-۴۶۳، وأبو داود ۵۰۸/۱ رقم الحدیث ۸۱۱، والنسائي ۱۶۹/۲، رقم الحدیث ۹۸۷.

(۳) أخرجه البخاري في الصحیح ۲۴۶/۲، رقم الحدیث ۷۶۳، ومسلم في الصحیح ۳۳۸/۱ رقم الحدیث ۱۷۳ ۴۶۲، وأبو داود ۵۰۸/۱ رقم الحدیث ۸۱۰، والنسائي ۱۶۸/۲، رقم الحدیث ۹۸۵

## په نفل کوونکي پسې د فرض کوونکي د اقتداء حکم :

﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ مُعَاذُ بْنُ جبلٍ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَأْتِيْ

د حضرت جابر رضي الله عنه روايت دی وايي چې معاذ بن جبل رضي الله عنه د نبي علیه السلام سره مونځ کولو بيا به راتلو

فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ فَصَلَّى لَيْلَةً مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ

او بيا به يې خپل قوم ته مونځ ورکولو نو (يو ورځ) هغوي د نبي علیه السلام سره د ماسخوتن مونځ وکړو

ثُمَّ أَتَى قَوْمَهُ فَأَمَّهُمْ فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ فَانْحَرَفَ

او بيا راغي د قوم امامت يې وکړو او مونځ کې يې سورة بقره شروع کړه (کله چې قرآت اوږد شو) نو را ووتو

رَجُلٌ فَسَلَّمَ ثُمَّ صَلَّى وَحْدَهُ وَانْصَرَفَ فَقَالُوْا

يو کس د جومات نه او سلام يې واړولو او ځان له مونځ يې وکړو او لاړو خلکو چې وکتل نو وي ويل

لَهُ أَنَافَقْتَ يَافُلَانُ قَالَ لَا وَاللهِ وَلَآتِيَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورته منافق شوي اي فلانيه! هغه وويل: نه په الله قسم دی (زه منافق نه يم) زه به نبي علیه السلام ته ورځم

فلأخبرنه فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ

او د حقيقت حال نه به يې خبر کړم د غه کس بارگاه رسالت کې حاضر شو او عرض يې وکړو يا رسول الله

إِنَّا أَصْحَابُ نَوَاضِحَ نَعْمَلُ بِالنَّهَارِ وَإِنَّ مُعَاذًا صَلَّى مَعَكَ الْعِشَاءَ ثُمَّ أَتَى

مونږ اوبان والا يو د ورځې کار وکړو او بيشکه معاذ ستاسو سره د ماسخوتن مونځ وکړو بيا راغي او

قَوْمَهُ فَافْتَتَحَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مُعَاذٍ

مونږ ته يې مونځ وکړو او سورة بقره يې په کې شروع کړه، نو متوجه شو نبي علیه السلام معاذ رضي الله عنه ته

فَقَالَ : " يَا مُعَاذُ أَفَتَّانٌ أَنْتَ ؟ اقْرَأْ : " وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا "

او وي فرمايل: اى معاذه ! آيا ته فتنه پيدا کولو والا يې بهتره داده چې ته ووايې : والشمس وضحها ،

"وَ الضُّحَى" "وَ اللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى" وَ "سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى". (۱)

سورة والضحى، سورة والليل اذا يغشى او سورة سبح اسم ربک الاعلى.

**توضيح: كان معاذ بن جبل:** ددې حديث عمومي مفهوم دا دی، چې حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مديني منورې کې يو محلې کې اوسيدو او خپلې محلې والاو ته به يې مسجد کې مونځ ورکولو او کله به مسجد نبوي کې مونځ ته تلل راتلل کول او کله به يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اقتداء کې مسجد نبوي کې د ماسخوتن مونځ کولو، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله د ماسخوتن مونځ تاخير سره اداء کولو او قرآت به هم طويل وو، مونځ اداء کولو سره به ماسخوتن کې تاخير يعنې ناوخته کيدو او چې کله به معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسجد نبوي نه فارغ شو نو خپل مسجد طرف ته به تللو هغې کې به هم وخت لګيدو او محلې والاو به انتظار کولو، کله چې به يې مونځ ورکولو سورة بقره او ږده سورتونو سره به يې اوږد قرآت کولو. يو ځلې داسې وشو چې د غې محله کې سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونځ مات کړو او ځانته يې اداء کړو، خلکو دا ملامته کړو چې ته منافق شوی يې، هغه او ويل منافقت خبره نه ده، زه به ضرور د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وړاندې د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شکايت کوم، چنانچه ده شکايت وکړو او ويې ويل مونږ مزدوري کونکي خلک يو ستړي خلک يوو، ړومبی د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انتظار کوو، بيا د هغې اوږد مونځ برداشت کوو. ځکه تيره شوې شپې مونځ ما ځان له وکړو، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په غوسه شو او ويې فرمايل آيا ته خلک په فتنه کې چوې، داسې مه کوه بلکې داسې کوه، يا زما نه شاته مونځ کوه او خلکو ته مونځ مه کوه، يا ما پسې مونځ مه کوه، خو په دې کې هم خيال کوه چې مختصر مختصر سورتونه وايه.(المرقات ۲/۵۶۰، اشعة اللمعات ۴۰۵).

اوس ددې واقعې د وجې نه په فقهاو کې اختلاف راغلی، متنفل امام پسې د مفترض مونځ جائز دی يا نه. ځکه چې معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نفل کونکی وو او د محلې والا خلک مفترضين وو. ځکه چې معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرض مونځ به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره کوو.

**د فقهاو اختلاف:** د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد متنفل پسې مفترض مونځ جائز دی، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ يو قول هم داسې دی شوافعو په نزد نابالغ ماشوم امامت هم ددې اصولو دلاندې جائز دی.

**د شوافعو دلائل:** شوافع حضرات د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زير بحث حديث او ددې واقعې نه استدلال کوي او وايي دا ښکاره چې معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرض مخکې کړي وو او اوس د محلې والاو ته چې کوم

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۰ ۵۱۵،رقم الحديث ۶۱۰۶، ومسلم في الصحيح ۳۳۹/۱ رقم الحديث ۱۷۸ ۴۶۵، وأبو داود ۵۰۰/۱ رقم الحديث ۷۹۰، والنسائي ۱۷۲/۱، رقم الحديث ۹۹۸

امامت کوي هغې کې دا متنفل وو او متنفل پسې د مفترض مونځ جائز دی. دغه رنګ عمرو بن سلمه رضي الله عنه يو نابالغ ماشوم خپل قوم ته مونځ ورکولو، هغه هم متنفل وو او قوم مفترض وو. څنګه چې باب الامامة حديث نمبر(۱۰) د لاندې ليکلی شوي دي دا قصه به راشي. امام صاحب رحمه الله او مالک رحمه الله د يو قول مطابق امام احمد بن حنبل رحمه الله دليل ترمذي او ابوداود کې حديث دی، الفاظ دادي:

**الامام ضامن و المؤذن مؤتمن**، دې حديث کې د امام مونځ متضمن اسم فاعل ګرځولی شوی دی يعني يو څيز ترڅ کې اخيستونکی. او د مقتدي مونځ متضمن اسم مفعول ګرځولی شوی دی او دا خبره ښکاره ده، د متنفل مونځ د قوت او کيفيت په اعتبار سره کمزوری دی او د مفترض مونځ د قوت په اعتبار سره مضبوط او قوي دی.

**انما جعل الامام ليؤتم به**: حديث هم دا تعليم ورکوي، امام اعلی وي او متنفل امام ادنی وي، لهذا دا اقتداء جائز نه ده، دلته يو بنيادي قاعده ده د هغې د وجې نه دا اختلاف او قرآت خلف الامام اختلاف راغلی، هغه دا امام شافعي رحمه الله په نزد باندې امام او مقتدي مونځ کې اتحاد نشته دی، زمونږ په نزد باندې د امام او مقتدي مونځ کې اتحاد شته دی، د هغوئ په نزد باندې اتحاد نشته صرف افعالو کې اشتراک دی، لهذا جدا جدا مونځ دی هرې طريقې سره جائز دی. د جمهورو دويم دليل دا دی اسلام کې د صلوة خوف طريقه ده، که متنفل پسې مفترض مونځ کيدای، نو امام دوه يا درې ځله ځان له ځان له جماعت کولی او مقتديانو ته مونځ کې تلل راتلل دا ټول مشقت به نه برداشت کيدی.

**جواب**: د جمهورو د طرف نه د شوافعو مستدل او د حضرت معاذ رضي الله عنه د حديث ډير جوابونه دي:

(۱) اول جواب دا دی: د معاذ رضي الله عنه واقعه هغه وخت باندې محمول ده، چې فرض مونځ به دوه ځلې کيدو يا طريقه منسوخ شوه، دې باندې حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت دلالت کوي، شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات کې دا حديث داسې نقل کړی دی: **نهی ان تصلی فريضة فی يوم مرتين**(لمعات ج۳ ص ۱۳۸) (اشعة اللمعات ۴۰۵)امام طحاوي رحمه الله هم داسې رايې ورکړې چې دا عمل منسوخ شوی دی.

(۲) د چا د نيت علم چا ته هم نه وي، حضرت معاذ رضي الله عنه عمل کې دا احتمال وو، چې دوي د حصول فضيلت د وجې حضور صلی الله عليه وسلم په اقتداء کې نفل کړې وو او بيا يې خپل قوم ته فرض مونځ کړی دی، چې د جماعت فضيلت هم ملاو شي، بلکې جمع د فضيلتينو حاصله شي.

(۳) دريم جواب دا دی: چې د معاذ بن جبل رضي الله عنه دا عمل د ده خپله رايې او خپل اجتهاد وو، دې باندې د حضور صلی الله عليه وسلم تقرير او توثيق نه وو. کله چې حضور صلی الله عليه وسلم ته معلومه شوه، نو حضور صلی الله عليه وسلم د خفګان اظهار وکړو.

(۴) څلورم جواب دا دی: د ماسخوتن اطلاق ماښام باندې هم کیږي، چې دې ته ماسخوتن اولی ویلي کیږي او عشاء باندې هم ددې اطلاق عام دی دې ته عشاء آخره ویلی کیږي. نو قوي احتمال دی، چې دلته د ماښام مونځ مراد دی او ددې تذکره ترمذي (ص۷۵) باندې هم ملا ویږي.

(۵) د دغه خلکو دوه شکایاتونه وو، اول دا چې ماسخوتن کې تاخیر کیږي، دویم دا چې قرآت کې طوالت کیږي حضور ﷺ دوه جوابه وکړه، اول دا چې دوه ځایه د ماسخوتن مونځ مه کوه او که د قوم سره دی مونځ کولو، نو قرآت کې تخفیف کوه، نو د یو منهی عنه فعل نه څنګه استدلال کولی شي، باقي د عمرو بن سلمة رضی الله عنه د حدیث بیان هغه ځای کې راځي کوم ځای کې چې هغه حدیث راځي. د حضرت معاذ رضي الله عنه واقعه او فعل کې ډیر احتمالات دي، ځکه ددې نه استدلال نه کیږي.

**اقراء، والشمس وضحها**، یعنې دا سورت وایه، هغه سورت وایه او د وړو سورتونو نه وایه، دې نه مقصد دا نه دی چې اول رکعت کې سورت شمس وایه او دویم رکعت کې سورت اعلی وایه، یعنې داسې لوستل ترتیب مصحف خلاف دی، ځکه چې سورت اعلی مخکې دی، بلکې حدیث کې واؤ مطلق جمع د پاره دی، یعنې سورتونو کې تخفیف د پاره کوم لولې، ځکه چې مسنونه طریقه ترتیب مصحف مطابق لوستل دي او ددې خلاف لوستل خلاف اولی دي، خو یو کس که د یو سورت په آیتونو کې تقدیم او تاخیر کوي دا ناجائز دی، وجه د فرق دا ده د آیتونو ترتیب قطعي او توقیفي دی او سورتونو ترتیب نزول نه پس د صحابو اجتهاد دی، همدا رنګه ایتونو کې تقدیم او تاخیر سره مضمون او معانیو کې فرق راځي او سورتونو کې داسې نه وي، دې حدیث نه امت ته دا تعلیم حاصل شو چې امام ته په کار دي چې هغه د مقتدیانو په هر لحاظ سره د مونځ خیال وساتي، چې نفرت کونکي او منتشر نه شي.

## د نبي کریم علیه الصلاة والسلام آواز مبارک ډیر زیات ښائسته وُ

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ: |
| دحضرت براء رضي الله عنه روایت دی وایي چې ما اوریدلي چې نبي علیه السلام به لوستل د ماسخوتن مونځ |
| ( وَ التِّيْنِ وَ الزَّيْتُوْنِ ) وَمَا سَمِعْتُ أَحَدًا أَحْسَنَ صَوْتًا مِنْهُ .[1] |
| کې سورة والتین والزیتون او د حضور ﷺ آواز نه د بل چا آواز ښائسته نه وو اوریدلی. |

**توضیح**: **احسن صوتا**: څنګه چې حضور ﷺ باطني کمالاتو کې د ټولو نه ډیر کامل او اکمل انسان وو، دغه رنګ الله تعالی ورته ظاهري او جسماني ښائسته والی او کمالات ورکړي وو، څنګه

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۲/۲۵۱، رقم الحدیث ۷۶۹، ومسلم في الصحیح ۱/۳۳۹ رقم الحدیث ۱۷۷-۴۶٤.

چې الله تعالی حضور ﷺ ته حسن صورت ورکړې وو. د غه رنګ يې ورته ښائسته آواز هم ورکړی وو. ددې تذکره حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دې حديث کې کړې ده. دا څه د جذباتو يا د مبالغې اظهار نه وو. بلکې دا د صحابي د بيان قوت آخري حد کيدی شي. خو د حضور ﷺ د کمال پيغمبری ابتدائي حد وي. ملا علي قاري رحمه الله ددې حديث لاندې ليکي ابن عساکر رضي الله عنه يو حديث نقل کړی دی، حضور ﷺ فرمايي: الله تعالی کله يو پيغمبر ليږلې، نو هغه ته ښائسته آواز او حسن صورت والا مخ مبارک ورکړی تر دې چې الله تعالی ستاسو پيغمبر محمد ﷺ وليږلو هغه ته يې هم ښائسته آواز او ښائسته شکل ورکړی ؤ (مرقات ج ۳ ص ۲۹۲) (المرقات ۲/۵۶۳) آحاديثو کې راغلي حضور ﷺ آواز به هغه ځای پورې رسيدو کوم ځای پورې چې د چا آواز نه رسيدو، د بهيقي يو روايت کې دي چې يو ځلې حضور ﷺ خطبه ورکړه په کورونو کې زنانوو هم د حضور ﷺ آواز واوريدو، ابو نعيم د عبد الله ابن رواحه رضي الله عنه يو حديث نقل کوي، هغه فرمايي زه په بنو تميم کې وم د جمعې په ورځ په منبر باندې مې د حضور ﷺ آواز واوريدو. نبي عليه الصلاة والسلام فرمايل کينئ دابن ماجه يو روايت کې دي، چې ام هانی رضي الله عنها د حضور ﷺ تلاوت هغه وخت واوريدو، کله چې حضور ﷺ د شپې په وخت کعبې سره ناست وو تلاوت يې کولو. او ام هانی رضي الله عنها په خپل کور کې وه. بهر حال داسې دې ولې نه وي چې کله:

جہاں کے سارے کمالات ایک تجھ میں ہیں ❁ ترے کمال کسی میں نہیں مگر دو چار

## حضور ﷺ به په مونځ کې مختلف سورتونه لوستل

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ بـ(ق

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه الصلاة والسلام به لوستل د سحر مونځ کې (ق

وَ الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ) وَ نَحْوِهَا وَ كَانَتْ صَلَاتُهُ بَعْدُ تَخْفِيفًا.[1]

والقرآن المجيد) يا داسې يو بل سورة او بيا به هم د نبي عليه السلام مونځ سپک وو.

**توضيح: تخفيفاً:** يعنې سحر کې سورة ق وغيره طويل قرآت باوجود به بيا هم د حضور ﷺ مونځ سپک وو. ځکه چې د حضور ﷺ قرآت به د خوند نه ډک وو، ددې جملې ډير مفهومات دي. (اشعة اللمعات ۴۰۶).

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳۳۷، رقم الحديث ۱۶۸ ۴۵۸، وأخرجه أحمد في المسند ۵ ۹۱

علامه طيبي رَحِمَهُ اَللَّهُ دا مطلب بيان کړی دی، چې د سحر مونځ نه علاوه نور څلور مونځونه سپک وو د سحر مونځ به اوږد وو، عامو شارحينو دا مطلب بيان کړی دی، خو دا زړه ته نه لږي. ځکه چې د حديث الفاظ او عربيت ذوق دا نه قبلوي. علامه ابن حجر رَحِمَهُ اَللَّهُ د دې جملې مطلب دا بيان کړی. چې (بعد) تعلق زمانې سره دی، يعنې ابتدائي هجرت کې د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ به مسجد نبوي کې اوږد وو، ځکه چې خلک به کم وو، چې خلک ډير شو، نو بيا د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ مختصر شو. دا مطلب د حديث سره څه نږدې دی. (المرقات ۲/۵۶۳).

صاحب سفر سعاده ليکي د نورو امامانو په نسبت نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ طويل مونځ مختصر ښکاره کيدو ټولو نه مخکې چې کوم مطلب ليکلی دی هغه د شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اَللَّهُ رايه ده. زما په خيال د غه مطلب راجح دی. دا ټول اشعة اللمعات کې مذکور دي (اشعة اللمعات ج۱ ص۴۰۶)

﴿۱٤﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْث : أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ﴾[1]

د حضرت عمرو بن حُريث رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه اوريدلي چې لوستل به يې د سحر مونځ کې والليل اذا عسعس.

﴿۱٥﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ: صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ بِمَكَّةَ فَاسْتَفْتَحَ سُورَةَ (الْمُؤْمِنِينَ) حَتَّى جَاءَ ذِكْرُ مُوسَى وَ هَارُوْنَ أَوْ ذِكْرُ عِيسَى أَخَذَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَعْلَةٌ فَرَكَعَ.[2]

د عبدالله بن سائب نه روايت دی وايي چې: مونځ وکړو مونږ ته نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د سحر په مکه کې نو شروع يې وکړه په سورة المؤمنين سره، کله چې راغې ذکر د موسی او د هارون يا د عيسی عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نو ونيو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ټوخي، بيا نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رکوع ته ولاړو.

**توضيح: حتى جاء ذكر موسى:** يعنې سورة مومنون آيت ﴿ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَى وَأَخَاهُ هَارُونَ﴾ ته چې کله حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسيدو، نو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زړه مبارک به ډک شو او په ژړا به شو، د دغې وجې نه به د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرۍ وچه شوه، نو ټوخی به ورته راغی، نو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۳٦/۱ رقم الحديث ۱٦٤-٤٥٦، وأبو داود ۵۱۱/۱ رقم الحديث ۸۱۷

(۲) أخرجه مسلم ۳۳٦/۱ رقم الحديث ۱٦۳-٤٥٥، وأبو داود ٤۲٦/۱ رقم الحديث ٦٤۹، والنسائي ۱۷٦/۲، رقم الحديث ۱۰۰۷

سورة ختمولو نه مخکې رکوع ته لاړو. (المرقات ۲/۵۵٦).

**او ذکر عیسی**: او د شک د پاره دی، راوي ته شک دی، د حضرت عیسی ذکر دا سې دی: ﴿وَ جَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ آيَةً﴾. سعلة دا لفظ د سین په فتحې او ضمې دواړو سره دی د ژړلو د وجې نه مرۍ وچه شي او تو خی راشي، دغې ته سعلة وايي.

## د جمعې ورځې د سحر په مونځ کې کوم سورة وويل شي

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ يَوْمَ |
| د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه الصلاة والسلام به ویلو د سحر په مونځ کې په ورځ |
| الْجُمُعَةِ بِـ(الم تَنْزِيلُ) فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى وَفِي الثَّانِيَةِ (هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ). (متفق عليه)[1] |
| د جمعې په اول رکعت کې: الم تنزیل، او په دویم رکعت کې: هل اتی علی الانسان. |

**توضیح**: د جمعې په ورځ سحر مونځ کې الم تنزیل یعنې سورة سجدة په (۲۱) سپاره کې دی د دې نوم سجده ده، په دریو رکوع باندې مشتمل دی، دا به یې اول رکعت کې لوستلو (المرقات ۲/۵٦٦). او سورة دهر به یې په دویم رکعت کې لوستلو، قرآن کریم کې یو حم السجده ده دغه سورة مراد نه دی. شوافع حضرات فرمایي دې حدیث باندې عمل کولو سره د جمعې په ورځ سحر دا دواړه سورتونه لوستل په کار دي، احناف فرمایي متعین طور باندې لازمول نه دي په کار. ځکه چې دې سره د عقیدې نقصان کېږي، ها ظاهري حدیث باندې عمل کول مستحب دي او اولی دي، په دې شرط چې د دغې سنت تابعداري کول په اراده سره وي او د لزوم عقیده نه وي، ځکه چې حضور صلی الله علیه وسلم د دې سورتونو نه علاوه جمعې په سحر کې نور سورتونه هم ویلي دي، دوام ثابت نه دی او غیر دوام لوستلو نه احناف منکر نه دي.

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ قَالَ : اسْتَخْلَفَ مَرْوَانُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَلَى |
| د حضرت عبید الله بن ابي رافع رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې خلیفه مقرر کړو مروان ابو هریره رضي الله عنه په |
| الْمَدِينَةِ وَ خَرَجَ إِلَى مَكَّةَ فَصَلَّى لَنَا . أَبُو هُرَيْرَةَ |
| مدینه منوره او په خپله مکې ته لاړو نو مونځ وکړو مونږ ته (د هغه عدم موجودګۍ) کې ابو هریره رضي الله عنه |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۷۷، رقم الحديث ۸۹۱، ومسلم في الصحيح ۲/۵۹۹ رقم الحديث ٦۵-۸۸۰، وأبو داود ۱/٦٤۸ رقم الحديث ۱۰۷٤، والنسائي ۲/۱۵۹، رقم الحديث ۹۵۵

الْجُمُعَةَ فَقَرَأَ سُورَةَ (الْجُمُعَةِ) فِي السَّجْدَةِ الْأُولَى وَفِي الْآخِرَةِ: إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ فَقَالَ:

د جمعې نو اول رکعت کې سورة جمعه او دويم رکعت کې سورة اذا جاءک المنافقون ولوستاوو وې ويل

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهِمَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ. [1]

ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه د جمعې په ورځ د دې دواړو سورتونو لوستل اوريدلي دي.

﴿۱۸﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِيدَيْنِ

د نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام به لوستل د دواړو اخترونو په مونځ کې

وَفِي الْجُمُعَةِ بِـ(سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) وَ(هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ) قَالَ:

او د جمعې په مونځ کې سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حديث الغاشية. او نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي:

وَإِذَا اجْتَمَعَ الْعِيدُ وَالْجُمُعَةُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ قَرَأَ بِهِمَا فِي الصَّلَاتَيْنِ. [2]

چې به جمع شو اختر او جمعه په يوه ورځ نو لوستل به يې په دواړو کې دا دواړه سورتونه.

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سَأَلَ أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ:

د عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تپوس وکړو د ابو واقد ليثي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه

(مَا كَانَ يَقْرَأُ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ؟ فَقَالَ:

چې څه به لوستل نبي عَلَيْهِ السَّلَام په وړوکي او غټ اختر مونځونو کې، هغوئ وويل چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام د غه

كَانَ يَقْرَأُ فِيهِمَا: بِـ(ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ) وَ(اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ). [3]

دواړو مونځونو کې سورة ق والقرآن المجيد او اقتربت الساعة لوستلو.

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي رَكْعَتَيِ

د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام به لوستلو په دواړو سنت رکعتونو د

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۵۹۷/۲ رقم الحديث ۶۱-۸۷۷، وأبو داود ۶۷۰/۱ رقم الحديث ۱۱۲۴.
(۲) أخرجه مسلم ۵۹۸/۲ رقم الحديث ۶۲-۸۷۸، وأبو داود ۶۷۰/۱ رقم الحديث ۱۱۲۲، والنسائي ۱۱۲/۳، رقم الحديث: ۱۴۲۴.
(۳) أخرجه مسلم ۶۰۷/۲ رقم الحديث ۱۴ ۸۹۱، وأبو داود ۶۸۳/۱ رقم الحديث ۱۱۵۴، والنسائي ۱۸۳/۳، رقم الحديث: ۱۵۶۷

الْفَجْرِ: (قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ) و (قل هُوَالله أَحَدٌ). [1]

سحر کې قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد.

﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ:

د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به لوستل په دواړو سنت رکعاتونو د سحر کې

(قُولُوا آمَنَّا بِاللهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا) وَالَّتِي فِي آلِ عِمْرَانَ (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ

قولو امنا بالله وما انزل الينا او هغه چې په سورة آل عمران کې دی: قل يا اهل الكتب تعالوا الى كلمة

سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ) [2].

سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

## په مونځ کې بسم الله په مزه ويل

﴿۲۲﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ بِ(بِسْمِ اللهِ

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به شروع کولو خپل مونځ په بسم الله

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ). [3] وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ.

الرحمن الرحيم سره، امام ترمذي ويلي دي چې دې حديث اسناد قوي نه دی.

**توضيح:** ددې حديث پوره توضيح او تفصيل او د فقهاو اختلاف باب صفة الصلوة حديث نمبر (۲) د لاندې ليکلی شوي دي، دا حديث د احنافو دليل دی، بسم الله لوستل په کار دي او امام ترمذي دې روايت ته بلا وجه **ليس اسناده بذالک** ويلی دی او حالانکې دا حديث حسن او صحيح الاسناد دی.

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۰۲ رقم الحديث ۹۸-۷۲۶

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۰۲ رقم الحديث ۱۰۰ ۷۲۷

(۳) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۴ رقم الحديث ۲۴۵ وقال ليس اسناده بذاك

## د آمين بالجهر حكم

﴿٢٣﴾ وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حجر قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ: (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْن) فَقَالَ: آمِينَ مَدَّ بِهَا صَوْتَهُ.[1]

د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: ما د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه واوريدل چې وې لوستلو غير المغضوب عليهم ولا الضالين او بيا يې په اوږد آواز سره آمين وويله.

**توضيح: فقال آمين:** لفظ آمين کې رومبی دا بحث دی. چې دا د کوم لغت وژبې لفظ دی بعضې علماء د فرسي تسليم کړی دی، دا لفظ (همين) وو ددې معنی کذالک ده. دې نه عربي جوړه شوه. نو آمين شو. مطلب دا چې امام قرآءت وکړي او امين ووايې بيا مقتدي دې پدې باندې د مهر تصديق ولګوي او امين دې ووايي، (چې صحيح يې ويلي دي هم داسې ده) بعضې علماء دا د عبراني او سرياني ژبې لفظ تسليم کړی دی دې ژبو کې داسې اوزان ډير راځي. څنګه چې هابيل. قابيل. ميکائيل او اسرافيل دا الفاظ په دغو ژبو کې په معنی د استجب راځي، بعضې نور علماء فرمايي دا لفظ اعجمي نه دی. بلکې دا د عربي لفظ دی او عربو استعمال کړی دی. مجنون ليلی وايي:

**آمين آمين لا ارضى بواحدة ❁ حتى اضم اليها الفين امينا**

بيا وايي:

**اللهم لاتسلبنى حبها ابدا ❁ ويرحم الله عبدا قال امينا**

دا لفظ دوه قسمه شوی دی، يعنې بالقصر (**امين**) او بالمد (**آمين**) دواړه قسمه صحيح دي او **امينا** الف اشباعي سره هم صحيح دی، ددې لفظ دوه قسمه لوستل غلط دي. لکه امين. دويم الف باندې مد او ميم باندې شد سره لوستل غلط دي، لکه **آمين** د قصد په معنی سره دی، **آمين** مسئله کې دوه ځايه کې اختلاف دی. رومبی اختلاف دې کې دی آيا **آمين** صرف د مقتدي وظيفه ده يا د امام او مقتدي دواړو وظيفه ده. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې دا صرف د مقتدي وظيفه ده او حديث (**اذا قال الامام ولاالضالين فقولوا آمين**) دلته د تقسيم د کار دی، د امام کار فاتحه لوستل دي او د مقتدي

کار آمین ویل دي، جمهور فقهاء او ائمه ثلاثه فرمايي، چې آمین د امام او مقتدي دواړو وظیفه ده.
ددې دلیل د صحیحینو روایت دی (قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا امن الامام فامنوا) چې کله امام آمین ووايي تاسو هم آمین وایئ. جمهور د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د دلیل جواب ورکوي دغه دلیل په خپله دعوی باندې صریح نه دی. بلکې صرف اشارة النص نه استدلال دی په خپله جمهورو د عبارة النص نه استدلال کړی دی چې وئي او راجح دی سري مونځ کې دا صرف د امام وظیفه ده. فرقه ضالة، شیعه، شنیعه او رافضه مرفوضه آمین ویلو ته مفسد صلوة ویلی، ابن حزم ظاهریه او غیر مقلدین آمین ویلو ته واجب وايي. آمین کې دویم اختلاف دې کې دی، چې آیا آمین په تیزه جهرا لوستلی کېږي یا سراً.
**د فقهاو اختلاف**: آمین جهرا او سرا لوستلو کې د څلورو امامانو اتفاق دی دواړه قسمه لوستل جائز دي. په یو جانب کې هم کراهت نشته، خبره صرف دومره ده چې احنافو جهرا لوستلو ته د مسنون اطلاق نه کوي، بلکې د جائز درجه کې یې مني او شوافع حضرات سرا لوستلو ته جائز وايي او جهرا ته افضل وايي، دا اختلاف اصل کې د افضل او غیر افضل دی د جائز او غیر جائز نه دی امام شافعي او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمَا اللهُ جهري مونځ کې آمین بالجهر ته افضل وايي او احناف او مالکیه آمین بالسر افضل گرځولی دی.
**دلائل**: شوافع او حنابله زیر بحث حدیث د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه استدلال کړی هغه کې مدبها صوته الفاظ راغلي، ددې مطلب دغه حضراتو په نزد باندې (رفع بها صوته دی)
د شوافعو دویم دلیل د بشر بن رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی دې کې رفع بها صوته الفاظ راغلي دي چې خپل مدعا باندې صریح دلیل دی، ابن ماجه روایت دی: **حتی یسمعها الصف الاول فیرتج بها المسجد.**
**(کذا في اللمعات) (اشعة اللمعات ۴۰۹)**
د شوافعو دریم دلیل د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې ابوداود نقل کړی دی هغې کې دا الفاظ راغلي دي (**کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا تلا غیر المغضوب علیهم ولا الضالین قال آمین حتی یسمع من یلیه من الصف الاول**. (لمعات ج۲ ص ۱۴۴) (اشعة اللمعات ۴۰۹)
امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ خپل کتاب ترمذي شریف کې دواړه روایات نقل کړي دي یو کې جهر ذکر دی، دویم کې عدم جهر ذکر دی، بیا امام ترمذي جهري روایت ته ترجیح ورکړه او امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په حوالې سره عدم جهر روایت باندې اعتراضات وارد کړي دي.
د احنافو او مالکیو رومبی دلیل د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی، دغه صاحب هدایه هم نقل

کړی دی او استدلال یې ترې کړی دی، اصل روایت حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دی. الفاظ یې دا دي: (**عن عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال يخفي الامام اربعة اشياء التعوذ والبسملة و امين و سبحانك اللهم و بحمدك و عن ابن مسعود مثله** (لمعات، ج ۳، ص ۱٤٤) (اشعة اللمعات ٤٠۹)

دې روایت ته صاحب هدایه روایت بالمعنی ویلی دی، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي:

**اربع يخفيهن الامام و ذكر من جملتها التعوذ و التسمية و امين**. (هدایه، ص ۱۰۳)

(۲) د احنافو دویم دلیل جمع الجوامع کې روایت دی علامه سیوطي رَحِمَهُ اللهُ نقل کړی دی الفاظ دا دي: (**عن ابي وائل قال كان عمر و علي لا يجهران بالبسملة ولا بالتعوذ والا آمين**. (رواه جرير والطحاوي كذا في اللمعات) (اشعة اللمعات ٤٠۹)

(۳) د احنافو دریم دلیل د سمرة بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی (مشکوة ص ۷۲) باندې داسې منقول دي **عن سمرة بن جندب انه حفظ عن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سكتتين سكتة اذا كبر وسكتة اذا فرغ من قرآءة غير المغضوب عليهم ولا الضالين فصدقه ابي بن كعب**. (ابو داود)

دې روایت کې ولا الضالین وخت کې چې کومه سکته ذکر ده دا صرف آمین بالسر لوستلو د پاره ده.

(۴) د احنافو څلور دلیل تهذیب الاثار کې د طبراني روایت دی الفاظ یې دا دي.

(**عن ابي وائل قال لم يكن عمر و علي يجهران ببسم الله الرحمن الرحيم والا آمين**)

(۵) د احنافو و مالکیو پنځم دلیل دغه د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی هغه داسې دی: **عن وائل بن حجر ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرء غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقال آمين و خفض بها صوته**. (ترمذي ص ۳٤)

روایات او اثار دواړو طرف ته شته، خو مدار د اختلاف دغه روایت د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې دی شوافعو مد بها صوته د راویانو د وجې او قوت د سند په اعتبار سره راجح ګرځولی دی او د احنافو مستدلات یې څه نا څه وجه باندې معلول ګرځولي دی، د شوافعو دا مستدل سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ نقل کړی دی (المرقات ۲/۵۷۱) او د سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ سند دوي عمده ګرځولی دی او د احنافو طریق سند شعبه نقل کړی دی. احناف دې ته په سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ باندې ترجیح ورکوي اتۀ اتۀ ترجیحات بیان کولی شي، خو فیصله نه کېږي احناف او مالکیه د قرآن د دې آیت نه هم آمین بالسر باندې استدلال کوي: ﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾ (سورة اعراف، آیت ۵۵).

د استدلال طریقه داسې ده آمین دعا ده او د دعا په باره کې د قرآن اعلان دی چې دعا په مزه غواړه،

لهذا آمین هم په مزه وایي .
**جواب**: ائمه احنافو د وائل بن حجر رضي الله عنه روایت مدبها صوته جواب دا ورکړی. په زوره سره لوستلو کې دا نص صریح نه دی، بلکې مدبها مطلب دا هم کیدی شي، دراز آواز سره آمین لولئ دا جواب کمزوری دی اصل جواب دا دی، حضور صلی الله علیه وسلم یقینا اوچت آواز باندې آمین ویلي دی، خو دا په تعلیم امت باندې محمول دی، لکه څنګه چې د ماسپخین مونځ کې حضور صلی الله علیه وسلم قرآت په تیزه باندې کړی وو. رفع بها صوته هم دا جواب دی، بهر حال شروع کې ویلي شوي دي. چې دا اختلاف د افضل او غیر افضل دی دا اختلاف په حقیقت کې اختلاف نه دی. (شیخ عبد الحق رحمه الله لمعات کې لیکي **والظاهر الحمل علی کلا الفعلین تارة فتارة**) یعني ظاهره دا ده چې، دواړه فعله جائز دي. کله زور سره کله په مزه باندې دواړه قسمه د موقع او مقام مناسب جائز دي،(اشعة اللمعات۴۰۹)
حالانکې کوم خلکو ته چې کومو علاقو کې د عدم جهر تعلیم ورکړی شوی دی، چې همدا یو صورت جائز دی، که په دغې عمل کوي په سنت عمل دی، دوي په دې تشویش کې اچول نه دي په کار، چې تاسو په تیزه باندې وایي آخر هغوئ هم د جواز په یو طرف باندې ولاړ دي.
**لطیفه**: د درسونو او تعلیم زمانه کې مې د استاذانو نه دا لطیفه اوریدلې ده، هندوستان کې چې کله غیر مقلدینو حضراتو دې مسئله کې سخت والی کړی دی او د امین بالسر والاو مونځ فاسد کول یې شروع کړل، عوامو کې تشویش پیدا شو، د علماو مناظرې شروع شوی، د انګریز دور دی، یو ځلې انګریز جج مخې ته مناظره اوشوه هغه د طرفینو د دلائلو اوریدو نه پس فیصله داسې وکړه، ما چې څه واوریدل دې نه اندازه اوشوه یو آمین بالجهر دی، ستاسو د نبی صلی الله علیه وسلم نه دا هم ثابت دي، دویم آمین بالسر دی ستاسو د نبی صلی الله علیه وسلم نه دا هم ثابت دي، دریم آمین بالشر دی دا د چا تنګول او تشویش پیدا کولو د پاره دی دا ستاسو د نبی صلی الله علیه وسلم نه ثابت نه دي. واقعي دې خبرې کې وزن شته، مونږ وکتل اکثر بد باطن خلک مودودي وغیره خپل مقاصدو راویستلو د پاره یو مسجد کې زور سره آمین وایي ، حالانکې غیر مقلدین اهل حدیث نه وي، په یو ځای کې قبضه کولو سره بعضې حضرات خپل نمائشي درود شروع کړي، مقصد صلوة وسلام نه وي، بلکې ارادې نورې وي. **فالی الله المشتکی**.
د غیر مقلدینو حضراتو په نزد باندې پریشان کن صورت دا دی، سنت پرېښودو سره د هغوئ په نزد باندې مونځ باطل کېږي، دې وجې نه هغوئ کې سخت والی دی، د اعمالو مختلفې درجې دي، فرض عمل پرېښودو سره مونځ باطلیږي او واجب پرېښودو سره ناقص کېږي او سنت پرېښودو سره سړی د ثواب، ادب او استحباب نه محرومیږي، خو د مونځ باطل کیدو هیڅ وجه نشته دی.

﴿۲٤﴾ وَعَنْ أَبِي زُهَيْرِ النميري قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَأَتَيْنَا

د ابوزهیر نمیري نه روایت دی وایي چې: مونږ ووتلو د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره یوه شپه او راغلو یو داسې

عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَلَحَّ فِي الْمَسْأَلَةِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْجَبَ إِنْ خَتَمَ".

کس ته چې ډیره خواري یې کوله په دعا کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: واجب یې کړو (جنت) که ختم یې کړه

فَقَالَ: رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: بِأَيِّ شَيْءٍ يَخْتِمُ؟ قَالَ: «بِآمِينَ». [1].

نو وویل یو کس د قوم نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته چې په څه څیز سره یې ختم کړي؟ وې فرمایل په آمین سره.

**توضیح: الح**: د باب **افعال** نه الحاج عاجزی او زاری سره اصرار کولو ته ویلي کېږي، دلته الله تعالی نه دعا کولو کې ښه مبالغه او اصرار کول مراد دي، علماء عربو د پاره په کار دي خپل عوام د دعاء عادي جوړ کړي او عاجزي ورته وښائي. (المرقات ۲/۵۷۱).

**اوجب**: یعني دغه کس خپل ځان د پاره جنت واجب کړو، الله تعالی باندې د بندګانو طرف نه هیڅ څیز واجب نه دی، دلته مراد دا دی الله تعالی خپل فضل، کرم او خپل احسان سره خپل ځان باندې واجب او لازم کړی دی، ګویا داسې وعده یې کړې ده چې د هغې نه وعده خلافي نه کوي.

**ان ختم**: یعني پدې شرط چې دعا باندې مهر ولږوي، دویم مطلب دا دی، چې دعا په یو څیز باندې ختم کړي، رومبی معنی سره دا لفظ د خاتم نه د مهر په معنی کې دی، یو حدیث کې دي آمین خاتم رب العلمین دی مطلب دا چې څنګه د بادشاه مهر په یو خط باندې ولږي د هر قسم نقصان نه محفوظ شي او قابل اعتماد جوړ شي، دغه رنګ لفظ آمین هی، چې دا د کومې دعا نه پس ولولي، هغه محفوظ او مقبول او قابل اعتماد جوړ شي، دې آمین نه مونځ کې د ننه آمین مراد اخیستلی کېږي او د مونځ نه بهر آمین هم مراد اخیستلی کېږي، دې حدیث نه امت ته تعلیم حاصل شو که دعا اجتماعي وي یا انفرادي آخر کې **آمین یا رب العلمین** وایي، الله تعالی طرف نه دې عمل او دعا باندې مهر قبولیت او مهر حفاظت او برکت ولږي.

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْمَغْرِبَ بِسُورَةِ

د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به لوستلو د ماښام مونځ کې سورة

---

(۱) وأخرجه أبو داود في السنن ۱/۵۷۷ رقم الحديث ۹۳۸

( الْأَعْرَافِ ) فَرَّقَهَا فِيْ رَكْعَتَيْنِ.[1]
اعراف او تقسیمولو به یې په دواړو رکعتونو باندې.

**توضیح**: ظاهري حدیث نه دا معلومیږي چې حضور ﷺ ماښام دوو رکعتونو کې پوره سورة اعراف ویلی ؤ او د ماښام وخت اګر چې تنګ وي او نبي علیه السلام عموما مختصر قرآت فرمایلو او کله د بیان جواز د پاره طویل قرآت لوستلی دی. (المرقات ۲/۵۷۲)
دې نه بطور اشاره دا ثابت کیږي چې د ماښام مونځ دومره تنګ نه وي. څنګه چې یې شوافع ګڼي، د دوي په نزد باندې غروب افتاب نه پس سرخي وي، دغه شفق دی، ددې په خاتمې باندې د ماښام وخت ختمیږي، خو د احنافو په نزد باندې شفق د لمر پریوتو نه پس د سرخی نه پس سفیدي نوم دی او دا وخت کافي اوږد دی، سورة اعراف دوو رکعتو کې لوستلی کیږي په دې شرط چې قرآت حدر سره وي، مصري طرز باندې نه وي، نبي علیه السلام په قرآت کې تیزي وه او معجزه هم ورسره شامله وه یعني کم وخت کې چې ډیر قرآت وشي دې ته (طی) ویلې شي، شیخ عبد الحق رحمه الله وایي دا ویل ډیر لرې دي، نبي علیه السلام د سورة اعراف بعضې حصه لوستله پوره یې نه دی لوستلی. (اشعة اللمعات ۴۱۰)

## د معوذتین فضیلت

﴿۲۶﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ : كُنْتُ أَقُودُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَتَهُ فِي
د حضرت عبقة بن عامر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې : ماپړی نیولی وو د اوښ د نبي علیه الصلاة والسلام په

السَّفَرِ فَقَالَ لِي : « يَا عُقْبَةُ أَلَا أُعَلِّمُكَ خَيْرَ سُورَتَيْنِ
یو سفر کې چې نبي علیه السلام ماته وفرمایل ای عقبه! آیا ونه ښایم زه تاسو ته دوه بهترین سورتونه چې ویل

قُرِئَتَا ؟ » فَعَلَّمَنِي ( قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الفلق ) و ( قل أعود بِرَبِّ
شوي دي (یعني ما باندې نازل شوي) نبي علیه السلام ماته وښودل : **قل اعوذ برب الفلق** او **قل اعوذ برب**

النَّاس ) قَالَ : فَلَمْ يَرَنِي سُرِرْتُ بِهِمَا جِدًّا
**الناس** عقبه رضي الله عنه وایي : نبي علیه السلام زه د دغې دواړو سورتونو نه ډیر خوشحاله نه وم لیدلی کله چې

فَلَمَّا نَزَلَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ صَلَّى بِهِمَا صَلَاةَ الصُّبْحِ لِلنَّاسِ فَلَمَّا
نبي علیه السلام د سحر مونځ د پاره راکوز شو نو خلکو ته مونځ کې یې دغه دواړه سورتونه ولوستل چې کله د

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲/۱۷۰ رقم الحديث ۹۹۱

فَرَغَ الْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ: « يَا عُقْبَةُ كَيْفَ رَأَيْتَ؟ » رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1].

مونځ نه فارغ شو زما طرف ته يې وکتل او ويې فرمايل عقبه تا وليده؟ (ددې فضيلت).

**توضيح**: **فلم يرني سررت بهما**: يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله وکتل چې ماته معوذتين اوريدو باندې ډيره خوشحالي نه وه ځومره چې نورو سورتونو باندې وه، (المرقات ۲/۵۷۳) چې هغې کې توحيد اوږده او اعلى مضامين وي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه محسوس کړو او غوښتل يې چې ماته عملي طور باندې ددې سورتونو عظمت وښائي، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سحر مونځ په مختصر سورتونو باندې وکړو او وې فرمايل (كيف رايت) يعنې ودې ليدو؟ څنګه د ټولونو افضل مونځ چې دې کې طويل سورتونه ويلي کېږي، او دې مختصرو سورتونو سره يې وکړو، دا ددې سورتونو شان او عظمت وو او ښه سورتونه دي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معوذتين سورتونو ته (خير سورتونه) دې اعتبار سره ويلي دي چې دې کې د شيطان مکر او فريب او د هغې د وسوسې نه تحفظ او د بچ کيدو مکمل سامان دی، دې اعتبار سره دا ټول ښه سورتونه دي.

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ |
| د حضرت جابر بن سمرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام به لوستلو د ماښام په مونځ کې په |
| لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ.[2] |
| شپه د جمعه کې قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد. |
| وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ إِلَّا أَنَّه لَمْ يَذْكُرْ « لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ » . (ابن ماجه ۸۳۳). |
| او روايت کړی ابن ماجه دا حديث دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه خو نه يې دې ذکر کړي ليلة الجمعة |

**توضيح**: **يقراء**: يعنې د ماښام مونځ کې تاسو کله دا دواړه سورتونه لوستل، دې دواړو کې اول سورت کې د کفارو نه د بيزارۍ اعلان دی او دويم سورت کې د توحيد خالص اعلان دی. دا وجه ده تاسو د ماښام او سحر سنتونو کې ډير ځل دغه سورتونه لوستل د ورځې او شپې په شروع کې تاسو دا اعلان دوباره کوئ، څنګه چې يو ځای والا حديث کې راځي. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې دواړو سورتونو باندې دوام او استمرار نه دی کړی، دې نه امت ته دا تعليم ملاؤ شو، چې د قرآن هر سورت مونځ کې

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۵۲ رقم الحديث. ۱۴۶۲

(۲) البغوي في شرح السنة ۳/۸۱ وابن حبان ۳/۱۵۸ رقم الحديث ۱۸۳۸.

لوستل په کار دي او يو سورت خاص کول نه دي په کار.

﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : مَا أُحصي مَا سَمِعْتُ
د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې :زه نه شم شمار کولی چې ما څو ځلې اوريدلي چې

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ
نبي اکرم عليه الصلاة والسلام به لوستل په دوه رکعتو کې د ماښام مونځ نه پس او په دوه رکعتو کې مخکې د

صَلَاةِ الْفَجْرِ : بِـ(قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ) وَ (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ) .[1]

سحر د مونځ نه په دواړو سنتو کې قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد.

وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِلَّا أَنه لَمْ يَذْكُرْ : « بَعْدَ الْمَغْرِبِ »(ابن ماجه۱۱۴۸)

او روايت کړی دی ابن ماجه د ابو هريره رضي الله عنه نه، خو دده روايت کې (بعدالمغرب) الفاظ نشته دی.

## د طوال مفصل او قصار مفصل مطلب

﴿۲۹﴾ وَ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَحَدٍ
سليمان بن يسار رضي الله عنه وايي: چې ابو هريره رضي الله عنه به فرمايل: ما مونځ نه دي کړي وروسته د يو کس نه

أَشْبَهَ صَلَاةً بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فلَان . قَالَ سُلَيْمَان : صَلَّيْتُ
چې مشابه وي مونځ د هغه د مونځ د نبي عليه السلام سره د فلاني کس نه، سليمان وايي : ما هم مونځ وکړو

خَلْفَهُ فَكَانَ يُطِيلُ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَ يُخَفِّفُ الْأُخْرَيَيْنِ وَ
ددې کس شا ته هغه به اوږدول اولني دوه رکعته د ماسپښين او آخري دوه رکعته به يې مختصر کول او

يُخَفِّفُ الْعَصْر وَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ وَ يَقْرَأُ فِي
مختصر به يې کولو د مازيګر مونځ او لوستل به يې د ماښام مونځ کې قصار مفصل او لوستل به يې په

الْعِشَاءِ بِوَسَطِ الْمُفَصَّلِ وَ يَقْرَأُ فِي الصُّبْحِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ[2].

ماسخوتن کې اوساط مفصل او لوستل به يې د سحر مونځ کې طوال مفصل.

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۹۶/۲، رقم الحديث ۴۳۱

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۱۶۷/۲ رقم الحديث ۹۸۳، وأخرجه النسائي في السنن ۲۷۰/۱ رقم الحديث ۸۲۷

**توضيح: بقصار المفصل**: قرآن كريم د سورتونو د پارد څه اصطلاحي نومونه دي چنانچه سورة بقره سورة آل عمران، سورة مائده، سورة انعام، سورة اعراف، سورة انفال او براءت دا اوه سورتونه د **السبع الطول** نوم سره مشهور دي. په دې شرط چې انفال او توبه يو وي.

دې نه پس هغه سورتونه دي، چې هغه په سلو ايتونو باندې مشتمل وي يا د سلو نه په ډيرو باندې مشتمل وي، دا سورتونه د (مئين) په نوم سره مشهور دي. دې نه پس هغه سورتونه دي. چې مثاني ورته ويلی كيږي، دا سلسله د سورة حجرات پورې تلې ده، سورة حجرات نه **والناس** پورې ټولو سورتونو ته (**مفصلات**) ويلي كيږي، ځكه چې دا د يو بل نه زر زر جدا كيږي.

دې **مفصلاتو** كې بيا ټول واړه سورتونه په درې درجو باندې تقسيم كړی، هغې ته يې **طوال**. اوساط او قصار نومونه وركړي دي، خو د مفصل نوم ورسره خواته لږولی شوی دی. چې معلوم شي چې دا تقسيم (مفصلاتو كې دی) سورت **حجرات** نه سورة بروج پورې طوال مفصل دي. **سورة بروج** نه **سورة بينة** پورې اوساط مفصل دي او سورة بينة نه سورة والناس پورې قصار مفصل دي، دې حديث كې دې تفصيل طرف ته اجمالي اشاره ده، او تفصيل يې فقهاو ذكر كړې دی ، **والحمد لله على ذلك (المرقات ۲/۵۷۷-۵۷۶)**.

**من فلان**: ددې نه مراد غالباً حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی.

## د امام نه وروسته د قرآت حكم

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : كُنَّا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي صَلَاةِ |
| د عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: يو ورځ مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه وروسته ولاړو وو په مونځ |
| الْفَجْرِ فَقَرَأَ فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ فَلَمَّا فَرَغَ |
| د سحر كې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې قرآت شروع كړو نو دا نه شو لوستل ورته بيا چې كله فارغ شو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| قَالَ : « لَعَلَّكُمْ تَقْرَؤُوْنَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ ؟ » قُلْنَا : نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ. |
| د مونځ نه وې فرمايل تاسو د امام نه شا ته قرآت كوئ مونږ ورته وويل چې آو يا رسول الله ! نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| قَالَ: «لَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ |
| وفرمايل: تاسې مه وايئ په غير د فاتحې نه بل څه ځكه چې مونځ نه كيږي د هغه چا چې فاتحه ونه وايي. |

وَ لِلنِّسَائِيِّ مَعْنَاهُ وَ فِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُد قَالَ: «وَ أَنَا أَقُولُ

او نسائي دا روايت بالمعنى نقل كړى او د ابوداؤد يو روايت كې دي چې نبي عليه السلام وفرمايل ما وويل

مَالِي يُنَازِعُنِي الْقُرْآن؟ فَلَا تَقْرَؤُوْا بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ إِذَا جَهَرْتُ

په زړه كې چې دا څه وشو چې قرآت په ما دروند كېږي نو تاسو مه لولئ بل څه، چې كله زه په اوچت آواز

إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآن»[1].

لوستل كوم په غير د سورة فاتحې نه.

**توضيح: لعلكم تقرءون:** دې نه معلومه شوه چې د مقتديانو وروسته په مزه لوستل او نبي عليه السلام باندې د مقتديانو روحاني طور باندې بوج پرېوتو، ځكه هغوى تپوس وكړو شايد تاسو خلک زما وروسته قرآت كوئ، كه دغه خلكو په تيزه لوستل كول، نو بيا حضور صلى الله عليه وسلم دا سوال نه فرمايلو، چې دې كې د مونځ تفسيرونو نه يو تفسير دى، چې فاتحې نه علاوه بل څه مه وايې، بيا وروسته د فاتحې لوستلو نه منع هم راغله، لكه مخكې ليكلى شوي دي. (المرقات ۲/۵۷۷، اشعة اللمعات ۴۱۱) د فاتحې لوستلو نه علاوه امام نه وروسته قرآن لوستلو ممانعت باندې دا حديث د احنافو دليل دى او فاتحې لوستلو باندې دا د شوافعو دليل دى.

## په جهري مونځونو كې خلک د امام نه وروسته فاتحې ويلو سره بازار نه راغلل

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه السلام فارغ شو د هغه مونځ نه چې په هغې كې يې جهري

بِالْقِرَاءَةِ فَقَالَ: «هَلْ قَرَأَ مَعِي أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟»

قرائت كړى وو نو نبي عليه السلام مونځ گزارو ته متوجه شو وې فرمايل آيا اوس چا ما سره قرآت كولو نو

فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: "إِنِّي أَقُولُ: مَا لِي

وويل يو كس چې آو يارسول الله، نبي عليه السلام وفرمايل چې (زه په زړه كې) وايم چې څه چل وشو چې

أُنَازَعُ الْقُرْآن؟» قَالَ فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

زه قرآن لوستلو كې بوج محسوسوم. ابو هريره رضي الله عنه وايي چې: منع شو خلک د قرائت نه د نبي عليه السلام

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۵۱۵ رقم الحديث ۸۲۳، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۱۱۶، رقم الحديث ۳۱۱

فِيمَا جَهَرَ فِيهِ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَوَاتِ حِيْنَ سَمِعُوا ذَلِكَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ »[1].

سره په هغه مونځ کې چې جهري قرائت کولو چې کله يې دا د رسول الله ﷺ نه واوريدل.

**توضيح: مالي انازع القرآن:** منازعه د يو شي راښکلو ته ويلې شي، يعنې امام هم لوستل کوي او مقتدي هم شاته لوستل کوي، دا منازعه ده. (المرقات ۲/۵۷۹)

حضور ﷺ زړه کې وويل او په ژبه باندې اظهار يې هم وکړو، داسې نه دي کول په کار، نو خلکو جهري مونځونو کې د عام قرآت او فاتحې نه منع شو. دا حديث د احنافو مضبوط دليل دی. چې د امام نه وروسته قرآن لوستلو باندې حضور ﷺ سختی سره منع فرمايلې ده او فاتحه هم قرآن دی، د دې ممانعت هم راغلی.

بعضې غير مقلدين د عجيب جرات نه کار اخلي. ما په خپله د يو غير مقلد نه اوريدلي دي چې سورة فاتحه قرآن نه دی او الله تعالى ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ﴾ فرمايلي، لهذا فاتحه قرآن نه جدا دی. د دې ويل به ضروري وي، دا خبره ياد ساتئ چې د امام نه وروسته صرف د قرآن ممانعت راغلی، قرآن نه علاوه نور کوم اذکار او وظائفٌ چې دي د هغې لوستل جائز دي.

او هغه د قرآت وخت کې نه وي. چې کله قرآت ختم شي، نو هلته دغه اذکار دي. لکه تسبيحات دغه رنګ ثناء او **التحيات** دي.

د احنافو په نزد باندې دا روايت امام نه وروستو لوستلو د پاره ناسخ دی، ځکه چې ابو هريره رضي الله عنه متأخر في الاسلام دی، نو دا د آخري دور نقشه ده، او **فانتهى الناس** الفاظو کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د عملي فيصلې اندازه کيږي او دا جمله د زهري نه ده، بلکې د حضرت ابو هريره رضي الله عنه ده، لکه مخکې تفصيل تير شوی دی.

**(۳۲)** وَعَنِ ابْنِ عمر والبياضي قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْمُصَلِّيَ يُنَاجِي

د ابن عمرو بياضي رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام فرمايي: مونځ ګزار مناجات کوي د

رَبَّهُ فَلْيَنْظُرْ مَا يُنَاجِيهِ بِهِ وَلَا

خپل رب سره دوي ته په کار دي چې دې کې غور وکړي چې په کوم څيز چې ورسره مناجات کوي او مه دې

(1) أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۸۰ ، وأخرجه ابو داود في السنن ۱/۵۱۶ رقم الحديث ۸۲۶ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۱۱۸/۱، رقم الحديث ۳۱۲، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۷۶ رقم الحديث ۸۴۸ .

يَجْهَرْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ بِالْقُرْآنِ ». [۱]

او چتوي آواز يو په بل باندې د قرآن كريم په ويلو كې.

**توضيح: بالقرآن:** يعنې بعضې لوستلو والا په زور زور سره دويم كس باندې غالب كيږئ مه او مه يې په تشويش كې اچوئ، اوس كه هغه په مونځ كې اوريدونكى وي يا خوب كې وي يا په خپله قرآن لولي. دې ټولو صورتونو كې يو مسلمان ته تكليف وركول جائز نه دي، لهذا قرآن په زوره سره مه وايې او د قرآن نه علاوه بل څيز سره تكليف وركول خو بطريق اولى بد عمل وي. د دې حديث نه هم معلومه شوه، امام نه وروسته جهري مونځ كې فاتحه لوستل مناسب نه دي. (المرقات ۲/۵۸۱).

## د امام متابعت ضروري دى

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا جُعِلَ |
| د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: چې مقرر شوى دى |
| الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَ إِذَا |
| امام د دې د پاره چې د هغې پيروي وشي چې امام الله اكبر ووايي نو تاسو هم الله اكبر ووايئ او چې كله |
| قَرَأَ فَأَنْصِتُوا ». [۲] |
| امام قرائت كوي نو تاسو خاموش او چپ اوسئ. |

**توضيح:** يعنې چې كله قرآن لوستلى كيږي (نو په اوچت اواز سره لوستلو په صورت كې) تاسو دا اورئ او (په قلاره د لوستلو په صورت كې) خاموشه اوسئ، لهذا معلومه شوه د امام نه وروسته مقتديانو د پاره څه وويل مطلقا ممنوع دي، خوا كه جهري مونځ وي يا سري (**من كان له امام فقراءة الامام قرآة له**) يعنې مونځ كې چې د چا امام وي، نو د امام قرآت د مقتدي قرآت دى.. دا حديث بالكل صحيح دى. بخاري او مسلم نه علاوه ټولو نقل كړى دى، او هدايه كې دلته مذكور دي، چې دې باندې اجماع د صحابو رضي الله عنهم او اتفاق دى.

**فانصتوا:** يعنې كله چې امام قرآن وايي، نو تاسو خاموشه كيږئ، (المرقات ۲/۵۸۲)

كه د هغوئ قرآءت اورئ، نو ښه طريقې باندې او توجه سره يې اورئ، لو هلته د **فاستمعوا** حكم دى او كه

(۱) أخرجه أحمد ۳/۳۴۴، ومالك ۱/۸۰ رقم الحديث ۲۹ من كتاب الصلاة

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۴۰۴ رقم الحديث ۶۰۴

مونځ سره روان نو هلته داسې خاموشه کېږئ څکه، **وانصتوا** فرمايي. دا حديث د احنافو دليل دی او د جمهورو علماؤ مسلک دی او د امام قرآءت د ټول قوم قرآءت دی، نو قوم بغير د قرآءت نه پاتې نه شو.

## کوم کس چې په قرآت کولو باندې قادر نه وي هغه څه وکړي

(۳٤) وَ عَنْ عَبْدُ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

د عبد الله ابن ابي اوفی رَضِوَاللّٰهُعَنْهُ نه روايت دی وايي چې: يو کس راغې نبي عَلَيۡهِالسَّلَام ته او عرض يې وکړو

إِنِّي لَا أَسْتَطِيعُ أَنْ آخُذَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْئًا فَعَلِّمْنِي مَا يُجْزِئُنِي

زه قدرت نه لرم چې ياد کړم يو څه حصه د قرآن، نو تاسو ما ته څه څيز وښائي چې زما د پاره کافي وي

قَالَ : « قُلْ سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

نبي عَلَيۡهِالسَّلَام وفرمايل: ته دا وايه: الله تعالى پاک دی، ټول تعريفونه الله لره دي، الله نه غير بل معبود شته

وَ اللهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ » . قَالَ .

الله ډير لوی دی، د ګناه نه د بچ کيدو او عبادت کولو توفيق صرف الله تعالى د طرف نه دی، هغه کس وويل:

يَا رَسُولَ اللهِ هٰذَا لِلّٰهِ فَمَاذَا لِيْ ؟ قَالَ : « قُلْ

يارسول الله! دا خو د الله تعالى د پاره دي زما د پاره څه دي؟ نبي عَلَيۡهِالسَّلَام وفرمايل (خپل ځان) د پاره دا ولوله

اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَ عَافِنِي وَ اهْدِنِي وَ ارْزُقْنِي » .

اې الله! په ما باندې رحم وکړه ما په عافيت سره وساته، ما ته هدايت وکړه او ما ته رزق راکړه، بيا دغه کس

فَقَالَ هٰكَذَا بِيَدَيْهِ وَ قَبَضَهُمَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَمَّا هٰذَا فَقَدْ مَلَأَ

په خپلو دواړو لاسونو داسې اشاره وکړه او بند يې کړل، نبي عَلَيۡهِالسَّلَام وفرمايل: دغه کس ډک کړل دواړه

يَدَيْهِ مِنَ الْخَيْرِ » رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَانْتَهَتْ رِوَايَةُ النَّسَائِيِّ عِنْدَ قَوْلِهِ: إِلَّا بِاللهِ [1].

لاسونه د نيکيو نه. د نسائي روايت په الا بالله پورې ختم شوی دی.

**توضيح: اني لا استطيع: سوال:** يو اهل ژبې والا او بيا عربي او عرب ذهانت نه دا خبره ډيره لرې ده چې هغه د قرآن لږه حصه هم ياد ولې نه شوه چې هغې سره مونځ جائز شي. (اشعة اللمعات ۴۱۳).

---

(1) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۵۲۱ رقم الحديث ۸۳۲، وأخرجه النسائي في السنن ۲/۱۴۳ رقم الحديث : ۹۲۴ وأحمد ۴/۳۵۳.

**جواب**: ددې جواب دا دی، څنګه چې عربو کې ذهین خلک وو دغه رنګ کمزوري هم شته همدا رنګه عمر رسیده خلکو ته زده کړه ډیره مشکله وي او ډیر د قرینې قیاس خبره دا ده، دغه کس به اوس مسلمان شوی وو او د مونځ معامله به ورته راغلې وه، نو دا سوال یې وکړو.

دریم جواب دا دی، چې د اسلام شروع کې دا سهولت وو، چې د قرآن په ځای ذکر الله او تسبیحاتو سره مونځ جائز وو، که یو کس ته ډیر سورتونه یاد وي، نو یو سورت باندې همیشه والی مکروه دی. او که یاد ورته نه وي نو یاد دې کړي، ورنه مکروه دي، او ددې نه مراد خلاف سنت دی.

**هذا لله**: دا کس څومره هوښیار وو دا تسبیحات، تمجیدات او تعریفات ټول د الله تعالی د پاره دي آخر زما د پاره د دعاء د درجې کوم څیز دی، دې وجې نه حضور ﷺ دې کس ته د رحمت، عافیت، هدایت او د رزق دعا او ښودله.

**فقال هكذا**: قال لفظ عربي لغت کې اشارې د پاره هغه وخت استعمالیږي، کله چې ددې په صله کې (با) راشي دلته (بيديه) کې د (با) حرف د وجې نه دې جمله کې د اشارې معنی پیدا شوې ده.

**وقبضهما**: یعني دې کس دواړه لاسونه اشارې کولو سره بند کړل، ګویا دې ته یو ښه نعمت ملاو شو او خوشحاله شو او هغه یې محفوظ کړو، یا یې یوې ګوتې باندې د کلماتو شمار کولو سره بندې کړې. دې سره حضور ﷺ وفرمایل، دې کس دواړه لاسونه د نیکیو نه ډک کړل.

## د سبحان ربی الاعلی ثبوت

﴿٣٥﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَانَ إِذَا قَرَأَ (سبح اسم رَبِّكَ الْأَعْلَى) قَالَ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى[1].

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه الصلاة والسلام به چې کله لوستلو په یو مونځ کې سبح اسم ربک الاعلی، نو سبحان ربی الاعلی به یې هم لوستلو.

**توضیح**: قرآن آیت دی ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ دې کې د تسبیحاتو حکم دی دې حکم باندې حضور ﷺ په خپله هم عمل کړی ؤ او امت ته یې هم وفرمایل چې دا الفاظ (سبحان ربی الاعلی) سجده کې وایي. دغه شان کله ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ نازل شو، حضور ﷺ وفرمایل چې دا

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۵۴۹/۱ رقم الحديث ۸۸۳

الفاظ (سبحان رب العظيم) په رکوع کې وايي.
دا عجيب ترتيب دی، يعنې انسان وجود چې څو مره باقي پاتې کېږي، الله تعالی د شان پوره اعتراف انسان نه شي کولی، خو انسان خپل وجود ختموي، نو د الله تعالی د شان مکمل اعتراف شروع کړي.
کله انسان اودرېږي، نو هغه الله اکبر ووايي، چې خپل ځان يوه درجه ښکته کړي، نو سبحان ربي العظيم ووايي، خو چې سجده کې کله خپل ځان بالکل فاني کړي، دغه وخت د الله تعالی شان مکمل طور باندې اوچت کړي او سبحان رب الاعلی ووايي، يعنې زه څو مره وړوکی يم او الله تعالی دومره لوی دی.

## د خاصو سورتونو په اختتام باندې خاصې دعاګانې

| |
|---|
| ﴿۳٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "من قَرَأَ مِنْكُمْ بِـ |
| دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل تاسو کې چې څوک هم ولولي سورة |
| (التِّين وَ الزَّيْتُون) فَانْتَهى إِلَى (أَلَيْسَ الله بِأَحْكَمِ الحَاكِمِين) فَلْيَقُلْ: |
| والتين والزيتون، او چې کله ورسيږي: اليس الله باحكم الحاكمين ته، نو دا الفاظ دې ووايي: |
| بَلَى وَ أَنَا عَلَى ذَلِكَ مِنَ الشَّاهِدِيْنَ. وَ مَنْ قَرَأَ: |
| بلى وانا على ذلک من الشاهدين (آو اوزه دې باندې شهادت کوونکو نه يم) او کوم کس چې ولولي |
| (لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ) فَانْتَهَى إِلَى (أَلَيْسَ ذَلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَن يحيي الْمَوْتَى) فَلْيَقُلْ |
| (لااقسم بيوم القيامة) او ورسيږي دې آيت ته (اليس ذلک بقادر على ان يحيي الموتى) نو ودې وايي: |
| بَلَى. وَ مَنْ قَرَأَ (وَ الْمُرْسَلَاتِ) فَبَلَغَ: (فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُوْنَ) |
| بلى، او څوک چې لولي سورة مرسلات او دې آيت (فباي حديث بعده يؤمنون) ته ورسيږي، نو ودې |
| فَلْيَقُلْ: آمَنَّا بِاللهِ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَ التِّرْمِذِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: |
| وايي: امنا بالله (مونږ په الله تعالی باندې ايمان راوړی دی) ابوداود او ترمذي دا روايت (والتين آيت) |

(وَ أَنَا عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِيْنَ)

وانا علی ذلک من الشاهدین پورې نقل کړې دي.

**توضيح: فليقل بلى:** مذكوره مقاماتو په شان د څو مقاماتو په باره کې هم مناسب جواب ورکولو ذکر راغلی دی، مونځ کې دننه داسې جواب ورکول او نه ورکولو په باره کې د علماو اختلاف دی، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وايي دې سورتونو په ختميدو باندې دا کلمات ويل په کار دي، که مونځ د فرضو وي يا د نفلو او د مونځ نه بهر هم داسې جواب ورکوئ. او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي د مونځ نه بهر په هر حالت کې جواب ورکول په کار دي که په مونځ کې وي، بيا په نفلو کې جواب ورکوئ او فرائضو کې نه. (اشعة اللمعات ۴۱۵).

امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ وايي: د مونځ نه بهر جواب ورکول په کار دي، خو مونځ کې دننه ورکول نه دي په کار، مونځ که د فرضو وي يا د نفلو. دې سره وهم کېږي، چې دا کلمات هم د قرآن دي او که څوک د حديث ظاهر باندې عمل کول غواړي، بيا د نوافلو کې وکړي ځکه چې بعضې رواياتو کې د نوافلو (تهجدو) تصريح موجوده ده، همدا رنګه نوافلو کې وسعت شته.

## جناتو (پيريانو) ښه جواب ورکړو

﴿۳۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَصْحَابِه

د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: (يو ورځ) ووتلو نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپلو صحابو کرامو ته او

فَقَرَأَ عَلَيْهِم سُورَةَ الرَّحْمَنِ مِنْ أَوَّلِهَا إِلَى آخِرِهَا فَسَكَتُوا فَقَالَ:

سورة رحمن يې د اول نه تر آخره پورې ولوستو، صحابه کرام خاموش ناست وو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل:

«لَقَدْ قَرَأْتُهَا عَلَى الْجِنِّ لَيْلَةَ الْجِنِّ

دا سورة ما د جناتو مخې ته هغه شپه لوستلې وو کله چې دوي اسلام قبلولو او قرآن کريم اوريدو د پاره

فَكَانُوا أَحْسَنَ مَرْدُودًا مِنْكُمْ كُنْتُ كُلَّمَا أَتَيْتُ عَلَى قَوْلِه (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

را جمع شوي وو او هغوی جواب ورکولو کې ستاسو نه بهتر وو، کله چې زه دې آيت: فبأي آلاء ربكما

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۵۵۰/۱ رقم الحديث ۸۸۷، وأخرجه الترمذي في السنن ۱۲/۵، رقم الحديث ۳۲۱۷.

تُكَذِّبَانِ ) قَالُوا لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ

تكذيب کوئ ته و ... نو دا جواب به يې ورکولو : اې پروردګاره! مونږ ستا سو د يو نعمت تکذيب نه کوو

فَلَكَ الْحَمْدُ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

او ټول تعريفونه ستا د پاره دي . دا روايت امام ترمذي نقل کړی او ويلي يې دي دا حديث غريب دی.

**توضيح:** احسن مردودا: يعني جنات چې کله سورة رحمن نعمتونو والا آيت واوريدو هغوى ستاسو نه ښه جواب ورکړو او هر نعمت په بدلې کې يې او ويل مونږ ناشکري نه کوو. (المرقات ۲/۵۸۶).

بعضې خلک د ښه تلاوت په جواب کې سبحان الله وغيره الفاظ قرآت دوران کې وايي، بعضې محتاط علماء وايي دا صحيح نه ده بلکې دا د فاستمعوا او انصتوا خلاف دی خاموش کيدل په کار دي، پاتې شود سورة رحمن آيت په دې کې با قاعده استفهام سره يې سوال کړی، ددې جواب قرآت کې مخل او مضر نه دی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## په دوو رکعتونو کې يو سورت ويل څنګه دي

﴿۳۸﴾ عَنْ مُعَاذِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْجُهَنِيِّ قَالَ : إِنَّ رَجُلًا مِنْ جُهَيْنَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ

د معاذ بن عبد الله الجهني رَحِمَهُ اللّٰهُ نه روايت دی وايي چې : يو کس د جهينه قبيلې ما ته بيان کړل چې : ده

سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : قَرَأَ فِي الصُّبْحِ (إِذَا زلزلت) فِي الرَّكْعَتَيْنِ كلتيهما فَلَا أَدْرِي

اوريدلي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د سحر مونځ دوو رکعتونو کې سورة زلزال لوستلی او زه نه پوهيږم چې

أَنَسِيَ أَمْ قَرَأَ ذٰلِكَ عَمْدًا.[2]

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قصدًا داسې کړي وو يا ترې نه هير شوي وو.

**توضيح:** في الركعتين : يعني يو سورت زلزال يې دوو رکعتونو کې ولوستلو که څر ته نيم هم ولولې بيا هم جائز دی. مګر په هر رکعت کې د پوره سورت ويل په کار دی (المرقات ۲/۵۸۷)

په ظاهره خو داسې معلوميږي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بيان جواز د پاره داسې کړې وي او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه هير شوې نه دی بلکې اراده يې داسې کړې. اګر چې اولی او افضل دا دی چې يو سورت

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۷۲، رقم الحديث ۳۲۹۱

[2] أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۵۱۰ رقم الحديث ۸۱٦

مکرر مه لولئ، خاص کر فرائضو کې داسې نه دي کول په کار.

عوامو ته سوچ کول په کار دي، دې کې اکثر داسې کول، سورة اخلاص یا بل سورة مخصوصه ټولو رکعتونو کې دوباره دوباره لولي کم از کم دومره سورتونه یادول په کار دي، چې مونځ کې کراهت رانه شي، چاته چې ډیر سورتونه یاد وي او دې یو سورت وایي دا مکروه ده او چاته چې یاد نه وي هغه له یادول په کار دي ورنه مونځ به مکروه شي او د مکروه مطلب خلاف سنت دی.

## حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سورة بقره دوو رکعتونو کې ویلې وه

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ: إِنَّ أَبَا بَكْرِ الصِّدِّيقَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صَلَّى الصُّبْحَ فَقَرَأَ فِيهِمَا |
| عروه بن زبیر رَحِمَهُ اللهُ وایي چې: یو ځل ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سحر مونځ ورکړو او وي لوستلو په دواړو |
| بِـ(سُورَةِ الْبَقَرَةِ) فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا[1]. |
| رکعتونو کې سورة بقره. |

**توضیح**: حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سورة بقره څه حصه یو رکعت کې او څه بل رکعت کې لوستلې وه دا جائز دي، خو پوره سورة بقره د سحر دوو رکعتونو کې لوستل د کراهت نه خالي نه دي ځکه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ماښام مونځ کې سورة اعراف لوستلی وو چې معجزې نه خالي نه ده،

## حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سحر په مونځ کې سورة یوسف ویلو

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنِ الْفَرَافِصَةِ بْنِ عُمَيْرٍ الْحَنَفِيِّ قَالَ: مَا أَخَذْتُ سُورَةَ يُوسُفَ إِلَّا مِنْ قِرَاءَةِ عُثْمَانَ بْنِ |
| حضرت فرافصه بن عمیر حنفي رَحِمَهُ اللهُ وایي: ما یاد کړی دی سورة یوسف د لوستلو د حضرت عثمان بن |
| عَفَّانَ إِيَّاهَا فِي الصُّبْحِ مِنْ كَثْرَةِ مَا كَانَ يُرَدِّدُهَا[2]. |
| عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سحر په مونځ کې، ځکه چې دی به د سحر مونځ کې په کثرت سره لوستلو. |

**توضیح**: **اخذت سورة یوسف**: که څوک دا اعتراض وکړي، چې یو سورت مونځ د پاره متعین کول مکروه دي، بیا حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې ولې کول؟ ددې جواب دا دی یو سورة د ټولو مونځونو د پاره متعین کول د علماو په نزد باندې مکروه دي، خو صرف سورة یوسف د سحر مونځ کې په کثرت سره

---

(۱) أخرجه مالک ۸۲/۱ رقم الحدیث: ۳۳ من کتاب الصلاة

(۲) أخرجه مالک ۸۲/۱ رقم الحدیث. ۳۴ من کتاب الصلاة

لوستل ددې منافي نه دی ځکه چې دا د ټولو مونځونو سره خاص کولو معامله نه ده، تاسو صرف سورة یوسف فقط نه لوستلو، بلکې کثرت سره به مو دا سورة لوستلو او نورسورتونه به موهم لوستلو خو ډیر کم، دا صورت د کراهت نه خالي دی، علماء لیکي، چې کثرت سره سورة یوسف لوستلو د چې الله تعالی دې کس ته د شهادت مرګ ورکوي، عثمان بن عفان رضی الله عنه د دې ښکاره نمونه ده (المرقات ۲/۵۸۸)

﴿۴۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ: صلينا وَرَاء عُمَرَ ابْنِ الْخَطَّابِ الصُّبْحَ

د عامر بن ربیعة نه روایت دی وایي چې: یو ورځ مونږ د سحر مونځ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه پسې وکړو

فَقَرَأَ فيهِمَا بِسُورَةِ يُوسُفَ وَ سُورَةِ الْحَجِّ قِرَاءَةً بَطِيئَةً قِيلَ لَهُ:

هغوي په دواړو رکعتونو کې سورة یوسف او سورة حج په مزه مزه ولوستلو چا د عامر نه تپوس وکړو چې

إِذًا لَقَدْ كَانَ يَقُومُ حِينَ يَطْلُعُ الْفجر قَالَ: أجل.[1]

حضرت عمر رضی الله عنه به سحر راختو په وخت کې پاڅیدو؟ هغوي وویل چې آو.

﴿۴۲﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ:

د عمرو بن شعیب رضی الله عنه د خپل پلار او هغه د خپل نیکه (حضرت عبدالله) نه نقل کوي هغه به فرمایل:

مَا مِنَ الْمُفَصَّلِ سُورَةٌ صَغِيرَةٌ وَلَا كَبِيرَةٌ إِلَّا قَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نشته د مفصل نه یو وړوکې یا غټ سورت داسې، چې ما به نه وو اوریدلي د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه

يَؤُمُّ بِهَا النَّاسَ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ[2]. رَوَاهُ مَالِك.

د خلکو په فرض مونځونو کې.

﴿۴۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ

د حضرت عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله نه روایت دی وایي چې: لوستل به نبي علیه السلام په مونځ د

الْمَغْرِبِ بِـ (حم الدُّخَانِ). رَوَاهُ النَّسَائِيُّ مُرْسَلًا[3].

مابنام کې سورة (حم) او (دخان) سورتونه. دا روایت نسائی مرسلاً نقل کړی.



(۱) أخرجه مالک ۸۲/۱ رقم الحديث ۳۴ من كتاب الصلاة.

(۲) أبوداود ۵۱۰/۱ رقم الحديث: ۸۱۴.

# بَاب الرُّكُوع:
## د رکوع بیان

**قال الله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا﴾**.(سورة حج آیت:۷۷).

رکوع په لغت کې **انحناء** او ښکته کیدو یعني ټیټیدو ته ویلی کیږي. مونځ کې رکوع دا د صلوة یو رکن دی ددې نه منکر کافر دی او مونځ کې پریښودو سره مونځ باطلیږي، رکوع ددې امت د خصوصیاتو نه ده، سابقه امتونو په مونځ کې رکوع نه وه. حضرت مریم عَلَيْهَا السَّلَام ته چې کوم حکم وشو (ارکعي) نو دغه د صلې په معنی کې ده، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکي مونځ کې رکوع د سجدې د پاره تمهید او وسیله ده، ځکه دې کې تکرار نشته او سجده یو لوی مقصد دی او د الله تعالی عبادت یو لوی عمل دی، ځکه په دې کې تکرار دی.

دویم حکمت دا چې پړمبی سجده کې آیت ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ﴾ (طه آیت:۵۵) طرف ته اشاره ده. او دویمه سجده کې ﴿وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ﴾ (طه آیت:۵۵) طرف ته اشاره ده او بیا قیام طرف ته تلو کې (و منها نخرجکم تارة اخری) طرف ته اشاره ده. دریم حکمت دا چې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام مخې ته فرښتو سجده وکړه او سجدې نه پاڅیدل، هغوی ابلیس ته وکتل د سجدې نه محرومه ولاړ وو، نو فرښتو بطور شکر دریمه سجده وکړه، لهذا سجدې دوه دي، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکي د حکمت تلاش کیدو څه قیمت نشته، اصل خبره داده چې دا د الله تعالی حکم دی، دوه سجدې وکړئ، ځکه مونږ دوه سجدې کوو.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَقِيمُوا |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمایي : (مسلمانانو) په صحیح طریقې سره کوئ |
| الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ فَوَاللهِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ من بعدِي». (متفق عليه)[1] |
| رکوع او سجدې په الله تعالی قسم! زه تاسو خپل شا نه هم وینم. |

**توضیح**: ددې حدیث توضیح او تشریح **باب صفة الصلوة** حدیث نمبر (۲۲) کې تیره شوې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۲۵/۲، رقم الحديث ۷۴۲، ومسلم في الصحيح ۳۱۹/۱ رقم الحديث ۱۱۰-۴۲۵.

﴿۲﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: كَانَ رُكُوعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسُجُودُهُ

د براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي: چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به دقيام، وقعود نه غير ركوع، سجده او ناسته

وَبَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَإِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوعِ مَاخَلَا الْقِيَامَ وَالْقُعُودَ قَرِيْبًا مِنَ السَّوَاءِ. (متفق عليه)[1]

په مينځ د دواړو سجدو کې، او رکوع نه سر اوچتول، دا ټول په مقدار کې تقريباً برابر وو.

**توضيح: قريباً من السواء:** يعني نژدې نژدې وو بالکل يو شانته نه وو دې حديث کې ددې بيان دی چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مونځ کې څلور لوی ارکان مثلاً رکوع، سجده، جلسه او قومه ټول برابر دي. (المرقات ۲/۵۹۱).

**ماخلا القيام والقعود:** ددې جملې مطلب دا دی، د قيام رکن، او د قعدې رکن، د سجدې او رکوع پشان نه وو، بلکې دې کې قيام کې قرآءت وي او قعده کې التحيات وي، ځکه دواړه ارکان د ب‌قي رکنونه اوږده دي.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قومه او جلسه

﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ»

د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به چې کله سمع الله لمن حمده وويله د رکوع نه اوچتيدو

قَامَ حَتَّى نَقُوْلَ: قَدْ أَوْهَمَ ثُمَّ

کې (دومره وخت پورې به ولاړ وي) چې مونږ خپل زړه کې ويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا رکعت پرېښودو بيا چې

يَسْجُدُ وَ يَقْعُدُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ حَتَّى نَقُوْلَ:

به نبي عَلَيْهِ السَّلَام سجدې ته لاړو دواړو سجدو کې به دومره کيناستو، چې مونږ به زړه کې وويل چې نبي

قَدْ أَوْهَمَ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[2].

عَلَيْهِ السَّلَام دا سجده پرېښوده.

**توضيح: قد اوهم:** يعني نبي عَلَيْهِ السَّلَام په قومه او جلسه کې دومره ډير وخت لږولو چې کتونکو ته به دا

(۱) أخرجه البخاري ۲ ۲۷۲، رقم الحديث ۷۹۲، ومسلم ۱/۳۴۳ رقم الحديث ۱۹۳ ۴۷۱، وأبو داود ۱/۵۳۲ رقم الحديث ۷۵۱.

(۲) أخرجه مسلم ۱/۳۴۴ رقم الحديث ۱۹۶ ۴۷۳، وأحمد ۳/۲۰۳

خيال راتلو چې شايد حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مونځ کې وهم اوشو، چې آيا اوس څه کول دي. (المرقات ۲/۵۹۲).

دويم مطلب دا چې **اوهم** د ترک کيدو په معنی سره راځي، يعنې زمونږ په خيال کې به تيريده چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ بعضې حصه ترک کړه، علماء ليکي چې راجح دا دی، چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا طوالت نفل مونځونو کې کولو او که فرائضو کې کله به يې طوالت کولو، نو دا کله کله باندې محمول وو.

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ فِي رُكُوعِهِ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په کثرت سره لوستله په رکوع او |
| وَ سُجُودِهِ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ» يَتَأَوَّلُ الْقُرْآن. (متفق عليه)[1] |
| سجده کې دا دعاء: اې الله! ته پاک يې اې زمونږ ربه! زه ستا تعريف بيانوم اې الله! ته زما ګناه معاف کړه. |

**توضيح: يتأول القرآن:** يعنې د قرآن کريم يو آيت نه استدلال کوي، ځکه چې قرآن کريم کې د سورة نصر، آيت داسې دی ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ﴾ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه استدلال کولو، ځومره چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کثرت سره مونځ کې حمد باري تعالی فرمايي دې سره استغفار هم شامل وي او به ډير استغفار غواړي. (المرقات ۲/۵۹۳).

## د فرښتو متعلق عجائبات او د هغوي عبادت

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ وَ سُجُودِهِ: |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به ويل په رکوع او سجده کې دا کلمات: |
| «سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَ الرُّوحِ».[2] |
| د فرښتو او د روح (جبرائيل) پروردګار ډير پاک دی او نهايت پاک دی. |

**توضيح: كان يقول:** يعنې کله کله به يې رکوع کې داسې کلمات اداء کول دوام ترې مراد نه دي.

**سبوح قدوس:** ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د نهايه ابن اثير په حوالې سره وايي سبوح او قدوس دواړه د مبالغې صيغې دي او د دواړو لفظونو اولنې حروف مفتوح او مضموم هم دي، البته د ضمې او پيش

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۹۹، رقم الحديث ۸۱۷، ومسلم في الصحيح ۱/۳۵۰ رقم الحديث ۲۱۷ (٤٨٤)، وأبو داود ۱/۵٤٦ رقم الحديث ۸۷۷، والنسائي ۲/۲۱۹، رقم الحديث ۱۱۲۲

(۲) أخرجه مسلم ۱/۳۵۳ رقم الحديث ۲۲۳ (٤٨٧)، وأبو داود ۱/۵٤۲ رقم الحديث ۸۷۲، والنسائي ۲/۱۹۰، رقم الحديث ۱۰٤۸

استعمال مشهور دی دې دوا ړو لفظونو سره دالله تعالی پاکي مقصود ده، تکرار د تاکید د پاره دی یا یو کې د الله تعالی د ذات پاکي مقصود ده او دویم کې د صفاتو پاکي مقصود ده سبوح ای الت سبوح الت قدوس هم ممکن دي یو لفظ کې د ماضي مفهوم دی او دویم کې د مستقبل مفهوم دی، مطلب دا چې الله تعالی هرې زمانې کې هر عیب نه پاک دی ای **طاهر من کل عیب و منزه عن کل یستقبح**.(المرقات ۵۹۳ ۲).

**رب الملائکة**: علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دنیا کې د ټولو نه لوی مخلوق فرښتې دي او د ټولو نه فرمان بردار هم فرښتې دي او د الله تعالی عباداتو کې مصروف هم فرښتې دي. یو اثر کې منقول دي هرې پاڼې او ګیاه سره یوه یوه فرښته ده، دویم آثر کې دي چې د باران هرې قطرې سره یوه یوه فرښته د آسمان نه راځي او هره قطره شماري او دا هم محفوظ کوي، چې دا قطره چرته پریوځي. یو حدیث کې دي بعضې داسې فرښتې دي، چې کله نه الله تعالی ځمکه او آسمان جوړ کړی دی، هغه فرښتې په سجده کې پرتې دي او د قیامت پورې به سجدې نه سر نه اوچتوي، دغه رنګ بعضې فرښتې رکوع کې دي د قیامت پورې به رکوع کې وي، دغه رنګ بعضې صف کې ولاړې دي او قیامت پورې به په صف کې ولاړې وي. کله چې د قیامت په ورځ د الله تعالی تجلي په هغوئ باندې پریوځي، نو دوي چې خپل رب ته ګوري وایي به ( **سبحانک ما عبدناک کما ینبغي لک**) (المرقات ۲/۵۹۴).

د طبراني په یو روایت کې دي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامْ فرمایي او و آسمانونو کې یو قدم بلکې یو لویشت برابر بلکې یو تلي برابر ځای خالي نه دی، دوی کې څوک د سجدې په حالت کې وي او څوک د قیام په حالت کې عبادت کوي، کله چې د قیامت ورځ شي، نو ټولې فرښتې به ووایي (**سبحانک ماعبدناک حق عبادتک**) (المرقات ۲/۵۹۴). یو اثر کې دي، حضرت جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامْ هره ورځ حوض کوثر کې غوپه وهي. بیا خپلې وزرې څنډي نو د هرې قطرې نه یوه فرښته پیدا کېږي، کعب بن احبار فرمایي ځمکه کې د یوې دانې برابر ځای خالي نه دی، چې هغې کې فرښتې مقرر نه دي د دغې ځایونو معلومات الله تعالی ته رسوي، یو حدیث کې راغلي، چې د بیت الله محاذاتو کې آسمانونو کې بیت المعمور دی، هغې کې روزانه اویازره(۷۰۰۰) فرښتې مونځ کوي، بیا کله هم د هغوئ نمبر دوباره نه راځي.

**والروح**: راجح او واضح دا دي روح نه مراد جبرائیل دی، دې ته روح ځکه ویلي شوی دی، چې د دنیا وجود سره وابسته دی، بعضې علماء وایي روح نه مراد د فرښتو یو ځانله جماعت دی، بعضې علماء وایي روح نه مراد دالله تعالی د دربار یو دربان فرښته ده، چې د ټولو فرښتو نه لویه ده، که چرته هغه خوله خلاصه کړي، نو ټولې فرښتې به د هغې په خولې کې راشي. (**کل ذلک في مرقات المفاتیح لملا علي قاري ج۲ ص۳۱۰**)

## په رکوع او سجده کې قرآن ویل منع دي

﴿٦﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَلَا إِنِّي نُهِيتُ

د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: نبي علیه السلام فرمایي : خبردار! زه دې وخت نه منع شوی یم

أَنْ أَقْرَأَ الْقُرْآنَ رَاكِعًا أَوْ سَاجِدًا فَأَمَّا الرُّكُوعُ فَعَظِّمُوا فِيهِ الرَّبَّ

چې زه حالت رکوع او یا حالت سجده کې قرآن ولولم لهذا تاسو په رکوع کې د خپل رب لوئي بیان کړئ

وَ أَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ فَقَمِنٌ أَنْ يُسْتَجَابَ لَكُمْ ». [1]

او سجده کې د دعا پوره پوره کوشش او کړئ مناسب دي چې دا دعا ستاسو قبوله شي.

**توضیح: اني نهیت:** د بعضې علماو خیال دی، دا نهی تنزیهي ده او بعضې وایي دا تحریمي ده. (المرقات ۲/۵۹۵، اشعة اللمعات ۴۱۸).

د قیاس تقاضا هم دا ده چې دا نهې تحریمي ده. الله تعالی د هر حالت د پاره خپله خپله وظیفه مقرر کړې ده مونځ کې قیام د ټولو نه ښه حالت دی، ځکه دې کې د قرآن اوریدلو حکم ورکړې شوی دی. قرآن په ټولو اذکارو کې ښه او اعلی ذکر دی، لهذا د الله تعالی د منشاء خلاف کول حرام یا تحریمي دي.

الله تعالی د رکوع او سجدې حالت د پاره اذکار مقرر کړي دي، حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي زه په حالت رکوع او سجود کې د قرآن لوستلو نه منع کړی شوی یم، لهذا رکوع کې د الله تعالی تعظیم بیانول په کار دي او سجده کې دعا غوښتل په کار دي، تعظیم خو **سبحان ربي العظیم** دی او سجده کې چې د کومې دعا حکم شوی دی، د هغې مطلب دا چې د دعا دوه قسمه دي، یو قسم دا چې الله تعالی نه د الفاظو په ذریعه د خپل مطلب دعاګانې او غوښتلی شي، دویم قسم دا چې د الله تعالی حمد او ثناء بیان شي، دا هم اصل کې دعا ده، دې وجې نه الله تعالی په دې باندې خوشحاله کیږي او بیا خیر کې زیاتوالی کوي، ددې حمد په ضمن کې حصول مقصود د پاره بهترین انداز دعا ده. یو حدیث کې ددې تشریح تائید شوی دی فرمایي : **افضل الذکر لااله الاالله و افضل الدعا الحمد لله**، سجدې دواړه قسمه دعاګانو باندې مشتمل دي، معلومه شوه احناف چې مونځ کې صریح دعا غوښتلو په ځای کوم ذکرالله راجح ګرځولی دی هغه په خپله هم دعا ده، بعضې احناف وایي د نوافلو مونځ کې په سجدو کې ډیرې دعاګانې غواړئ خو فرائضو کې صرف تسبیحاتو باندې اکتفاء ضروري ده. (لمعات مختصرا)

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۴۸/۱ رقم الحديث ۲۰۷-۴۷۹، وأبو داود ۵۴۵/۱ رقم الحديث ۸۷۶.

**فقمن:** قاف باندې فتحه او میم باندې کسره ده، دا د لائق او مناسب معنی باندې دی او دا واحد، جمع او تثنیه ټولو د پاره استعمالیږي.

**﴿۷﴾** وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". (متفق عليه) [1]

د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی، وایي چې: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي: چې کله ووایي امام سمع الله لمن حمده نو تاسو ووایئ: اللهم ربنا لک الحمد، ځکه چې د چا قول چې یو ځای شي د قول د فرښتو سره نو معاف به شي ده ته مخکني ټول ګناهونه.

**﴿۸﴾** وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ ظَهْرَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ» [2].

د عبدالله بن ابي اوفی نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به چې کله او چتوله خپله ملا مبارکه د رکوع نه دا به یې فرمایل: الله تعالی دې قبول کړي د هغه کس حمد چا چې د هغه حمد او ثنا وکړه ای الله او ای ربه! ټول تعریفونه ستا د پاره دي د آسمانونو برابر او د ځمکو برابر او د هغه څیز برابر چې کوم د آسمان او ځمکې نه پس پیدا کوي.

**﴿۹﴾** وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَالَ: «اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا

دابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله او چتولو سر د رکوع نه دا به یې ویل: ای الله او ای زما ربه! ستا د پاره ټول تعریفونه دي ډک د آسمان او ځمکې او د هغه څیز کوم چې د

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲ ۲۸۳،رقم الحديث ۷۹۶، ومسلم في الصحيح ۱/۳۰۶ رقم الحديث ۷۱ ۴۰۹، وأبو داود ۱/۵۲۹ رقم الحديث ۸۴۹، والنسائي ۲/۱۹۶، رقم الحديث ۱۰۶۳

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۳۴۶ رقم الحديث ۲۰۲ ۴۷۶، وأبو داود ۱/۵۲۸ رقم الحديث ۸۴۶

شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ أَهْلُ الثَّنَاءِ وَ الْمَجْدِ أَحَقُّ

آسمان او ځمکې نه پس پیدا کوې ای د هر قسم تعریف او د بزرګۍ مستحقه ستا ذات دغه تعریف نه او چت

مَا قَالَ الْعَبْدُ وَ كُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ

دی کوم چې بنده کوي مونږ ټول ستا بندګان یو ای الله! تا چې کوم څیز را کړی ځوک د هغې منع کونکې نشته

وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجد»[1].

او ورکولو والا ځوک نشته د کوم څیز نه چې تا منع کړی او فائده نه شي ورکولې مالدار ته مالداري دده.

**توضیح: من شيء بعد:** یعنې آسمان او ځمکې نه پس عرش او کرسي او ټوله دنیا حمد او ثناء ستا دپاره ده.

**اهل الثناء والحمد:** دا منصوب علی المدح ده. ای امدح اهل الثناء یا مرفوع دی ای **انت اهل الثناء**

**احق ما قال العبد** دا مبتداء ده او **اللهم لا مانع الخ** خبر دی او **وکلنا لک عبد** دا جمله معترضه ده،

**ذالجد** دا منصوب مفعول به دی، **ولا ینفع** د پاره فاعل الجد دی جد قسمت او بخت ته هم ویلې شي او رزق او دولت ته هم ویلې شي، دا معنی دلته ډیره مناسبه ده، جد نیکه ته هم ویلې شي او محنت او مشقت ته هم ویلې شي، ټولې معناګانې د مناسبت د وجې نه دلته اخیستلی کېږي. (المرقات ۲/۵۹۸)
دې حدیث نه مخکې په دواړه حدیثونو کې چې کومه تشریح ذکر شوې ده، دلته هم دغه شان تشریح ده.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ: كُنَّا نُصَلِّي وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمَّا

د رفاعة بن رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام پسې شاته مونځ کولو کله چې نبي

رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ». فَقَالَ رَجُلٌ وَرَاءَهُ:

عَلَيْهِ السَّلَام د رکوع نه سر او چت کړو نو **سمع الله لمن حمده** یې وویله یو کس د دوي نه شاته ولاړ وو وې ویل

رَبَّنَا وَ لَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ:

**ربنا ولک الحمد حمدا کثیرا طیبا مبارک فیه** ، نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې کله د مونځ نه فارغ شو وې فرمایل

«مَنِ الْمُتَكَلِّمُ آنِفًا؟» قَالَ: أَنَا. قَالَ: «رَأَيْتُ بِضْعَةً وَ ثَلَاثِينَ مَلَكًا

دا کلمات چا وویل؟ دغه کس وویل چې: ما وویل، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ما بره دیرش فرښتې ولیدلې

(۱) أخرجه مسلم ۱ ۳۴۷ رقم الحديث ۲۰۵ ۴۷۷، وأبو داود ۱ ۵۲۹ رقم الحديث ۸۴۷، والنسائي ۱۹۸/۲، رقم الحديث ۱۰۶۸

يَبْتَدِرُونَهَا أَيُّهُمْ يَكْتُبُهَا أَوَّلَ ». (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).[1]

خپل منځ کې دې خبره باندې تيزي کوله چې ددې کلماتو ثواب به څوک مخکې ليکي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## هر رکن صحيح صحيح اداء کړئ ورنه مونځ به مو باطل وي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تُجْزِئُ صَلَاةُ |
| د ابو مسعود انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي: نه صحيح کيږي مونځ د يو |
| الرَّجُلِ حَتَّى يُقِيمَ ظَهْرَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ |
| کس تر هغه وخت پورې چې هغه په رکوع او سجده کې خپله ملا نيغه نه کړي. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2] |
| او امام ترمذي فرمايي دا حديث حسن صحيح دی. |

**توضيح: يقيم ظهره في الركوع:** کله چې رکوع نه واپس قومه کې د مونځ گزار ملا نيغه نه وي د هغه مونځ جائز نه دی، دغه رنگ چې سجدې نه واپس جلسه کې ملا نيغه نه وي مونځ درست نه دی. دې حديث کې تعديل ارکان طرف ته اشاره ده. دا مسئله مخکې تيره شوې ده. (المرقات ۲/۶۰۰، الکاشف ۲/۳۹۹).

جمهور ددې د فرضيت قائل دي، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دې ته واجب وايي، ځکه چې د فرض د پاره د دليل قطعي ضرورت دی هغه دلته موجود نه دی خو دوجوب د پاره دا حديث دليل دی ددې احناف قائل دي.

## د رکوع او د سجدې تسبيحات

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ ﴿ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾ قَالَ |
| د عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: کله دا آيت **فسبح باسم ربک العظيم** نازل شو نو وويل |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « اجْعَلُوهَا فِي رُكُوعِكُمْ » فَلَمَّا |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام تاسو خلک دا (**سبحان ربي العظيم**) په صورت کې خپل رکوع کې شامل کړئ، او کله چې |

[1] أخرجه البخاري ۱/ ۳۱۷ رقم الحديث: ۲۰۵/ ۴۷۷، وأبو داود ۱/ ۵۲۹ رقم الحديث ۸۴۷، والنسائي ۲/ ۱۹۸، رقم الحديث: ۱۰۶۸.

[2] أخرجه أبو داود في السنن ۱/ ۵۳۳ رقم الحديث ۸۵۵، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/ ۵۱، رقم الحديث: ۲۶۵، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/ ۲۸۲ رقم الحديث ۸۷۰

نَزَلَتْ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اجْعَلُوهَا فِي سُجُودِكُمْ» [1].

نازل شو دا آیت: سبح اسم ربک الاعلی ، نو وې فرمایل: دا تسبیحات په سجده کې شامل کړئ.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ رُكُوعُهُ وَذَلِكَ أَدْنَاهُ وَإِذَا سَجَدَ فَقَالَ فِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ سُجُودُهُ وَذَلِكَ أَدْنَاهُ" [2].

عون بن عبد الله د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل کوي وایي چې: نبي علیه الصلاة والسلام فرمايي: چې کله تاسو کې څوک رکوع وکړي هغه ته رکوع کې (سبحان ربي العظيم) درې ځله ویل په کار دي ، نو پوره به وي رکوع دده ، او دا ادنی درجه ده او څوک چې سجده وکړي نو هغه ته په کار دي چې ووایي په سجده کې (سبحان ربي الاعلی) درې ځلې نو سجده به يې پوره وي او دا هم ادنی درجه ده.

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ لِأَنَّ عونا لم يلق ابْنَ مَسْعُود

**توضيح:** وذلک ادناه: رکوع او سجده کې تسبیحات سنت دي، خو ددې تعداد څومره دی، ددې تعین په دې حدیث کې شوی دی، نو درې ځلې تسبیحات لوستل ادنی ښودلی شي. علماء لیکي ادنی درجه د کمال ده، یعنې د دریو نه کم دا ناقص دی درې کمال دی، ادنی درجه د کمال یې ځکه ښودلې ده، نفس سنت یو ځلې ویلو سره ادا کیږي، اوسط درجه د سنت پینځه ځلې ویل دي او اعلی درجه اوو ځلې ده او انتهائي کمال حد نشته. طاق عدد بهتر دی، یولسو پورې تلل په کار دي، خو امام له د مقتدیانو خیال ساتل په کار دي منفرد آزاد دی. (المرقات ۲/۶۰۲، الکاشف ۲/۴۰۰).

﴿۱٤﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ: أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ:

د حذیفه رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې: ما د نبي علیه السلام سره مونځ وکړو نبي علیه السلام به ویل په رکوع

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۵٤۲/۱ رقم الحديث ۸٦۹ .

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۵۵۰/۱ رقم الحديث ۸۸٦ ، وأخرجه الترمذي في السنن ٤٦/۲، رقم الحديث :۲٦۱.

«سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ» وَفِي سُجُودِهِ: «سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى» وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ رَحْمَةٍ

كې (سبحان ربي العظيم) او سجده كې (سبحان ربي الاعلى) او كله به چې هم نبي عَلَيْهِ السَّلَام آيت رحمت

إِلَّا وَقَفَ وَ سَأَلَ وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ عَذَابٍ إِلَّا وَقَفَ وَ

ته ورسيدو هلته به او دريدو دعاء به يې كوله، او كله به چې د عذاب آيت ته ورسيدو هلته به اودريدو او

تَعَوَّذَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَرَوَى النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ: «الْأَعْلَى».

د عذاب نه به يې پناه غوښتله. نسائي او ابن ماجه دغه روايت د سبحان ربي الاعلى پورې نقل كړې دى،

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1].

او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دى.

**توضيح:** آيت رحمت او عذاب باندې په ودريدلو سره توجه كوئ او دعا او استغفار كول نوافلو كې په كار دي يعني نوافلو كې داسې اودريدل داحنافو او مالكيو په نزد جائزدي كه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان جواز دپاره كړې وي هغه ځان له خبره ده محتاط انداز كې فرائضو كې جائزده. (المرقات، ۶۰۲-۲/۶۰۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۵﴾ عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قُمْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمَّا

د عوف بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره مونځ وكړو نبي عَلَيْهِ السَّلَام چې كله

رَكَعَ مَكَثَ قَدْرَ سُورَةِ الْبَقَرَةِ وَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: «سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ وَ الْمَلَكُوتِ

ركوع ته لاړو په اندازه د سورة بقره (لوستلو) ركوع كې ؤ او وې فرمايل: پاک دى د قهر او د بادشاهت،

وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ». (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[2]

او د لوئي او د بزرگۍ مالک الله پاک دى.

﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ جُبَيْرٍ قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: مَا صَلَّيْتُ

د ابن جبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: ما د انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه واوريدل ويل يې ما مونځ نه دى

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۱/۵۴۳ رقم الحديث: ۸۷۱، وأخرجه الترمذي ۲/۴۸، رقم الحديث ۲۶۲، وأخرجه ابن ماجه ۱/۲۸۶ رقم الحديث ۸۸۸.

(۲) أخرجه النسائي ۲/۱۹۱ رقم الحديث ۱۰۴۹، وأبوداود ۱/۵۴۴ رقم الحديث: ۸۷۳

وَرَاءَ أَحَدٍ بَعْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْبَهَ صَلَاةً بِصَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کړي وروسته د یو چا نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د وفات نه پس، دا سې مونځ چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مونځ په شان وي

مِنْ هٰذَا الْفَتَى يَعْنِي عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ : قَالَ :

د دغه نوجوان یعني عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللّٰهُ نه علاوه بل چا پسې، راوي وايي: انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي:

فَحَزَرْنَا رُكُوعَهُ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ وَ سُجُودَهُ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ .[1]

مونږ د هغه رکوع کې لس تسبیحات او سجده کې لس تسبیحاتو اندازه وکړه.

## د تعدیل ارکان په نه کولو باندې سخت وعید

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ شَقِيقٍ قَالَ : إِنَّ حُذَيْفَةَ رَأَى رَجُلًا لَا يُتِمُّ |
| د شقیق رَحِمَهُ اللّٰهُ نه روایت دی وايي چې حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یو کس ولیده چې نه یې اداء کوله په صحیح طریقې |
| رُكُوعَهُ وَلَا سُجُودَهُ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ دَعَاهُ فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ : مَا صَلَّيْتَ. |
| سره رکوع او سجده، کله چې هغه مونځ وکړو حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه راوغوښتو او وې ویل تا ونه کړو مونځ |
| قَالَ : وَ أَحْسِبُهُ قَالَ : وَ لَو مِتَّ مِتَّ |
| پوره طریقې سره شقیق رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي: زما ګومان دا ؤ چې دې کس ته یې دا هم وویل که ته مړ شې نو مړ به یې |
| عَلَى غَيْرِ الْفِطْرَةِ الَّتِي فَطَرَ اللهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ .[2] |
| په غیر فطرت باندې کوم باندې چې الله تعالی محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پیدا کړی دی. |

## د دې امت بدترین غل هغه دی چې د مونځ نه غلا کوي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَسْوَأُ النَّاسِ سَرِقَةً |
| د ابو قتادة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي: د غلا په اعتبار سره د ټولو نه لوی غل |
| الَّذِي يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ ». قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ وَ كَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ ؟ |
| هغه دی، چې د خپل مونځ نه غلا کوي، صحابو عرض وکړو : یارسول الله ! د مونځ نه څنګه غلا کېږي ؟ |

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۵۵۱ رقم الحديث ۸۸۸

(۲) أخرجه البخاري ۲/۲۷۴ رقم الحديث ۷۹۱

قَالَ : لَا يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا ". [۱]

حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې رکوع او سجده پوره نه کوي

**توضیح: اسوء الناس:** یعنې بدترین خلک هغه دي چې د مونځ د ارکانو نه غلا کوي او تعدیل ارکان برقرار نه ساتي. نو دا د آخرت دائمي خساره ده، د دنیا خساره خو پوره کېږي چې مالک یې معلوف کړي یا شرعي حد پرې جاري شي او د آخرت سزا نه بچ شي، خو د مونځ غل دا سې دی. چې د ده د غلا ازاله کول ممکن نه دي. دا کس خپل حق په خپله وهي او د دې په بدله کې د آخرت عذاب اخلي. دا نېکه ره خساره ده. (المرقات ۲/۶۰۵، الکاشف ۴۰۲-۲/۴۰۳)

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُرَّةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا تَرَوْنَ فِي الشَّارِبِ |
| دنعمن بن مرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل ستاسو څه خیال دی د شراب څکونکي |
| وَ الزَّانِي وَ السَّارِقِ ؟" وَ ذَلِكَ قَبْلَ أَنْ تُنْزَلَ فِيهِمُ الْحُدُودُ |
| زنا کونکي او غلا کولو والا په باره کې، دا سوال نبي عَلَیْهِ السَّلَام نه مخکې د حدودو د نازلېدو وو صحابه |
| قَالُوْا : اَللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ . قَالَ : « هُنَّ |
| کرامو عرض وکړو چې : الله تعالی او د هغه رسول صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ښه پوهېږي ، نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل : دا |
| فَوَاحِشُ وَ فِيهِنَّ عُقُوبَةٌ وَ أَسْوَأُ السَّرِقَةِ الَّذِيْ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ» . |
| ګناه کبیره ده د دې سزا هم شته ، او بد ترین غل هغه دی کوم چې د خپل مونځ نه غلا کوي، صحابه کرامو |
| قَالُوْا : وَ كَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : « لَا |
| وویل یا رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ انسان خپل مونځ نه څنګه غلا کوي ؟نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل: چې نه کوي |
| يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا» [۲]. وروی الدَّارِمِيُّ نحوه. |
| په صحیح طریقې سره رکوع او سجده. |



(۱) أحمد في المسند ۲۱۰۰۵، والدارمي ۱ ۲۵۰ رقم الحديث ۱۳۲۸

(۲) مالک في الموطأ ۱/۱۶۷، رقم الحديث ۷۲ ، کتاب قصر الصلاة في السفر

# بَابُ السُّجُودِ وَفَضْلِه:

## د سجدې کیفیت او فضیلت

سجده په لغت کې د عاجزۍ اظهار او سر ښکته کولو ته ویل کېږي، شرعي اصطلاح کې سجده (وضع الوجه علی الارض علی طریق مخصوص) نوم دی. (اشعة اللمعات ۱/۴۳).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

## د سجدې اعضاء

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام فرمایي ما ته حکم شوی دی د سجدې کولو

عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ عَلَى الْجَبْهَةِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَأَطْرَافِ الْقَدَمَيْنِ وَلَا

په اوو اندامونو: یعنې تندې، دواړه لاسونه، دواړه زنګونان او دواړو خپو پنجو باندې او دا منع دي چې

نَكْفِتَ الثِّيَابَ وَلَا الشَّعْرَ» (متفق علیه)[1].

مونږ خپلې کپړې او ویخته راغونډ کړو.

**توضیح: علی سبعة اعضاء:** دې حدیث کې وویلی شو چې په سجده کې څمکه باندې کوم اعضاء لږول ضروري دي، ددې تفصیل دا دی د فقهاو په دې باندې اتفاق دی، چې سجده کې دواړه لاسونه او دواړه زنګونان په څمکه باندې کېښودل سنت دي، قرآن کریم کې الله تعالی د سجدې کولو حکم کړی دی. او سجده **وضع الوجه علی الارض** نوم دی، اوس په مخ کې ډیر اعضاء دي، قرآن کریم کې د یو تعین هم نشته، که دې حکم باندې عمل کولو د پاره صرف مخ په څمکه باندې کېښودلی شي، نو حکم نه پوره کېږي څکه چې مخ کېښودلو سره **انحراف عن القبلة** راځي، حضور صلی الله علیه وسلم نه دا سې کول ثابت نه دي. مخ کې دویم عضو زنه ده، خو ددې کېښودلو سره حکم نه ادا کېږي، یو خو ددې وجې نه چې حضور صلی الله علیه وسلم نه ثابت نه دي، دویم ددې وجې نه چې زنه په څمکه باندې لږولو سره هیڅ تعظیم نشته او سجده الله تعالی د تعظیم د پاره مقرر کړې ده. (المرقات ۲/۶۰۶).

(۱) البخاري ۲/۲۹۷ رقم الحدیث: ۸۱۲، ومسلم ۱/۳۵۴ رقم الحدیث: ۲۳۰ - ۴۹۰.

**د فقهاو اختلاف:** او س صرف تندی او پوزه پاتې شوه، ددې کېښودل په ځمکه باندې دا تعظيم دی او حضور ﷺ نه ثابت هم دي، دې کې اختلاف دی د جمهورو علماو په دې باندې اتفاق دی، چې سجده کې پوزه او تندی دواړه کېښودل افضل دي، البته دې کې اختلاف دی، چې يو باندې اکتفاء کول جائز دي يا نه دي، د جمهورو په نزد باندې سجده کې تندی او پوزه دواړه کېښودل ضروري دي که يو باندې چا اکتفاء وکړو، نو مونځ جائز نه دی. امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ وايي: لاعلى التعين ددې نه عضوه کېښودل فرض دي، که صرف تندی يې کېښودو، نو سجده بلا کراهت جائز ده. بعضې رواياتو کې صرف تندی مستقل کېښودل ثابت دي، يو روايت کې جائز مع الکراهة دی او که چا صرف پوزه کېخوده او سجده يې وکړه دا جائز دي او که نه دي، جمهور او صاحبين د ټولو په نزد باندې سجده جائز نه ده، د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دې باره کې دوه روايات دي، يو دا چې سجده کراهت سره جائز ده، دويم روايت دا چې ځان له پوزې سره سجده جائز نه ده او دې باندې فتوای ده. (المرقات ۲/٦۰۷).

دا ټول اختلافات هغه وخت دي چې څه عذر نه وي که چاته څه عذر وُ، نو بيا به د عذر مطابق جواز وي.

**قدمونه سجده کې په ځمکه باندې کېښودل ضروري دي:** سجده کې قدمونه ځمکه باندې کېښودلو متعلق مسئله ده، د سجدې حالت کې دواړه خپې په ځمکه باندې ټيک کول ضروري دي، او که په پوره سجده کې ځمکې نه دواړه قدمونه اوچت وو، نو سجده ونه شوه، مونځ به فاسد شي. او که يو قدم اوچت وو او دويم په ځمکه باندې وو، دا صورت مکروه دی، حديث کې اووه اعضاو باندې سجده کولو ذکر راغلی دی، خو د باقي اعضاو حيثيت دغه رنګ نه دی، بلکې لاس او زنګون په ځمکه کېښودل مسنون دي، خو دا بحث هغه وخت دی، چې کله عذر وي. د عذر وخت کې جائز دی.

**لانکفت:** **کفت ضرب** نه د راغونډيدو په معنی دی، ويخته يو ځيز سره ترلو ته کفت ويلی کېږي، دا راغونډيدل ممنوع دي چې سجده کې کپړې او ويخته هم شامل دي، دا خيال مه کوه چې کپړې او ويخته به خاورو سره ولړې او خراب به شي، ځکه چې خاورو طرف ته د ټولو تلل دي. (المرقات ۲/٦۰۸).

وکل الذي فوق التراب تراب

## په سجده کې په صحيح طريقې سره اعضاء کېښودل په کار دي

﴿۲﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « اعْتَدِلُوْا فِيْ

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل: (اطمينان سره) او سيدئ په

السُّجُودِ وَلَا يَبْسُطْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ انْبِسَاطَ الْكَلْبِ». (متفق عليه)[1]

سجده کې او نه دې خوروئ یو کس په تاسو کې په سجده کې دواړه لاسونه په شان د سپي.

**توضیح: اعتدلوا في السجود:** سجده کې اعتدال کوئ د لاسونو ګوتې یو ځای کولو سره په ځمکه باندې بنې مضبوطې ږدئ، څنګلي د ځمکې نه جدا ساتئ او خيټه د پتونانو نه جدا ساتئ او سجده کې ښه په لطمینان سره تسبیحات لولئ، څنګه چې متصل دې حدیث سره دویم حدیث کې ذکر شوي دي. (المرقات ۲/٦۰۹).

**انبساط الکلب:** سپی چې کله کوناټو باندې کیني، نو د **اقعاء** په صورت باندې کیني. ددې هم ممانعت دی، څنګه چې سپی په سینه باندې کیني، نو مخې والا خپې ځمکه باندې مخې ته داسې عجیبه انداز بلندې خوروي، ددې نه مونځ ګزار منع شوی دی، داد غفلت او سستی نښه ده او دې صورت سره غفلت هم پیدا کېږي، انبساط دویم روایت کې **افتراش السبع** نوم سره یاد شوی دی. ټول یو ځیز دی. (المرقات ۲/٦۰۹).

## د زنانه او د نارینه په مونځ کې فرق

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا سَجَدْتَ |
| د براء ابن عازب رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې کله تاسو سجده کوئ |
| فَضَعْ كَفَّيْكَ وَ ارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ .[2] |
| خپل دواړه لاسونه ځمکه باندې ږدئ او څنګونونه د ځمکې نه اوچت ساتئ. |

**توضیح: فضع کفیک:** یعنې د غوږونو برابر یا د ولو برابر دواړه لاسونه ځمکې باندې ږدئ. (المرقات ۲/٦۰۹).

**وارفع:** یعنې څنګونان د ځمکې نه اوچت ساتئ چې د **انبساط** او **افتراش** صورت رانه شي. ا حکم د نارینو د پاره دی. (المرقات ۲/٦۱۰).

زنانو ته په کار دي چې هغوي په سجده کې خپل ټول اعضاء راغونډ کړي او ځمکې سره دې یو کړي، ځکه چې ددې د پردې دا تقضا ده، حدیث کې دې پردې ته بطور قاعده او کلیه اشاره شوې ده، چې هر

(۱) أخرجه البخاري ۱/۲۰۸، مسلم ۲/۵۳

(۲) اخرجه مسلم ۱/۳۵٦ رقم الحدیث ۲۳٤-٤۹۱، ومحمد في المسند ٤ ۲۸۳

هغه نعل ته شامل ده، چې دې کې د پردې ضرورت وي، مثلا تکبیر تحریمي کې لاس د اوږو او سینو په منځ کې وړل باعث د پردې دی، د زنانو د پاره دا مامور به دی، رکوع او سجده کې اعضاء راغونډول باعث د پردې دی، د خپو گیتې پټول پرده ده، مامور به دی، د سر ویښته پټول پرده ده، لهذا مامور به دی، لاس باندې لاس وهل امام ته فتحې ورکولو کې د سبحان الله په ځای باعث پرده دی، لهذا مامور به دی، حالانکې دا ټول امور د نارینو د مونځ د افعالو برعکس دي، معلومه شوه، چې د سړو او د ښځو مونځ یو شان گڼل مناسب نه دي، بلکې دواړو کې فرق دی، د ښځو مونځ کې د هر هغه څيز خپلول په کار دي، چې هغې کې بالکل نمائش نه وي.

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ مَيْمُونَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا سَجَدَ جَافَى |
| دمیمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به چې کله سجدې ته تللو نو فرق به یې کولو |
| بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى لَوْ أَنَّ بَهْمَةً أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ تَحْتَ يَدَيْهِ مَرَّتْ |
| په مینځ د دواړو لاسونو کې چې که د چیلۍ بچی به د هغوی د لاسونو لاندې وتل وغواړي نو وتی شي. |
| هٰذَا لَفْظ أَبِيْ دَاوُد كَمَا صَرَّحَ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ بِإِسْنَادِهِ ، وَ لِمُسْلِمٍ |
| دا الفاظ د ابوداؤد دي لکه څنگه چې تصریح کړې په شرح السنة کې په خپل سند سره او مسلم دا حدیث |
| بِمَعْنَاهُ : قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا سَجَدَ |
| بالمعنی نقل کړی چې الفاظ یې دی: میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به (داسې) سجده کوله |
| لَوْ شَاءَتْ بَهْمَةٌ أَنْ تَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ لَمَرَّتْ[1]. |
| چې چیلۍ بچی ترې لاندې وتل وغواړي نو وتی شي. |

**توضیح**: **بهمة**: د گډ یا چیلۍ نوی بچی او شي هغې ته سخلة ویلې شي او چې کله په خپلو خپو گرځي هغې ته بهمة ویلې شي، یعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کې د سجدې حالت کې خپله خیټه مبارکه د خپلو پتونانو نه او څنگلې د ځمکې نه دومره جدا ساتلې چې د چیلۍ بچی ترې په آسانۍ تیریدو. (المرقات ۲/٦۱۰، الکاشف ۲/۴۰٦).

**رواه ابوداود**: صاحب مشکوة په دې سره په صاحب د مصابیح باندې اعتراض کوي، چې هغه دا التزام کړی دی چې اول فصل کې به د بخاري او مسلم روایت نقل کوي او ددې حدیث الفاظ د ابوداود دي او

(۱) أخرجه مسلم ۳۵۷/۱ رقم الحدیث ۲۳۷-٤۹٦، وأبو داود ۵۵٤/۱ رقم الحدیث ۸۹۸، والنسائي ۲۱۳/۲، رقم الحدیث ۱۱۰۹

فصل اول کې يې درج کړي دي، اګر چې معنوي اعتبار سره دا حديث مسلم ذکر کړی دی. (المرقات ۲/۶۱۰).

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ بن بُحَيْنَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ |
| د عبدالله بن مالک بن بحينة نه روايت دی وايي چې: حضور ﷺ چې به کله سجده کوله نو خپل ا |
| فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى يَبْدُوَ بَيَاضُ إِبْطَيْهِ . (متفق عليه)[1]. |
| لاسونه به يې دومره کولاو ساتل، چې د حضور ﷺ د تخرګونو سپين والی به ښکاره شو. |

**توضيح**: عن عبدالله بن مالک ابن بحينة دې سند کې يو فني خبره ده، ددې ياد ول ضروري دي، هغه خبره دا ده، د عبدالله د پلار نوم مالک دی او د عبدالله د مور نوم بحينه دی دلته عبدالله مور او د پلار دواړو طرف ته منسوب دی، څنګه عبدالله بن ابی ابن سلول دواړو طرف ته منسوب دی، دې سند کې دا غلط فهمي پيدا کېږي، شايد مالک بحينه څوی وي، حالانکې داسې نه ده، بحينه د مالک ښځه د عبدالله مور ده، محدثين دغه رنګ سند کې الف ديره وي د ابن سره يې ليکي، دلته هم په مالک باندې تنوين لوستل په کار دي، او بيا الف زياتول او لوستل په کار دي چې دا معلومه شي، چې ابن بحينة د عبدالله صفت دی. دا قاعده ما په توضيحات جلد اول کې تفصيلي ليکلې ده. (المرقات ۲/۶۱۱).

دې نه دا معلوميږي عبدالله چې کوم وخت کې حضور ﷺ ليدلی وو، هغه وخت کې کيدی شي حضور ﷺ د قميص په ځای څادر اچولې وي، د هغې د غاړو نه بغل ښکاره کيدو، ګينې د قميص سره بيا د بغل سپين والی نه ښکاري د بغل سفيدي الفاظو نه دا معلوم شو چې حضور ﷺ دير زيات ښائسته وو، ځکه چې بغل عمومي تور رنګ والا وي، چې د کوم کس تخرګونه سپين وي، هغه به نور څومره ښائسته وي. (المرقات ۲/۶۱۱).

زه عن شريک في محاسنه — فجوهر الحسن فيه غير منقسم

## په سجده کې د حضور ﷺ يوه دعاء

| |
|---|
| (۶) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ: «اللَّهُمَّ |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور ﷺ خپله سجده کې دا وويل: ای الله! زما |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۹۶، رقم الحديث ۳۹۰، ومسلم في الصحيح ۱/۳۵۶ رقم الحديث ۲۳۵-۴۹۵

اغْفِرْ لِي ذَنْبِي كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَأَوَّلَهُ وَآخره وعلانيته وسره» .[1]

ټول واړه او غټ مخکې او وروسته ښکاره او پټ ګناهونه معاف کړې.

**توضيح:** دقه دال کسرې سره دقيق نه دی، جله جيم کسرې سره جليل نه دی، د کثير په معنی سره دی د دواړو لفظونو معنی دا شوه، قليله و کثيره يا معنی دا ده واړه او لوی ګناه، و علانيته و سره، يعنې ښکاره او پټ ګناهونه دې نه مراد دي. او کوم چې د خلکو نظرونو نه پټ دي، هغه هم معاف کړه، ګيني الله تعالى نه هيڅ هم پټ نه دي. (الکاشف ۲/۴۰۷).

دا دعا حضور ﷺ لوستلې ده، دې کې احتمال دی چې د تسبيحاتو په ځای باندې يې دا دعا لوستلې ده او دا احتمال هم دی، چې د تسبيحاتو نه پس يې لوستلې وي، دا احتمال کيدی شي، فرائضو کې لوستلې وي يا نوافلو کې. (المرقات ۲/۶۱۱).

﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: فَقَدْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً مِنَ الْفِرَاشِ

دعائشې رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې يو شپه ما حضور ﷺ په بستره باندې ونه موندو، ما

فَالْتَمَسْتُهُ ، فَوَقَعَتْ يَدِي عَلَى بَطْنِ قَدَمَيْهِ

حضور ﷺ کتو چې دې کې زما لاس د حضور ﷺ خپو سره ولږيدو (ما چې وکتل)

وَ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ وَ هُمَا مَنْصُوبَتَانِ

حضور ﷺ په حالت د سجدې کې ؤ او د حضور ﷺ دواړه خپې مبارکې ولاړې وې،

وَ هُوَ يَقُولُ : « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ

حضور ﷺ داسې ويل اې الله! زه ستاسو درضا په ذريعې ستاسو د غضب نه پناه غواړم، ستاسو

وَ بِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي

دمعافی په ذريعې ستاسو دعذاب نه پناه غواړم او ستاسو د پناه طلبګار يم او زه احاطه نه شم کولې ستا

ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ» . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

د تعريف د شمار، تاسو داسې يې څنګه چې د خپل ځان تعريف کوئ.

---

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۳۵۰، رقم الحديث ۴۸۳/۲۱۶، وابوداود ۱/۵۴۶ رقم الحديث ۸۷۸.

(۲) اخرجه مسلم ۱/۳۵۲ رقم الحديث ۲۲۲ ۴۸۶، وابو داود ۱/۵۴۷ رقم الحديث ۸۷۹، والنسائي ۲/۲۲۲، رقم الحديث: ۱۱۳۰، والترمذي ۵/۴۸۹ رقم الحديث ۳۴۹۳.

**توضیح: فقدت**: د فقدان نه ملاویدو او ورکیدو په معنی سره هم دی او **افتقدت** د پیدا کولو په معنی دی. المسجد نه مراد حجره کې ځای د سجدې هم کیدی شي. او بمعنی السجود سجده هم کیدی شي.

دې حدیث کې واضح دلیل دی چې **مس المرأة** سره اودس نه ماتیږي. (المرقات ۲/۶۱۲).

## انسان چې کله په سجده کې وي دا الله تعالی ته نزدې وي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام فرمایي بنده الله تعالی ته هغه وخت نږدې

وَ هُوَ سَاجِدٌ فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1].

وي چې کله سجده کې وي، ځکه تاسو (سجده کې) ډیرې دعاګانې کوئ.

**توضیح**: کله چې سړی تکبیر تحریمې له لاس او چتوي، ګویا دې تولې دنیا ته خیرآباد وویل او شا ته یې ګوزاره کړه او مکمل طور باندې الله تعالی طرف ته متوجه کیږي. او الله تعالی مخامخ وي. یا چې سړی سجده کوي، ګویا دا د الله تعالی رحمت کې غوپه وهي یا د الله تعالی په قدمونو کې پریوځي. ظاهره ده دا نزدیکت نزدې نسبت دی، ځکه دغه وخت کې دعا کوئ، چې د الله تعالی رحمت مکمل متوجه وي، دا خبره یې حدیث کې بیان کړې ده. (المرقات ۲/۶۱۳).

## د شیطان تختیدل

﴿۹﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَرَأَ ابْنُ آدَمَ السَّجْدَةَ فَسَجَدَ

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه السلام فرمایي کله چې ابن آدم د سجدې آیت ولولي او سجده

اعْتَزَلَ الشَّيْطَانُ يَبْكِي يَقُولُ: يَا وَيْلَتِي أُمِرَ ابْنُ آدَمَ بِالسُّجُودِ

وکړي، دې وخت کې شیطان ژاړي او یو طرف ته شي او وایي ای کاش! ابن آدم ته د سجدې حکم وشو هغوي

فَسَجَدَ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَ أُمِرْتُ بِالسُّجُودِ فَأَبَيْتُ فَلِيَ النَّارُ". (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

سجده وکړه او د جنت حقدار شو او ماته د سجدې حکم وشو ما د حکم نافرماني وکړه نو ماته اور ملاشو.

**توضیح: یبکی**: یعنې کله چې انسان د تلاوت په وخت کې د سجدې آیت ولولي او سجده وکړي، نو شیطان لرې تختي او په چغو ژاړي. د آدم اولاد قرآن کریم ولوستو او سجده یې وکړه، ماته چې د سجدې

(۱) أخرجه مسلم ۱/۳۵۰ رقم الحديث ۲۱۵-۴۸۲، وأبو داود ۱/۵۴۵ رقم الحديث ۸۷۵، والنسائي ۲/۲۲۶، رقم الحديث ۱۱۳۷

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۸۷ رقم الحديث ۱۳۳/۸۱، وابن ماجه في السنن ۱/۳۳۴، رقم الحديث ۱۰۵۳

حکه وشو، ما انکار وکړو. (اسد ... ۲/۶۱۴).

د ابليس دا چغې او ژړا يا خو حقيقة په ندامت: افسوس او حزن دي، يا د مکر مچ پشان د دوکې او ښکې دي ځکه چې منقول دي چې حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَام ته ابليس وويل الله تعالی نه تپوس وکړه، چې زما توبه به قبوله شي يا نه؟ الله تعالی موسی عَلَيْهِ السَّلَام ته وفرمايل شرط هغه دی، چې آدم ته سجده وکړه. اوس خو آدم نشته خو قبر ته مخامخ ورته سجده وکړه، ابليس وويل ما ژوندي آدم ته سجده نه ده کړې. دغه رنګ يوه ضعيفه قصه ده چې د ابليس روح قبض کولو د پاره چې فرښتې راشي دا مشرق او مغرب او جنوب طرف ته تختي (تردې چې دا قصه احاديثو کې شته) کله چې فرښتې دا راقابو کړي. دا به د حضرت آدم قبر سره راوخي، چې سجده وکړي، ليکن دا خبيث به د مرګ په وخت کې هم سر بره کوي. چې غير اختياري طور باندې هم د سجدې صورت جوړ نه شي. دومره سخت دښمن ؤ، دلته خو به دده ژړا د تازه تازه سزا د وجې نه وي او يا به دغه فراډ ژړا وي، لکه دې بې غيرته او بې حيا او دهوکه باز، د بدر ميدان کې د تختيدو په وخت کې ابوجهل ته ويلي وو ﴿إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ﴾

## ډيرې سجدې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د نزديکت سبب دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَن رِبِيعَةَ بن كَعْب قَالَ: كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوئِهِ |
| د کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې زه به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د شپې ومو او د اودس اوبه او نور |
| وَ حَاجَتِهِ فَقَالَ لِي: «سَلْ» فَقُلْتُ: أَسْأَلُكَ |
| ضروريات به مې ور کول. يو ورځ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام ما ته وفرمايل وغواړه ما عرض وکړو زه غواړم ستا |
| مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ. قَالَ: |
| ګاونديتوب په جنت کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کومه مرتبه چې ته غواړې هغه خو ډيره عظيمه ده |
| «أَوْ غَيْرَ ذٰلِكَ ؟». قُلْتُ هُوَ ذَاكَ. قَالَ: |
| دې نه علاوه بل څه وغواړه ما عرض وکړو زما د رخواست خو صرف دغه دی، نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل |
| «فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| دې مرتبې حاصليدو د پاره تاسو کثرت سجود په ذريعې سره خپل ذات په باره کې زما مدد کوه. |

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳۵۳ رقم الحديث ۲۲۶ ـ ۴۸۹، والنسائي ۲/۲۲۷ رقم الحديث ـ ۱۱۳۸.

**توضيح**: (و حاجته) يعنې او دس د پاره اوبه، لوټه او مصلی يا استنجا، د پاره نرم کاڼي او نور خدمت کول په ضروریاتو کې داخل دي، (المرقات ۲/۶۱۵).

د شپې وخت کې مشقت والا خدمت نه او د اطاعت د جذبې نه د خوشحالۍ د وجې حضور ﷺ بطور صله وفرمايل وغواړه څه غواړې دغه عقيدتمند غلام ورته وويل په جنت کې ستاسو سره يو ځای والی غواړم، حضور ﷺ غوښتل چې دا کس ددې نه علاوه بل څه او غواړې يا حضور ﷺ اندازه لګوله چې ددې کس دا مطالبه يو جذباتي اظهار دی او که په رشتیا جذبې سره دی. ليکن رښتني عاشق چې کله جواب ورکړو، يا حضور ﷺ وفرمايل دعا به زه کوم. خو تاسو به زما دومره تعاون او مدد کوئ، چې په کثرت سره سجدې کوئ. (المرقات ۶۱۵-۲/۶۱۶).

معلومه شوه، چې د بزرګانو دعاګانو سره د عمل ضرورت هم دی، دا نه چې صرف د دعا په بنیاد باندې خپل عمل پريږدي او خالي آرزوګانې کوئ، چا ويلي دي چې چابي کولاويدو د پاره ذريعه ده. خو د لاس سره زور ورکولو د پاره چابي دباوول دي، يعنې تالـه اګر چې چابي سره کولاويږي، خو د لاس حرکت ضروري دی.

**فتح قفل ارچه کليد است اے عزيز ۞ جنبش از دست تو می خواهند نيز**

دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې دنيکانو خدمت د سعادت لويه ذريعه د حصول ده. او دې نه هم دا معلومه شوه چې، د خدمت کولو نظر د آخرت سعادت باندې لږيدلی وي، د دنيا څيزونه فاني دي، دې خوش قسمته صحابي ته او ګورئ، جنت هم ورته ملاو شو او د حضور ﷺ رفاقت هم ملاو شو.

## د سجدو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ مَعْدَانَ بْنِ طَلْحَةَ قَالَ: لَقِيتُ ثَوْبَانَ مَوْلٰى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دمعدان بن ابی طلحة رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) نه روايت دی وايي چې ما ملاقات وکړو دنبي عَلَيْهِ السَّلَام دآزاد کرده |
| فَقلت : أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ أَعْمَلُهُ |
| غلام حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره او هغه ته مې عرض وکړو ماته داسې عمل وښايه چې دغه عمل زه کوم، |
| يُدْخِلُنِي اللهُ بِهِ الْجَنَّةَ فَسَكَتَ ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَسَكَتَ |
| چې ددې عمل په بدله کې ما جنت ته داخل کړي نو هغه خاموش شو ما دوباره عرض وکړو هغه بيا خاموش |
| ثُمَّ سَأَلْتُهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ: سَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ... چې دريم ځل عرض وکړو هغه وويل دا سوال ما دنبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه کړی ؤ حضور ﷺ |

فَقَالَ : « عَلَيْكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ لِلّٰهِ فَإِنَّكَ لَا تَسْجُدُ لِلّٰهِ سَجْدَةً إِلَّا رَفَعَكَ

فرمایلي ؤچې تاسو الله ته ډیرې سجدې کوئ ځکه چې تاسو چې کله الله ته یوه سجده وکړې نو اوچت به

اللهُ بِهَا دَرَجَةً وَ حَطَّ عَنْكَ بِهَا خَطِيئَةً » . قَالَ مَعْدَانُ : ثُمَّ

کړي الله تعالی په دې سره یوه درجه او کموي به د تا نه په دې سجدې سره یوه ګناه .معدان وایي ما بیا

لَقِيتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ فَسَأَلْتُهُ

ابو درداء سره ملاقات وکړو او هغه نه مې هم دا سوال وکړو (کوم چې مې ثوبان رضي الله عنه نه کړې وو)

فَقَالَ لِيْ مِثْلَ مَا قَالَ لِيْ ثَوْبَانُ . (رَوَاهُ مُسلم)[1].

هغوئ هم ماته دغه جواب راکړو، کوم چې ثوابان رضي الله عنه راکړی وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## سجدې ته د کوزیدو او پاڅیدو طریقه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا سَجَدَ |
| د وائل بن حجر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې ما نبي علیه السلام ولیدو چې کله به یې د سجدې اراده وکړه نو |
| وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ وَ إِذَا نَهَضَ |
| اول به یې دواړه زنګونان (په ځمکې باندې) کیخودل مخکې د لاسونو نه او چې کله به اوچتیدو |
| رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ .[2] |
| د سجدې نه نو اوچت به یې کړل لاسونه مخکې د زنګونانو نه . |

**توضیح: اذا سجد وضع:** علماو د سجدې اعضاء ځمکې باندې د کیخودلو د پاره سجدې وخت کې او د سجدې نه د پاڅیدو په وخت کې د اوچتولو په باره کې اصول وضع کړي دي، هغه دا سې دي، چې کله سری ولاړ وي چې د هغه کوم عضوه د قیام په حالت کې ځمکې ته نږدې وي هغه دې رومبی کیږدي او کومه عضوه چې د قیام په حالت کې د ځمکې نه څومره لرې وي د سجدې نه د پاڅیدو وخت کې هغه او چتول په کار دي، دې اعضاو کې بعضې علماء تندی او پوزه یوه عضوه ګرځولې ده، لهذا دې کې د

---

(۱) اخرجه مسلم ۱ ۳۵۳ رقم الحدیث ۲۲۵ - ۴۸۸، والترمذي ۲/ ۲۳۰ رقم الحدیث ۳۸۸ والنسائي ۲ ۲۲۸ رقم الحدیث :۱۱۳۹.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/ ۵۲۴ رقم الحدیث ۸۳۸، واخرجه الترمذي في السنن ۲/ ۵۶، رقم الحدیث ۲۶۸

مخکې والي او وروستو الي ضرورت نشته، خو بعضې علماء فرمايي پوزه اقرب الى الارض ده. د تلو په وخت کې رومبی دا لګول په کار دي. بهر حال د دې کيفيت لحاظ هغه وخت دی. چې څه عذر نه وي که عذر وو، نو عذر خو عذر وي. (المرقات ۲/۶۱۷).

## سجدې ته د کوزيدو او پاڅيدو د کيفيت بيان

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: تاسو کې چې څوک سجده

فَلَا يَبْرُكْ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيرُ وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ

کوي هغه دې د اوښ د ناستې پشان نه کيني، بلکې ده ته په کار ده، کېږدي خپل دواړه لاسونه په زمکه

قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ قَالَ أَبُو سُلَيْمَانَ الْخَطَّابِيُّ: حَدِيثُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ

باندې مخکې د خپلو زنګونانو نه. او ابو سليمان خطابي ويلي دي چې: حديث د وائل بن حجر رضي الله عنه

أَثْبَتُ مِنْ هٰذَا وَقِيلَ: هٰذَا مَنْسُوخٌ.[1]

د دې حديث نه ډير صحيح ثابت دی، حالانکې ويلي شوي دي چې دا حديث منسوخ دی.

**توضيح:** (**وليضع يديه قبل ركبتيه**) سجدې ته د تلو په وخت او واپس کيدو په وخت کې کوم عضوه څمکې باندې مخکې کيښودل په کار دي، دې کې د علماو اختلاف دی. (المرقات ۲/۶۱۸).

**د فقهاو اختلاف:** د دريو ائمو په نزد باندې سجدې ته د تللو په وخت کې هغه معروف ترتيب دی، چې کوم اعضاء څمکې ته نږدې وي هغه مخکې کيښودل په کار دي او واپس کې د دې عکس دی، لکه مخکې حديث نمبر (۱۲) کې مذکور دي، امام مالک رحمه الله او اوزاعي رحمه الله فرمايي سجدې ته د تللو وخت کې رومبی څمکې باندې لاس کيږده، بيا زنګونان، بيا لاسونه، بيا پوزه، بيا تندی. (المرقات ۲/۶۱۸)

**دلائل:** جمهورو د وائل بن حجر رضي الله عنه د روايت نه استدلال کړی دی، بلا تاويله په خپل مقصد باندې واضح دليل دی، د امام مالک دليل زير بحث د حضرت ابو هريره رضي الله عنه حديث دی، د فقهاو اختلاف اولی او غير اولی او افضليت کې دی، جواز او عدم جواز کې نه دی، امام مالک رحمه الله فرمايي د ابوهريره رضي الله عنه حديث قولي دی او د وائل بن حجر رضي الله عنه حديث فعلي دی، او اصول دا دي، چې کله قول الرسول او فعل الرسول تقابل وي، ترجيح قول ته به وي.

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۱/۵۲۵ رقم الحديث ۸۴۰

**جوابات**: جمهورو د امام مالک رحمه الله د مستدل د ابوهريره رضي الله عنه روايت نه تسلي بخش جوابات ورکړي دي.

**اول جواب**: د ابوهريره رضي الله عنه حديث دا منسوخ دی او صحيح ابن خزيمه کې د مصعب بن سعد رضي الله عنه روايت ددې د پاره ناسخ دی، هغه وايي: **کنا نضع اليدين قبل الرکبتين فأمرنا بوضع الرکبتين قبل اليدين.**

**دويم جواب**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د محدثينو په نزد باندې معلول دی او د وائل بن حجر رضي الله عنه روايت اقوی او اثبت دی، اصولي طور باندې وائل بن حجر رضي الله عنه روايت ته ترجيح ورکولی شي، حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کې يو علت دا دی، امام ترمذي ددې غرابت بيانولو سره دا معلول گرځولی دی. دويم علت دا دی د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د هغه د نورو راويانو سره معارض دی. امام طحاوي مضبوط سند سره دا روايت ذکر کوي. هغه روايت بالکل د وائل بن حجر رضي الله عنه روايت په شان دی.

دريم علت دا دی ابو هريره رضي الله عنه روايت اوله حصه په خپله د دويمې حصې سره معارض ده، ځکه چې اوله حصه کې (**فلا يبرک کما يبرک البعير**) الفاظ دي، حالانکې اوښ چې کله کيني، اول زنګونان کېږدي، دې الفاظو نه پس **وليضع يديه قبل رکبتيه** الفاظ ددې معارض او مخالف دي، ځکه محدثين فرمايي، دلته يو راوي نه بيان کولو کې وهم شوی دی. او هغه **يديه** په **رکبتيه** باندې مقدم کړي، ګيني اصل عبارت کې **رکبتيه** مقدم دی، نو د ابوهريره رضي الله عنه روايت کې به تعارض ختم شي او د وائل بن حجر رضي الله عنه روايت کې به تعارض ختم شي، يعنې يو روايت کې چې دومره علتونه وي، هغه به د وائل بن حجر رضي الله عنه د روايت مقابله څنګه وکړي.

**دريم جواب**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت د معذور د پاره دی او دې کې د چا اختلاف نشته او معذوره حضرات دا سې عمل کوي او د هغوی سره به هم ښکاري، غير معذور سره دا عمل بالکل به نه ښکاري او سنت طريقه هغه ده کومه چې به ښکاري. صاحب مشکوة هم د حضرت ابو هريره رضی الله عنه روايت نه دوه جوابونه کړي دي چې، يا خو د ابوهريره رضي الله عنه روايت منسوخ دی يا معلول غير قوي دی، د وائل بن حجر رضي الله عنه روايت اثبت او اقوی دی. (المرقات ۲/٦۲۰).

**﴿۱٤﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ:**

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم د دواړو سجدو په مينځ کې دا وويل:

«اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَعَافِنِي وَارْزُقْنِي»[1].

ای الله ! ما وبښې، ما باندې رحم وکړې، ماته هدایت وکړې، ما محفوظ وساتې او ماته رزق راکړې.

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ: |
| د حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دواړو سجدو په مینځ کې دا ویل: ای |

«رَبِّ اغْفِرْ لِي». (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، والدارمي).[2]

زما ربه ! ماته بخښنه وکړې.

**نوټ**: د ظاهرو احادیثو نه دا معلومیږي، چې د فرائضو او نوافلو مونځونو په جلسه کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دعاګانې لوستلې بیشک فرائض د زوائدو نه محفوظ ساتل د احنافو په نزد باندې اولی دی. خو اختصار سره مسنون مستند دعاګانې منع نه دي. احناف صرف د احتیاط په طور باندې وایي چې چیرته فرض مونځ فاسد نه شي، بعضې روایاتو کې تصریح ده، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نفلو کې اوږدې دعاګانې غوښتلې، خو اختصار سره فرائضو کې دعاګانو غوښتلو نه منع نه ده کړې. ابن عابدین شامي رَحِمَهُ اللهُ د جواز قائل دی. (کما في زجاجة المصابیح، ج۱، ص ۲۷۰)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## په جوماتو کې د مونځ د پاره ځای خاص کول منع دي

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَقْرَةِ الْغُرَابِ |
| د عبدالرحمن بن شبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې منع کړې ده نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د کارغانو په شان د ټونګو وهلو |
| وَافْتِرَاشِ السَّبُعِ وَأَنْ يُوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ فِي الْمَسْجِدِ |
| او د ځناور په شان لاس خوریدو نه. او دې نه یې هم منع فرمایلې چې څوک جوماتو کې ځای مقرر کړي |
| كَمَا يُوَطِّنُ الْبَعِيرُ.[3] |
| لکه څنګه چې یې اوښان مقرر کوي. |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۵۳۰/۱ رقم الحديث ۸۵۰، وأخرجه الترمذي في السنن ۲ /۷۶، رقم الحديث ۲۸۴، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۹۰/۱ رقم الحديث ۸۹۸

(۲) أخرجه النسائي ۲۳۱/۲ رقم الحديث ۱۱۴۵، والدارمي ۳۴۸/۱ رقم الحديث ۱۳۲۴

(۳) أخرجه أبو داود في السنن ۵۳۸/۱ رقم الحديث ۸۶۲

**توضيح**: **نقرة الغراب** مرغی چې کله دانه خوري هغه ټونګه وهي. دلته مراد دا دی، چې سجدې ته زر تلل او زر واپس کيدل منع دي، آرام او اطمينان سره عمل کول په کار دي.

**افتراش السبع**: ددې وضاحت حديث نمبر (۲) کې تير شوی دی. (المرقات ۲/۶۲۱).

ځومره احاديثو کې چې د ځناورو په شان طريقه او هئيت اختيارولو نه په مونځ کې منع راغلې. بعضې ځناورو نومونه هم ذکر دي: (۱) **افتراش السبع**. (۲) **افتراش الکلب واقعاء الکلب**. (۳) **بروک البعير**. (۴) **التفات الثعلب**. (۵) **نقرة الديک**. (۶) **نقرة الغراب**. (۷) **عقبة الشيطان**. (۸) **رفع الايدی کاذناب خيل شمس**. (۹) **دبيح الحمار** يعنې رکوع کې د خر په شان سر ښکته کولو ته ويل کېږي. دې نه معلومه شوه، چې مونځ انسان د حيواناتو نه جدا کوي او انسان نه انسان جوړوي. لکه:

عـلم معقولات گـنـده می کـنـد ۞ عـلم منقولات بـنـده می کـنـد

عـلم منقولات انبياء آسـت ۞ عـلم معقولات عـلم اشقياء آسـت

**وان يوطن المكان**: او بل چې کوم ځای کې کيني، نو دغه ځای خپل ځان د پاره خاص کړې. هلته بل او بل نه پريږدي، دغه رنګ جوماتو کې نه دي کول په کار، چې مونځ ګزار خپل ځان د پاره يو داسې ځای متعين کړي چې دويم ځوک هلته نه کيني دا مکروه او ممنوع ده، لکه جوماتونو کې بعضې غټ خلک داسې کوي يا شهرت د پاره داسې کوي، جوماتونو وقف ځای دی، کوم کس چې مخکې راشي د هغه حق دی. چې کوم ځای کې کيني کيناستلی شي. (المرقات ۲/۶۲۱).

ملا حلواني رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: دغه رنګ د مونځ ګزار د پاره دا هم ممنوع او مکروه ده، چې هغه د مونځ د پاره يو خاص لباس او جامې متعين کړي او دا خيال کوي، چې ددې نه علاوه بله جوړه کې مونځ نه کېږي. (المرقات ۲/۶۲۱).

## په جلسه او قعده کې د ناستې طريقه

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « يَا عَلِيُّ ! |
| د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل، ای علي ! کوم څيز چې زه |
| إِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي وَ أَكْرَهُ لَكَ مَا أَكْرَهُ لِنَفْسِي |
| د ځان د پاره محبوب ګڼړم هغه څيز ستا د پاره هم محبوب ګڼړم او کوم څيز چې د ځان د پاره نه خوښوم |

لَا تُقْعِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1].

هغه ستا د پاره هم نه خوښوم، دوارو سجدو په مینځ کې اقعاء مه کوئ.

**توضیح: لاتقع**: حضور ﷺ د دوارو جهانو د پاره رحمت دی، خو د خپل امت د پاره روف الرحیم دی، یعني حضور ﷺ چې کوم څیز د ځان د پاره خوښوي هغه د امت د پاره هم خوښوي یې د اهل بیتو معامله د عام امت په نسبت لږه خاص ده، که امت ته یې په رخصت باندې د عمل اجازت ورکړی وي، نو اهل بیتو ته یې په عزیمت باندې حکم ورکړی دی، دې باره کې د حضرت علی رضي الله عنه سره د نبي علیه الصلاة والسلام دا مکالمه وشوه. ددې خلاصه دا ده چې د سجدو منځ کې اقعاء نه بچ اوسئ.

**اقعاء صورت**: مشهور صورت دا دی، چې بین السجدتین یا قعده کې سرې کوناتو باندې کیني او دوارو زنګونان او پوندې ولاړې وي، او لاسونه یې په ځمکې باندې ایښودې وي، څنګه چې سپې کیني. د اقعاء مشهوره او صحیح معنی دا ده. (المرقات ۲/۶۲۲).

بعضې علماء اقعاء دې ته وایي یو مونځ ګزار د سجدو منځ کې یا قعدې حالت کې داسې کیني چې د خپو پنجې ځمکې باندې کیږدي او کوناتې د پوندو د بره کیږدي او لاسونو د زنګونانو سره پتونانو باندې کیږدي، خو د اقعاء هر صورت مکروه دی، دا د سپو او ځناورو سره مشابهت دی. (المرقات ۲/۶۲۲).

## په رکوع او سجده کې ملا نیغه ساتل په کار دي

﴿۱۸﴾ وَعَنْ طلق بن عَلِيِّ الْحَنَفِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَنْظُرُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ

د طلق بن علي حنفي رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي نه ګوري الله تعالی د

إِلَى صَلَاةِ عَبْدٍ لَا يُقِيمُ فِيهَا صُلْبَهُ بَيْنَ خُشُوعِهَا وَ سُجُودِهَا . (رَوَاهُ أَحْمد)[2].

هغه کس مونځ ته چې دا په خپل مونځ کې په حالت سجدې او رکوع کې خپله ملا نه نیغه وي.

**توضیح: لاینظر الله**: د رحمت په نظر الله تعالی نه ګوري او مونځ په دوران کې نزول رحمت په داسې کس نه نازلیږي، چې هغه مونځ کې داسې لاپرواهي کوي او د مونځ د آدابو خیال نه ساتي داسې عبادت اعلی درجې د قبولیت ته نه رسي، چونکې سجده او رکوع د الله تعالی د عبادت اهم رکن دی، چې دې کې نقص راشي، نو پوره مونځ ناقص شي، ځکه د سخت وعید حکم راغلی دی. (المرقات ۲/۶۲۲).

**خشوعها**: رکوع باندې د خشوع اطلاق شوی دی، دلته قومه کې ملا نیغول او تعدیل ارکان صحیح

---

(۱) أخرجه الترمذي ۲/۷۲ رقم الحديث : ۲۸۲.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۲۲/۴.

طريقې سره اداء کولو باندې تنبيه ده.

**سجودها:** جلسه کې اطمينان سره ناسته په کار ده، هغه داسې چې هر اعضاء خپل ځاى باندې شي. (المرقات ۲/۶۲۲).

## په سجده کې د سر کېښودو کيفيت

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُولُ : مَنْ وَضَعَ جَبْهَتَهُ |
| د حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: چا چې کېښودو تندي خپل په |
| بِالْأَرْضِ فَلْيَضَعْ كَفَّيْهِ عَلَى الَّذِيْ وَضَعَ عَلَيْهِ |
| ځمکه باندې نو هغه ته په کار دي، چې هغه خپل دواړه لاسونه هم په ځمکه باندې په هغه ځاى کېږدي |
| جَبْهَتَهُ ثُمَّ إِذَا رَفَعَ فَلْيَرْفَعْهُمَا فَإِنَّ |
| کوم ځاى کې چې يې تندى ايخودى دى، بيا کله چې پاڅي خپل دواړه لاسونه دې هم اوچت کړي، ځکه |
| الْيَدَيْنِ تَسْجُدَانِ كَمَا يَسْجُدُ الْوَجْهُ . (رَوَاهُ مَالِكٌ)[1]. |
| چې څنګه مخ سجده کوي، دغه رنګ لاسونه هم سجده کوي. |

**توضيح: کفيه:** مونځ کې چې مونځ ګزار کله سجدې ته ځي د هغې ټول اعضاء سجدې کې شريک کېږي، د لاسونو هم سجده وي، دې ته په کار دي چې د سجدې دوران کې لاسونه په داسې ځاى باندې کېښودلى شي چې دواړو غوږونو ته مخامخ وي که چرته د غوږونو نه څه څيز راپرېوځي، نو هغه به د لاسونو په بره حصه راځي، لاسونه نه بالکل د ولو او خيټې سره کېښودل او نه د سر نه مخکې کېښودل، بلکې د سر منځ کې کېښودل او لاسونه غاړو ته کېښودل په کار دي، او د احنافو مسلک هم دا دى، څنګه چې دې حديث کې دي.

خو شوافع حضرات د ولو سره خواته کېښودل يې بهتر ګڼي، ظاهري حديث د احنافو دليل دى او شوافعو سره ددې حديث صرف تاويل دى، هغه دا چې دې حديث کې دا وايي، څنګه تندى ځمکه باندې کېخودلى دى، دغه رنګ لاسونه هم د ولو سره خواته قبلې طرف ته کېږده چې ددې سجده هم وشي. (المرقات ۶۲۲–۲/۶۲۳).



[1] أخرجه مالک في الموطأ ۱/۱۶۳، رقم الحديث ۶۰، من کتاب قصر الصلوة في السفر.

۱۳ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ

# بَابُ التَّشَهُّدِ:

## د تشهد بيان:

دوو قعدو کې چې کومه خاص ناسته ذکر کولى شي هغې ته تشهد ويلې شي. شهادت معنى ګواهي ورکولو ته ويلې شي، دې ذکر کې خاص کر شهادتين بيانيږي ځکه دې ته تشهد ويلې شي. دلته صرف د تشهد لفظ دى عنوان د لاندې دا بيان کوي چې د تشهد د ناستې کيفيت څه دى او د شهادتينو لوستل ثنګه دي، ددې نه پس د **الصلوة على النبي** عنوان دى دا هم په حقيقت کې د هغه دوه قعدو کې د اذکارو بيان دى مګر داد درود لوستلو متعلق دى په دې کې دا ويلې شوي دي چې په قعدو کې به په حضور اکرم ﷺ باندې درود څنګه ويل په کار دى، ددې نه پس د **الدعاء في التشهد** عنوان اينبي دي دا هم په حقيقت کې په قعده کې د اکارو متعلق دى چې د شهادت او درود نه پس د دعاء طريقه څه ده؟ او دعاء به څنګه وي داد سلام ګرځولو پورې د اذکارو بيان دى او بيا د عنوان نه په غير د سلام نه پس د دعاګانو بيان يې کړې دى. (المرقات ۲/۶۲۳).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### د قعدې طريقه او د اشارې بالسبابه کيفيت

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا قَعَدَ فِي التَّشَهُّدِ

د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: نبي کريم عليه الصلاة والسلام چې به کله تشهد کې کيناستو، نو

وَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى وَ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُمْنَى وَ

خپل ګس لاس به يې د ګس خپې په زنګون باندې او ښي لاس په ښي خپې په زنګون باندې کيښوده او

عَقَدَ ثَلَاثًا وَ خَمْسِيْنَ وَ أَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ.

خپل (ښي) لاس به يې په شان د عدد درې پنځوس (۵۳) بند کړو او شهادت ګوتې سره به يې اشاره وکړه.

وَ فِي رِوَايَةٍ: كَانَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ

او په يو روايت کې دي: چې کله به حضور ﷺ په مونځ کې کيناسته نو اينبودل به يې خپل دواړه

يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَ رَفَعَ أُصْبُعَهُ الْيُمْنَى الَّتِيْ تَلِي الْإِبْهَامَ

لاسونه به يې زنګونانو باندې کيښودل او د ښي لاس ګوته کومه چې د غټې ګوتې سره نزدې ده او چتوله

يَدْعُو بِهَا وَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى

او د هغې سره به يې دعا غوښتله (يعنې او چتيدو سره به يې وحدانيت ثابتولو) او ګس لاسونه به يې

رُكْبَتِهِ بَاسِطَهَا عَلَيْهَا.[1]

پټونانو باندې کولاو کيښودل.

**توضيح:** (و عقد ثلاثة و خمسين) انسانانو ته مختلف زمانو کې د عدد او شمارلو مختلفې طريقې رائج شوي دي، دې کې مروجه طريقه دا هم وه چې ګوتې يو ځای کول او جدا کولو طريقه هم ده، چې دې حديث کې ورته اشاره شوې ده، حضور ﷺ د (۵۳) عدد نښه جوړه کړه. هغه داسې مثلاً تهولې ګوتې يې بندې کړې صرف د شهادت ګوته يې کولاو پاتې شوه او د ګوتې سر يې د شهادت د ګوتې بېخ سره کيښوده، دا درې پنځوس عدد دی. او دا طريقه شوافعو خپله کړې وه، دا د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ قول جديد دی، (المرقات ۶۲۳-۲/۶۲۴، الکاشف ۲/۴۱۷).

او احنافو نوي (يعنې لس کم سل) عدد خپل کړی دی، هغه داسې چې خنصر بنصر يعنې کچې او هغې سره نزدې ګوته بنده کړی شي او د غټې او د منځ ګوتو نه حلقه جوړه کړې او شهادت ګوتې سره دې اشاره وکړي، دا طريقه د احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ هم ده، او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ قول قديم هم داسې دی. او مخکې مسلم روايت کې دا طريقه مذکور ده، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې د لاس تهولې ګوتې بند کړئ او شهادت ګوتې سره اشاره او کړئ، دا تهولې درې طريقې شوې.

بعضې رواياتو کې څلورمه طريقه هم شته، چې تهولې ګوتې به خورې وي او د شهادت ګوتې سره به اشاره وکړي، بعضې احنافو دا عمل غوره کړی دی. (المرقات ۶۲۳-۲/۶۲۴، الکاشف ۲/۴۱۷).

**د اشارې حکم:** د احاديثو نه دا معلوميږي، چې د حضور ﷺ عمل په مختلف طريقو سره وو او په مختلفو وختونو کې يې مختلفې طريقې اختيار کړې وي، دا اضطراب في الحديث نه دی، بلکې بيان جواز د پاره دی، چې امت د پاره په دې کې وسعت او آسانتيا وي. دا اعتراض بې ځايه دی. چې اشارې احاديثو کې اضطراب دی، ځکه مطلقا اشاره نه ده کول په کار، د جمهورو او فقهاو اقوالو معلوميږي، چې هلته د تهولو په نزد باندې سنت عمل ګرځولی دی، د محل او موقع مناسبت سره چې کومې طريقې باندې عمل وشو بس سنت اداء شو. (المرقات ۶۲۳-۲/۶۲۴، الکاشف ۲/۴۱۷).

**د مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ راى:** مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ د احاديثو تحقيق او د ظاهري اختلاف په بنياد د اشارې نه انکار کړی دی، او وايي د اشارې احاديثو په حکم کې اضطراب موندلی کيږي. دې منفردې

---

[1] مسلم ۱/۲۰۸ رقم الحديث ۱۱۵-۵۸۰

او شاذ رائې بللې ده او ددې وخت علماو او د مجدد الف ثاني خوی په دې باندې رد کړی دی. جمهورو فقهاو او د احنافو د ائمو متفق مسئله پرېښودل او د مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللَّهُ د تفرد رايه احترام سره منل نظر انداز كولى شي، دا خو نوې خبره نه ده د لويو شخصياتو بعضې رائې منفرد وي، ائمه احناف او ابو يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ د اشارې په حكم باندې متفق دي. دا د احنافو متقدمين حضرات دي، بعضې احناف (ماوراء النهر او هندوستان او افغانستان د اشارې د ترک کېدو قائل دي، خو دا ترک کول د عدم جواز دليل نه دی، حجاز مقدس او د عربو ټول علماء قديما او حديثا اشارې كولو باندې متفق دي.

علامه ابن الهمام رَحِمَهُ اللَّهُ ليكي اشاره منع كول د روايت او د درايت د دواړو منافي دی. خلاصه دا چې كله احاديثو كې اشاره ثابت وي، صحابه كرام، تابعين ټول په دې متفق وي، جمهور فقهاء د امت او د عراق علماء او د حجاز حرمينو دې باندې متفق دي، يا دې باندې عمل كول اولى او انسب دي. فقهاو احنافو طرف ته د فقه يو كتاب منسوب دی، چې د هغې نوم خلاصه كيداني ده، هغه كتاب كې اشارې كولو ته حرام ويلي، خو ددې كتاب مصنف يقيني طور باندې پته نه لږي د احنافو مشهورو او معروفو علماو د دغه كتاب غير معروف كېدو باندې تنقيد كړی دی. علامه ابن همام ليكي: كه د خلاصه كيداني مصنف په كلام كې د تاويل ګنجائش نوی، نو مونږ به دې باندې د كفر فتواى لږولې وی، تاويل دا كيدی شي، چې هغه كاهل الحديث لفظ استعمال كړی دی او اهل حديث ګوتې له حركت وركوي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي كه حسن ظن نه وی، نو ددغه كس په كلام كې د كفر خطره ده. (المرقات ٢/٦٢۴).

بهر حال اشاره بالسبابه حكم د استحباب او سنن زوائد نه كم نه دی، فقهاء دې ته سنت وايي، موطا د محمد كې امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي (بصليع رسول الله نأخذ وهو قول ابي حنيفة رَحِمَهُ اللَّهُ) امالي د ابويوسف رَحِمَهُ اللَّهُ كې تصريح موجود ده، امام ابويوسف د اشارې قائل دی. د احنافو كتابونو كې ظاهر الرواية كې د اشارې ذكر نشته، خو دا مضره هم نه ده، بلكې ظاهر الروايات اشارې نه ساكت دی، خو عدم ذكر د عدم جواز دليل نه دی. اشارې كولو مقام دا دی، كله چې مونځ ګزار شهادت ته ورسي. لااله نفي باندې ګوته اوچته كړی چې نفي قولي سره نفي عملي هم راشي، شوافع او حنابله فرمايي الاالله اثبات باندې ګوته اوچتول ډير بهتر دي، دا هم جائز دي، قعده كې چې سړی كيني او د ښي لاس ګوتې بندې كړي د شهادت د پاره او دا هم جائز دي، چې شهادت ته ورسي هغه وخت ګوتې بندې كړي. او يا اشاره وكړي او اشارې نه پس ګوته ښكته كول هم جائز دي او سلام پورې اوچته ساتل هم جائز دي، خو حلقه ماتول صحيح نه دي.

**یدعوبها:** ددې مطلب دا دی ګوته اوچتول د توحید اشاره کول هم دعا ده. (المرقات ۶۲۴-۲/۶۲۵، الکاشف ۲/۴۱۸).

**باسطها** باسط اسم فاعل صیغه ده، مراد چې د ګس لاس ګوتې په زنګون باندې کولاو کېښودل. (المرقات ۶۲۴-۲/۶۲۵)

## دالتحیات طرز او طریقه:

﴿۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا

دعبدالله بن زبیر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم چې به کله (مونځ کې د التحیات د

قَعَدَ يَدْعُو وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى

پاره) کیناستو نو خپل ښي لاس به یې په خپل ښي پتون باندې کېښودو او خپل ګس لاس به یې په ګس پتون

وَ أَشَارَ بِأُصْبُعِهِ السَّبَّابَةِ وَ وَضَعَ إِبْهَامَهُ عَلَى أُصْبُعِهِ الْوُسْطَى

باندې کېښودو او شهادت ګوتې سره به یې اشاره کوله او خپله غټه ګوته به یې په مینځنۍ په ګوتې باندې

وَ يُلْقِمُ كَفَّهُ الْيُسْرَى رُكْبَتَهُ [1]. (رَوَاهُ مُسلم).

کېښوده (یعني دا سې حلقه به یې جوړوله) او نبي علیه السلام به (کله) خپل ګس لاس سره ګس زنګون یولو.

﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې مونږ چې به کله حضور صلی الله علیه وسلم سره مونځ کولو،

قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى اللهِ قَبْلَ عِبَادِهِ

نو (قعده کې د التحیات په ځای) دا به مو ویل: الله باندې سلام دی، مخکې د ده په بندګانو باندې سلام نه

السَّلَام عَلَى جِبْرِيل السَّلَام عَلَى مِيكَائِيل السَّلَام عَلَى فُلَان وَ فُلَان

جبرئیل باندې سلام دی، میکائیل باندې سلام دی او فلانکي (یعني د فرشتو په هریو فرشته او د انبیاو نه

فَلَمَّا انْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ

په هریو نبي) دې سلام وي نو یوه ورځ کله چې نبي علیه السلام د مونځ نه فارغ شو زمونږ طرف ته متوجه شو،

---

[1] مسلم ۱/۱۰۸ رقم الحدیث: ۱۱۳ - ۵۷۹.

قَالَ : « لَا تَقُولُوا السَّلَامُ عَلَى اللهِ فَإِنَّ اللهَ هُوَ السَّلَامُ

وې فرمايل الله باندې سلام مه وايې، الله تعالى په خپله سلام دى (يعنې د الله تعالى ذات د ټولو آفتونو او

فَإِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ

نقصاناتو نه پاک دى) کله چې تاسو کې څوک په قعده باندې کېني دا وايې: ټول تعريفونه او بدني او مالي

لِلهِ وَ الصَّلَوَاتُ وَ الطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ

عبادتونه الله تعالى د پاره دي، اى پيغمبره په تا باندې دې سلام او د الله تعالى رحمتونه او برکتونه وي،

السَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ فَإِنَّهُ إِذَا

سلام دې وي په مونږ باندې او د الله تعالى په نيک بندګانو باندې ،نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل کوم کس چې دا

قَالَ ذَلِكَ أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ أَشْهَدُ

کلمات وايي، د هغه برکت په ځمکه او آسمان کې هر نيک کس ته رسيږي، بيا يې وفرمايل زه ګواهي ورکوم

أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُولُهُ

چې الله تعالى نه سوا بل هيڅ معبود نشته او ګواهي ورکوم چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او رسول دى

ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ مِنَ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ فَيَدْعُوهُ ». (متفق عليه). [1]

بيا يې وفرمايل دې نه پس بنده ته کومه دعا ښه ښکاري هغه دې اختيار کړي او الله نه دې سوال وکړي.

**توضيح: التحيات لله**: دلته درې الفاظ دي او درېو وارو کې مختلف توجيهات دي، خو مشهوره معنى دا ده. التحيات نه مراد عبادت قولي، او الصلوٰتُ نه عبادت بدني، الطيبات نه مراد عبادت ماليه دى، مطلب دا چې زما قولي عبادت الله تعالى د پاره دى. او زما بدني او مالي عبادت هم د الله تعالى د پاره دى يعنې هر نوع عبادت د الله تعالى د پاره دى ګويا دا اعلان دى: ﴿إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾.

**السلام عليک ايها النبي: سوال**: کله چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ سره موجود نه دى بيا يې مونږ ولې دې خطاب سره يادوو، نو آيا بيا دې نه دا نه ثابتيږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حاضر او ناظر دى، لکه

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۱۱،رقم الحديث ۸۳۱، ومسلم في الصحيح ۱/۳۰۱ رقم الحديث ۵۵-۴۰۲، وأبو داود ۱/۵۹۱ رقم الحديث ۹۶۸، والنسائي ۲/۲۴۰، رقم الحديث ۱۱۶۸

ځکه چې بعضې کم فهمه خلکو خیال دی؟ (المرقات ۲/۶۲۷).

**جواب:** اصل کې دا خطاب د الله تعالی د طرف نه دی، چې شب معراج کې د حضور ﷺ سره شوی دی. قصه داسې وه: د معراج په شپه حضور ﷺ ته الله تعالی وفرمایل، چې کله یو دوست خپل دوست خواته ځي ځان سره یو تحفه ضرور وړي، نو ما له څه راوړي حضور ﷺ ورته جواب ورکړو التحیات لله دا جواب ډیر عظیم وو، ددې په صله کې الله تعالی ورته وفرمایل **السلام علیک ایها النبي ورحمة الله و برکاته** ،دا هم ډیرلوی اعزاز او انعام ؤ. ځکه حضور ﷺ خپل امت هم ځان سره یو ځای کړو ،**السلام علینا و علی عباد الله الصالحین**، دا د امت سره لویه همدردي وه او دا پوره مکالمه ډیره مناسب وه، بنا په دې باندې جبرائیل اعتراف د شان د نبی ﷺ کې وفرمایل : **اشهدان لا اله الا الله و اشهد ان محمد عبده ورسوله** دې ټولې مکالمې ته چې وګورئ ځوک دا ویلی شي چې دا زمونږ د طرف نه ده؟، حقیقت کې دا مکالمه مونږ نقل کوو، چې د معراج په شپه د الله تعالی په دربار کې شوې وه. (المرقات ۶۲۷-۲/۶۲۸).

عمدة القاري کې بدر الدین عیني رحمه الله وايي اصل کې دا کلام حضور ﷺ صحابو ته ښودلو چې ستاسو مخې ته وو، بیا دا کلام هغه صحابه وو هم واخیستو کوم چې غائب وو او دغه رنګ دا سلسله غائبینو کې روانه وه.ددې کلام مطلب دا هم دی، دا صیغه حاضر او ناظر د عقیدې لاندې نه ده. بلکې دا بطور نقل او حکایت ده. علامه سیوطي رحمه الله او نورو محدثینو د کرماني رحمه الله په شان وغیره نقل کړی کله چې د حضور ﷺ وصال وشو نو صحابو په دغه ځای **السلام علی النبي** ویل چې هغې کې د حاضر سره د خطاب په ځای د غائب خطاب دی، فقهاء او محدثین دا توجیهات ځکه کوي چې د امت مسلمه په نزد باندې د حضور ﷺ په باره کې عقیده د حاضر او ناظر جائز نه ده.

**الصالحین:** دې قید سره هغه ټول خلک خارج شول کوم چې صالح نه دي، علماء فرمايي صالح سړی هغه دی، چې د خالق او مخلوق په حقونو کې رعایت ساتي. (المرقات ۲/۶۲۸).

ځومره لویه خوش قسمتي ده د هغه خلکو کوم چې صالح دي ځکه چې د اولیاء الله او د حرمینو د ائمو او نضلاو دعاګانې دوي ته مفت ملاویږي ،صرف دا چې صالح جوړ شي ، **اللهم ارزقنا صلاحا و اعطنا فلاحا**.

## په مونځ کې کوم تشهد افضل دی

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَن عبد الله بن عَبَّاس اَنَّهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ كَمَا |
| عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې حضور ﷺ به مونږ ته داسې تشهد ښودلو لکه څنګه چې به |

يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ فَكَانَ يَقُولُ : « التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ
يې مونږ ته ښودل د قرآن کريم يو سورت او ويل به يې: ټول برکت والا تعريفونه او ټول مالي او بدني عبادتونه
لِلّٰهِ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ السَّلَامُ
الله تعالى د پاره دي، اى نبى ﷺ تاسو باندې سلامتي ده او برکتونه او رحمتونه سلام دې وي
عَلَيْنَا وَ عَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ
په مونږ باندې او په نيکو بندګانو باندې اوزه دې خبرې ګواهي ورکوم چې نشته لائق د عبادت په غير د الله
وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ »[1]. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
نه بل څوک او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د الله تعالى رسول دى.

وَلَمْ أَجِدْ فِي الصَّحِيحَيْنِ وَلَا فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّحِيحَيْنِ: «سَلَامٌ عَلَيْكَ» و «سَلَامٌ عَلَيْنَا» بِغَيْرِ أَلِفٍ وَلَامٍ وَلٰكِنْ رَوَاهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ عَنِ التِّرْمِذِيِّ.

**توضيح: يعلمنا التشهد:** قعده اولى واجب ده او قعده آخره مونځ کې فرض ده، په دواړو قعدو کې تشهد لوستلى کيږي. سوال دا دى د تشهد باره کې لس روايات موجود دي، مختلف تشهدات ذکر دي، خو مشهورو رواياتو کې درې تشهده مشهور دي:

(۱) تشهد د ابن مسعود رضي الله عنه (۲) تشهد د ابن عباس رضي الله عنه (۳) تشهد د عمر فاروق رضي الله عنه.

چونکې تشهد کې د الله تعالى وحدانيت په ښه طريقې باندې ثابتول مقصد دي، نو صحابه کرامو مختلفو الفاظو سره دغه پيش کړى دى، دا وجه ده د ټولو علماو اتفاق دى، چې د صحابو دور کې مختلف تشهدات لوستل کيدل او د لس صحابو جدا جدا تشهدات وو، ټول جائز دي، جواز او عدم جواز کې اختلاف نه دى، البته افضل او غير افضل کې اختلاف راغلى، خبره صرف د ترجيحاتو ده. (المرقات ۲/۶۳۰، الکاشف ۲/۴۲۲).

**د فقهاو اختلاف:** درې تشهدات مشهور دي تشهد د ابن مسعود رضي الله عنه، تشهد د ابن عباس رضي الله عنه، تشهد د عمر فاروق رضي الله عنه، اوس په دې کې کوم افضل دى او کوم ته ترجيح ده، امام شافعي رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه تشهد ته افضل وايي او دې ته يې ترجيح ورکړې ده، امام مالک رحمه الله د عمر فاروق رضي الله عنه تشهد ته افضل او ترجيح ورکړې ده، موطا مالک کې د دې تشهد صيغې د ابن عباس

---

(۱) مسلم ۳۰۲/۱ رقم الحديث :۶۰-۴۰۳، وأبوداؤد ۵۹۶/۱ رقم الحديث ۹۷۴، والترمذي ۸۳/۲ رقم الحديث : ۲۹۰

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان دي، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تشهد ته افضل وايي او ترجيح ورکوي، حنابله هم د احنافو سره دي. (المرقات ۲/۶۳۰، الکاشف ۲/۴۲۲).

**وجوه ترجيح**: ائمه احناف او حنابله تشهد د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ډيرو وجوهاتو نه ترجيح ورکړې ده: (۱) وجه اول امام ترمذي اعتراف کړی، د تشهد باره کې چې د جمهورو صحابو او تابعينو عمل د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تشهد مطابق دی او حديث ښه مطلب کې ډير اصح او اوضح دی.

(۲) د تشهد د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الفاظ نقل کولو کې د ټولو ائمو حديثو توافق او اتفاق دی.

(۳) د خلکو د تعليم په غرض باندې حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منبر نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې دا تشهد لوستلي وو.

(۴) د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په تشهد کې تجدد د عمل دی، دې کې دوه ځلې واو سره کلام ذکر کړی دی، يعني **التحيات لله والصلوات لله والطيبات لله**، ددې په عکس بل تشهد کې عطف نه وو، بلکې يوه جمله وه، چې د صفاتو سره مذکوره وه.

دلته علماء يوه قصه ليکي: يو ديهاتي د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ خواته راغی او سوال يې وکړو بواو او بواوين امام صاحب جواب ورکړو (بواوين) **فقال بارک الله فيک کما بارک في لا ولا ثم ولّٰی** حاضرين په دې پوهه نه شو، او امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه يې تپوس وکړو، چې دې بانده چې څه وويل او تاسو څه جواب ورکړو، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ وويل هغه وويل چې زه کوم تشهد ووايم؟، آيا هغه ووايم چې هغې کې يو واو دی، يا د دوو واو والا، ما جواب ورکړو د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والا تشهد ووايه، هغې کې دوه واوه دي، ددې وجې هغه دعا وکړه چې الله تعالی دې تا د زيتون د ونې په شان برکتي کړي چې نه شرقي وي او نه غربي دې کې دې آيت طرف ته اشاره شوې ده: ﴿مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ (سورة النور آيت: ۳۵).

(۵) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله په ژبه باندې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم وکړو، ددې تشهد تعليم مخکې امت ته ورسوئ، بلکې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير اهتمام سره د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس ونيوه او دا تشهد يې ورته وښودو.

دا حديث د **مسلسل بأخذ اليد** نوم سره مشهور دی، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل شاګرد لاس ونيوو او ورته يې اوښودو تردې چې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ استاذ حماد رَحِمَهُ اللهُ د امام صاحب لاس ونيوو او ددې تشهد تعليم يې ورله ورکړو.

(۶) زما په خيال د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تشهد د ټولو نه لويه وجه د ترجيح د معراج شپه ده، چې الله تعالی مخې ته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا کلمات په خپله لوستلي وو، چې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کې

دي، بهر حال دا مسئله د اولی او غیراولی ده، هر یو سره وجوه ترجیحات موجود دي.

پسند اپنی اپنی نصیب اپنا اپنا

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## په شهادت کې د ګوتې اوچتولو نه پس حرکت ورکول څنګه دي

﴿۵﴾ وَ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: ثُمَّ جَلَسَ

وائل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې بيا حضور صلى الله عليه وسلم (سجدې نه سر اوچت کړو دغه رنګ) کيناستو

فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى وَ حَدَّ مِرْفَقَهُ الْيُمْنَى

چې خپله ګسه خپه يې خوره کړه او ګس لاس يې د ګسې خپې په پتون باندې کېښودو او کېښوده نبي څنګل

عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَ قَبَضَ ثِنْتَيْنِ

په ښي پتون باندې (يعني خپله څنګل يې د ورون سره يو ځای نه کړه) او بندې يې کړې دواړه ګوتې (يعني

وَ حَلَّقَ حَلْقَةً

کچې او د هغې سره نزدې ګوتې) (د احنافو د مسلک مطابق منځ ګوته او غټه ګوته) حلقه يې جوړه کړه

ثُمَّ رَفَعَ أُصْبُعَهُ فَرَأَيْتُهُ يُحَرِّكُهَا يَدْعُو بِهَا[1].

بيا يې د شهادت ګوته اوچته کړه او ما وليدو چې دغه ګوتې ته يې حرکت ورکولو او اشاره يې ورسره کوله

**توضيح: وقبض ثنتين:** دوه ګوتې يې بندې کړې، دې نه مراد کچې او هغې سره خوا ته ګوته ده هغې ته خنصر او بنصر ويلې شي. (المرقات ۲/۶۳۳).

**و حلق حلقة:** يعني د مينځ او غټې ګوتې سرونه يو ځای شي حلقه ورته ويلې شي، دا طريقه د احنافو په نزد باندې راجح ده او دغه عدد تسعين دی، او دغه حديث د احنافو دليل دی.

او د شوافعو حضراتو د ابن عمر رضي الله عنه حديث نمبر (۱) نه استدلال دی، دې کې درې پنځوس عدد ښودلی دی. (المرقات ۲/۶۳۳).

دا خبره ياده ساتل په کار دي چې د اهل حسابو په نزد باندې د ګوتو اشارو او کېښودلو نه خاص عدد طرف ته اشاره ده، يو يز د پاره جدا اشاره او لسيز طرف ته جدا دغه رنګ وړسې ځه، د دې فن په تقريرات

---

[1] أحمد في المسند ۳۱۸/۴، وأخرجه أبوداود ۵۸۷/۱ رقم الحديث ۹۵۷، والنسائي ۳ ۳۷ رقم الحديث ۱۲۶۸.

الرافعي کې ښه بحث شوی دی، بهر حال گوتې او چتيدو نه پس حرکت ورکولو کې اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ يحركها لفظ نه استدلال کړی دی فرمايي چې شهادت گوتې له دې حرکت ورکوي ترڅو پورې چې يې سلام نه وي اړولی. (المرقات ۲/۶۳۴).

جمهور فقهاء فرمايي د گوتې او چتيدو نه پس حرکت نه دي ورکول په کار يا دې او چته نيسي يا ښکته حرکت نه دی په کار.

**دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث د حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه استدلال کړی دی هغې کې **يحركها** الفاظ دي، ائمه احناف او جمهور دې سره د حضرت عبدالله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه استدلال کړی دی، هغې کې **لا يحركها** الفاظ راغلي.

**تطبيق**: دې تطبيق سره دواړو رواياتو کې تعارض ختميږي او د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت جواب په کې هم کيږي او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مستدل هم نه پاتې کيږي. تطبيق داسې دی د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کې **يحركها** مطلب دا نه دی، چې گوته اوچته کړه او حرکت ورکوه، بلکې مطلب دا دی چې د اشارې د پاره گوته اوچته کړه او د دغه اوچتيدو نه يې **يحركها** سره تعبير کړی دی.

امام بيهقي د دواړو رواياتو تطبيق کولو باره کې داسې ارشاد فرمايي: (**فيحتمل ان يكون المراد بالتحريك الاشارة بها) لا تكرير تحريكها فيكون موافقا لرواية ابن زبير (بيهقي، ج ۲، ص ۱۳۲)**

دې کې دا احتمال شته، چې د گوتې خوځولو نه مراد اشاره ده، خوځول نه دي، نو بيا د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رواياتو کې موافقت راځي.

## د اشارې په وخت کې گوته خوځول نه دي په کار

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُشِيْرُ |
| د عبدالله ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اشاره کوله (د کلمه شهادت |
| بِأُصْبُعِهِ إِذَا دَعَا وَلَا يُحَرِّكُهَا [1]. |
| لوستلو) په وخت کې په خپلې گوتې سره چې کله به يې (په قعده کې) دعا کوله خو خوځوله يې نه. |
| وَ زَادَ أَبُو دَاوُد وَلَا يُجَاوِز بَصَرُهُ إِشَارَتَه. |
| ابوداود دا الفاظ هم رانقل کړي دي او د هغوی نظر به د اشارې نه تجاوز نه کولو. |

[1] أخرجه أبوداود ۱/۶۰۴ رقم الحديث ۹۹۰، والنسائي ۳/۳۹ رقم الحديث ۱۲۷۵

**توضیح**: **لایحرکها**: دا حدیث واضح دلیل دی. چې د تحریک السبابه ذکر چې د دې حدیث نه مخکې کوم حدیث کې راغلی وو، هغه یا مؤول دی یا موقوف دی او عدم تحریک صراحت سره ثابت دی. او دا حدیث په امام مالک رَحِمَهُ اللهُ باندې حجت دی. (المرقات ۲/۶۳۳).

**لایجاوز بصره اشارته**: د دې عبارت مطلب دا دی چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نظر به د اشارې بالسبابه نه مخکې تجاوز نه کولو. بلکې د قعدې په وخت کې به د هغه نظر مخې ته وو. دویم مطلب یې دا دی. چې د هغه نظر به په اشارة بالسبابه باندې پروت وو. چې مضمون توحید ښه په زړه او دماغو کې کینې. عامو شارحینو دا دویمه معنی مراد اخیستې. دریم مطلب دا دی چې د هغوی نظر هغه وخت آسمان ته نه ځي ځکه چې د هغې نه دا تاثر ملاویږي، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ګوتې مبارکې سره اشاره کوي چې، الله تعالی په آسمانونو کې دی، دې نه د جهت احتمال هم کیږي. چې تجسم ته مستلزم دی او دې سره حدوث لازم دې او د دې نه الله تعالی پاک دی. (المرقات ۲/۶۳۳).

## اشاره په یوې ګوتې سره کول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ : إِنَّ رَجُلًا كَانَ يَدْعُو بِإِصْبَعَيْهِ |
| د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایې چې یو کس تشهد کې په دواړو ګوتو اشاره وکړه نو نبي |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَحِّدْ أَحِّدْ.(۱). |
| کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وفرمایل یوې ګوتې سره اشاره کوه، یوې ګوتې سره اشاره کوه. |

**توضیح**: **احد احد**: ابوداود او نسائی روایت کې دا وضاحت موجود دی، حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قعده کې کلمه شهادت په وخت کې د دواړو لاسونو د شهادت ګوتو سره اشارې کولې، کیدای شي خیال یې دا وو چې دې سره د توحید په اثبات کې اضافت وشي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله وکتل، نو دا یې د دې عمل نه منع کړو او حکم یې وکړو چې یوې ګوتې سره یعنې وحدانیت د اثبات د پاره یو ګوتې سره اشاره کوئ. (المرقات ۲/۶۳۴).

## په قعده کې د ناستې صحیح طریقه

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ يَجْلِسَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ |
| د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې د دې نه چې کینې سړې په مونځ کې |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۵۲۰ رقم الحديث ۳۵۵۷، والنسائي ۳/۳۸ رقم الحديث ۱۲۷۱.

وَ هُوَ مُعْتَمِدٌ عَلٰى يَدِهِ . (رَوَاهُ أَحْمد، وَأَبُو دَاوُد)[1] وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُ :

او تکیه یې لګولې وي په لاس باندې . د ابوداود یو روایت کې دا الفاظ هم دي: حضور ﷺ

نَهٰى أَنْ يَعْتَمِدَ الرَّجُلُ عَلٰى يَدَيْهِ إِذَا نَهَضَ فِي الصَّلَاةِ.

ددې نه هم منع فرمایلې چې یو کس مونځ کې د پاڅیدو وخت کې د لاس نه مدد اخلي.

**توضیح: وهو معتمد:** ددې مطلب دا دی چې سړی کله قعده کې کیني. نو ځمکې باندې دې لاس نه ږدي، بلکې دواړه لاسونه دې په خپلو پتونانو باندې داسې ږدي چې د ګوتو سرونه د زنګونانو د بره راشي، حضور ﷺ ځمکه باندې تکیا کولو نه منع فرمایلې ده، دویمه خبره دې حدیث کې دا بیان شوې ده، سړی چې کله سجده وغیره نه پاڅي هغه ته په کار دي چې په ځمکه باندې تکیه ونه لږوي، ددې نه هم حضور ﷺ منع فرمایلې ده، (المرقات ۲/۶۳۴).

د امام صاحب رحمه الله مسلک دا دی چې قیام ته پاڅیدو وخت کې ځمکه باندې لاسونو سره تکیا نه شي کولی، که چا ته عذر وي، نو شرعا صاحب عذر معذور وي. هغه چې څه کوي مجبور دی. (المرقات ۶۳۴-۲/۶۳۵).

امام شافعي رحمه الله فرمایي بغیر عذر که څوک تکیا لږوي پاڅیدلی شي، د شوافعو حضراتو د جلسه استراحت او تکیا لږولو د پاره باب صفة الصلوة حدیث نمبر (۷) نه استدلال کړی دی، د احنافو دلیل زیر نظر حدیث دی او ورسره حدیث نمبر (۹) کې هم د دوي دلیل دی، ددې مسئلې پوره تفصیل حدیث نمبر (۷) په توضیح او تشریح کې شوی دی، دا خبره د یاد ساتلو قابله ده، دا بحث هغه وخت دی چې معذور نه وي که معذور کس وي نو معذور مجبور دی او د هغه د پاره ممانعت نشته. (المرقات ۶۳۴-۲/۶۳۵).

﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ

د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور ﷺ اولو دوو رکعتونو کې (یعنې

كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ

اوله قعده) کې (تشهد د پاره دومره کیناستو) ګویا چې حضور ﷺ په ګرم کاڼي باندې ناست دی

---

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۲/۶۰۴ رقم الحديث . ۹۹۲

حَتّٰى يَقُوْمَ. (۱).

او په (جلتۍ) سره به پاڅيدو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۰﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ كَمَا

د جابر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به مونږ ته تشهد داسې ښودلو لکه څنګه چې

يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ:

به يې مونږ ته د قرآن کريم يو سورت ښودلو (يعنې څنګه چې د قرآن کريم د الفاظو په اعتبار مختلف دي

دغه رنګ د تشهد الفاظ هم مختلف دي، چنانچه دې روايت کې د تشهد الفاظ داسې ذکر دي (ترجمه):

« بِسْمِ اللهِ وَ بِاللهِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَ الصَّلَوَاتُ وَ الطَّيِّبَاتُ

يعنې د الله په نوم او توفيق سره شروع کوم او ټول تعريفونه او ټول مالي او بدني عبادت الله تعالى د پاره دي

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا

سلام دې وي په تا باندې اى نبي صلى الله عليه وسلم او د الله تعالى برکتونه او رحمتونه، سلام دې وي په مونږ باندې

وَ عَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ أَشْهَدُ

او د الله په نيکو بندګانو باندې او زه ددې خبرې ګواهي ورکوم چې د الله نه غير بل معبود نشته، او ګواهي

أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ أَسْأَلُ اللهَ الْجَنَّةَ وَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ النَّارِ». (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)(۲).

ورکوم چې محمد صلى الله عليه وسلم د الله بنده او رسول دی زه د خداى نه د جنت سوال کوم او د دوزخ نه پناه غواړم

## د شهادت ګوتې په اوچتيدو سره شيطان سوزي

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ

د نافع رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه به چې کله مونځ کې کيناستو، نو

---

(۱) أخرجه أحمد ۳۸۶/۱، وأبوداود ۶۰۶/۱ رقم الحديث ۹۹۵، والترمذي ۲۰۲/۲ رقم الحديث: ۳۶۶ والنسائي ۲۴۳/۲ رقم الحديث: ۱۱۷۶.

(۲) أخرجه النسائي ۲۴۳/۲ رقم الحديث: ۱۱۷۵.

وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَ أَشَارَ بِإِصْبَعِهِ وَ أَتْبَعَهَا بَصَرَهُ

خپل دواړه لاسونه به يې په خپل دواړو زنګونانو باندې کېښودل او ګوتې سره به يې اشاره کوله او نظر به

ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «لَهِيَ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيدِ».

يې په ګوته باندې ؤ او ويل به يې چې نبي عليه السلام فرمايي دا په شيطان باندې د اوسپنې نه زيات سخت دی

يَعْنِي السَّبَّابَةَ. (رَوَاهُ أَحْمد)[1].

يعنې شهادت ګوتې سره اشاره د وحدانيت، دا په شيطان باندې د نيزې وار کولو نه زيات سخت دی.

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ كَانَ يَقُولُ: مِنَ السُّنَّةِ إِخْفَاءُ التَّشَهُّدِ[2].

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: تشهد په مزه آواز سره لوستل سنت دي.

وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

ترمذي وايي دا حديث غريب دی.

**نوټ:** صحابي چې کله من السنة وايي، د هغه دا قول د قال رسول الله صلى الله عليه وسلم په شان مرفوع حديث جوړيږي.



(۱) أحمد في المسند ۲/۱۱۹.

(۲) أبوداود ۱/۶۰۲ رقم الحديث ۹۸۶، والترمذي ۲/۸٤ رقم الحديث ۲۹۱

# بَابُ الصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفَضْلُهَا:

## په حضور صلى الله عليه وسلم باندې د درود لوستلو فضيلت

**قال الله تعالى: ﴿إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾**
(سورة احزاب آيت: ٥٦).

مصطفى ما جآء الا رحمة للعالمين ۞ سلموا يا قوم بل صلوا على صدر الامين

**صلوة** په لغت كې دعاء، استغفار، رحمت او حسن الثناء ته ويلى شي.
كه د صلوة نسبت الله تعالى طرف ته وشي دې نه د رحمت كامله نزول مراد دى، كه نسبت يې فرښتو ته وشي، نو استغفار ترې مراد دى، او كه نسبت يې انسانانو ته وشي دې نه دعا مراد ده، او كه مرغانو طرف ته يې نسبت وشي دې نه تسبيح او تهليل مراد دي. (اشعة اللمعات ۱/۴۳۴).
په ټول عمر كې يو ځل درود لوستل فرض دي، قرآن كريم يو څو آيتونه په دې باندې دلالت كوي، كه مجلس كې د حضور صلى الله عليه وسلم نوم مبارك واخيستلى شي په اول ځل، درود لوستل واجب دي. كه دوباره واخيستى شي بيا دورد سنت او مستحب دى، حضور صلى الله عليه وسلم باندې درود لوستل بالذات مقصود دي او نورو انبياو او صحابه كرامو باندې بالتبع لوستل جائز دي، مستقل طور باندې بل چا باندې لوستل ناجائز دي، بلكې بعضې محققينو صلوة د حضور صلى الله عليه وسلم د خصوصياتو نه ګرځولى دى. او سلام د ټولو پيغمبرانو د پاره عام دى، ها بالتبع صلوة نورو انبياو عليهم السلام باندې لوستلى كېږي. (اشعة اللمعات ۱/۴۳۴).

**رضي الله عنه:** لفظ چونكې اخبار بالرضا دى، ځكه د صحابو نه علاوه بل چا د پاره جائز نه دى، صحابو سره خاص دى، بعضې متقدمين علماء يې د غير صحابي د پاره هم جائز كوي، بعضې مقاماتو كې غير صحابي د پاره لفظ رضي الله عنه مستعمل دى. (اشعة اللمعات ۱/۴۳۴).

**رحمة الله عليه:** لفظ د اولياء الله او د علماو د پاره استعماليږي، البته بالتبع رضي الله عنه او رحمة الله عليه غير صحابي او غير ولي په باره ويلي كېږي. (اشعة اللمعات ۱/۴۳۴).
لمعات كې د شيخ عبد الحق رحمه الله د كلام نه دا معلوميږي، صلوة او سلام نه كه صرف مراد دعا، يعنې ددې لغوي معنى مراد واخيستلى شي، بيا د انبياو عليهم السلام نه علاوه د نورو د پاره هم استعماليږي، لكه حضور صلى الله عليه وسلم (**اللهم صل على آل ابي اوفى، اللهم صل على عمرو بن العاص**) لوستلى دى.
دا ټول د دعاء او رحمت په طور باندې دي، درود په طور باندې نه دي، دغه صورت د حال د لفظ د

رضي الله عنه هم دی. (الکاشف ۲/۴۳۱، اشعة اللمعات ۱/۴۲۳).

## په التحيات کې درود ويل فرض دي او که سنت؟

امام شافعي رحمه الله فرمايي التحيات کې هم دورد لوستل فرض دي، تشهد نه پس قبل السلام هم فرض دي، خو دې مسئله کې امام شافعي رحمه الله سره څوک نشته، بلکې د امام شافعي رحمه الله قول شاذ دی. د امام صاحب رحمه الله معتمد قول دا دی، که يو کس په مجلس کې د حضور صلى الله عليه وسلم نوم مبارک واوري يو ځلې درود لوستل واجب دي، د هغې نه پس لوستل مستحب دي. د **التحيات** او د تشهد نه پس سنت دي. دا د جمهورو مسلک دی، البته د امام احمد رحمه الله يو قول امام شافعي سره دی. امام شافعي رحمه الله د قرآن کريم درود والا آيت نه استدلال کړی دی، احاديثو کې چې د درود کوم فضائل ذکر شوي دي، هغې نه يې هم استدلال کړی دی، خو دا استدلال واضح نه دی، په آيت کې مطلق درود ذکر دی، مونځ سره خاص نه دی، نه د هر ځلې لوستلو خبره ده، احاديثو کې يې د درود فضيلت بيان کړی. د درود لوستلو ترغيب دی، دا د فرضيت دليل نه دی، حضور صلى الله عليه وسلم ابن مسعود رضي الله عنه ته هر درود لوستل فرمايلي وو : **اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاته.** دلته: درود لوستلو نه بغير صرف تشهد پورې لوستل يا د هغې مقدار ناسته باندې مونځ مکمل او جائز کرځولی شي، دا دليل دی چې درود فرض نه دی، په عمر کې يو ځلې فرض دی، خصوصي طور باندې د تشهد نه پس قبل السلام سنت مؤکده دی. (الکاشف ۲/۴۳۰، المرقات ۳/۵).

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ:

## په التحيات کې د درود ويلو طريقه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ : لَقِيَنِي كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ |
| د عبدالرحمن بن ابی ليلى رحمه الله (تابعي) نه روايت دی وايي چې: زما ملاقات وشو د کعب بن عجره |
| فَقَالَ أَلَا أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| (صحابي) سره هغه وويل زه تا ته هغه څيز بطور هديه پيش نه کړم کوم چې ما د نبي عليه السلام نه اوريدلی دی؟ |
| فَقُلْتُ بَلٰى فَأَهْدِهَا لِي فَقَالَ سَأَلْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ما عرض وکړو ولې نه، ما ته يې ضرور هديه کړه هغه وويل مونږ (يو څو صحابه) سوال وکړو د نبي عليه السلام |
| فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ ! كَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ فَإِنَّ اللهَ |
| نه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم تاسو باندې او ستاسو په اهل بيتو باندې مونږ درود څنګه ولولو ځکه الله تعالى |

قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكُم قَالَ : « قُولُوا

مونږ ته په تا باندې د سلامتې لیږلو طریقه ښودلې (خو د درود نه) حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل داسې وايې

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ

اې الله! محمد صلى الله عليه وسلم او آل محمد صلى الله عليه وسلم باندې رحمت نازل کړه څنګه چې تا رحمت نازل کړې

عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ

ؤ په ابراهیم علیه السلام او آل ابراهیم علیه السلام باندې بیشکه چې ستا صفت شوی دی او ته اوچت یې. اې

اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ

الله! محمد صلى الله عليه وسلم او آل محمد صلى الله عليه وسلم باندې برکت نازل کړه. لکه څنګه چې تا برکت نازل کړې

عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ». (بخاري، مسلم)[1]

ؤ په ابراهیم علیه السلام او آل ابراهیم علیه السلام باندې، بیشکه چې ستا صفت شوی دی.

إِلَّا أَنَّ مُسْلِمًا لَمْ يَذْكُرْ "عَلَى إِبْرَاهِيمَ فِي الْمَوْضِعَيْنِ.

**توضیح: کیف نسلم** : یعنې التحیات کې السلام علیک ایها النبي ورحمة الله وبرکاته الفاظو سره الله د سلام طریقه ښودلې ده، یعنې معراج کې حضور صلى الله عليه وسلم باندې الله تعالی په خپله سلام لوستلی ؤ اوس د صلوة طریقه وښایه ځکه چې قرآن کریم کې د صلوة او سلام دواړو حکم دی حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې درود ابراهیمي وائې، علماء لیکي، چې په ټولو درودونو کې افضل درود د مونځ والا دی، چې د لوستلو نه یې بریلوي حضرات محروم دي. (الکاشف ۲/۶۲۹، المرقات ۳/۶).

**آل محمد صلى الله عليه وسلم څوک دي؟** (آل) اهل او عیال ته ویل کېږي او تابعدارو ته هم (آل) ویل کېږي د (آل) تعین کې د علماء کرامو مختلف اقوال دي، د بعضې علماو د آل محمد صلى الله عليه وسلم نه صرف د حضور صلى الله عليه وسلم اهل او عیال مراد دي، بعضې حضرات فرمايي آل محمد صلى الله عليه وسلم نه تابعدار او فرمان بردار خلک مراد دي، هر مؤمن او متقي د حضور صلى الله عليه وسلم آل دی، بعضې حضرات فرمايي د آل محمد صلى الله عليه وسلم نه هغه اهل بیت مراد دي، چې هغوی د پاره صدقه اخیستل حرام دي. (الکاشف ۲/۶۳۰، المرقات ۵-۳/۷).

فخرالدین رازي رحمه الله فرمايي د حضور صلى الله عليه وسلم ازواج مطهرات او د حضور صلى الله عليه وسلم اولاد

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۶/۴۰۸، رقم الحديث ۳۳۷۰، ومسلم في الصحيح ۱/۳۰۵ رقم الحديث ۶۶-۴۰۶.

اهل بیتو کې شامل دي. مطلب دا دی ازواج مطهرات د اهل بیتو اولني مفهوم کې دا شامل دي، ددې نه پس نور خلک دې کې شامل دي او ازواج مطهرات خو خود په اهل بیتو کې شامل دي.

**على ابراهيم**: حدیث کې په درود سره حضرت ابراهیم علیه السلام ولې خاص شوی دی، ددې یوه وجه دا ده حضرت ابراهیم علیه السلام علی الاطلاق جد الانبیاء دی، دویمه وجه دا ده حضرت ابراهیم علیه السلام د حضور ﷺ خاص کر جدامجد دی، دریمه وجه دا ده چې حضور ﷺ د شریعت محمدي اصولي طور باندې د دین ابراهیمي تابع دی، چنانچه مکې والاو به ځان ته ابراهیمیان ویل او بعضې عبادتو کې به یې هم د هغه تابعداري کوله. (المرقات ۳/۷).

**دکما صلیت بحث**: **سوال**: د تشبیه قاعده ده چې ادنی تشبیه د اعلی سره ورکولی شي چې ادنی مشبه. د کامل مشبه به سره ملاؤ کړي که دا قاعده درود ابراهیمي کې ومنلی شي، دې سره د اسلام هغه عقیده متاثره کېږي، دې کې دا خبره منل شوې ده چې محمد ﷺ په ټولو انبیاو کې افضل دی. (المرقات ۳/۷).

**جواب**: علماء کرامو ددې سوال ډیر جوابات ورکړي دي بلکې بعضې علماو په دې لفظ باندې کتابونه لیکلي دي.

**اول جواب**: دا دی چې په تشبیه کې د اعلی سره د ادنی تشبیه قاعده اکثریه ده، قاعده کلیه نه ده، نو لهذا ذکر شوي صورت ددې قاعدې لاندې نه راځي.

**دوهم جواب**: دا دی چې د مشبه به قوي او اعلی او افضل کیدل ضروري نه دي، لکه اوضح او اظهر او اعرف کیدل ضروري دي، ځکه الله تعالی د خپل نور الهي تشبیه طاقچې او ډیوې اینودلی شوې سره داسې ورکړی: ﴿مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ الخ﴾ (سورة النور آیت: ۳٤) (المرقات ۳/۷).

په یو شاعر باندې چا اعتراض وکړو چې تا د بادشاه د سخاوت او شجاعت تشبیه د حاتم طائي او د عمرو سره ورکړه او په دې سره دې د بادشاه توهین وکړو داسې چې د اعلی تشبیه دې د ادنی سره ورکړې ده نو دې شاعر جواب ورکړو:

لا تنکروا ضربي له من دونه ۞ مثلاً شرودا في الندى والبأس

فالله قد ضرب الاقل لنوره ۞ مثلاً من المشكاة والنبراس

یعنې ما په سخاوت او شجاعت کې د کم تر ځیز سره چې کومه تشبیه ورکړې ده ته په دې باندې تنقید او اعتراض مه کوه ځکه چې الله تعالی د خپل نور تشبیه د یو کم تر ځیز طاقچه او فانونس سره ورکړې ده.

**دريم جواب**: دادې چې دلته تشبيه په نفس صلوة کې ده په کيفيت او کميت د صلوة کې نه ده يا په بل تعبير سره دلته اشتراک في النوع دی چې په نبي اکرم ﷺ باندې نوع صلوة وی په دې کې بحث نه دی چې کومه نوع اتم ده او کومه نوع غير اتم ده.

**څلورم جواب**: دادی چې دلته په کما صليت کې **کاف** لفظ زائد دی، نو بيا خو د تشبيه خبره ختم شوه.

دا جوابات علماء بيانوي زما په خيال ددې بحث څه ضرورت نشته دی ځکه چې په حضرت ابراهيم عليه السلام باندې د الله تعالى د خصوصي رحمت نزول شوې وو که چيرته دده دعاء د محمد ﷺ د پاره وغوښتل شي نو په دې کې څه حرج نشته دی.

## د درود ويلو مختلفې صيغې

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ: قَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ! كَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ؟ |
| دابو حميد ساعدي نه روايت دی وايي چې صحابو عرض وکړو يا رسول الله مونږ تا باندې څنګه درود وايو؟ |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: " قُوْلُوا: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَ أَزْوَاجِهِ |
| حضور ﷺ وفرمايل دا وايې: اې الله! رحمت نازل کړه په محمد ﷺ او دده په ازواجو |
| وَ ذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيْمَ وَ بَارِكْ |
| مطهراتو او دده په اولاد باندې، لکه څنګه چې تا په ابراهيم عليه السلام باندې رحمت نازل کړی ؤ، او برکت |
| عَلَى مُحَمَّدٍ وَ أَزْوَاجِهِ وَ ذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ |
| نازل کړه په محمد ﷺ او دده په ازواج مطهراتو او دده په اولاد باندې لکه څنګه چې تا برکت نازل |
| عَلَى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ "[1]. |
| کړی ؤ په ابراهيم عليه السلام باندې، بېشکه ته بزرګ او برتريې. |

**توضيح: وازواجه**: د درود الفاظ او صيغې مختلف انداز او الفاظو سره راغلي دي، دغه رنګ د مشکوة احاديثو کې هم مختلفې صيغې راغلې دي، علماء ددې متعلق کتابونه ليکلي څه صيغې احاديثو نه ثابت دي او څه د بزرګانو معمولاتو نه منقول دي، کومې صيغې چې د شان نبوت منافي نه وي، يا د شريعت د اصولي قواعدو مخالف نه وي. د هغې د لوستلو جواز شته.

علماء ليکي درود ابراهيمي ټولو نه افضل دی، بريلوي حضرات خپل ځان ته عاشقان رسول وايي،

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۴۰۷/۶، رقم الحديث ۳۳۶۹، ومسلم في الصحيح ۳۰۶/۱ رقم الحديث: ۶۹-۴۰۷.

معوي د درود لوستلو نه محروم دي، كوم چې مستند دي او د دوي درود كې غلطه عقيده پرته ده. په دلائل الخيرات كې د درود مختلف قسمونه موجود دي او مختلفو صيغو سره موجود دي.

## د درود ويلو فضائل

﴿٣﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ وَاحِدَةً

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه الصلاة والسلام فرمايي څوک چې ولولي په ما باندې درود

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرًا». (رَوَاهُ مُسلم)[1].

شريف يو ځلې الله تعالى به په دې باندې لس ځلې رحمت نازل كړي.

**توضيح: عشرا:** دې امت ته يو نيكى باندې لس نيكيانې ملاويږي، دې اصولو مطابق دلته يو درود باندې لس رحمتونو وعده شوې ده، د الله تعالى د طرف نه لس درود ه ليږلو مطلب د لس رحمتونو نزول دى، او س هيڅ اشكال نشته. شيخ عبد الحق رحمه الله دا جواب هم وركړى دى، ممكن دى چې د الله تعالى طرف نه حضور صلى الله عليه وسلم د پاره يو خصوصي درود زمونږ د زرو درودنو نه ډير افضل وي، څنګه چې ملغلره د زرو دراهمو نه افضل وي. (المرقات ۳/۱۱).

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿٤﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً وَاحِدَةً

د انس رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه السلام فرمايي كوم كس چې ما باندې يو ځلې درود ولولي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرَ صَلَوَاتٍ وَ حُطَّتْ عَنْهُ عَشْرُ خَطِيئَاتٍ وَ رُفِعَتْ

نو الله تعالى به نازل كړي په ده باندې لس رحمتونه او معاف به يې كړي لس ګناهونه او اوچتې به كړي

لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ»[2].

د ده لس درجې.

﴿٥﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوْلَى النَّاسِ بِي

د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي په خلكو كې نزدې خلک به ما

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۰۶/۱، رقم الحديث ۷۰ ۴۰۸

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۵۰/۳، رقم الحديث ۱۲۹۷

يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلَاةً ». ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ )[1].

ته د قيامت په ورځ هغه خلک وي، کوم چې ما باندې ډير درود لوستلو والا وي.

**توضيح**: اولى الناس: اى اقرب الناس يعني يو ځاى او سيدو والا ما سره ټولو نه نزدې هغه خلک وي، چې ډير درود لوستونکي وي، ځکه چې کثرت سره درود د کثرت يادېدلو دليل دى، او کثرت يادېدل د محبت دليل دى او د محبت صله معيت دى، ځکه جنت کې به حضور ﷺ سره وي. (المرقات ۳/۱۱).

ابن حبان ددې حديث وضاحت کې ليکي حضور ﷺ ددې بشارت عظمى مصداق محدثين دي، ځکه چې محدثين حديث لولي او ټولو نه ډير درود لولي.

## د درود د پاره حضور ﷺ حاضر نه وي

﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً سَيَّاحِينَ

دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور ﷺ فرمايي د الله تعالى ډيرې فرښتې دي

فِي الْأَرْضِ يُبَلِّغُونِي مِنْ أُمَّتِيَ السَّلَامَ»[2].

کومې چې ځمکې کې ګرځي زما د امت سلام ماته رارسوي.

**توضيح**: سياحين: يعني د فرښتو ګشتي ډله ده، صرف دې باندې ماموري دي، چې د دنيا په هر ګوټ کې څوک درود ولولي هغه فرښتې حضور ﷺ ته رسوي، اوس ددې ترتيب څنګه دى، هغه الله تعالى ښه پېژني، د تلو راتلو طريقه هم کيداى شي، برقي نظام غوندې هم کيداى شي، دا څه مشکل کار نه دى، ددې حديث تعلق هغه اشخاصو سره دى، چې لرې لرې علاقو کې درود لولي او کوم چې حضور ﷺ سره نزدې روضه اقدس سره لولي هغه په خپله حضور ﷺ اوري. د رسيدو ضرورت نشته. (المرقات ۳/۱۲).

دې حديث نه يو دا خبره ثابته شوه، چې حضور ﷺ ته قبر مبارک کې حيات دائمي حاصل دى، دويمه دا خبره ثابته شوه چې حضور ﷺ هر ځاى حاضر او ناظر نه دى، ګينې د فرښتو د پاره به ددې نظام؟ قائمولو ضرورت نه وو. او دې نه دا خبره هم ثابته شوه، چې حضور ﷺ غيب دان نه دى، بيا منځ کې د واسطو څه ضرورت وو، بعضې رواياتو کې راځي فرښتې د حضور

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۵٤/۱ رقم الحديث: ٤٨٤

(۲) أخرجه النسائي في السنن ٤۳/۳ رقم الحديث: ۱۲۸۲، والدارمي في السنن ٤۰۹/۲ رقم الحديث ۲۷۷٤.

ﷺ مخې تـه د درود لوسـتلو والا نـوم هـم اخلـي، چـې دا درود فـلان ابـن فـلان طـرف نـه دی.الحمد لله لوی سعادت دی چې په شاهي درګاه کې چې د یو فقیر تذکره وشي، دا څومره غټ نعمت او حاضري ده.

در مجلس آن نازنین حسرتی که از ما می‌رود

کوم شاعر څه ښه ویلي دي:

کلاه گوشه دهقان به آفتاب رسید که سایه بر سرش انداخت چون تو سلطانی

## حضور ﷺ سلام کونکو ته د سلام جواب ورکوي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ |
| دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام فرمایلي کوم کس چې په ما باندې درود ولولي |
| إِلَّا رَدَّ اللهُ عَلَيَّ رُوحِي حَتَّى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ»[1]. |
| نو الله تعالى زما روح ماته واپس کوي، تردې چې زه د سلام جواب ورکړم. |

**توضیح**: رد الله علی روحي: د اهل سنت والجماعت دا مسلمه عقیده ده، چې حضور ﷺ خپل قبر اطهر کې ژوندی دی، د مرګ نه پس الله تعالى هغه ته دائمي ژوند ورکړی. مسئله دا ده چې حیات الانبیاء کې د چا هم قابل ذکر اختلاف نشته، خو دې حدیث نه معلومه شوه، چې د حضور ﷺ حیات مستمره او دائمي نه دی، بلکې بعضې اوقاتو کې د سلام د جواب د پاره روح واپس کوي، یا د سلام جواب ورکولی شي، ددې سوال علماء او شارحین ډیر جوابونه کړي دي.(المرقات۳/۱۲).

علامه سیوطي رحمه الله تقریبا پنځلس جوابونه کړي، خو اصل درې یا دوه داسې دي چې کافي دي او زړه کې ځای نیسي. (المرقات۳/۱۲).

(۱) روحی لفظ چې کوم دی، دې نه مراد نطق دی، یعنې رد الله علي نطقي(کذا قال ابن حجر في فتح الباري)

(۲) الارد الله علي روحي جمله اصل کې حال واقع ده د قاعدې مطابق قد محذوف دی، اصل عبارت داسې دی:(الا وقد رد الله علی روحي) یعنې څوک چې هم سلام کوي حالت دا وي چې الله تعالى زما روح واپس کوي(کذا قال البیهقي و ابن حجر والسیوطي)

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۲/۵۳۴ رقم الحدیث : ۲۰۴۱

(۳) د حضور صلی الله علیه وسلم روح هر وخت د تجلیات الهی په مشاهده کې ملا اعلی کې مشغول وي او حضور صلی الله علیه وسلم مکمل دغې طرف ته متوجه دی، چې کله قبر سره څوک سلام کوي، د جواب د پاره روح واپس کوي، بیا حضور صلی الله علیه وسلم جواب ورکوي، دې جواب باندې اشکال دی چې، حضور صلی الله علیه وسلم باندې هر طرف نه هر وخت سلام پیش کولی شي، بیا د انفصال روح څه تصور کیدی شي، بهر حال دا د عالم برزخ مسئله ده، بهتره دا ده چې د چون چرا نه بغیر تسلیم کړی شي. حضور صلی الله علیه وسلم جواب ورکوي د نزدې خلکو سلام اوري او د لرې والاو سلام فرښتې ورته رارسوي او حضور صلی الله علیه وسلم جواب ورکوي، لکه څنګه چې راتلونکي حدیث کې راځي.

## د حیات النبی صلی الله علیه وسلم مسئله

دا مسئله نن سبا بعضې اطرافو کې ډیره سختۍ سره مخې ته راځي، یعنې خلک په کې اختلاف کوي، ځکه زه دلته اثبات حیاة النبی صلی الله علیه وسلم باندې یو څو ګزارشات کوم. ما په توضیحات جلد اول صفحه نمبر ۳۵۴ کې سماع موتی کې هم څه لیکل کړي دي، نه د چا اختلاف ذکر کوم او نه په دې کې د اختلاف ګنجائش شته، ټولو نه مخکې عرض دا دی چې عالم په درې قسمه دی: (۱) عالم دنیا (۲) عالم برزخ (۳) عالم آخرت.

عالم دنیا کې بدن متبوع او روح ددې تابع وي او د احکاماتو تعلق بدن سره دی. عالم برزخ کې روح متبوع او بدن ددې تابع وي او د احکامو تعلق روح سره وي. عالم آخرت کې دواړو حیثیت مساوي دی. دواړه مسؤل دي او د احکامو تعلق دواړو سره وي، ددې تفصیل هم توضیحات جلد اول کې تیر شوی دی، کله چې د دریو عوالمو خبره مخې ته راغله، نو معلومه شوه چې د بدن سره د روح تعلق په درې قسمه دی:

**اول**: د پیغمبرانو ابدان او اجساد دي ددې سره د روح تعلق دومره زور دی، چې بدن محفوظ کیدو سره ددې تعلق اثر دنیا باندې هم پریوځي، لهذا د یو نبی میراث هم نه تقسیمیږي، ځکه چې هغه میراث دی نه ځکه چې دژوندي کس میراث نه وي، همدارنګه د انبیاو علیهم السلام د ازواج مطهراتو سره نکاح هم نه کیږي دا د انبیاو علیهم السلام د ژوندي کیدو مضبوطه نښه او اثر دی.

**دویم**: د شهیدانو بدنونو سره د روح تعلق دی، ددې اثر دومره مضبوط او قوي وي، چې قبر کې یې بدن د پریدو او د چاودیدو نه محفوظ وي، خو ددې اثر په دنیا نه راځي، ځکه د د شهداو د زنانو سره نکاح جائز ده او د هغوی میراث تقسیمیږي.

**دریم**: د عام مسلمانانو بدنونه دي، دې سره د دوي د روح تعلق دومره کمزوری وي، چې دې سره د دوي بدنونه محفوظ نه وي، ها بعضې ځای یو خاص تعلق وي، هغه د نادر حکم کې دي، دې قاعده باندې پوهه کیدو نه پس ضروري خبرې واورئ.

اوله خبره دا ده: د قرآن کريم د نصوصو او احاديثو مقدسو د فرمان مطابق محمد ﷺ باندې هغه مرګ راغلی چې کوم په ټولو انسانانو باندې راځي او دې طرف ته ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾ (آل عمران: ۱۸۲) کې اشاره شوې ده او ﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ﴾ (زمر آيت: ۳۰) کې ددې اعلان شوی دی.

دويمه خبره دا ده: د حضور ﷺ د وفات نه پس د حضور ﷺ جسد اطهر سره د حضور ﷺ د روح داسې تعلق دی، چې ددې وجې نه حضور ﷺ قبر سره سلام اوري او جواب ورکوي.

دريمه خبره دا ده: حضور ﷺ باندې چې کوم مرګ راغلی وو د هغې نوعيت څنګه دی او ددې کيفيت څه دی، ددې د معلوميدو مونږ مکلف نه يوو، مونږ صرف ددې مکلف يوو، چې حضور ﷺ باندې طبعي مرګ راغلی، مونږ دا منو او انکار ترې نه کوو، دې کلام سره دا پټ والی لرې شو چې حضرت قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ د حضور ﷺ متعارف مرګ نه انکار کړی وو ځکه چې هغه د مرګ نه انکار نه دی کړی، بلکې مرګ منې ددې په کيفيت کې يې خبرې کړې دي دا يو ځان ته بحث دی چې مونږ ددې مکلف نه يو، د حضور ﷺ طبعي متعارف مرګ متعلق د حضرت نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ داسې اقرار کولو او اعتقاد يې ساتلو، حضرت نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ټول انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ته خاصکر حضور ﷺ ته ده مرګ نسبت کولو اعتقاد ضروري دی. (لطائف قاسميه ص ۴)

څلورمه خبره دا ده: عقائد دوه قسمه دي، يو هغه ضروري عقائد دي چې د هغې انکار سره سړی کافر کېږي دويم هغه عقائد دي چې د هغې منکر کافر نه دی، خو ګمراه او فاسق ګڼلی شي، اول قسم عقائدو د پاره د قطعي دليل ضرورت دی، دليل ظني کافي نه دی. دويم قسم عقائدو د اثبات د پاره دليل ظني کافي دی، دليل قطعي ضروري نه دی، علامه عبدالعزيز پرهاروي رَحِمَهُ اللهُ د شرح عقائد په شرح نبراس کې فرمايي:

**(ان المسائل الاعتقادية قسمان احدهما ما يكون المطلوب اليقين كوحدة الواجب و صدق النبي ﷺ . و ثانيهما ما يكتفى فيها بالظن كهذه المسئلة والاكتفاء بالدليل الظني انما لا يجوز في الاول بخلاف الثاني) . (نبراس، ص ۵۹۸)**

حياة النبي ﷺ د پاره زه اوس دلائل پيش کوم، توضيح او د تشريح کولو امکان نشته.

**اولنی دليل:** حضرت اوس بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی، مشکوة کې، ص ۱۲۰ باندې مذکور دی:

**(قالوا يارسول الله ﷺ كيف تعرض صلوتنا عليك و قد ارمت اى يقولون قد بليت قال ان الله عزوجل حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء) (سنن نسائي، ابوداود، دارمي، ابن ماجه، بيهقي)**

**و قد صح هذا الحديث ابن خزيمة و ابن حبان والدار قطني والنووي في الاذكار (ابن كثير ج ۳ ص ٥١٤)**
ددې حديث سند مستند دی صحابه کرامو رضي الله عنهم درود و سلام نه اوريدلو د پاره دليل پيش کړو چې د حضور صلى الله عليه وسلم جسم مبارک ريزه ريزه کړی شي، نو درود به څنګه اوري، حضور صلى الله عليه وسلم جواب ورکړو بدن به سالم وي دا حقيقت کې ددې سوال جواب وو، تاسو وايې درود او سلام پيش کولی نشي، ځکه چې حضور صلى الله عليه وسلم ژوندی نه دی، نو څنګه به يې اوري، زه وايم چې زه يې اورم، ځکه چې زما جسم مبارک به محفوظ وي، محفوظ کيدو مطلب دا دی چې زه به ژوندی يم او ژوندی کس اوري. خلاصه دا چې صرف د اجساد و د حفاظت خبره نه ده، بلکې د صحابو د عدم حيات د تصور پوره پوره جواب دی.

**دويم جواب**: د حضرت ابو درداء رضي الله عنه چې کوم حديث مشکوة (ص،۱۲۱) باندې مذکور دي د هغې ځو الفاظ دا دي: (**قال قلت و بعد الموت قال ان الله عزوجل حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء فنبى الله حى يرزق.** (رواه ابن ماجه)

**قال ابن حجر رجاله ثقات و قال الشوكاني سنده جيد و قال الملا على قاري باسناد جيد نقله ميرک عن المنذرى وله طرق كثيرة بالفاظ مختلفة) (مرقات ج ۳ ص ۲٤۲) (المرقات ۳/٤٦٠).**
د کثرت طرقو د وجې نه دا حديث صفا (صحيح) دی، اګر چې ده باندې د انقطاع يا ارسال اعتراض شوی دی، خو دا د کثرت طرق د وجې نه بې ځای دی.
دغه رنګ د يو مرفوع حديث په باره کې دا ويل هم بې ځايه دي، چې نبي الله حی يرزق جمله مدرج ده، آخر ولې مدرج ده، څه دليل دی که مدرج هم وي، نو حياة النبی صلى الله عليه وسلم د پاره ددې جملې باقي حصه هم کافي ده او ددې نه مخکې کوم حديث چې تير شو هغه کافي دی، ځکه چې د بقاء د جسد جواب ددې سوال نه پس راغلی چې د مرګ نه پس درود و سلام څنګه پيش کولی شي، چې جسم باقي نه دی، جواب ورکړی شو چې کېږي، ځکه چې د نبی صلى الله عليه وسلم جسم محفوظ دی، يعنې نبی صلى الله عليه وسلم ژوندې دی.

**دريم دليل**: ابو يعلى موصلي سند سره د حضرت انس رضي الله عنه حديث نقل کړی دی، الفاظ دا دي: (**و عن انس قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الانبياء احياء في قبورهم**)
**مسند ابويعلى موصلي وكذا نقله** علامه تقی الدين السبکی چې امام بيهقي رحمه الله ددې حديث تصحيح کړې ده، بيا ابن حجر، قاضي شوکاني، ملا علي قاري او انور شاه کشميري رحمهم الله دې ته صحيح ويلي. ملا علي قاري رحمه الله الفاظ دا دي: **صح خبر الانبياء احياء في قبورهم يصلون** (مرقات

ج۲ ص ۲۴۱).(المرقات ۳/۴۶۰).

**څلورم دليل**: زير بحث حديث د ابوهريره رضي الله عنه دى، دې کې حتى ارد عليه السلام الفاظ دي.

**پنځم دليل**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت مشکوة(ص، ۸۷) باندې دى. الفاظ يې دا دي: (**عن ابى هريرة رضي الله عنه قال قال** رسول الله ﷺ **من صلى علي عند قبري سمعته و من صلى علي نائياً ابلغته) (بيهقي)**

دا احاديث د اهل السنة والجماعة د مسلک دلائل وو، کله چې يو حديث ثابت دى. تاسو ولې د هغې د ضعف کوشش کوئ؟، آيا داسې بل صحيح روايت او حديث نشته چې مونږ په عدم حيات النبى ﷺ باندې مجبوره کوئ، يا يوه اجماع د امت وي، چې مونږ ته د عدم حياة النبى ﷺ دعوت راکوي چې مونږ يې قبول کړو، که څوک ووايې چې قرآن کريم اعلان کوي ﴿**إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ**﴾ د دې نه مرګ ثابت دى، زه وايم که دا مرګ داسې وي چې د دې نه پس حيات نشته. نو بيا د مرګ نه پس دائمي مرګ او منه او اعلان وکړه بعثت بعد الموت نشته، حشر نشر نشته، جنت دوزخ د دې ثواب او عذاب نشته، ځکه چې مرګ ابدي او دائمي دى، او که دا اعلان نه شئ کولى. نو او منئ چې د دې آيت کې د هغه د مرګ ذکر دى، چې هغې نه پس حيات نشته، نو بيا دا منل ضروري دي، احاديثو کې چې د حضور ﷺ د پاره قبر کې کوم حيات ثابت دى، هغه ناقابل ترديد حقيقت دى، او د دې نه انکار ډير خطرناک دى، باقي د قبر نه يوه معمه جوړولو ضرورت نشته قبر اګر چې يو اوږد برزخي مقام دى، خاص کنده نه ده، خو ياد ساتئ چې مخصوص قبر او مخصوص کنده د قبر لفظ اولني مصداق ؤ، هغې طرف ته ډيرې اشارې نصوصو کې شوې دي او ډيرو اهل لغتو د دې تصريح کړې ده، ګويا برزخ رومبى د منزل قبر دى د قبر نه برزخ شروع کيږي، هلته هم قبر دى.

**شپږم دليل**:

**قال الله تعالى**: ﴿**بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ**﴾ (**سورة آل عمران آيت : ۱۶۹**).

دا آيت د شهيدانو باره کې دى، چې د شهدا او دا مقام دى، نو د انبياو مقام خو به د دې نه ارفع او اعلى وي، دې کې څه قسمه تاويل او د شک ګنجائش نشته دى او نه ضرورت شته.

(۱) علامه بدرالدين عيني رحمه الله شارح بخاري عمدة القاري(ج١٦، ص۳۵) باندې فرمايي :

**قلت لا اشکال في هذا اصلا وذلک ان الانبياء عليهم الصلوة والسلام افضل من الشهداء والشهداء احياء عند ربهم فالانبياء بطريق الاولى.**

(۲) دغه رنګ عبارت د حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ هم دی، دا حضرات د دې حديث وضاحت فرمايي هغې کې راغلي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ليدلی وو، چې قبر کې يې مونځ کولو. الفاظ دا دي: (مررت على موسى ليلة أسرى بي عند الكثيب الاحمر وهو قائم يصلي في قبره. (مسلم)

(۳) شوکاني نيل الاوطار کې ليکي:

وو رود النص في كتاب الله في حق الشهداء انهم احياء يرزقون و ان الحياة فيهم متعلقه بالجسد فكيف بالانبياء والمرسلين.

(۴) علامه سخاوي خپل مشهور کتاب القول البديع کې فرمايي:

نحن نؤمن ونصدق بأنه حي يُرزق وان جسده الشريف لا تأكله الارض والاجماع على هذا.

(۵) د يوولسمې صدۍ مشهور محدث علامه محمد بن علان صديقي دليل الفالحين لطرق رياض الصالحين کې د حياة النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اثبات په باره کې ليکي: للنصوص والاجماع على انه حي في قبره على الدوام. (ص۲۰۲ ج٤)

(٦) فقيه النفس حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي فتاوی رشيديه کې ليکي: انبياء يې ځکه مستثنی کړي دي، چې د دوي په سماع کې اختلاف نشته. (ص ۵۹)

دا ټول دلائل او حوالې جات د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حيات دائمي د پاره کافي شافي دي، د مقابلې او مجادلې څه علاج نشته، که د دلائلو په ميدان کې شي، دومره ډير دلائلو نه پس دغه اجماعي عقيده کې شک او تردد کول لوی جرات دی، خو څه وکړو طبيعت پرستې شريعت باندې غالبه راغلې ده، يو طرف ته داسې افراط دې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حاضر او ناظر ګڼي، هر ځای کې د دوي درود او سلام آوري او دويم طرف روضه اطهر باندې حاضرۍ په دوران کې سلام پيش کول يو تصور ګڼلی شي او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حيات طيبه نه هر قسمه انکار کوي. (فالى الله المشتكى)

## د اکابرو علماو او فقهاو يو څو حوالې:

(۱) قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ کتاب (شفاء شرح شفاء) کې ليکي ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي:

(فمن المعتقد المعتمد انه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حي في قبره كسائر الانبياء في قبورهم وهم احياء عند ربهم و ان لارواحهم تعلقا بالعالم العلوي والسفلي كما كانوا في الحال الدنيوي فهم بحسب القلب عرشيون و باعتبار القالب فرشيون.) (شفاء ج ۲ ص ۹۹. بهامش نسيم الرياض)

(۲) مشهور حنفي عالم علامه سيد الوسي بغدادي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي:

(واختلف في هذه الحياة فمذهب كثير من السلف انها حقيقة بالروح والجسد ولكنا لا ندركها في هذه النشأة)

بیا یو څو اقوال نقل کولو نه پس دې مذکور قول ته داسې ترجیح ورکوي:

والمشهور ترجيح القول الاول. (روح المعاني ج۲ ص۲۰)

(۳) مشهور شافعي مفسر علامه فخر الدين رازي رَحِمَهُ اللَّهُ دې مسئلې کې یو څو اقوال نقل کولو سره حیاة انبیاء باندې داسې فیصله کوي: الاول انهم في الوقت احياء كأن الله تعالى احياهم لا يصال الثواب اليهم وهذا قول اكثر المفسرين.

بیا یو څو کلماتو نه پس دوباره فیصله آوروي:

واعلم ان اكثر العلماء على ترجيح القول الاول. (تفسير كبير ج٤ ص ١٦٣)

(۴) د احنافو مشهور مفتي او مستند عالم ابن عابدین شامي رَحِمَهُ اللَّهُ موانع ارث باندې خپل کتاب (الرحيق المختوم) لیکلی دی هغې کې فرمایي: (عدم موت المورث بناء على ان الانبياء احياء في قبورهم كما ورد في الحديث. (رسائل ابن عابدين ج ۲ ص ۲۰۲)

امام ابو الحسن اشعري رَحِمَهُ اللَّهُ د یو غلط قول تردید کولو کې فرمایي:

(لان الانبياء عليهم الصلوة والسلام احياء في قبورهم. (رد المختار، ج۳، ص ۲۵۹)

مشهور حنفي فقیه عالم علامه حسن بن عمار سرنبدالي رَحِمَهُ اللَّهُ نور الایضاح کې د زيارة النبي ﷺ متعلق لیکي: و مما هو مقرر عند المحققين انه صلى الله عليه وسلم حي يرزق ممتع بجميع الملذات والعبادات. (نور الايضاح ص ۱۸۹، ۱۸۷)

(۵) قاضي شوکاني نیل الاوطار کې فرمایي:

قال المتكلمون المحققون من اصحابنا ان نبينا ﷺ حي بعد وفاته. (ج۵ ص۱۰۱)

## د زمانې عجائبات

د زمانې څه عجیبه حالات دي او ددې انقلابات حیرانوونکي او باعث د عبرت دي، د حجاز په علماو باندې یو دور داسې راغلی وو چې حیاة النبی مسئلې ته یې ډیر زور ورکړی وو، او د عالم په اطرافو کې یې د حیاة النبی د عقیدې نشر او اشاعت کولو، او ددې مسئلې په مخالفینو باندې طعن کوه، او په هغوی باندې د کفر او ګمراهی فتوې لګولې، کله چې هندوستان کې مولوي احمد رضا خان بریلوي د فتنې بدعت خبره راغله، هغه او غوښتل چې د علماء حجاز په ذریعې سره د دیوبند علماء بدنام شي او

دوي باندې د کفر فتوی ولږي، ځکه يې غلطې استفتاء په ذريعې سره د علماء ديوبند خلاف يو فتوی تياره کړه، ددې نوم حسام الحرمين ايخودی وو او علماء حرمين په ناواقفی سره دستخط کړې وو. علماء حجاز ته چې اندازه اوشوه چې دا استفتاء غلطو موادو باندې پیش شوې ده، هغوئ بيا (۲۶) سوالاتو باندې مشتمل يو مسوده تياره کړه او د يوې مسئلې متعلق يې سوال وکړو، د علماء ديوبند نه حضرت خليل احمد سهارنپوري رَحِمَهُ اللهُ علماء ديوبند طرف نه جواب ورکړو او د رضا خان د غلطو موادو رد يې وکړو، چې دې نه يو کتاب تيار شو، چې د هغې نوم المهند على المفند کيښودلی شو. د علماء حجاز سوالاتو کې د حضور ﷺ حياة بعد الوفات د سوال جواب په ذريعې سره ځه لږ ځای د طعن ګرځولی وو، چې دا خلک حياة النبی ﷺ نه منکر دي او د حجاز علماء په علماء ديوبند باندې طعن ځکه کوي، چې د حياة النبی ﷺ قائل دي، دې تغيراتو ته اوګورئ.

**السوال الخامس: ما قولكم في حيات النبي ﷺ في قبره الشريف هل ذلك امر مخصوص به ام مثل سائر المؤمنين حياته برزخية؟**

**الجواب: عندنا و عند مشائخنا حضرة الرسالة ﷺ حي في قبره الشريف و حياته دنيوية من غير تكليف وهي مختصة به و بجميع الانبياء والشهداء لا برزخية كما هي حاصلة لسائر المؤمنين بل لجميع الناس كما نص عليه العلامة السيوطي في رسالته أنباء الأذكياء بحياة الانبياء حيث قال قال الشيخ تقي الدين السبكي حياة الانبياء والشهداء في القبر كحياتهم في الدنيا و يشهد له صلوة موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ في قبره فان الصلوة تستدعي جسدا حيا الى آخر ما قال فثبت بهذا ان حياته دنيوية برزخية لكونها في عالم البرزخ.(ص۳۷ تا ۳۹)**

دې سوال او جواب نه يو خو د زمانې عجيبه انداز معلوميږي، هغه وخت د حجاز د علماو خيالات څنګه وو او نن څنګه دي، نن هغه حضرات د حياة النبی ﷺ خبره عمومي طور باندې بدعت او زندقه علامت ګڼي او خلک په دغه بناء باندې ځان ته محبوب او معتوب کوي. رښتيا دي چې:

*انقلابات جہاں واعظ رب ہیں دیکھو ❁ ہر تغیر سے صدا آتی ہے فافہم فافہم*

د بره جواب د عبارت نه د يو داسې خبرې وضاحت هم وشو، زما په خيال پاکستان کې بعضې جذباتي حضرات د اختلاف بنيادګر او مرکزي ګاڼي دي، هغه خبره دا ده کوم عبارت کې چې دا خبره راځي چې حضور ﷺ حيات دنيوي دی، مخالفين دا ګڼي چې مرګ ورباندې نه دی راغلی او د مرګ نه انکار کولی شي. نو هغه مرګ والا آيت قرآن کريم کې لولي، حالانکې دا خبره نکاره ده،

د طبعي مرګ نه انکار هیڅوک هم نه کوي نن سبا حزب الله او جماعت مسلمین وغیره شرپسند دې طرز باندې عمل کونکي دي، حالانکې یو مسلمان دا هم نه شي ویلی چې حضور ﷺ دنیا کې دی، بلکې د نیوي حیات مطلب دا دی کله چې تاسو دنیا کې حیات وئ دغه رنګ حیاة د هغوی قبر مبارک کې هم دی، دې کې استبعاد وکړو، بلکې ډیر ممکن دی، چې هغه حیات دنیا والا حیات نه ډیر اقوی دی.

حضور ﷺ حضرت فاطمې رضي الله عنها ته وفرمایل تولو نه مخکې به ته زما سره ملاویږې، په دې حضرت فاطمة رضي الله عنها خوشحاله شوه، دا میلاویدل آخر څه دي ښکاره خبره ده، هغه به څه خوشحالي راحت وي، چې د دنیا ژوند په شان وي، بلکې دد ښه اقوی او اعلی ژوند شته او هغه ژوند د برزخ دی او قبر د برزخ یوه حصه ده، دې کې د جګړې څه دي، بره عبارت کې دنیویة برزخیة دغه مطلب دی، او دنیویة لفظ د حضور ﷺ د حیاة د پاره استعمالول ډیر ضروري دي، یو خو ددې وجې نه چې سائل باقاعده ددې سوال کړی وو، دویمه وجه دا برزخي حیات خو عام مسلمانانو د پاره حاصل وي، یا د انبیاو او شهداو حیات قرآن کریم او حدیث کې دومره اهتمام سره ولې بیانولی شي، ددې ضرورت څه دی، زه بیا وایم ددې (دنیویه) لفظ نه بعضې دنیادارو ته دهوکه لګیدلې ده، کوم چې حزب الله او جماعت المسلمین په شکل کې په مسلمانانو کې فرقې پیدا کوي، هغوئ پوهیږي دنیویه ویلو سره دنیا کې موجود کیدل لازم راغلل، حالانکې دا مطلب نه دی.

دلته عجیبه خبره ده، کوم خلک چې د انبیاو په عدم حیات باندې بحث کوي، هغوئ وایي چې مونږ حیات منو، خو مونږ برزخي حیات منو، بیا چې د هغوئ نه تپوس اوکړی شي، انبیاو ته په قبرونو کې حیات حاصل دی، او قبر هم د برزخ یوه حصه ده، نو دغه حضرات وایي چې برزخي حیات خو عامو انسانانو ته هم حاصل دی، دې کې د انبیاو خاص کولو څه ضرورت دی.

سبحان الله! عجیبه خلک دي، نه دنیوي حیات منلو ته تیار دي او نه برزخي حیات کې فرق کولو ته تیار دي، بس دا غواړي چې انبیاء کرام هم د عامو مسلمانانو په شان لائن کې ودرول په کار دي، چرته چې مسلمانان او غیر مسلم ټول ولاړ دي. (اناالله وانا الیه راجعون)

مونږ وایو حیات الانبیاء په باره کې زمونږ هغه عقیده ده کومه چې د احادیثو او اجماع امت نه ثابته ده او کومه چې د اهل سنت والجماعت او علماء دیوبند عقیده ده.

کفر است در طریقت ما کینه داشتن ❁ آئین ماست سینه چون آئینه داشتن

## د کورونو نه قبرستان مه جوړوئ

﴿۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : « لَا تَجْعَلُوا

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې ما د حضور ﷺ اوریدلي چې ویل یې تاسې مه ساتئ

بُيُوْتَكُمْ قُبُوْرًا وَلَا تَجْعَلُوا قَبْرِيْ عِيدًا وَ صَلُّوا عَلَيَّ فَإِنَّ
کورونه خپل د قبرونو په شان او زما په قبر باندې اختر مه جوړوئ، ما باندې درود وايې تاسو چې کوم

صَلَاتَكُمْ تَبلُغنِيْ حَيْثُ كُنْتُم» .[1]

ځای کې يې ستاسو درود ماته رارسي.

**توضيح**: **لاتجعلوا**: ددې جملې درې مطالبه دي، ړومبی دا چې خپلو کورونو کې داسې مۀ کېږئ چې کور کې نه عبادت وي، نه مونځ وي، نه ذکر او اذکار وي، دغه رنګ قبرونو کې مړي وي، صرف پراته وي، بلکې تاسو د کور ماحول د عبادت ماحول جوړ کړئ، چې کورونو کې برکت راشي چې ستاسو اولاد هم داسې طريقې سره عادت شي، ددې صورت دا دی فرائضو نه علاوه نوافل او ذکر کورونو کې کوئ. (المرقات ۲/۱۲-۳/۱۳).

دويم مطلب دا دی خپل مړي کورونو کې مۀ دفن کوئ، ځکه چې تدفين د پاره قبرستان مقرر دی، حضور ﷺ د عائشې رضي الله عنها حجره کې ځکه دفن کړو، چې د انبياو د خصوصياتو نه يو دا هم دی، چې کوم ځای کې پيغمبر وفات شي هلته يې دفن کوئ حضور ﷺ انتقال د عائشې رضي الله عنها حجره کې شوی وو، ځکه هلته يې تدفين دی.

دريم مطلب دا دی قبرستان خپل کور مۀ جوړوئ هلته لاړ شي او منجاور جوړ شي او ډيره واچوې، دې سره د زيارة القبور مقصد فوت کېږي چې دا نرم والی د زړه دی، بلکې کله کله زيارت کوئ، چې عظمت او احترام باقي پاتې شي، ملاعلي قاري رحمه الله نور مطالب هم ذکر کړي دي، خو د حديث کلام نه داسې معلومېږي چې اوله معنی راجح او ډيره واضح ده.(المرقات ۳/۱۳).

**ولاتجعلوا قبري عيدا**: ددې کلام مطلب دا دی چې زما قبر نه ميله مه جوړوئ، ميله کې هر قسم حالت راځي، ددې حديث جزء باندې الحمد الله نن سبا مدينه منوره کې ښه عمل روان دی، هلته د دنيا خلک جمع کېږي، ذکر، اذکار، درود و سلام فضاء قائموي، (المرقات ۱۳-۳/۱۴، الکاشف ۲/۴۳۵).

د حديث ددې جملې نه په بدعتيانو او مشرکانو او د رسم او رواج د خيټې په عاشقانو ښه رد دی، کوم چې د خيټې او خواهش نفس په خاطر د اولياء الله په مزارونو باندې د بدعت او شرک او رسمونو فضاء قائموي، چې د قرآن او حديث پسې مزاق کولی شي او قبرونو د پاره منل شوې حلواګانې خوري، او د شرک او د بدعت چغې وهي او هيڅ نه شرمېږي.

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ۲/۵۳۴ رقم الحديث: ۲۰۴۲

**وصلوا علي:** شيخ عبد الحق رحمه الله لمعات کې ليکي حضور ﷺ روضه اطهر باندې د سې جتماع نه منع فرمايلې، يو قدرتي سوال پيدا کېږي، فـ سره يو ځای کيدو سره درود و سلام پيش کول مقصود وي، دې نه څنګه منع کړی او که منع شي بيا به څه کوی، درود او سلام به څنګه پيش کولی شي. ددې جواب دې جملې سره ورکړی شو، تاسو چې کوم ځای کې يې هغه ځای نه درود و يې تاسو درود ما ته رارسي. د هغې فکر مه کوئ. يعنې حضور بالاقوال و لقلوب کافي دی، حضور ﷺ بالابدان په ځای قولي حاضري کافي شفي کښئ (المرقات ۱۳-۱۴ ۳، الکاشف ۴۳۵ ۲).

**حبيب غاب عن عيني و جسمي ۞ وعن قلبي حبيب لا يغيب** (اشعة اللمعات ۴۳۷-۱/۴۳۸)

يعني:

دل کے آئینے میں ہے تصویر یار ۞ جب ذرا گردن جھکائی دیکھ لی

## د درود په نه ويلو باندې وعيد

﴿۹﴾ وَ عَنْهُ قال : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « رَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ وَ رَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ دَخَلَ عَلَيْهِ رَمَضَانُ ثُمَّ انْسَلَخَ قَبْلَ أَنْ يُغْفَرَ لَهُ وَ رَغِمَ أَنْفُ رَجُلٍ أَدْرَكَ عِنْدَهُ أَبَوَاهُ الْكِبَرَ أَوْ أَحَدُهُمَا فَلَمْ يُدْخِلَاهُ الْجَنَّةَ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1].

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور ﷺ فرمايي په خاورو دې ککړه وي پوزه د هغه کس چې د هغې مخکې زما ذکر وشي او ما باندې درود ونه وايي او دغه رنګ د هغه کس پوزه چې راشي پرې روژه او د هغه بخښنه ونه شي او همدا رنګې د هغه کس پوزه دې هم په خاورو ککړه شي چې ده سره ژوندي وي بوډاګان مور او پلار او يا يو په دوي کې او دی جنت ته داخل نه شي.

**توضيح: رغم اى لصق الله بالرغام اى التراب:** يعنې د هغه کس پوزه دې خاورې شي. چې ما باندې يو ځلې درود ونه لولي، ځکه چې يو ځلې درود لوستل واجب دي، بار بار درود لوستل مستحب دي، مطلق وعيد تعلق د دنيا سره دی، د آخرت وعيد ذکر نه دی، ځکه چې پوزه خاورې کيدل سزا د دنيا ده، دې نه معلومه شوه بار بار درود لوستل واجب نه دي، بلکې مستحب دي. دويم هغه کس چې د روژې مياشت پرې راشي. خو د جنت ته د تلو والا جوړ نه شي، ځکه چې د روژې حق يې اداء نه کړو.

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۱۴ رقم الحديث: ۳۵۴۵، وأحمد في المسند ۲/۲۵٤.

دریم هغه کس چې پوزه دې خاورې شي چې د ې خپل یو مور یا پلار یا دواړه په حالت د بوډا والي کې وینې او هغه رنګ قدر او خدمت یې ورله ونه کړه، چې جنت ته پرې داخل شي، نو دا کس لوی بدبخت دی. (المرقات ۳/۱۴)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَاءَ ذَاتَ يَوْمٍ وَ |
| د طلحه رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې (یو ورځ) حضور ﷺ (زمونږ خواته) تشریف راوړو او |
| الْبِشْرُ فِي وَجْهِهِ |
| دغه وخت د حضور ﷺ په مخ مبارک باندې خوشحالي وه، حضور ﷺ (صحابه ته پس |
| فَقَالَ : إِنَّهُ جَاءَنِي جِبْرِيلُ فَقَالَ : إِنَّ رَبَّكَ يَقُولُ : |
| کولو نه پس یا مخکې) وفرمایل زما خواته جبرائیل راغلی، هغه وویل چې پروردګار فرمایي ای محمد |
| أَمَا يُرْضِيكَ يَا مُحَمَّدُ أَنْ لَا يُصَلِّيَ عَلَيْكَ أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِكَ إِلَّا |
| ﷺ آیا ته د دې خبرې نه راضي نه یې چې ستا امت کې څوک په تا باندې یو ځلې درود ولولي زه هغه |
| صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا وَلَا يُسَلِّمُ عَلَيْكَ أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِكَ إِلَّا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا[1]. |
| باندې لس ځلې رحمت نازلوم او څوک چې یو ځلې په تا باندې سلام ووایي هغه باندې لس ځلې سلام زه لیږم. |

## په درود او سلام لیږلو سره د دین او دنیا ضروریات پوره کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُكْثِرُ الصَّلَاةَ عَلَيْكَ |
| د ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې ما عرض وکړو یا رسول الله! زه په تاسو باندې ډیر زیات درود |
| فَكَمْ أَجْعَلُ لَكَ مِنْ |
| وایم تاسو ووایئ ما چې د خپل ځان د پاره د دعا د پاره څومره وخت مقرر کړی دی هغې کې څومره وخت |
| صَلَاتِي ؟ فَقَالَ : « مَا شِئْتَ » قُلْتُ : الرُّبُعَ ؟ |
| تاسو باندې درود ووایم نبي علیه السلام وفرمایل څومره چې ستا سو زړه غواړي ما عرض وکړو آیا څلورمه حصه |
| قَالَ : « مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ » . قُلْتُ : النِّصْفَ ؟ |
| وې فرمایل څومره چې ستا زړه غواړي او که ډیر مقرر کړی ستا د پاره بهتره ده ما عرض وکړو نو نیمایی (وخت |

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۳/۵۰ رقم الحديث : ۱۲۹۵ ، والدارمي في السنن ۲/۴۰۸ رقم الحديث : ۲۷۷۳.

| |
|---|
| قَالَ : « مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ » |
| مقرركړم) حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل څومره چې ستا زړه غواړي او كه ډير مقرر كړې ستا سو د پاره بهتر دى |
| قُلْتُ : فَالثُّلُثَيْنِ ؟ قَالَ : « مَا شِئْتَ فَإِنْ زِدْتَ |
| ما عرض وكړو بيا دوه حصې مقرر كړم حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل څومره ستا سو زړه غواړي او كه ډير مقرر |
| فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ » قُلْتُ : أَجْعَلُ لَكَ صَلَاتِي كُلَّهَا ؟ |
| شي نو به بهتره ده ما عرض وكړو بيا زه به د خپلې دعا ټول وخت ستا سو د درود د پاره مقرر وم نبي عليه السلام |
| قَالَ : « إِذًا تُكْفَى هَمُّكَ وَ يُكَفَّرُ لَكَ ذَنْبُكَ » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| وفرمايل دا ستا سو د پاره كافي دى او ستا سو د دين او د دنيا مقاصد پوره كوي او ستا سو ګناه به معاف شي. |

**توضيح: اكثر الصلوة:** مطلب دا دى چې زه ډير نه ډير درود ليږلو اراده ساتم، تاسو د دې حد متعين كړئ، يا مطلب دا دى يارسول الله صلى الله عليه وسلم زه خپل ذات د پاره ډيرې دعاګانې كوم او س زه غواړم د دعا په دغه وختونو كې په تاسو باندې درود ووايم، لهذا تاسو متعين كړئ چې څومره ووايم، دې جواب كې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل څومره چې ته غواړې په خپله وخت متعين كړه، نو صحابي وفرمايل كه څلورمه حصه مقرر كړم، خو حضور صلى الله عليه وسلم پرې تحديد ونه كړو بلكې وې فرمايل چې څومره ويلى شې، تردې چې دغه صحابي نيم ياد كړو، بيا يې دوه حصې، خو حضور صلى الله عليه وسلم به ورله دغه جواب وركولو، چې څومره ستا مرضي وي، چې څومره ډير وي ستا په كې فائده ده، بيا صحابي وفرمايل، چې زه خپل ټول وخت درود كې خرچ كوم، نو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل دا خو ستا د پاره د دنيا او آخرت ضروريات پوره كوي او ستا ټول ګناهونه به معاف كړي، (المرقات ۲/۱۶).

ددې حديث نه معلومه شوه چې د درود د لوستلو ډيرې فائدې دي، د شمار حد او شرط په كې نشته، حضرت كعب رضي الله عنه د خپلو اورادو او وظائفو وختونه د درود د پاره وقف كړل، په دې سره نبي اكرم صلى الله عليه وسلم د طرف نه هغه ته انعام بشارت ملاو شو، چې د ټول امت د پاره بشارت دى.

## د درود نه پس غوښتلى شوې دعاء قبليږي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ: بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَاعِدٌ إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ |
| د فضاله بن عبيد رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې (يو ورځ) حضور صلى الله عليه وسلم ناست وُ چې يو كس راغى |

فَصَلَّى فَقَالَ : اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَ ارْحَمْنِي فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

او مونځ يې وکړو او بيا يې دا دعا وکړه: اللهم اغفرلي وارحمني حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل ای

« عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي إِذَا صَلَّيْتَ فَقَعَدْتَ

مونځ کوونکيه تا (دعا، ترتيب پرېښودو سره) جلتي وکړه او وې فرمايل مونځ بې وکړه او کېنه دالله تعالى

فَاحْمَدِ اللهَ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ وَ صَلِّ عَلَيَّ ثُمَّ ادْعُهُ ».

تعريف بيان کړه، څنګه چې د تعريف اهل دی او ما باندې درود ولوله بيا د الله تعالى نه وغواړه، فضاله

قَالَ : ثُمَّ صَلَّى رَجُلٌ آخَرُ بَعْدَ ذٰلِكَ فَحَمِدَ اللهَ وَ صَلَّى عَلَى

رضي الله عنه وايي دې نه پس يو بل کس مونځ وکړو هغه دالله تعالى تعريف هم وکړو او درود يې ولوستلو په

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَيُّهَا الْمُصَلِّي

حضور صلی الله علیه وسلم باندې (خو دعا يې ونه کړه) حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته وفرمايل ای مونځ کوونکيه

ادْعُ تُجَبْ» (وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ نَحوه)[1].

دعاء هم کوه، چې قبوله شي.

## د فرضونه پس دعاء کول ثابت دي

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : كُنْتُ أُصَلِّي وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې يو ورځ ما مونځ کولو او نبي عليه السلام هم هلته موجود

وَ أَبُو بَكْرٍ وَ عُمَرُ مَعَهُ فَلَمَّا جَلَسْتُ

او نبي عليه السلام سره ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمر فاروق رضي الله عنه هم حاضر وو چې مونځ نه پس زه کيناستم

بَدَأْتُ بِالثَّنَاءِ عَلَى اللهِ تَعَالَى ثُمَّ الصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثُمَّ

دالله تعالى تعريف مې شروع کړو، بيا مې په نبي عليه السلام باندې درود ولوستلو، بيا د هغې نه وروسته مې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥ ٤٨٢ رقم الحديث ٣٤٧٦، وأخرجه النسائي في السنن ٣/٤٤ رقم الحديث : ١٢٨٤.

دَعَوْتُ لِنَفْسِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « سَلْ تُعْطَهْ سَلْ تُعْطَهْ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

خپل (ديني او دنياوي مقاصدو) دپاره دعا. وغوښتله نبي عليه السلام وفرمايل غواړه ضرور به دې د عا قبليږي.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

### د نبي امي مطلب

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « مَنْ سَرَّهُ |
| دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي د کوم کس چې دا خوښه وي چې |
| أَنْ يَكْتَالَ بِالْمِكْيَالِ الْأَوْفَى إِذَا صَلَّى عَلَيْنَا أَهْلَ الْبَيْتِ فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ |
| هغه ته ډيرنه ډير ثواب ملاؤشي، هغه ته په کار دي چې مونږ اهل بيتو باندې داسې درود وائي: اې الله |
| صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ وَ أَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ |
| محمد صلى الله عليه وسلم باندې چې نبي امي دى، د دوى په ازاج مطهراتو باندې چې د مؤمنانو مورګاني دي |
| وَ ذُرِّيَّتِهِ وَ أَهْلِ بَيْتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ ، |
| او دنبي عليه السلام اولاد اهل بيت باندې رحمت نازل کړه، څنګه چې تا په اولاد د ابراهيم عليه السلام باندې نازل |
| إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ» . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2]. |
| کړي وو ، بېشکه ته حميد او مجيد يې. |

**توضيح:** **الامي:** د نبي عليه الصلاة والسلام ډيرنو مونه دي څينې نو مونه داسې دي چې هغه د حضور صلى الله عليه وسلم خصوصيات او صفاتو په بنياد دي، سابقه کتابونو کې د حضور صلى الله عليه وسلم مشهور لقب او تعارف **النبي الامي** ؤ ددې ذکر تورات او انجيل کې دى، د يهودو او نصاراو په ژبو باندې عام وو، قرآن کريم کې دا لقب دوه ځلې د حضور صلى الله عليه وسلم د پاره استعمال شوى دى، په سورة اعراف (آيت نمبر ۱۵۴-۱۵۸) کې **النبي الامي** مبارک لقب مذکور دى، (المرقات ۳/۲۰).

د **أُمِّيِّيْنَ** لفظ هم قرآن کريم کې درې ځلې استعمال شوى دى، دې نه مراد اهل عرب او اهل مکه دي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۸۸/۲ ، رقم الحديث ۵۹۳ ، وأحمد في المسند ۳۸٦/۲

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ٦۰۱/۱ رقم الحديث ۹۸۲

امي: ام طرف ته منسوب دی. دې نه مراد هغه کس دی، چې ليکل او لوستلو باندې نه پوهېږي حضور ﷺ ته په دې اعتبار سره ويلې دي، چې حضور ﷺ پيدائشت نه پس يو استاذ مخې ته ناسته نه ده کړې، ځلوېښت کاله حضور ﷺ داسې تير کړي وو، څنګه چې پيدائشت وخت کې وو، يا مخامخ الله تعالى خپل شاګرد جوړ کړو او ټول علوم شرعي نه يې خبر کړو، د وحې په ذريعې سره چې جبرائيل عليه السلام واسطه وو، هغه د حضور ﷺ استاذ نه وو، دې طرف د تربيت ته حضور ﷺ اشاره کوي: **ادبني ربي فاحسن تأديبي**، حضور ﷺ د غير شاګردۍ نه يې ځکه بچ اوساتلو، چې يا به خلک وايي چې دا د فلاني شاګرد دی او دلته يې د نبوت دعوى وکړه. (المرقات ۳/۲۰).

- د حضور ﷺ شاګردي د خپل ځان د پاره خالص کړې وه، چې د بل چا تربيت په دې کې اميزش رانشي. علامه محمد بوصيري رحمه الله په قصيده برده کې وايي:

**كفاک بالعلم في الامي معجزة ۔۔۔ في الجاهلية والتأديب في اليتم**

يعني د يو امي په زمانه د جاهليت کې دومره لوی علم او يتيمۍ په حالت کې دومره لوی ادب دده معجزې د پاره کافي ده. يو څو نور اشعار هم ذکر کوو چې ددې موقع سره مناسب دي:

نگار من که به مکتب نه رفت وخط نه نوشت ۔۔۔ بغمزه مسئله آموز صد مدرس شد

زما محبوب چې مکتب (سکول) ته نه ؤ تللې او خط يې هم نه ؤ زده چې په يوې اشارې سره يې مسئله زده کړه او د ټولو استاذ جوړ شو.

يتيمے كه ناكرده قرآن درست ۔۔۔ كتب خانه چند ملت بشست

هغه يتيم چې ده لا قرآن کريم هم نه ؤ مکمل کړې چې د څو مذهبونو کتب خانې يې محو او کنګال کړې.

## د درود نه ويلو والا لوی بخيل دی

| |
|---|
| **﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَلْبَخِيلُ الَّذِيْ** |
| دحضرت علي رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي اکرم ﷺ فرمايي بخيل هغه کس دی چې د |
| **ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]** |
| هغه مخکې زما ذکر وشي او دا په ما باندې درود ونه لولي. |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۱۵، رقم الحديث ۳۵۴۶، وأحمد في المسند ۱/۲۰۱.

وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**توضيح: بخيل**. يو خو د مال بخيل وي. چې دا عام خلک پېژني او بخيل يې مني. خو يو حقيقي بخيل دی عام خلک دا نه شي معلوموئی. د ده تعارف حضور صلى الله عليه وسلم دې حديث کې وفرمايل اصل بخيل هغه دی چې د هغه مخې ته زما نوم واخستلی شي او هغه په ما باندې درود نه لولي. (المرقات ۳/۲۱).

## نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته سلام ځي. حضور صلى الله عليه وسلم ته راځي

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى عَلَيَّ |
| دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي څوک کس چې درود ونولي زما د |
| عِنْدَ قَبْرِي سَمِعْتُهُ وَمَنْ صَلَّى عَلَيَّ نَائِيًا أُبْلِغْتُهُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1]. |
| قبر سره، هغه زه اورم او کوم کس چې لرې نه ما باندې درود رالېږي هغه ماته رارسولی شي. |

**توضيح: عند قبري**: ددې نه يوه خبره دا معلومه شوه، چې حضور صلى الله عليه وسلم خپل قبر کې ژوندی دی. او درود او سلام خپله اوري، ددې تفصيل مخکې تېر شوی دی. دويم دا چې حضور صلى الله عليه وسلم خواته درود او سلام رسي، داسې نه چې حضور صلى الله عليه وسلم درود او سلام پسې راځي بلکې بعضې خلک د عشق په دروغو دعوی کوي او معشوقي ته د تللو ځای معشوق خپل ځان ته د راعوښتلو بې ځايه اصرار کوي حالانکه د محبوب خواته په خپل تلل په کار دی قاصد هم نه شي برداشت کولی، سعدي بابا رحمه الله وايي:

يار ديرينه مسرا گو به زبان تو به مده ❁ که مسرا تو به بشيرنه خواهد بودن

زرشکم آيد که کسے سيرنگاه در تو کند ❁ باز گويم که کسے سيرنه خواهد بودن

ترجمه: زما مخکني دوست ته ووايه چې زما په باره کې د عشق نه وروسته کيدو نوم مه اخله ځکه چې ماتوره وهلو سره هم څوک د عشق نه نه شي اړولی، ماته په دې باندې غيرت راځي چې قاصد ستا په ليدلو سره مړېږي بيا زه وايم چې ستا په ليدلو سره څوک نه شي مړيدلی.

ميں نے کہا ميں خود جاؤں کہ نکلے مطلب دل کچھ نہ کچھ ميرا جانا اور ہے قاصد کا جانا اور ہے

چا يو خپل ذوق داسې بيان کړې دی:

---

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۲۰۹ رقم الحديث ۱۵۵۳

سلام دې راغې ته رانغلې وا به دې نه خلم بې دیدنه سلامونه

## د جمعې په ورځ د درود ثواب ډېرېږي

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ : مَنْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَاحِدَةً

د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې کوم کس چې په نبي علیه السلام باندې یو ځلې درود ولولي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَمَلَائِكَتُهُ سَبْعِينَ صَلَاةً. (رَوَاهُ أَحْمد)[1].

دې کس باندې الله تعالی او فرښتې اویا ځلې رحمت رالیږي.

**توضیح**: په ظاهره داسې معلومیږي، چې دا ثواب د جمعې ورځې سره خاص دی. دې نه مخکې مرفوعو احادیثو کې یو ځلې درود باندې لسو ځلو نه ډېر ثواب یې بیان کړی وو. د جمعې په ورځ یو حج د اویاو (۷۰) حجونو برابر وي، اوس ددې حدیث د مخکې حدیث سره تعارض نشته. (المرقات ۳/۲۲).

ددې حدیث د الفاظو نه معلومیږي، چې دا موقوف دی او دا د حضرت ابن عمر رضي الله عنه اثر دی، خو داسې نه ده، ځکه چې د فضائلو په ابوابو کې یو حدیث څوک د خپل طرف نه نشي ذکر کولی، د علماو متفقه فیصله ده چې : **والفضائل لا تؤخذ بالقیاس** (تحفة الاحوذي ج۱۰، ص۳۶۴) یعنې فضائل په قیاس سره نه شي بیانولی ، خامخا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه به دا حدیث د حضور صلی الله علیه وسلم نه یې اوریدلی وي نو بیان کړی یې دی، نو دا روایت د مرفوع حدیث په حکم کې شو.

## یو خاص درود او د شفاعت مطلب

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ رُوَيْفِعٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : مَنْ صَلَّى عَلَى مُحَمَّدٍ

د رویفع رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې : حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي څوک چې درود ولیږي په محمد

وَ قَالَ : اللَّهُمَّ أَنْزِلْهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ

صلی الله علیه وسلم باندې او دې نه پس ووايي: ای الله! نبي علیه السلام ته هغه مقام ورکړه کوم چې ستا سره نزدې

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي ". (رَوَاهُ أَحْمد)[2].

وي، د قیامت په ورځ د هغه د پاره زما شفاعت واجب کیږي.

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۱۸۷

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۴/۱۰۸

**توضیح: المقعد المقرب:** ددې نه مراد مقام محمود دی، دغه ځای کې به حضور صلى الله عليه وسلم د محشر په ورځ شفاعت د پاره په سجده باندې وي او دا درود یو خاص قسم درود دی. چې دا خواص وایي. ددې درود عجیبه اثرات دي.

**وجبت له شفاعتي:** یعني دې درود سره شفاعت واجبیږي او ددې اندازه به هغه وخت ولږي. چې کله د محشر په ورځ انسان خفه ولاړ وي او د حساب کتاب ټول مشکلات یې مخې ته وي او په دې کې د حضور صلى الله عليه وسلم قاصد راشي، قانوني افسر ته وایي، چې دا د محمد عربي صلى الله عليه وسلم کس دی. دا وو ایي او کس د لاس نه ونیسي او جنت ته یې بوځي او شاهي مهمان خانه کې به یې کینوي. الله تعالی دې د ټولو مسلمانانو شفاعت نصیب کړي. آمین (المرقات ۳/۲۲).

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې یوه ورځ نبي علیه السلام (مسجدي مکان نه) را اوتلو |
| حَتَّى دَخَلَ نَخْلًا فَسَجَدَ فَأَطَالَ السُّجُودَ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ |
| او دکهجورو باغ ته دننه شو او هلته په سجده شو او سجده یې دومره اوږده وکړه چې زه ویریدم چرته ورته |
| اللهُ تَعَالَى قَدْ تَوَفَّاهُ. قَالَ: فَجِئْتُ أَنْظُرُ |
| الله تعالی مرګ نه وي ورکړی، زه د حضور صلى الله عليه وسلم کتلو ته راغلم چې آیا حضور صلى الله عليه وسلم ژوندی |
| فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: «مَا لَكَ؟» |
| دی که وفات شوی دی، نو حضور صلى الله عليه وسلم سر مبارک اوچت کړو او وې فرمایل څه وشو، بیا ما صورت |
| فَذَكَرْتُ لَهُ ذٰلِكَ. قَالَ: فَقَالَ: "إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ لِيْ: أَلَا |
| حال ذکر کړو، راوي وایي دې نه پس حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل: چې جبرائیل علیه السلام ما ته وویل آیا |
| أُبَشِّرُكَ أَنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ يَقُولُ لَكَ مَنْ صَلَّى عَلَيْكَ صَلَاةً |
| تا ته دا خوشخبري نه اوروم، چې الله تعالی فرمایي کوم کس چې په ما باندې درود ولولي زه به په هغې |
| صَلَّيْتُ عَلَيْهِ وَ مَنْ سَلَّمَ عَلَيْكَ سَلَّمْتُ عَلَيْهِ". (رَوَاهُ أَحْمد)[1]. |
| باندې رحمت اولیږم او څوک چې په تا باندې سلام اوایي زه به هغه باندې سلام وایم. |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱ ۱۹۱

## څو پورې چې یې درود نه وي لوستلی دعاء نه قبلیږي

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوفٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

دعمربن الخطاب رضي الله عنه روایت دی وایي چې دعاء موقوف وي په مینځ دآسمان او ځمکه کې او هغې

لَا يَصْعَدُ مِنْهُ شَيْءٌ حَتَّى تُصَلِّيَ عَلَى نَبِيِّكَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].

نه یو څیز هم بره نه ځي ترهغې پورې ترڅو چې تاسو په حضور صلى الله عليه وسلم باندې درود نه وي لوستلی.

**توضیح**: **ان الدعاء موقوف**: یعني څو پورې چې حضور صلى الله عليه وسلم باندې مو درود نه وي لوستلی دعا نه قبلیږي، چې کله درود ولوستلی شي، نو دعا د درود سره یوځای شي او رب العزت دربار ته لاړه شي او د قبولیت شرف حاصل کړي.

د یو میږي شوق وو چې د بیت الله زیارت وکړم، خو دا دومره فاصله وهل ورته ډیر ګران وو په دې کې یو کونتره راغله د هغې خپه پسې ونخته، زر بیت الله ته راورسیدل، څکه شاعر وایي:

مور مسکین ہوسے داشت کہ بہ کعبہ رسد ☼ دست در پائے کبوتر زد وناگاہ رسد

حص حصین کې یې لیکلي چې حضرت شیخ ابو سلیمان دارانی رحمه الله وفرمایل چې خپل حاجت د پاره دعا غوښتلو نه مخکې او وروسته درود شریف لولئ، نو الله تعالی به خپل فضل سره دعا قبلوي، د الله تعالی د شان کریمي تقاضا دا ده چې کله دواړه درودونه قبلوي نو منځ دعا به نه پریږدي، بلکې هغه به هم قبلوي، بعضې علماء فرمایي د انسان عمل کې درود داسې عمل دی، چې د الله تعالی په نزد باندې قبول دی، درود کله هم نه رد کیږي، په دې شرط چې صحیح درود وي.

ددې روایت متعلق هم داسې کلام دی، کوم چې د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه مخکې روایت نمبر (۱۷) کې تیر شو، دا روایت هم اګر چې موقوف دی، خو دغه شان دواړه روایات لفظاً موقوف او حکماً مرفوع دي. (المرقات ۳/۲۴، الکاشف ۲/۴۴۲)

یا رب صل وسلم دائماً ابداً  على حبيبك خير الخلق كلهم



(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۵۶، رقم الحديث ۴۸۶، والنسائي في السنن ۳/۵۶ رقم الحديث ۱۳۰۹

# بَابُ الدُّعَاءِ فِي التَّشَهُّدِ:

## تشهد نه پس د دعا لوستلو بيان:

قال الله تعالی: ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾

(سورة بقره، آيت نمبر ۱۰۲)

سړی چې کله اخیرنی قعده کې کیني، نو د تشهد نه پس درود لوستلی کېږي او د درود نه پس دعا وي، دې نه مخکې باب التشهد کې حديث نمبر (۳) کې حضور ﷺ ارشاد مبارک تیر شو، چې مونځ گزار دې د تشهد نه پس د خپلې خوښې دعا غواړي. او د بره مذکور عنوان مطلب هم دا دی. آخرنی قعده کې چې څه لوستل کېږي هغې کې تشهد هم دی او تشهد نه پس دعا هم ده، دې عنوان سره تپول مراد دي، نو په دې صورت کې د لفظ في استعمال به صحيح شي، یا في لفظ د بعد په معنی سره دی، ای باب الدعا بعد التشهد داسې به هم مقصود صحیح شي.

فقهاء احناف لیکي: دې دعا کې داسې الفاظ نه دي په کار چې د کلام الناس سره په کې مشابهت راشي، یعنې یو کس داسې دعا نه غواړي (اللهم زوجني فلانة) دې سره مونځ خرابیږي، احادیثو کې چې کومې دعاګانې وارد دي هغه د تپولو نه بنې دي هغه دې وایي.

# الْفَصْلُ الأَوَّلُ:

## په تشهد کې د حضور ﷺ جامع دعاء

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو فِي الصَّلَاةِ يَقُولُ: |
| عائشه رضي الله عنها فرمايي چې حضور ﷺ مونځ کې د تشهد نه پس مذکوره دعاګانې غوښتې دي |
| «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ |
| ای الله! زه د عذاب قبر نه پناه غواړم او د دجال مسيح د فتنې نه پناه غواړم، او د پناه طلب کاریم د فتنو د |
| الْمَحْيَا وَ فِتْنَةِ الْمَمَاتِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَ الْمَغْرَمِ» |
| دنیا او د مرګ نه، ای ربه! زه ستا نه د ګناهونو او د قرض نه پناه غواړم (د راوي بیان دی چې د نبي علیه السلام د |
| فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ مَا أَكْثَرَ مَا تَسْتَعِيذُ مِنَ الْمَغْرَمِ فَقَالَ: |
| دعا اوریدلو سره) چا وویل تاسو د قرض نه پناه غوښتل لوی تعجب خبره ده؟ نبي علیه السلام وفرمایل چې |

«إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا غَرِمَ حَدَّثَ فَكَذَبَ وَ وَعَدَ فَأَخْلَفَ». [1]

کس کله قرضداري شي، نو خبرې جوړوي او دروغ وايي او چې کله وعده کوي، نو وعده خلافي کوي.

**توضيح: من عذاب القبر:** دعذاب قبر تفصيلات په توضيحات جلد اول **باب عذاب القبر** کې وګورئ.

**المسيح الدجال:** دجال د دجل نه دی او د مبالغې صيغه ده، يعني ډير لوی دوکه باز، ددې دوکه باز ذکر راتلونکي **باب الفتن** کې راځي ان شاء الله، دلته يو سوال دی، چې ده ته مسيح ولې ويل کيږي؟ دا لفظ د حضرت عيسى عليه السلام د القابو نه يو لقب دی، ددې جواب دا دی، چې عيسى ته مسيح ځکه ويل کيږي، چې هغه مبارک دی او عبراني ژبه کې دې ته مبارک ويل کيږي. دويمه وجه مسيح د مسح نه دی ددې معنی ده لاس وهل، حضرت عيسى عليه السلام به مريضانو باندې لاس رابنکلو چې روغ شي، ځکه ده ته مسيح ويل کيږي، کله چې د مطلق مسيح لفظ راشي، نو دې نه حضرت عيسى عليه السلام مراد دی. د دجال خبيث سره مسيح ځکه ذکر کولی شي، چې دې نه ممسوح العين مراد دی، يعني دا خبيث يوې سترګې سره داسې (کاڼی) شيړا دی، چې د سترګې او مخ سره يو چټيل ميدان دی، يا دې وجې نه ورته مسيح ويل کيږي، چې ځلويښت ورځو کې به په پوره دنيا کې وګرځي غير د مدينې د کلي نه ددې تذکره به د مشکوة په آخره کې ان شاء الله راځي. (المرقات ۳/۲۵).

دا ياد ساتئ چې کله دجال سره مسيح استعماليږي، نو دې سره دجال لفظ ضرور استعمالوئ، چې د حضرت عيسى عليه السلام سره التباس رانه شي. دې حديث کې حضور صلی الله علیه وسلم شپږو مهلکو څيزونو نه پناه غوښتې ده، دا شپږ څيزونه ډير تباه کونکي دي، که دې کې يو څيز کې هم راګير شوی، نو دنيا او آخرت بربادېږي.

**و من فتنة المحيا:** د ژوند فتنه دا ده چې سړی د نيغې لارې نه ګمراهۍ طرف ته روان شي او د آخرت څه فائده په کې نه وي. (المرقات ۳/۲۵).

**والممات:** يعني د مرګ فتنې نه پناه غوښتل، د مرګ فتنه دا ده چې د روح وتلو وخت کې شيطان لعين مختلفې وسوسې زړه کې اچوي او کله انسان د ايمان د دولت نه هم محروموي، او عذاب قبر کې ګيرېدل، دا هم د مرګ فتنه ده، او حشر نشر هم د مرګ فتنه ده. (المرقات ۳/۲۵).

**المأثم:** دا لفظ خو يا د ظرف مکان صيغه ده، مطلب دا چې داسې ځايونو نه پناه غوښتل چې هلته د ګناه

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۱۷/۲، رقم الحديث ۸۳۲، ومسلم في الصحيح ۴۱۲/۱ رقم الحديث: ۱۲۹-۵۷۹، وأبو داود ۵۴۸/۱ رقم الحديث: ۸۸۰، والنسائي ۵۸/۳، رقم الحديث ۱۳۱۰.

ذريعه جوړيږي، يا لفظ مصدر ميمي دی، چې د ګناه په معنی کې دی، مطلب دا چې د ګناه د مواقعو نه او اسبابو نه تا پورې پناه غواړم، شيخ الهند کله چې مکه کې ګرفتار شو او مالټې ته يې بوتلو، نو وې فرمايل: شعر:

الحمد لله که به مصيبتې ګرفتارېم نه به معصيتې

يعنې اصل قيدي هغه دی چې د ګناه قيدي وي. (المرقات ۳/۲۵).

**المغرم:** مغرم او غرامه تاوان او قرض ته ويل کيږي، دې نه هغه قرض مراد دی چې د عياشۍ او نافرمانۍ او بدمعاشۍ د پاره اخيستلی شوی وي، او د ورکولو خيال يې نه وي، يا هغه قرض مراد دی، چې قرض يې واخيستلو خو د ورکولو نيت يې نه وي، که يو کس نيک مقصد د پاره قرض واخلي او د ورکولو نيت يې وي، د داسې قرض د پاره دا وعيد نه دی، بهر حال صحابي ته د قرض اخيستلو نه پناه غوښتلو باندې تعجب وشو، حضور ﷺ نه يې سوال وکړو حضور ﷺ د اخيستلو عيوب بيان کړل، يو عيب دا چې د قرض اخيستلو په وخت کې دروغ خبرې جوړې کړې او قرض حاصل کړې، چې دا آخروي نقصان دی. او ورکولو وخت کې وعده خلافي کوې، نو دې کې د منافق يو صفت پيداشي، او چې دروغ او ايې دويم صفت د منافق په کې پيداشي، ځکه يې د قرض نه پناه غوښتې ده چې په دې سره د آخرت ډير لوی نقصان کيږي. (المرقات ۳/۲۶).

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَرَغَ أَحَدُكُمْ مِنَ التَّشَهُّدِ الْآخِرِ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی حضور ﷺ فرمايي تاسو کې څوک (مونځ کې) آخري تشهد نه فارغ |
| فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللهِ مِنْ أَرْبَعٍ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ مِنْ |
| شي، هغه ته په کار دي چې د څلورو څيزونو نه د الله تعالی نه پناه وغواړي. (۱) د دوزخ عذاب نه. (۲) د |
| فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَ الْمَمَاتِ وَ مِنْ شَرِّ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ. (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| عذاب قبر نه. (۳) د ژوند او د مرګ د فتنې نه. (۴) د مسيح الدجال د ګناه نه. |

**توضيح: اذا فرغ:** د حديث ظاهري الفاظو نه معلوميږي دا دعا مونځ کې دننه ده، البته د آخرنی قعدې او د سلام په منځ کې ده، سلام نه پس دا دعا منع ده، خو د حديث مطلب دا نه دی چې دا دعا د مونځ نه پس ده، دې حديث نه دا معلوم شو، چې سلام نه مخکې معروف دعاګانو نه علاوه نورې هم دعاګانې

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۴۱،رقم الحديث ۱۳۷۷، ومسلم في الصحيح ۱/۴۱۲ رقم الحديث:۱۳۰-۵۸۸، وأبو داود ۱/۱۰۶ رقم الحديث :۹۸۳.

غوښتلی شی. (المرقات ۳/۲۶، الکاشف ۲/۴۴۴).

﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهُمْ هٰذَا الدُّعَاءَ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي حضور صلی الله علیه وسلم صحابه و ته او اهل بیتو ته دا دعا داسې ښودله

كَمَا يُعَلِّمُهُمُ السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ يَقُوْلُ:

لکه څنګه چې حضور صلی الله علیه وسلم مونږ ته د قرآن کریم يو سورت ښائي، حضور صلی الله علیه وسلم به وويل دا

« قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ

دعاء داسې وايي: اى الله! زه پناه غواړم په تاسره د عذاب د جهنم نه، او پناه غواړم په تاسره د عذاب قبر

وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

نه او پناه غواړم په تاسره د فتنې د مسيح دجال نه او پناه غواړم په تا سره د فتنې د ژوند او د مرګ نه.

## په مونځ کې د سلام نه مخکې د صديق اکبر رضي الله عنه خصوصي دعاء

﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ عَلِّمْنِي دُعَاءً

او ابوبکر صديق رضي الله عنه وايي ما حضور صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو يا رسول الله! ما ته وښايه داسې دعا

أَدْعُو بِهِ فِي صَلَاتِي قَالَ: « قُلْ اللّٰهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ

چې زه يې خپل مونځ کې وايم، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل دا دعا ولوله: اى ربه! يقينا ما ظلم کړې دى

نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ

په خپل نفس باندې او ستا نه علاوه بل څوک ګناه نه معاف کوي، لهذا ته ما معاف کړه خاص کرمې معاف

وَارْحَمْنِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ» (متفق عليه)[2]

کړه او رحم را باندې وکړه، بېشکه ته معاف کولو والا او رحم کولو والا يې.

## په سلام اړولو کې د سر تاوولو اندازه

﴿٥﴾ وَعَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ:

عامر بن سعد رحمه الله (تابعي) د خپل پلار (حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه) نه روايت کوي، هغوی

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴۱۲/۱ رقم الحديث ۱۳۴ - ۵۹۰، وأبوداود في السنن ۶۰۱/۱ رقم الحديث ۹۸۴.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۱۷/۲، رقم الحديث ۸۳۴، ومسلم في الصحيح ۲۰۷۸/۴ رقم الحديث: ۴۸-۲۷۰۵.

كُنْتُ أَرَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَ عَنْ يَسَارِهِ

وفرمایل زه وینم چې حضور صلی الله علیه وسلم خپل ښي او کس طرف ته سلام اړولو مابه د حضور صلی الله علیه وسلم

حَتَّى أَرَى بَيَاضَ خَدِّهِ. (رَوَاهُ مُسلم)[1].

د مخ د اننگو سپین والی لیدلو.

## د مونځ نه پس امام مقتدیانو طرف ته مخ کړي او کیني.

﴿٦﴾ وَ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د سمرة بن جندب رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم چې به کله د مونځ نه فارغ شو، نو

أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ. (رَوَاهُ البُخَارِيّ)[2].

زمونږ طرف ته به یې خپل مخ مبارک راواړولو.

**توضیح:** (اقبل علینا بوجهه) دې حدیث کې تصریح موجوده ده، چې حضور صلی الله علیه وسلم به مونځ نه د فارغ کیدو نه پس به یې مقتدیانو طرف ته مخ کړو او ناست به وو. (المرقات۳/۳۰).

**سوال:** دې حدیث کې قوم طرف ته متوجه کیدو سره د ناستې بیان دی، ورسره خواته روایت کې دي چې حضور صلی الله علیه وسلم به ښي طرف ته تاؤ شو او ناسته به یې وکړه، دې نه پس د ابن مسعود رضي الله عنه روایت کې دي چې حضور صلی الله علیه وسلم به چپ طرف ته تاؤ شو او ناسته به یې وکړه، دې نه پس د براء بن عازب رضي الله عنه روایت نه معلومیږي چې ښي طرف ته به تاؤ شو او ناسته به یې وکړه، دې ټولو کې په ظاهره تعارض دی.

**جواب:** دې روایاتو کې د تطبیق دوه صورتونه دي، اول دا دی، چې د سلام نه پس به حضور صلی الله علیه وسلم چې کوم طرف ته به یې د تللو اراده وه، نو هغه طرف ته به تاویدو، کله ښي طرف او کله چپ طرف ته به یې تشریف وړلو. او که تلل به نه وو، نو بیا به قوم طرف ته متوجه شو او کیناستو به، دې بیان نه پس احادیثو کې تعارض نشته، البته په دې صورت کې د انصراف معنی ناسته نه ده، بلکې مخ تاوهل او تلل مراد دي او دا معنی اخیستل څه لرې نه ده. د تطبیق دویم صورت دا دی، چې سلام اړولو نه پس د حضور صلی الله علیه وسلم معمول دري قسمه وو، کله د سلام اړولو سره فوراً تشریف وړلو، دغه صورت کې عموماً حضور صلی الله علیه وسلم کس طرف ته تاو شوی دی، او تشریف به یې وړلو، ځکه چې محراب نه د

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۰۹، رقم الحديث:۱۱۶-۵۹۲، والنسائي ۳/۶۱، رقم الحديث:۱۳۱۷.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۳۳،رقم الحديث :۸۴۵.

حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجره کس طرف ته وه، چې کله سړی قبلې ته مخامخ ناست وي او کله چې ذکرالله او دعا په غرض باندې ناست وي، دغه وخت به حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کس طرف باندې ناسته کوله، او دعا به یې غوښتله. او کله د سلام نه پس به یې خطبه وغیره کول مقصود وو، نو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به قوم طرف ته مکمل متوجه کیدو. تولو روایاتو کې تطبیق راځي، انصراف نه قوم طرف ته تاویدلو سره متوجه کیدل هم مراد اخیستلی شي. بعضې ائمه حضرات خپل قوم ته سلام نه پس ښي طرف باندې تاوېږي او کیني، شاه انورشاه کشمیري صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ دې طرز عمل باندې سخت نکیر فرمایلو. دلته یوه مسئله داده د احنافو علماو عام عادت دا ؤ، د کومو فرائضو نه پس چې سنن نه وي، هغې کې به قوم طرف ته متوجه کیدو سره ناسته کوله او دعاء به یې کوله او کوم فرائضو نه بعد چې سنن وو هغې کې به قوم طرف ته نه تاویدلو، بلکې قبلې ته مخامخ یې دعا کوله او بیا به د سنتو د پاره ودریدل، دا رواج عام دی او مسئله هم دا ده، خو زیر نظر احادیثو نه دا مسئله نه ثابتیږي.

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ نه د فارغیدو نه پس خپل |
| يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| ښي طرف ته به تاؤ شو او ناسته به یې کوله. |

## مستحب عمل لازم ګڼل بدعت دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : لَا يَجْعَلْ أَحَدُكُمْ لِلشَّيْطَانِ شَيْئًا مِنْ صَلَاتِهِ |
| د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې تاسو خپل مونځ کې د شیطان حصه مه مقرروئ، |
| يَرَى أَنَّ حَقًّا عَلَيْهِ أَنْ لَا يَنْصَرِفَ إِلَّا عَنْ يَمِينِهِ لَقَدْ رَأَيْتُ |
| یعني هغه څیز لره لازم مه ګرځوئ چې (مونځ نه پس) ښي طرف ته تاؤ شئ، ځکه چې ما لیدلي دي چې |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِيرًا يَنْصَرِفُ عَنْ يَسَارِه.[2]. |
| حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چپ طرف ته تاویدو. |

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۹۲ رقم الحديث:۶۱-۷۰۸.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۳۷، رقم الحديث ۸۵۲، ومسلم في الصحيح ۱/۴۹۲ رقم الحديث:۵۹-۷۰۷، وأبو داود ۱/۶۳۱ رقم الحديث ۱۰۴۲

**توضيح:** عن يساره: يعنې يو امر مستحب لازم ګڼل خپل عمل کې شيطان د پاره حصه جوړول دي، مقتديانو طرف ته يا پاڅيدو په وخت کې حضور ﷺ ښي او ګس دواړو طرف ته تاؤ شوی دی، اوس که يو کس ښي طرف ته تاويدو باندې ورته فضيلت ډير ښکاري او خپل ځان باندې يې لازمه وي، نو دې کس امر مباح او مستحب عمل له د وجوب درجه ورکړه دا ناجائز او بدعت دی او دا په خپل مونځ کې د شيطان حصه جوړول دي، کاش چې اهل بدعتو دې حديث باندې نظر کولی، او عمل يې پرې کولی او غير لازم څيزونو باندې يې اصرار نه کولی.(المرقات ۳/۳۱، الکاشف ۲/۴۴۶).

ياد ساتئ د حضرت عامر رضي الله عنه، د حضرت سمرة رضي الله عنه، حضرت انس رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څلور واړه احاديث د دې باب موضوع سره متعلق نه دي، خو د دې باب د متعلقاتو نه دي، دې حديث نه يې دلته نقل کړی دی.

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ : كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| حضرت براء رضي الله عنه فرمايي چې کله به مونږ د حضور ﷺ پسې شاته مونځ کولو نو دا خبره به |
| أَحْبَبْنَا أَنْ نَكُوْنَ عَنْ يَمِيْنِهِ |
| يې خوښوله چې مونږ د حضور ﷺ ښي طرف ته وو چې حضور ﷺ (سلام په وخت کې) |
| يُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ قَالَ : |
| زمونږ طرف ته متوجه شي، براء رضي الله عنه وايي چې ما حضور ﷺ نه (سلام نه پس د دعا په طور |
| فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ : « رَبِّ قِنِيْ عَذَابَكَ يَوْمَ |
| باندې) اوريدلي وو چې ويل به يې : ای ربه ! ما د خپل عذاب نه بچ کړه په هغه ورځ کله چې خپل بندګان |
| تَبْعَثُ أَوْ تَجْمَعُ عِبَادَكَ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| اوچتوې يا جمع کوې، (دې دواړو کلمو کې راوي ته شک شوی دی). |
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : إِنَّ النِّسَاءَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ |
| حضرت ام سلمة رضي الله عنها فرمايي چې ښځې به په زمانه د رسول الله ﷺ کې چې کله به يې سلام |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۴۹۲/۱ رقم الحديث.۶۲-۷۰۹، وأبو داود ۲۹۸/۵ رقم الحديث .۵۰۴۵.

مِنَ الْمَكْتُوبَةِ قُمْنَ وَ ثَبَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ مَنْ

وګرځولو د فرض مونځ نه نو فوراً به پاڅيدې او خپلو کورونو ته به تللې، حضور ﷺ او کوم خلک

صَلَّى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ فَإِذَا

چې به مونځ کې ناست وو نو څومره ډير ساعت چې به الله تعالى ته منظور وو ناست به وو، کله چې به

قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ.[1]

حضور ﷺ تللو، نو ټول خلک به او دريدل.

(وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ فِي بَابِ الضحك إِن شَاءَ اللهُ تَعَالَى).

**توضيح: قُمْنَ:** يعنې زنانه به د سلام نه پس فوراً پاڅيدلې او سرې به ناست وو، چې تللو په وخت کې د سړو او د زنانو خپل منځ کې يو والى رانه شي، د حضور ﷺ په زمانه کې يو څو شرائطو سره زنانو د يو څو مجبوريانو د وجې نه مسجد نبوي ته راتلل ثابت دي. (المرقات ۲/۳۲).

شرائط دا وو چې ځوانانې زنانه به نه راتې او معمرې زنانه به هم صرف سحر، ماښام او ماسخوتن کې هم په پردې سره راتللې، عطر به يې نه لږول، د کپړو نمائش به يې نه کولو، آخر کې به راتللې او شروع کې به تللې، مونځونو ته د حاضريدلو مجبورې يې دا وه چې حضور ﷺ پسې مونځ کول يې ارمان وو، مسائل او دين زده کړو، چې عباداتو کې د عبادت نقشه زده کړو، هغه د خير وقت کې خير وو، د نزول قرآن وخت وو، نبي آخر زمان موجود وو، د صحابو جماعت په شان د فرښتو وو، د خير القرون وخت وو، ځکه هر قسم تحفظ وو، خو نن سبا فتنې دور کې اجازت نشته دى، په خپله حضرت عائشه رضي الله عنها د صحابو دور کې د ممانعت فتوى ورکړې وه څنګه چې به وروسته راشي چې نن سبا د ښځو تلل مدارسو او مساجدو ته يا تبليغ او نورو محفلونو ته د وعظ د پاره او د سړو سره په لارو کې اختلاط کول دا ډيره بده او ناکاره خبره ده، چې د دې حديث د تعليماتو نه خلاف کول دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿۱۱﴾ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: أَخَذَ بِيَدِي رَسُول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمايي يوه ورځ حضور ﷺ زما لاس خپل لاس مبارک کې ونيوو

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۴۹/۲، رقم الحديث: ۸۶۶، أخرجه أحمد في المسند ۳۱۶/۶.

فَقَالَ: «إِنِّي لَأُحِبُّكَ يَا مُعَاذُ». فَقُلْتُ: وَ أَنَا أُحِبُّكَ يَا رَسُولَ اللهِ.

او وي فرمایل معاذه! زه تا خپل دوست ګڼم ما عرض وکړو یا رسول الله! زه هم تاسو خپل دوست ګڼم.

قَالَ: " فَلَا تَدَعْ أَنْ تَقُولَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ: رَبِّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ

حضور ﷺ وفرمایل یو مونځ نه پس هم دا دعا مهٔ پریږده: ای ربه! ته زما مدد وکړه په خپل ذکر،

وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ" إِلَّا أَنَّ أَبَا دَاوُدَ لَمْ يَذْكُرْ: قَالَ مُعَاذٌ وَ أَنَا أُحِبُّكَ.[1]

خپل شکر او ښه عبادت کې. خو ابوداؤد د معاذ دا الفاظ (وانا احبک) نه دي نقل کړي.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ:

حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ به سلام اړولو خپل ښي طرف

« السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَةُ اللهِ » حَتَّى

ته السلام علیکم ورحمة الله ویلو سره (یعني په تا باندې دالله سلامتي او دالله تعالی رحمت وي) تردې چې

يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْمَنِ وَ عَنْ يَسَارِهِ: السَّلَامُ

حضور ﷺ د ښي طرف اننګي سپينوالی په نظر راتلو او خپل ګس طرف ته به يې هم السلام

عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ[2].

علیکم ورحمة الله ویلو سره سلام واړولو تردې چې د نبي علیه السلام د مخ سپینوالی په نظر راتلو. ترمذي خپل

وَ لَمْ يَذْكُرِ التِّرْمِذِيُّ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ. وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ.

روایت کې حتی یری بیاض خده الفاظ نه دي ذکر کړي او ابن ماجه دا روایت د عمار بن یاسر نه نقل کړی.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَانَ أَكْثَرُ انْصِرَافِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ

دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې حضور ﷺ به اکثر راتاویدو د مونځ نه

إِلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ إِلَى حُجْرَتِهِ. رَوَاهُ فِي شرح السنة.

چپ طرف ته او تللو به خپلې حجرې طرف ته.

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۸۰ رقم الحديث ۱۵۲۲.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۶۰۶ رقم الحديث :۹۹۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۷۹، رقم الحديث :۲۹۵.

## د فرض مونځ نه پس د ستنو د پاره ځای بدلول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ عَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يُصَلِّي |
| حضرت عطاء خراساني د حضرت مغیره نه روایت کوي چې حضور ﷺ فرمایي مونځ دې نه کوي |
| الْإِمَامُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ حَتَّى يَتَحَوَّلَ ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد |
| امام په دا سې ځای کې چې هلته مونځ شوې وي، بلکې هغه ځای نه دې جدا شي دا روایت ابو داود نقل |
| وَ قَالَ عَطَاءُ الْخُرَاسَانِيُّ لَمْ يُدْرِكِ الْمُغِيرَةَ .[1] |
| کړی او وایي چې د عطاء خراساني ملاقات د حضرت مغیره سره ثابت نه دی، لهذا دا حدیث منقطع دی. |

**توضیح: حتی یتحول:** دې حدیث کې وایي چې کوم ځای کې فرض مونځ او شي، هلته سنت مه کوئ، بلکې د غه ځای نه معمولي جدا شئ ځای دې بدل کړې او سنت و کړئ. (المرقات ۳/۳۴).
دلته دا خبره یاده ساتئ چې دا حکم صرف د امام د پاره نه دی، بلکې امام او مقتدیانو د پاره بلکې ټولو فرائضو کونکو د پاره دا حکم دی، ددې وجه دا ده، چې د مونځ گزار د پاره دوه جدا جدا ځایونه گواه جوړ شي. او دویم جواب دا دی چې د صفونو نظام به گډوډ شي، خلکو ته به پته ولږي چې مونځ شوی دی. ملاعلي قاري رحمه الله فرمایي چې د بعضې علماو قول دی، ځای بدلولو حکم د هغه مونځ گزار د پاره دی، چې د فرضو نه پس سنت وي او چې د کوم نه پس سنت نه وي، لکه سحر او مازیگر هلته دا حکم نشته، خو بعضې نور علماء وایي د فرائضو ټولو مونځونو نه بعد ځای بدلول په کار دي، که رش وي، او ځای تنگ وي، نو بیا ځای بدلول فرض یا واجب نه دي. او سحر او مازیگر مونځ نه پس ځای بدلول د هغې څه مقصد او فائده نشته. (المرقات ۳/۳۴).

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَضَّهُمْ عَلَى الصَّلَاةِ وَ |
| د انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور ﷺ به صحابو ته د مونځ کولو شوق پیدا کولو او |
| نَهَاهُمْ أَنْ يَنْصَرِفُوا قَبْلَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ .[2] |
| دوی به یې د دې خبرې نه منع کول، چې هغوی مونځ کولو نه پس د هغوی نه مخکې پاڅي. |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۴۰۹، رقم الحديث ۶۱۶.
(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۴۱۲، رقم الحديث ۶۲۴.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

﴿١٦﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي صَلَاتِهِ:

شداد بن اوس رضي الله عنه فرمايي حضور صلى الله عليه وسلم خپل مونځ کې (تشهد نه پس مذکوره دعا لوستله)

"اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الثَّبَاتَ فِي الْأَمْرِ وَ الْعَزِيْمَةَ عَلَى الرُّشْدِ وَ أَسْأَلُكَ شُكْرَ نِعْمَتِكَ

اى الله! زه ستا نه په دين کې د ثابت قدمۍ او دنيغې لارې قصد سوال کوم، او زه ستا نه ستا د نعمت شکر

وَ حُسْنَ عِبَادَتِكَ وَ أَسْأَلُكَ قَلْبًا سَلِيمًا وَ لِسَانًا صَادِقًا

او ستا د عبادت د ښائسته والي سوال کوم، او ستا نه قلب سليم او رښتينې ژبه غواړم، او ستا نه هغه نيکي

وَ أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمُ وَ أَسْتَغْفِرُكَ

غواړم کومه چې تاسو پېژنئ، او د هغه ګناه نه پناه غواړم کومه چې تاسو پېژنئ او معافي غواړم درنه د

لِمَا تَعْلَمُ.[1]

هغه ګناهونو کوم چې تاسو پېژنئ.

﴿١٧﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي صَلَاتِهِ بَعْدَ التَّشَهُّدِ:

د جابر رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به فرمايل په خپل مونځ کې پس د تشهد نه

«أَحْسَنُ الْكَلَامِ كَلَامُ اللهِ وَ أَحْسَنُ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ». (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[2].

بهترين کلامونو کې کلام د الله تعالى دى او ډير بهترينه طريقه د محمد صلى الله عليه وسلم ده.

## په مونځ کې د سلام کيفيت

﴿١٨﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دى وايي چې: حضور اکرم صلى الله عليه وسلم به په مونځ کې يو سلام

(١) أخرجه النسائي في السنن ٥١/٤ رقم الحديث ١٣٠٤، وأحمد في المسند

(٢) أخرجه النسائي في السنن ٥٨/٣ رقم الحديث ١٣١١

تَسْلِيمَةً تِلْقَاءَ وَجْهِهِ ثُمَّ يَمِيلُ إِلَى الشق الأيمن شَيْئًا. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1].

وا ړولو مخامخ رخ، بیا معمولي شان خوله مبارکه به یې ښي طرف ته اړوله.

**توضیح: تلقاء وجهه:** مونځ کې د سلام متعلق درې اهمې مسئلې دي: **اوله مسئله: خروج المصلي بلفظ** السلام فرض دی او که واجب د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد باندې لفظ سلام فرض دی او د احنافو په نزد باندې واجب دی، ددې مسئلې پوره بحث کتاب الطهارة کې تیر شوی دی.

**دویمه مسئله:** مونځ کې د سلام طریقه څه ده او ددې تعداد څومره دی. (المرقات ۳/۳۷).

**د فقهاو اختلاف:** د مالکیو مسلک دا دی چې امام او منفرد د پاره یویو ځلې سلام ویل سنت دي، نه ښي طرف ته او نه کس طرف ته، بلکې مخامخ طرف ته سلام کول مسنون دي. ددې حضراتو په نزد باندې مقتدي د پاره درې سلامه مسنون دي، یو مخامخ، دویم ښي طرف، دریم چپ طرف ته، د احنافو او شوافعو او حنابلو یعنې د جمهورو په نزد باندې مونځ کونکی که امام وي یا مقتدي ټولو د پاره مونځ نه وتلو په وخت کې دوه سلامه مسنون دي.

**دلائل:** مالکیه زیر بحث حدیث د عائشې رضي الله عنها نه استدلال کړی، چې خپل مطلب باره کې واضح دی، د جمهورو دلائل ډیر زیات دي هغه ټول د جمهورو دلائل دي، کومو کې چې د دوو سلامونو تصریحات راغلي، او عن یمینه و عن یساره الفاظ واضح طور باندې موجود دي.

**جواب:** جمهورو حضراتو د امام مالک د دلیل توجیه دا کړې ده چې د حضرت عائشې رضي الله عنها د قول مطلب دا دی، چې حضور صلی الله علیه وسلم به د سلام الفاظ هغه وخت شروع کول، کله چې به یې مخ قبلې ته وو او بیا د غه آواز کې به یې مخ مبارک ښي طرف او چپ طرف ته اړولو، نو دوه سلامه به شو، دا مطلب نه دی چې اول نه آخر پورې یو سلام وي او مخامخ وي.

## مقتدي سلام کې د امام نیت څنګه وکړي

﴿۱۹﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَرُدَّ

د سمره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم راکړی، چې مونږ د جواب نیت

عَلَى الإِمَامِ وَ نَتَحَابَّ وَ أَنْ يُسَلِّمَ بَعْضُنَا عَلَى بَعْضٍ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2].

وکړو د سلام اړولو وخت کې د امام د سلام او په خپل منځ کې مینه وساتو او یو بل ته سلام وکړو.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۹۰ رقم الحديث ۲۹۶

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۶۰۹ رقم الحديث: ۱۰۰۱، وأخرجه ابن ماجه ۱/۲۹۷ رقم الحديث: ۹۲۲.

**توضيح: ان نرد على الامام:** دې کې درې حکمونه بيان شوي دي: اولني حکم دا سې دی، کله چې مقتدي سلام ګرځوي هغه دی دا نيت وکړي چې د امام د سلام جواب ورکوم، ددې صورت به دا وي کوم مقتدي چې د امام ښي طرف ته ولاړ وي هغه دې اول سلام کې د ښي طرف د مونځ ګزارو او کرام الکاتبين فرښتو نيت وکړي او بيا چې چپ طرف ته سلام واړوي د امام د سلام جواب نيت دی وکړي. او کوم خلک چې د امام ګس طرف ته ولاړ وي هغوئ دی ښي طرف ته سلام اړولو کې د امام صاحب د سلام جواب ورکولو نيت وکړي او چپ طرف ته دې د مونځ ګزارو نيت وکړي او کوم مقتديان چې د امام نه وروسته دي بالکل هغوی دې دواړه سلامونو کې د امام د سلام د جواب نيت وکړي. لکه څنګه چې امام هم دغه رنګ نيت کولو کې پابند دی. (المرقات ۳/۳۷).

باقي ښي او ګس طرف کې د فرښتو نيت هر سلام کې په کار دی نه د جناتو د نيت ضرورت شته او نه د انسانانو د نيت ضرورت شته کوم چې د مونځ نه بهر دي او مونځ کې شامل نه دي.

**ولنتحاب:** دا دويم حکم دی، ددې مطلب دا دی مونږ ته حضور ﷺ فرمايلي دي چې خپل منځ کې يو بل سره محبت او کړئ، بغض او کينه ونه کړئ، د ټولو سره ښه اخلاق وساتئ. (المرقات ۳/۳۷).

**وان يسلم بعضنا:** يعني مونږ ته دريم حکم دا شوی دی، چې مونږ په مونځ کې د يو بل د سلام نيت وکړو ددې صورت مخکې ذکر شوی دی، چې مقتديان مونځ کې د سلام اړولو وخت کې د يو بل د سلام نيت څنګه وکړي. (المرقات ۳/۳۸).



۱۵ ربیع الثاني ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الذِّكْرِ بَعْدَ الصَّلَاةِ:
# د مونځ نه پس د ذکر بیان

دې باب کې هغه احادیث بیانیږي، چې دې سره د مونځ نه پس د دعا او د وظائفو فضیلت او اهمیت ظاهریږي. د ذکر لفظ عام دی، وظائفو او ادعیو ټولو ته شامل دی.

مسئله دا ده چې د کومو فرائضو نه پس سنت وي د هغې نه پس مونځ گزار وظائف او ادعیه لوستلو د پاره څومره ساعت پورې کیناستی شي.

د احنافو علماو نه صاحب درمختار لیکي: د فرض مونځ کولو نه پس سنت کې تاخیر مکروه دی صرف **اللهم انت السلام** آخر مقدار پورې ناسته ثابت ده، فقهاء دا خبره هم لیکي چې سنت لوستلو د پاره د فرائضو نه پس فوراً ودریدل په کار دي.

د علامه حلواني رَحِمَهُ اللهُ قول دا دی، د وظائف او دعاگانو د پاره فرائض او سنتو په منځ کې وقفه کولو کې څه باک نشته دا قول نورو فقهاو هم لیکلی دی.

مفتی الهند کفایت الله رَحِمَهُ اللهُ خپل کتاب (**النفائس المرغوبة في الادعیة بعد المکتوبة**) کې لیکي: د **اللهم انت السلام** په روایت کې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وخت حصر او تعین نه دی کړی، بلکې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دې روایت کې **اللهم انت السلام** د مقدار اندازه ښودلې ده، نو دې مقدار او اندازه کې نورې دعاگانې هم راتلی شي، د دې ذکر احادیثو کې راغلی، دې کې څه منافات نشته او نه اختلاف. علامه حلبی رَحِمَهُ اللهُ د فقهاو کلام کې د غه معمولي شان اختلاف کې تطبیق کړی دی، دې وجې نه دواړو اقوالو کې څه اختلاف نه پاتې کیږي، هغه فرمایي صاحب درمختار چې تاخیر مکروه لیکلې دی، نو که دې نه مکروه تنزیهي مراد واخیستلی شي، نو خبره اولی او غیر اولی به پاتې شي، مطلب به دا شي، چې سنتو کې تاخیر کول بهتر دي. او د حلواني رَحِمَهُ اللهُ قول مطلب به دا شي، چې د وظائفو په غرض سره سنتو کې تاخیر راشي څه مضائقه نشته، خو مناسب او ښه دا ده چې تاخیر دې نه کوي، بهر حال وظائف د فرضو او سنتو منځ کې د لوستلو گنجائش شته، فقهاء لیکي د فرضو نه پس د سنتو د پاره صف ماتول بهتر دي، صف بندۍ کې سنت او نوافل کول نه دي په کار. امام ته هم په کار دي چې د خپل ځای نه معمولي اخوا شي چې چا ته اشتباه رانه شي چې خلک فرضو کې ولاړ دي.

بعدالمکتوبه چې د کومو دعاگانو ذکر په احادیثو کې **بعدالمکتوبة** الفاظو سره راغلی دی، نو د سنتو نه پس به هم دغه وظائف لوستلی کیږي، ځکه چې **بعدالسنن** هم **بعدالمکتوبة** دی، سنت کولو سره د

فرض بعديت نه ختميږي، دې توجيه سره ډير اشکالات ختميږي، د دې تفصيل د مخکې احاديثو په ضمن کې راځي.

## اَلْفَصْلُ الأَوّل:

**﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كُنْتُ أَعْرِفُ انْقِضَاءَ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّكْبِيرِ.** [1]

ابن عباس رضي الله عنه فرمايي ما د حضور صلى الله عليه وسلم مونځ ختميدل د الله اکبر ويلو سره معلومولو.

**توضيح: اعرف انقضاء**: حضرت ابن عباس رضي الله عنه هغه وخت ماشوم وو، ځکه په کور کې وو، د هغه کور د مسجد سره خواته وو، کله به چې جمعه وشوه او الله اکبر به وويلې شو ده ته به معلومه شوه، چې جمعه وشوه، دغه رنګ معمولي اواز او چتول د انسان طبعي نظام د لاندې وي، دې کې کلام نشته او د اهل حقو په مساجدو کې داسې کيږي او کيدل هم په کار دي.

خلاصه دا شوه، چې اعتدال حد پورې جهر بالاذکار ثابت دی، خو د حد نه تجاوز ثابت نه دی، بلکې عام وختونو کې هم د دې نه ممانعت راغلی، بعضې علماء وايي حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې د کوم تکبير خبره کوي دا د ايام منی خبره ده، او ايام تشريق کې يې تکبيرات او چت اواز سره وويل د امت متفقه مسئله ده. (المرقات ۳/۳۸).

**د فرضونه پس وظائف او دعاګانې**: مونځ نه پس د الله ذکر او دعا کول د جمهورو په نزد باندې مستحب دي، ډيرو احاديثو کې د فرائضو نه پس دعا ثابته ده، بلکې د فرائضو نه پس دعا کول د قبوليت د مواضعو نه شمار کړی دی، لکه يو حديث کې دي (**دُبر الصلوة المكتوبة**) علامه ابن القيم رحمه الله دې جملې کې تاويل کړی دی، دلته دبر الصلوة نه مراد د مونځ نه پس نه دی، بلکې د مونځ آخري حصه مراد ده، چې د سلام نه مخکې ده، خو دا تاويل صحيح نه دی، ځکه چې احاديثو کې (**اذا سلم من صلوة**) الفاظ هم راغلي او (**اذا انصرفت من صلوة المغرب**) الفاظ هم راغلي، دې نه معلوميږي چې دا اذکار د مونځ په اختتام کې دي، لکه بعضې روايتو کې عجيبه الفاظ راغلي دي، دې کې د فرضو نه پس دعا کې لاس او چتول ثابتيږي، مثلاً مصنف ابن ابی شيبه کې د حضرت عبد الله ابن زبير رضي الله عنه يو حديث دی. الفاظ يې دا دي: (**ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لم يكن يرفع يديه حتى يفرغ من صلوته**) حافظ

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۲۵/۲، رقم الحديث ۸۴۲، ومسلم في الصحيح ۴۱۰/۱ رقم الحديث: ۱۲۰-۵۸۳، وأبو داود ۶۰۹/۱ رقم الحديث ۱۰۰۲، والنسائي ۶۷/۳، رقم الحديث. ۱۳۳۵

جلال الدين سيوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې حديث متعلق ليکي: رجاله ثقات. (اعلاء السنن)

**د فرائضو نه پس اذکار طويل دي که قصير**: د فرضو نه پس څو مره وخت پورې ذکر په کار دی، دې باره کې مختلف روايات دي، خو بنيادي طور باندې دا احاديث په دوه قسمه تقسيم کړی شوي دي، رومبی قسم هغه احاديث دي د کوم نه چې معلوميږي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ نه پس مختصر ذکر او دعا کوله، او مصلی نه به پاڅيدو. د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا **اللهم انت السلام** والا روايت د دې نه يو قسم دی، دويم قسم هغه احاديث دي، چې د هغې نه معلوميږي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طويل اذکار او دعاګانې کړي دي، لکه (۳۳) ځله لوستلو والا دعا او آيت الکرسي او کله سحر نه پس د لمر راختو پورې دعاګانې کولې، احنافو دواړو کې داسې تطبيق کړی دی، د مختصر اذکارو والا احاديثو تعلق د هغه مونځ سره دی چې د هغې نه پس سنت مؤکده وي، لکه ماسپخين، ماښام او ماسخوتن، د طويل اذکارو احاديثو تعلق د هغه مونځ سره دی، چې د هغې نه پس سنت نه وي، لکه سحر او مازيګر مونځونه، فقهاء ليکي کوم مونځ نه پس چې سنت وي، د هغې زر کولو وجه دا ده، چې دا سنت د فرائضو سره يو ځای کړي او آسمان طرف ته يې او چتوي، يو مرفوع حديث يې د حضرت حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نقل کړی دی، د دې الفاظ دا دي: (**عجلوا الرکعتين بعد المغرب فانهما ترفعان مع المکتوبة**) (اعلاء السنن ج ۳ ص ۱۵۷).

**د فرضو نه پس الله اکبر په اوچت اواز لوستل او که په مزه؟**: حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زير بحث روايت متعلق مخکې ليکلی شوي دي، چې هغه ماشوم وو، ځکه جماعت کې نه شريکيدو او کورې مسجد سره نزدې وو، ځکه يې د صحابو مونځ نه فارغ کيدو نه پس د الله اکبر آواز اوريدلو، دغه يې نقل کړي دي، دې حديث نه معلوميږي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ نه پس په اوچت آواز باندې الله اکبر وئيلو، د دې حديث په بنياد بعضې علماء قائل شوي وو، په تيز آواز باندې د مونځ نه پس الله اکبر ويل مستحب دي، دې کې ابن حزم او شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دی، د جمهورو فقهاو او ائمه اربعو مسلک دا دی. د فرضو نه پس په تيز آواز الله اکبر ويل مستحب نه دي، بلکې مستحب په مزه آواز سره ويل دي، د جمهورو په نزد باندې کله کله په تيز آواز سره د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا عمل د امت د پاره بطور تعليم وو. او دا حديث په تعليم باندې محمول وو، دې نه پس عبدالله ابن زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حديث هم په تعليم امت باندې محمول دی، يا دا عمل د حج نه پس په منی کې ايام تشريق په تکبيراتو باندې محمول دی، يا دا جهر معمول مطابق معتدل جهر باندې محمول دی، اوس هم د اهل حقو مساجدو کې شروع دي، او د خلکو د ګنې د وجې نه آواز کې شور پيدا کيږي. (المرقات ۳/۳۹).

**د مونځونو نه پس د اهل بدعت عمل مستند نه دی**: د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې حديث نه اهل بدعت استدلال

کوي او مونځ نه پس په اوچت آواز باندې لااله الاالله ذکر څه وخت پورې کوي او خیال کوي، چې سنت طریقه باندې عمل کوي، خو د دوی دا استدلال د څه وجوهاتو په بناء صحیح نه دی، بلکې بې ځایه دی.
**اوله وجه**: اصل قاعده داده چې د صحابه کرامو عمل ته به کتلی شي، چې دوی د حضور ﷺ عمل کومې اندازې سره قبول کړی دی، آیا همیشه د پاره یې شروع کړی وو او که نه وقتي طور باندې د څه عارض د وجې نه یې هغه عمل ترک کړی وي، دې قاعدې او اصل طرف ته د احادیثو مشهور شارح ابن بطال رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه دې حدیث باندې تبصره کړې فرمایي :(**و قول ابن عباس کان علی عهد رسول الله ﷺ فیه دلالة انه لم یکن یفعل حین حدث به لانه لو کان یفعل لم یکن لقوله معنی فکان التکبیر في اثر الصلوة لم یواظب الرسول ﷺ طول حیاته و فهم اصحابه ان ذلک لیس بلازم فترکوه خشیة ان یظن انه مما لاتتم الصلوة الا به فلذلک کرهه من الفقهاء**.) (**بحواله أشرف التوضیح**)
ددې عبارت مطلب مختصراً دا دی چې ابن عباس رضی الله عنه چې دا وفرمایل چې د حضور صلی الله علیه وسلم په زمانې کې به داسې کېدل دا ددې خبرې دلیل دی چې حضرت ابن عباس رضی الله عنه کوم وخت کې دا حدیث بیان کړو نو هغه وخت کې دده دا معمول نه وو، ځکه چې که دده خپل معمول وی، نو د ماضي په قصه بیانولو کې دده کلام څه مقصد او مطلب به نه جوړېدو.
خلاصه دا شوه چې تیز آواز سره تکبیر ویلو باندې حضور ﷺ پوره ژوند کې مواظبت نه وو کړی او حضور ﷺ صحابو هم دا ګڼله چې دا عمل لازم نه دی، ځکه هغوی دا عمل ترک کړو، ددې وېرې نه چې خلک یې د مونځ حصه ونه ګڼي، دې وجې نه فقهاو هم دا خوښ نه کړو.
**دوهمه وجه**: دا په ذهن کې ساتل په کار دي چې د یو حدیث هغه مطلب معتبر وي کوم چې فقهاو او علماو راویستی وي د خپل طرف نه د خیر القرون نه پس مناسب نه ده چې څه خلک د یو حدیث په مطلب کې د اجتهاد نه کار واخلي او د هغې هغه مطلب راوباسي چې په خیرالقرون کې چا هم نه وي راویستی په زیر بحث مسئله کې هم کتل په کار دي چې د امت علماء ددې حدیث څه مطلب راویستی دی او ترننه پورې د علماء حق عمل په دې سلسله کې څنګه دی د صحابه کرامو خبره خو تاسو واورېدله چې صحابه کرامو په نزد باندې مونځ نه پس ذکر بالجهر رواج نه وو، د هغوئ نه بعد فقهاء هم دې حدیث نه د مونځ نه پس ذکر بالجهر استحباب ثابت کړی ندی، د مذاهب اربعو فقهاو نه یو هم د مونځ نه پس اجتماعي طور باندې ذکر بالجهر ته مستحب نه دي ویلي، دا خو لا پرېږده چې ضروري او لازم ورته ووایي صحابه

ورته هم نه دي ویلي. امام نووي شرح مسلم (ج۱ ص ۲۱۷) کې لیکي: **و نقل ابن بطال و آخرون ان اصحاب المذاهب المتبوعة و غیرهم متفقون علی عدم استحباب رفع الصوت بالذکر والتکبیر.**
بیا امام نووي رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په حوالې سره د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث مطلب داسې بیان کړی دی: **و حمل الشافعي رَحِمَهُ اللهُ الحدیث علی انه جهر وقتاً یسیرًا حتی یعلمهم صفة الذکر لا انهم جهر وا دائماً)** (شرح مسلم ج۱ ص ۲۱۷)
خلاصه دا چې یا خو د جهر نه داسې معتدل جهر مراد واخیستلی شي، چې ذې کې افراط او تفریط نه وي، دې باندې ټول خلک هم متفق کیدی شي او روایاتو کې هم تطبیق راتلی شي، بس دومره خبره ده چې بریلوي حضرات دې خپل آواز لږ کم کړي او دیوبندیان دې خپل آواز لږ او چت کړي، دلته مناسب معلومیږي، چې مطلق ذکر باره کې ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ یو عبارت نقل کړی دی، چې دواړو اطرافو کې اعتدال راشي، دا عبارت هغوی د مشکوة باب الاعتصام بالکتاب والسنة فصل ثالث کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث الفاظ (**واقلهم تکلفاً**) شرح کې لیکلی دی ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د صحابه کرامو شرعي مزاج په باره کې فرمایي:

**(و کذا في الاحوال الباطنیة فانهم کانوا لا یرقصون ولا یصیحون ولا یطیحون ولا یطرقون ولا یجتمعون للغناء والمزامیر ولا یتحلقون للاذکار والصلوات برفع الصوت في المساجد ولا في بیوتهم بل کانوا فرشیین باً بدانهم عرشیین بأرواحهم کائنین مع الخلق في الظاهر بائنین عن الخلق مع الحق في الباطن.. الخ**

**یطیحون**: سرګردان او د ځان نه مجذوب جوړ کړي او کرځي هغه ته وایي، **یطرقون** منتر ویلو په معنی سره دی **بائنین** جدا جدا معنی یې ده باقي ترجمه واضحه ده، الله تعالی دې په اعتدال باندې د قائم اوسیدو توفیق راکړي آمین.

## د فرض مونځ نه پس د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ناستې مقدار

| |
|---|
| **﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ لَمْ يَقْعُدْ** |
| د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به کله سلام اړولو، نو ناسته به یې |
| **إِلَّا مِقْدَارَ مَا يَقُولُ : « اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَ مِنْكَ** |
| کوله په اندازه ددې دعاء: ای الله! ته سالم یې (یعنې د ټولو عیبونو نه پاک یې) او تا نه (د بنده ګانو |

السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

د ټولو آفاتو نه ) سلامتيا ده اى د لوئي او بخشش خاونده ته لوي يې.

﴿۳﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلَاتِهِ

د حضرت ثوبان رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم چې به کله خپل مونځ نه فارغ شو.

اسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا وَ قَالَ : « اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ

نو درې ځلې به يې استغفار ويلو او بيا به يې دا دعا لوستله: اى الله! ته سالم يې ( يعني د ټولو عيونو

وَ مِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَ الْإِكْرَامِ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

نه پاک يې ) او تا ته ( د بنده ګانو د ټولو آفاتو نه ) سلامتيا ده اى د لوئي او بخشش خاونده ته لوي يې.

﴿٤﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ:

حضرت شعبه رضي الله عنه فرمايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به د فرض مونځ نه پس (مذکوره دعاء لوستله)

« لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ

دالله تعالى نه سوا بل معبود نشته، هغه يو دى څوک شريک يې نشته، هغه د پاره بادشاهي ده او الله تعالى

الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ

د پاره تعريف دى، هر يو څيز باندې قادر دى، اى الله! کوم څيز چې ته راکوې څوک يې هم نه شي منع کولى

وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ

او کوم څيز چې را نه ته منع کوې، نو د هغې ورکولو والا څوک نشته او بچ کيدى نه شي دولت مند د خپل

مِنْكَ الْجَدُّ». (متفق عليه)[3]

دولت د وجې نه ستا د عذاب نه .

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/٤١٤ رقم الحديث ۱۳٦-٥٩٢، وأبو داود ۱۷٦/۲ رقم الحديث ۱٥۱۲، والنسائي ٦٩/۳، رقم الحديث: ۱۳۳۸، والترمذي ۱/٩٥ رقم الحديث ۲۹۸، وابن ماجة ۲۹۸/۱، رقم الحديث. ٩۲٤

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/٤١٤ رقم الحديث ۱۳٥ ٥٩١

(۳) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۲٥، رقم الحديث ٨٤٤، ومسلم في الصحيح ٤۱٧/۱ رقم الحديث.۲۰٥-٤٧٧، وأبو داود ۱٧۲/۲ رقم الحديث ۱٥۰٥، والنسائي ۷۰/۳

**توضیح**: **ولا ینفع** : ددې صیغې فاعل **الجد** لفظ دی او دلته د دولت په معنی دی او **ذالجد** نه مراد مالدار سړی دی، دا لفظ د **لاینفع** د پاره مفعول به دی، **منک ای من عذابک** .(المرقات ۳/٤۱).

**دبر کل صلوة** : ددې څو مطلبه دي : یو دا چې د مونځ نه پس دا مطلب یې هم دی، بل د فرضو سلام سره متصل لوستل او دا مطلب یې هم دی چې د سنتو نه پس دا دعاء لوستل دا هم د فرضو نه پس ده. (المرقات ۳/۴۰).

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ يَقُولُ |
| عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم کله خپل مونځ نه سلام واړوو، نو لوستل به یې |
| بِصَوْتِهِ الْأَعْلَى : « لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ |
| په اوچت آواز باندې دا کلمات: دالله تعالی نه سوا بل معبود نشته، هغه یو دی، څوک د هغه شریک نشته، |
| لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ لَا حَوْلَ وَلَا |
| هغه د پاره باد شاهي ده، هغه د پاره هر قسم تعریف دی، او هر څیز باندې قادر دی، ګناه نه بچ کیدل او د |
| قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَلَا نَعْبُدُ إِلَّا إِيَّاهُ |
| عبادت کولو قوت صرف د الله تعالی په مدد سره دی، الله تعالی نه سوا معبود نشته، مونږ د هغه عبادت کوو، |
| لَهُ النِّعْمَةُ وَ لَهُ الْفَضْلُ وَ لَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ |
| الله تعالی طرف نه نعمت دی، او الله تعالی د پاره بزرګي ده، او هر قسم ښه تعریف الله تعالی د پاره دی، الله |
| لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَ لَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ » . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| تعالی نه سوا معبود نشته، مونږ خالص د الله تعالی د پاره عبادت کوو، اګر چې کافر یې نه خوښوي. |

## حضور صلی الله علیه وسلم د بزدلۍ نه د پناه دعاء ولې غوښتله

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يُعَلِّمُ بَنِيهِ هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَ يَقُولُ : |
| د حضرت سعد رضی الله عنه په باره کې مروي دي هغه به خپل اولاد ته د دعا دا الفاظ ښودل او فرمایل به یې |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/٤١٦ رقم الحديث ۱۳۹-٥٩٤، وأبو داود ۲/۱۷۳ رقم الحديث :۱٥۰٦، والنسائي ۳/۷۰، رقم الحديث ۱۳٤۰ .

إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ دُبُرَ الصَّلَاةِ : « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ

چې حضور ﷺ به خپل مونځ نه پس دې الفاظو سره پناه غوښتله، (ترجمه) اى الله زه پناه غواړم

مِنَ الْجُبْنِ وَ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ أَعُوذُ

په تا سره د بزدلۍ نه، او پناه غواړم په تا سره د بخل نه، او پناه غواړم په تا سره د ناكاره عمر نه، او پناه

بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1].

غواړم په تا سره د فتنو د دنيا نه او د عذاب قبر نه.

**توضيح: من الجبن:** حضور ﷺ بار بار د بزدلۍ نه پناه غوښتې ده، د دې وجه صرف هغه خلكو ته معلومه ده، چې د جهاد سره يې تعلق وي، ځكه چې كوم كس بزدله وي هغه نه خپل عزت بچ كوي او نه د مذهب دفاع كوي، رو رو يې بزدلي ډيرې كيږي، تردې چې د جهاد نه انكار وكړي، او داسې تاويلات كوي، چې د جهاد ميدان ته بهادر سړي راشي دا د بزدلانو كار نه دى. (المرقات ۳/۴۲).

دغه رنګ معامله د بخل نه د پناه غوښتلو هم ده ځكه چې كوم انسان بخيل شي هغه د صله رحمۍ حقوق پايمالوي، انساني حدود پايمالوي، تردې چې د فرضې زكات نه هم انكار وكړي.

**ارذل العمر:** دې نه يې پناه ځكه غوښتې ده، دې وخت كې د خپل عزت خيال نه شي ساتلى، نه او د لاس ماتى په خپله كولى شي، او نه كپړې په خپله وينځلى شي، او د كور په اضافي څيزونو كې شمارلى شي. (المرقات ۳/۴۲). يو شاعر وايي:

**فلا و الله ما في العيش خير ❁ اذا ما عد من سقط المتاع**

**ترجمه:** قسم په الله! په دې ژوند كې هيڅ خير نشته چې كله انسان د كور په اضافي شيانو كې شمار كړل شي

## د مالدار او غريب په عبادت كې تقابل

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: (إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابوهريره رضي الله عنه فرمايي (يو ورځ) مهاجر فقراء د حضور ﷺ په خدمت اقدس كې حاضر شول

فَقَالُوا : قَدْ ذَهَبَ أَهْلُ الدُّثُورِ بِالدَّرَجَاتِ الْعُلَى وَ النَّعِيمِ الْمُقِيمِ

او عرض يې وكړو يارسول الله! دولت مندو خلكو اوچت درجات او دائمي نعمتونه يې ويوړل، حضور

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۱/۱۷۴، رقم الحديث: ۶۳۶۴، ومسلم في الصحيح ۴/۲۰۸۰ رقم الحديث: ۵۲-۲۷۰۶، والترمذي ۵/۵۲۵ رقم الحديث: ۳۵۶۷، وابن ماجة ۲/۱۲۶۳، رقم الحديث: ۳۸۴۴.

فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوا يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل هغه څنګه، هغوی وویل چې هغوی داسې مونځ کوي څنګه چې یې مونږ کوو

وَ يَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ وَ يَتَصَدَّقُونَ وَلَا نَتَصَدَّقُ

او روژې نیسي څنګه چې یې مونږ نیسو هغوی صدقات او خیرات کوي مونږ صدقات او خیرات نه شو کولی

وَ يُعْتِقُونَ وَلَا نُعْتِقُ

هغوی غلام آزادوي مونږ یې نه شو آزادولی ددې وجې نه هغوي ددې ثواب حقدار شو او مونږ محروم پاتې

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَفَلَا أُعَلِّمُكُمْ شَيْئًا تُدْرِكُونَ بِهِ

شو نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمایل آیا زه تاسو ته داسې شیزونه ونه ښایم چې تاسې ورسې دې باندې عمل کولو سره

مَنْ سَبَقَكُمْ وَ تَسْبِقُونَ بِهِ مَنْ

د هغوی درجاتو ته کوم چې تاسو نه مخکې اسلام راوړی او د هغو خلکو درجو نه او چت شئ کوم چې تاسو

بَعْدَكُمْ وَلَا يَكُونُ أَحَدٌ أَفْضَلَ مِنْكُمْ إِلَّا مَنْ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُمْ »

نه پس دي او هیڅوک ستاسو نه بهتر نه شي کیدی، خو صرف هغه کس چې ستاسو د عمل په شان عمل کوي

قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : « تُسَبِّحُونَ وَ تُكَبِّرُونَ

هغوئ عرض وکړو بنه ده او ښایې، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل تاسو هر مونځ نه پس سبحان الله، الله اکبر

وَ تَحْمَدُونَ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِينَ مَرَّةً » . قَالَ أَبُو صَالِحٍ : فَرَجَعَ فُقَرَاءُ

او الحمد لله دري دیرش (۳۳) ځلې وایې (حدیث یو راوي) ابو صالح وایي څه ورځې پس حاضر شو فقراء

الْمُهَاجِرِينَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا سَمِعَ إِخْوَانُنَا أَهْلُ الْأَمْوَالِ بِمَا فَعَلْنَا

مهاجرین حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او عرض یې وکړو یا رسول الله ! که مالدار خلک ددې عمل نه خبر شو او

فَفَعَلُوا مِثْلَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « ذَٰلِكَ فَضْلُ

هغوئ شروع کړو (نو بیا به زمونږ نه په عمل کې افضل شي) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : دا ورکړه د

اللهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ » .

الله تعالی ده چې چا باندې فضل او انعام کوي.

وَلَيْسَ قَوْلُ أَبِي صَالِحٍ إِلَى آخِرِهِ إِلَّا عِنْدَ مُسْلِمٍ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: «تُسَبِّحُونَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ عَشْرًا وَتَحْمَدُونَ

عَشْرًا وَتُكَبِّرُونَ عشرا». بدل ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ (متفق عليه)[1].

**توضیح: ذلک فضل الله**: یعنې کوم ځای پورې چې انسان عباداتو کې مقابله کولی شي، نو په کار ده، خو چې کوم ځای کې د مقابلې ګنجائش نه وي، بیا د حسد او عناد ضرورت نشته، بلکې دا سبقت د الله تعالی د تقدیر ګرځول او دا ویل په کار دي، چې دا د الله تعالی خصوصي رعایت دی، دې کې مونږ څه نه شو کولی، (المرقات ۳/۴۵).

دې حدیث نه دا معلومیږي چې عبادت کونکي مالدار او وظائف کونکي دولت مند د فقیر نه افضل دي، دې باره کې مشکوة آخري ابوابو کې به ان شاء الله کلام کیږي.

دې باره کې د علماو اختلاف دی، چې د شاکر مالداره درجه اوچته ده یا د صابر فقیر. بابا سعدي رحمه الله ګلستان کې یو فقیر زاهد سره دې مسئله کې خپله مناظره نقل کړې ده، بابا سعدي رحمه الله د مالداره شکرګزاره د فضیلت قائل دی، ابن عطاء هم د شاکر مالداره د افضلیت قائل وو، خو جنید بغدادي رحمه الله او نور اهل الله د فقر او فاقې او د فقیر د افضلیت قائل دي.

زیر بحث حدیث کې اګر چې ذلک فضل الله سې فرمایلی دی، خو د فقیر په نسبت لره مالداره د پاره خطرات دیر دي، علماء لیکي د مالدارو دا فضلیت جزئی دی، او فقراو ته کلي فضیلت حاصل دی.

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مُعَقِّبَاتٌ |
| د کعب بن عجرة رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: هر فرض مونځ نه پس د |
| لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ أَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ: |
| لوستلو د پاره یو څو کلمات وي چې د هغې ویلو والا، یا یې وفرمایل چې د هغې کونکی محروم نه پاتې کیږي |
| ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَسْبِيحَةً ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَحْمِيدَةً وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ تَكْبِيرَةً". (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2]. |
| (هغه کلمات دا دي) سبحان الله دري دیرش، الحمد الله دري دیرش، الله اکبر څلور دیرش ځلې ویل. |

**توضیح: معقبات** د عقب نه دی د یو نه پس بل راتلو والا ته عقب ویل کیږي، دلته د غه کلماتو ته معقبات ځکه ویلی شوي دي، چې دا یو بل پسې راځي.

**خاب** نامراد ته ویلي کیږي. (المرقات ۳/۴۷).

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۲۵، رقم الحديث: ۸۴۳، ومسلم في الصحيح ۱/۴۱۶، رقم الحديث: ۱۴۲-۵۹۵.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۴۱۸، رقم الحديث ۱۴۵-۵۹۶، والنسائي ۳/۷۵ رقم الحديث: ۱۳۴۹.

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَبَّحَ اللهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ

ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي کوم کس چې سبحان الله د هر مونځ نه

ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِينَ وَ حَمِدَ اللهَ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِينَ وَ كَبَّرَ اللهَ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِينَ فَتِلْكَ

پس دري ديرش ځلې، الحمد لله دري ديرش ځلې او الله اکبر دري ديرش ځلې ووايي چې دا د دې مجموعه عدد

تِسْعَةٌ وَ تِسْعُونَ وَ قَالَ تَمَامَ الْمِائَةِ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ

يو کم سل (۹۹) دی، او سل عدد پوره کولو د پاره يو ځلې لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله

الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ غُفِرَتْ خَطَايَاهُ وَ إِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ ".[1]

الحمد وهو علی کل شيء قدير ووايي نو دده به ټول ګناهونه وبخلی شي، اګر چې د سمندر د ځګ برابر وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## د دعاء د قبوليت وخت

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟

د ابو امامة رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې تپوس وکړی شو يا رسول الله! کوم وخت کې دعا ډيره قبليږي؟

قَالَ: «جَوْفُ اللَّيْلِ الآخر ودبر الصَّلَوَات المكتوبات». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[2].

حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل د شپې په آخري حصه کې او د فرض مونځ نه پس.

## د معوذاتو د لوستلو فائدې

﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ

د عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: حضور صلی الله علیه وسلم ماته حکم وکړو، چې تاسې ولولئ

بِالْمُعَوِّذَاتِ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ[3].

معوذات د هر مونځ نه پس.

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۱۸ رقم الحديث ۱۴۶-۵۹۷.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۹۲ رقم الحديث ۳۴۹۹.

(۳) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۸۱ رقم الحديث: ۱۵۲۳، وأخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۵۷، رقم الحديث: ۲۹۰۳.

## د لمر راختو پورې د ذکر فضیلت

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «لَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ

دانس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې : حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي دیو داسې جماعت سره زما ناسته ،

يَذْكُرُونَ اللهَ مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً

کوم چې د سحر مونځ نه د لمر راختو پورې ذکر کې مشغول وي دا ماته بهتر دی د آزادید و د څلورو غلامانو

مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ وَ لَأَنْ أَقْعُدَ مَعَ قَوْمٍ يَذْكُرُونَ اللهَ مِنْ

د اولاد د اسماعیل علیه السلام نه ، او زما ناسته د داسې خلکو سره چې د الله تعالی په ذکر کې مشغول وي د

صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ أَرْبَعَةً» . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

مازیګر د مونځ نه تر مابنام لمر پریوتو پورې زما په نزد باندې د دې نه بهتر دی چې څلور غلامان آزاد کړم.

**توضیح:** د عجمو په نسبت عرب افضل دي، ځکه ولد اسماعیل تخصیص یې وکړو ، دې حدیث نه طویل ذکر الله ثبوت ملاویږي دا د هغه مونځ نه پس ذکر دی، چې د هغې نه پس سنن نه وي.(المرقات ۳/۵۱).

## په دوه رکعته اشراق باندې د حج او عمرې ثواب

﴿۱۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «مَنْ صَلَّى الْفَجْرَ فِي جَمَاعَةٍ

دانس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام وفرمایل کوم کس چې د سحر مونځ جماعت سره

ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللهَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ كَانَتْ

وکړي او د اشراق وخت پورې د الله تعالی ذکر کې مشغول وي، او بیا دوه رکعته مونځ وکړي، نو دې کس

لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ وَ عُمْرَةٍ» . قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «تَامَّةٍ

ته به د حج او عمرې ثواب ملاؤ شي، د راوي بیان دی، چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي د پوره حج او

تَامَّةٍ تَامَّةٍ» . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2].

عمرې، د پوره حج او عمرې، د پوره حج او عمرې ثواب دی ته ملاؤیږي.

**توضیح: حجة و عمرة:** شریعت کې د نیک اعمالو یو اصل ثواب وي او یو زائد او فضل ثواب وي،

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۷۳/٤ رقم الحديث ۳٦٦۷.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱۸۰/۲ رقم الحديث : ٥٨٦.

اصل ثواب د بل نیک عمل په بدله کې ملاویږي، خو زائد او فضل ثواب صرف هغه کس ته ملاویږي. چې اصل عمل کې محنت کولو سره عمل کوي، مثلاً یو کس ذاکر دی، او لمر راختو پورې ذکرالله کې مشغول وي او اشراق دوه رکعته مونځ یې هم وکړو، دې ته د حج او عمرې اصل ثواب ملاویږي، دا د الله تعالی په نزد باندې مقرر او متعین دی، او یو کس د حج او عمرې د پاره په خپله ځې محنت او مشقت برداشت کوي، خرچې کوي، هغې کې چې کوم زائد ثواب دی، دا ثواب صرف هغه کس ته ملاویږي کوم چې په خپله د حج او عمرې سفر وکړو، همدارنګې نور اعمال هم په دې باندې قیاس کړه. (المرقات ۳/۵۳-۵۲)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د فرض مونځ نه پس سمدستي د سنتو د پاره اودریدل منع دي

﴿۱٤﴾ وَعَنِ الْأَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ: صَلَّى بِنَا إِمَامٌ لَنَا يُكْنَى أَبَا رِمْثَةَ

ازرق بن قیس رضي الله عنه فرمایي یو ورځ زمونږ امام چې د هغه کنیه ابورمثه وه، مونږ ته یې مونځ وکړو او

قَالَ: صَلَّيْتُ هٰذِهِ الصَّلَاةَ أَوْ مِثْلَ هٰذِهِ الصَّلَاةِ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

وې فرمایل ما یو ورځ دا مونځ یا ددې په شان مونځ د حضور صلی الله علیه وسلم سره وکړو، حضرت ابورمثه وایي

وَكَانَ أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ يَقُومَانِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ عَنْ يَمِينِهِ

(دې مونځ کې) ابوبکر صدیق او عمر فاروق رضي الله عنهما هم د نبي علیه السلام ښي طرف ته په اول صف کې ولاړ وو

وَكَانَ رَجُلٌ قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ فَصَلَّى نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَلَّمَ

یو کس (وروسته راغی) او تکبیر اولی کې شریک شو حضور صلی الله علیه وسلم مونځ وکړو او سلام یې وګرځولو

عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ حَتَّى رَأَيْنَا بَيَاضَ خَدَّيْهِ ثُمَّ انْفَتَلَ كَانْفِتَالِ أَبِي رِمْثَةَ يَعْنِي

مونږ د حضور صلی الله علیه وسلم دانګو سپینوالی ولیدو، بیا حضور صلی الله علیه وسلم ابورمثه یعنې زما طرف ته یې

نَفْسَهُ فَقَامَ الرَّجُلُ الَّذِي أَدْرَكَ مَعَهُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ يَشْفَعُ

مخ راواړولو او کیناستو هغه کس کوم چې تکبیر اولی کې شامل شوی وو دریدو د دوه رکعته مونځ د پاره

فَوَثَبَ إِلَيْهِ عُمَرُ فَأَخَذَ بِمَنْكِبَيْهِ فَهَزَّهُ ثُمَّ قَالَ

حضرت عمر رضي الله عنه فوراً پاڅیدو او دغه کس یې دواړو اوږو نه ونیوو او حرکت یې ورکړو او وې فرمایل

| |
|---|
| اجْلِسْ فَإِنَّهُ لَمْ يُهْلِكْ أَهْلَ الْكِتَابِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بَيْنَ |
| چې کېنه ځکه چې اهل کتاب د هلاکت کندې کې ځکه وربړيوتي وو چې هغوي به جدا والى نه کولو په |
| صَلَاتِهِمْ فَصْلٌ. فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَصَرَهُ فَقَالَ: « أَصَابَ |
| خپلو مونځونو کې (يعنې مينځ کې) نبي عليه السلام خپل نظر بره اوچت کړو او وې فرمايل تا دې په نيکۍ کړي |
| اللهُ بِكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| الله تعالى اى د خطاب ځويه (يعنې تا رښتيا وويل). |

**توضيح: التكبيرة الاولى:** يعنې دا كس مسبوق نه وو، چې فوت شوي مونځ د پاره سمدستي ودريدو، بلكې دا مدرک وو، او مونځ نه فارغ شوې ؤ او بغير د وقفې نه فوراً د نوافلو د پاره اودريدو، لكه بعضې جلدي كوونكي افغانان داسې كوي. (المرقات ۳/۵۳).

**فهزه:** يعنې عمر فاروق رضي الله عنه دغه كس د دواړو ولو نه ونيوو او ديكه يې ورله وركړه او ورته يې وويل كېنه، دومره زر نوافلو د پاره مه ودريږه. (المرقات ۳/۵۴).

**فصل:** يعنې د فرض او نوافلو په منځ كې وقفه او جدائي نه وه، دا جدائي يا خو د ذكر د وجې نه ده، يا د ځاى د بدليدو د وجې نه ده، يا د مسجد نه د بهر وتلو د وجې نه ده. (المرقات ۳/۵۴).

**سوال:** ددې كس دومره لوى جرم څه وو، چې دې باندې يې ورته د هلاكت وعيد واورولو؟

**جواب:** ددغه كس فعل كې د فرض او نفل يو بل سره د متصل كولو جرم وو او يو ځاى كيدلو جرم دى، دغه رنګ عمل سره به نوافل فرائضو كې داخل شي او خلک به وايي چې دا فرض دي، دا عقيده خطرناكه او موجب هلاكت ده.

## د مونځ نه پس د تسبيحاتو يو صورت

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: أُمِرْنَا أَنْ نُسَبِّحَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِيْنَ |
| زيد بن ثابت رضي الله عنه وايي چې مونږ ته حكم راكړى شو چې هر مونځ نه پس سبحان الله دري ديرش ځلې، |
| وَ نَحْمَدَ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثِيْنَ وَ نُكَبِّرَ أَرْبَعًا وَ ثَلَاثِيْنَ فَأُتِيَ رَجُلٌ فِي الْمَنَامِ مِنَ الْأَنْصَارِ |
| الحمد لله دري ديرش ځلې او الله اكبر څلور ديرش ځلې وايي، يو انصاري فرښته خوب كې وليده، فرښتې |

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۱/۶۱۱ رقم الحديث ۱۰۰۷

فَقِيلَ لَهُ أَمَرَكُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ تُسَبِّحُوْا فِي دبر كُلِّ صَلَاةٍ

دد غه انصاري نه تپوس وکړو رسول الله ﷺ تاته حکم درکړی چې ته تسبیح وایه د هر مونځ نه پس

كَذَا وَ كَذَا قَالَ الأَنْصَارِيُّ فِي مَنَامِهِ نَعَمْ قَالَ فَاجْعَلُوهَا خَمْسًا وَ عِشْرِينَ

دومره دومره، دغه انصاري وویل چې فرښتې وویل دد غه کلماتو تعداد د پنځویشت ځلي مقرر کړه او دې

وَاجْعَلُوا فِيهَا التَّهْلِيلَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

سره لا اله الا الله پنځویشت ځلي مقرر کړه کله چې سبا شو دغه انصاري د حضور ﷺ په خدمت کې

فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « فَافْعَلُوا »[1].

حاضر شو او خپل د خوب حالت یې ورته بیان کړو حضور ﷺ ورته وفرمایل په دې باندې عمل وکړه

**توضيح:** فافعلوا: یعنې ما چې څه اوښودل دغه رنګ تسبیحات لولئ او تا چې خوب کې څه اولیدل او فرښتې اوښودل دغه هم وایه، دا د الله تعالی ذکر دی، څه پابندي نشته. (المرقات ۳/۵۶).

علامه شمس الدين رحمه الله (التعليق الفصيح شرح مشكوة المصابيح ج۲ ص ۷) باندې درې دیرشو تسبیحاتو متعلق لیکلي: شریعت کې چې کوم شمار واقع دی، هغې نه په کم باندې مطلوب فضیلت او مطلوب ثواب نه حاصلیږي، که یو کس مطلوبه عدد لولي او دې باندې اضافت کوي او د کم په ځای باندې دیر لولي، هغوئ ته هم هغه ثواب ملاویږي کوم چې فضیلت کې معین او مقرر شوی.

## د آیت الکرسي لوی فضیلت

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى أَعْوَادِ الْمِنْبَرِ يَقُولُ: «مَنْ

حضرت علي رضي الله عنه وايي ما د حضور ﷺ نه دغه د لرګو منبر باندې اوریدلي، چې کوم کس د

قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُولِ الْجَنَّةِ إِلَّا الْمَوْتُ وَ

هر مونځ نه پس آیة الکرسي لولي، نو ده لره جنت ته د تلو نه مرګ نه علاوه بل څیز نه شي منع کولی. او

مَنْ قَرَأَهَا حِينَ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ آمَنَهُ اللهُ عَلَى دَارِهِ وَدَارِ جَارِهِ وَأَهْلِ دُوَيْرَاتٍ حَوْلَهُ»

څوک چې یې داوده کیدو په وخت کې ووایي، الله تعالی دده کور ته او د ګاونډیانو کورونو ته امن ورکوي

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۷۶/۳، رقم الحديث : ۱۳۵۰ ، والدارمي ۳۶۰/۱ رقم الحديث ۱۳۵۴.

(رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ . فِي شعب الْإِيمَان وَ قَالَ إِسْنَاده ضَعِيف)[1].

دا روايت بيهقي په شعب الايمان کښې نقل کړی ، او ويلي يې دي، چې دده اسناد ضعيف دي.

**توضيح: الالموت:** دې حديث کښې د اية الکرسي لوی مقام ښودلی دی، دا حديث اګر چې ضعيف دی، خو د اعمالو په فضيلت کښې دا قسم احاديث هم مقبول دي.(المرقات ۳/۵۶).

**سوال:** دلته ظاهري طور باندې اشکال دی، چې د دخول جنت د پاره مانع مرګ نه دی، بلکې حيات او ژوند مانع دی، ځکه چې ژوندی کس جنت ته داخليدی نه شي.

**جواب:** علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ د اعتراض جواب ورکوي، اصل کښې ددې کلام مقصد دا دی چې د بنده او د جنت په منځ کښې يوه پرده ده، چې يو طرف ته جنت دی او دويم طرف ته حيات دی، منځ کښې د مرګ پرده حائل ده، چې دا پرده لرې شي ، سړی به جنت ته داخل شي ، دا وجه ده چې د مرګ په باره کښې ويلی شي ، (**الموت تحفة المؤمن**) او دا هم ويلی شوي دي (**الموت جسر يوصل الحبيب الى الحبيب**) (الکاشف ۲/۴۶۲).

## د سحر او ماښام نه پس د الله د ذکر فضيلت

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: « مَنْ قَالَ

دعبدالرحمن بن غنم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي کوم کس چې ووايي د

قَبْلَ أَنْ يَنْصَرِفَ وَ يَثْنِيَ رِجْلَيْهِ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَ الصُّبْحِ

سحر او ماښام نه پس د مونځ ځای نه د پاڅيدو او خپې ارولو نه مخکښې (يعنې څنګه چې د التحياتو د پاره

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ

ناست وي) دغه کلمات: د الله نه سوا بل معبود نشته، هغه يو دی، نه يې شريک شته، هغه د پاره بادشاهي ده

وَ لَهُ الْحَمْدُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ يُحْيِي وَ يُمِيتُ وَ

او هغه لره ټول تعريفونه دي، او د هغه په لاس کښې نيکي ده، دغه ذات ژوندي کول کوي او مرګ راولي او

هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ عَشْرَ مَرَّاتٍ كُتِبَ لَهُ بِكُلِّ وَاحِدَةٍ عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَ مُحِيَتْ

په هر شيز باندې قدرت لرونکی دی، لس ځلې نو ده ته په هر ځل باندې لس نيکۍ ورکوي او معاف کوي

[1] رواه البيهقي في شعب الايمان ۲/۴۵۸ رقم الحديث . ۲۳۹۵.

عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ وَكَانَتْ حِرْزًا مِنْ كُلِّ مَكْرُوهٍ وَحِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ

دده نه لس گناهونه، او دا کلمات ددې کس د پاره د هر بد څيز نه او د شيطان رټلي شوي نه امن دی. او

وَ لَمْ يَحِلَّ لِذَنْبٍ يُدْرِكَهُ إِلَّا الشِّرْكُ وَ كَانَ مِنْ أَفْضَلِ النَّاسِ عَمَلًا

شرک نه علاوه يو گناه هم دی نه شي هلاکولی او دغه کس د عمل په اعتبار سره ټولو خلکو نه بهتر او افضل

إِلَّا رَجُلًا يَفْضُلُهُ يَقُولُ أَفْضَلَ مِمَّا قَالَ». (رَوَاهُ أَحمد)[1].

دی، غير د هغه کس نه چې هغه دده نه ډير دا کلمات وايي.

وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ عَنْ أَبِي ذَرٍّ إِلَى قَوْلِهِ: «إِلَّا الشِّرْكَ» وَلَمْ يَذْكُرْ: «صَلَاةَ الْمَغْرِبِ وَلَا بِيَدِهِ الْخَيْرُ» وَقَالَ:

هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (ترمذي ۳۴۷۴).

## صرف نوم د الله الله ذکر د قرآن کريم نه ثابت دی

﴿۱۸﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا قِبَلَ نَجْدٍ

د عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې يو ځل حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو لښکر نجد طرف ته وليږلو

فَغَنِمُوا غَنَائِمَ كَثِيرَةً وَ أَسْرَعُوا الرَّجْعَةَ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَّا لَمْ يَخْرُجْ

نو دغه لښکر ډير زر او ډير مال غنيمت سره واپس راغی، مونږ کې يو کس چې لښکر سره نه وو تلی وې ويل

مَا رَأَيْنَا بَعْثًا أَسْرَعَ رَجْعَةً وَلَا أَفْضَلَ غَنِيمَةً مِنْ هٰذَا الْبَعْثِ

مونږ داسې يو لښکر هم نه ؤ ليدلی چې ددې لښکر په شان زر واپس راشي او ځان سره دومره ډير مال هم راوړي

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى قَوْمٍ أَفْضَلَ غَنِيمَةً وَ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل، آيا تاسې ته يو داسې جماعت ونه ښايم چې تيز وي په مال غنيمت کې او

أَفْضَلَ رَجْعَةً ؟ قَوْمًا شَهِدُوا صَلَاةَ الصُّبْحِ ثُمَّ جَلَسُوا يَذْكُرُونَ

زر راتلو کې ددوي نه (نو واورئ) هغه جماعت دا دی چې د سحر مونځ کې حاضر شي او بيا ناست وي ذکر

اللّٰه حَتّٰى طلعت عَلَيْهِم الشَّمْس أُولَئِكَ أَسْرع رَجْعَة وَ

د الله کوي د لمر راختو پورې، نو دا هغه خلک دي چې دوي مخکې دي په زر واپس راتلو کې او د ډير

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ٤/٢٢٧.

أَفْضَلَ غَنِيمَةً». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1] وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ وَ

مال غنیمت راوړوکې، دا روایت ترمذي نقل کړی او ویلي یې دي، دا حدیث غریب دی. او ددې یو راوي

حَمَّاد بن أَبِي حميد هُوَ الضَّعِيف فِي الحَدِيث.

حماد ابن ابو حمید ضعیف دی.

**توضیح: یذکرون الله:** دې مسئله کې یو بحث دی چې د الله تعالی ذکر کول صرف په اسم ذات سره یعنې الله الله سره جائز او ثابت دی یا نه دی؟

بعضې علماء مثلاً شیخ الاسلام ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ طرف ته منسوب دی، هغه ځانله د اسم ذات ذکر ثابت نه ګڼي او فرمایي ددې مفهوم مبتداء او خبر ملاوېدو نه بغیر مکمل نه دی، لهذا الله سره بل څه ملاؤ کړئ بیا ذکر صحیح دی.

خو نور علماء جمهور سلف او خلف د اسم ذات ذکر باعث د ثواب او برکت ګڼي. علامه شمس الدین رَحِمَهُ اللهُ فرمایي (تعلیق الفصیح، ج۲، ص۶) باندې د قرآن کریم ډیر آیتونه د مفرد اسم ذات ذکر ثبوت ورکوي، مثلاً:

﴿اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا﴾ (سورة احزاب آیت: ۴۱)

﴿يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ﴾ (سورة آل عمران آیت: ۱۹۰)

﴿وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ﴾ (سورة احزاب آیت: ۳۵).

دې کې د مفرد اسم ذکر بیان او ثبوت دی. علامه فرمایي د قرآن نه دا مسئله ثابته ده، ځکه صحابه کرامو په احادیثو کې ددې اهتمام ونه کړو، زه وایم په حدیث کې په مفرد اسم ذات سره ذکر کولو ثبوت شته، یو حدیث کې دي تر څو چې دنیا کې الله الله ویلو والا موجود وي قیامت به نه راځي.



# بَابُ مَا لَا يَجُوزُ مِنَ الْعَمَلِ فِي الصَّلَاةِ وَمَا يُبَاحُ مِنْهُ:

## مونځ کې د جائز او ناجائز څیزونو بیان

قال الله تعالی: ﴿قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ﴾ (سورة البقرة آیت: ۲۳۸).

وقال الله تعالی: ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾. (سورة المؤمنون آیت: ۱/۲)

بعضې اعمال او افعال داسې دي چې د هغې سره مونځ فاسدیږي او ځینې اعمال داسې دي، چې هغې سره مونځ مکروه کېږي او ځینې اعمالو سره مونځ مباح وي، ددې ټولو تفصیلات د فقه کتابونو کې مذکور دي، دلته عنوان کې لایجوز لفظ عام دی که هغه اعمال د مفسداتو د قبیلې نه وي یا د مکروه د قبیلې نه وي.

**په عمل کثیر او عمل قلیل کې فرق**: د ټول فقهاو په نزد باندې عمل کثیر سره مونځ فاسدیږي، خو د عمل قلیل او کثیر د حد په تعین کې اختلاف دی، بعضې فقهاء وایي چې کوم عمل یو لاس سره وي هغه قلیل دی او کوم عمل چې دواړو لاسونو سره وي هغه عمل کثیر دی، د یو لاس او دواړو لاسونو مراد دا دی، عام عادت چې څنګه واقع وي، د هغې اعتبار به وي، مثلاً د خلکو عادت دی، چې پټکی په دواړو لاسونو سره وهي، اوس که یو کس په مونځ کې یو لاس سره پټکي وهل شروع کړل، نو مونځ یې فاسد شو، ځکه چې عادت د یو لاس نه وو. دغه رنګ قمیص اچول شو، تیر اندازي کول شو، دا د دواړو لاسونو اعمال دي، دغه رنګ چا دواړو لاسونو سره پرتوګ کلاو کړو، دې سره مونځ نه فاسدیږي ځکه عام عادت کې دا عمل په یو لاس باندې کېږي، بعضې علماء وایي د عمل قلیل او عمل کثیر فرق داسې دی، مثلاً یو کس مونځ کې عمل کوي، او کتلو والا اولیدو، که یقین یې وو، چې داسې عمل مونځ کې نه کېږي، دا کس مونځ کې نه دی، نو دا عمل کثیر دی او مونځ پرې فاسدیږي. او که د کتونکي دا یقین وو، چې دا کس مونځ کې دی، اګر چې یو عمل کوي، دا عمل قلیل دی. (المرقات ۳/۶۰).

شیخ ابن همام رَحِمَهُ اللهُ فرمایي عمل قلیل او کثیر فیصله په خپله په مونځ ګزار باندې پریږدئ، که هغه پوهه شو، چې عمل کثیر دی، نو مونځ یې فاسد شو او که قلیل وو، نو مونځ یې صحیح دی. د بعضې علماو په نزد باندې دې معیار کې مختار دا دی، که یو عمل مسلسل درې ځلې اوشي، نو عمل کثیر دی او که ددې نه کم وو، نو قلیل دی، فقهاء ددې اقوالو د پاره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه فرمان بنیادي قاعده ګرځوي چې هغې کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو صحابي ته صرف د یو ورکوټي کاڼي لرې کولو اجازت ورکړی وو.

# الْفَصْلُ الأول:

## د مونځ په اول دور کې د صحابي عجيبه قصه

﴿۱﴾ عَنْ مُعَاوِيَةَ ابْنِ الْحَكَمِ قَالَ: بَيْنَا أَنَا أُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د معاويه بن حکم رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې نبي عليه السلام سره مايو ورځ مونځ کولو يو دم مسجد کې

إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَقُلْتُ: يَرْحَمُكَ اللهُ. فَرَمَانِي الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ.

يو کس ته پرنجې (اتروشې) راغې ما جواب کې يرحمک الله وويل خلکو ماته برګ برګ کتل شروع کړل

فَقُلْتُ: وَا ثُكْلَ أُمِّيَاهُ مَا شَأْنُكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ فَجَعَلُوا يَضْرِبُونَ بِأَيْدِيهِمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ

ما وويل زما مور دې ما ورک کړي تاسو ماته څه برګ برګ ګورئ خلکو خپل پتونان په لاسونو وهل شروع کړل

فَلَمَّا رَأَيْتُهُمْ يُصَمِّتُونَنِي لَكِنِّي سَكَتُّ فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ما چې وکتل چې خلک ما خاموش کوي، خو زه خاموش شوم، کله چې حضور صلی الله علیه وسلم مونځ وکړو.

فَبِأَبِي هُوَ وَ أُمِّي مَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَبْلَهُ

زما مور او پلار دې په نبي عليه السلام باندې قربان وي ما خو نه مخکې د نبي عليه السلام نه لوی عالم ليدلی وو

وَلَا بَعْدَهُ أَحْسَنَ تَعْلِيمًا مِنْهُ فَوَ اللهِ مَا كَهَرَنِي وَلَا ضَرَبَنِي وَلَا شَتَمَنِي قَالَ:

او نه به وروسته وي، په الله قسم! نه خو هغه زه ورټلم او نه يې څه بد وويل، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل

إِنَّ هَذِهِ الصَّلَاةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ إِنَّمَا هُوَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ أَوْ

مونځ کې د انسان خبرې مناسب نه دي، مونځ خو د تسبيح، تکبير او قرآن کريم لوستلو نوم دی. او يا

كَمَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ

حضور صلی الله علیه وسلم داسې نور څه وويل، ما عرض وکړو يا رسول الله! زه خو يو نوی مسلمان يم الله تعالی

وَ قَدْ جَاءَ اللهُ بِالْإِسْلَامِ وَ إِنَّ مِنَّا رِجَالًا يَأْتُونَ الْكُهَّانَ. قَالَ:

د اسلام دولت باندې مشرف کړم زمونږ ډير خلک به کاهن خواته تلل. حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل:

«فَلَا تَأْتِهِمْ». قُلْتُ: وَ مِنَّا رِجَالٌ يَتَطَيَّرُونَ. قَالَ:

تاسو د هغوئ خواته هر ګز مه ځئ ما عرض وکړو زمونږ نه ډير خلک بد فالي نيسي، نو نبي عليه السلام وفرمايل

« ذَاكَ شَيْءٌ يَجِدُونَهُ فِي صُدُورِهِمْ فَلَا يَصُدَّنَّهُمْ » . قَالَ

دا يو داسې څيز دى څنګه چې يې خپل زړه کې ساتي تاسو دوي مه منع کوئ. معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما

قُلْتُ وَ مِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ . قَالَ :

عرض وکړو مونږنه بعضې خلک خط راکاږي او ددې په ذريعه باندې د غيبو څه خبرې ښائي ،وې فرمايل

« كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ

پيغمبرانو کې يو نبي وو چې هغه به خط راخکلو ، لهذا که ددې کس خط راخکل په شان د نبي د خط

فَذَاكَ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] .

راخکلو وو ، نو هغه د غه خبره حاصلولی شي.

قَوْلُهُ: لَكِنِّي سَكَتُّ هٰكَذَا وُجِدَتْ فِي صَحِيحِ مُسْلِمٍ وَكِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَصُحِّحَ فِي «جَامِعِ الْأُصُولِ» بِلَفْظَةِ كَذَا فَوْقَ: لٰكِنِّي.

**توضيح**: دې حديث کې يو څو مشکل الفاظ دي، اول په دې پوهيدل ډير مناسب دي **فرماني القوم** يعنې خلکو په سترګو باندې داسې ووهلم، لکه څوک چې په تير باندې وهل کوي، يعنې ګور ګور يې کولو، چې دا څه کوي. (المرقات ۳/۶۱، الکاشف ۴۶۶).

**وا ثکل امياه** دا کلمه د ندبې په طور باندې استعمال شوې ده، لکه **وا امير المؤمنيناه ثکل** په ضمې د **ثاء** سره د هلاکت، مرګ، څوی يا محبوب ورکيدو د پاره استعماليږي، اصل کې زنانه چې کله خپل څوی ورک کړي دغه موقع کې ويل کيږي. دلته دا کلمه د (**ام**) طرف ته مضاف ده، اصل کې (**وا ثکل امي**) دې يعنې هايې زما مورې ما ورک کړې، تاسو ماته برګ برګ ولې ګورئ.(المرقات ۳/۶۱).

شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ اشعة اللمعات کې داسې ترجمه کوي: **وائې پسر مردن مادر من** مظاهرحق جديد کې عبدالله جاويد غازي پوري صاحب رَحِمَهُ اللهُ ددې ترجمه غلطه کړې ده، دا وضاحت ما ځکه وکړو ما توضيحات کې ددغه حضراتو ترجمه وکړه .

**ماشانكم** : شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دا لفظ هغه په زړه کې کړی.(اشعة اللمعات ۱/۴۵۸).

**يصمتونني**: دا **تصميت** د باب **تفعيل** نه د چپ کيدو په معنی راځي.(المرقات ۳/۶۱).

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۸۱/۱، ۵۳۷-۳۳ رقم الحديث ۵۳۷-۳۳، وأبو داود ۱/۵۷۰ رقم الحديث ۹۳۰، والنسائي ۳/۱۴، رقم الحديث ۹۳۰

**لکني سکت**: دا استدراک مخذوف نه دی اصل عبارت داسې دی: **غضبت وتغیرت واردت ان اعاملهم بمقتضی الغضب لکني سکت**. (المرقات ۳/٦١، الکاشف ٢/٤٦٦).

**ما کهرني**: کهر د **فتح یفتح** نه دی تندی تروش کول او یو چا ته په حقارت سره راتللو ته وايي. (المرقات ۳/٦١).

**یتطیرون**: دا لفظ د **الطیرة** نه دی بدفالی ته ویلي کېږي، دده تفصیل به آخر د کتاب کې راځي.

**من کلام الناس**: دلته سوال دا دی تسبیحات هم کلام دی. بیا دده اجازت یې څنګه ورکړی دی؟ (المرقات ۳/٦٢).

دده جواب دا دی دلته د کلام الناس نه مراد هغه کلام دی، چې ده سره د خلکو د خطاب او مکالمې اراده شوی وي، تسبیحات اګر چې کلام دی، خو ده کې خلکو سره د تخاطب اراده نه کېږي که تخاطب اراده اوشي، نو دا هم ناجائز ده.

**حدیث عهد بجاهلیة**: یعنې زه د جاهلیت زمانې ته نزدې یم اوس مې اسلام قبول کړی دی نوی مسلمان یم، دا وجه ده، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته دوباره د مونځ کولو حکم ورنه کړو. ګیني اتروشی او **الحمد لله** باندې **یرحمک الله** سره جواب ورکولو کې خطاب دی او مونځ کې خطاب کولو سره مونځ فاسدیږي. (**کذا قال النووي و ابن الهمام**) (المرقات ٦٢-۳/٦۳).

**الکهان**: دا د **کاهن** جمع ده، هغه کس دی چې د هغه د ارواحو خبیثو او جناتو او شیطانانو سره تعلق وي او د دروغ خبرونه ده ته راوړي او په سلو دروغو کې یوه خبره چرته صحیح وي، په ده سره کاهن خپل رعب اچوي او کار اوباسي او د علم غیب دعوی کوي، جاهلیت کې دده ډیر زور وو. (المرقات ۳/٦۳).

دویم حدیث کې د کاهن نه علاوه یو لفظ عراف هم راغلی، عراف هغه کس ته ویلي شي، چې د کوم عمل یا د کوم منتر جنتر او یا د جادو په ذریعې سره د پټو ځیزونو احوال ذکر کوي، دا دنجومیانو یو قسم دی، نن سبا دده ډیر زور دی، د عراف او کاهن دواړو خواته د تصدیق د پاره تلل حرام دي. (المرقات ۳/٦۳، الکاشف ۴٦٦-٢/۴٦٧).

**یجدونه**: یعنې یو شک او وهم دی، ده تو هم پرستې کې چې سړی مبتدا شي نو بیا شکي جوړیږي او هر یو کار کې تردد او شک کوي. (المرقات ۳/٦۳).

**فلا یصدنهم**: یعني دا وهم او شک سړی تردد کې اچوي، دا د خپل کار نه منع کوي،بلکې دا عقیده ساتئ چې هر څه د الله تعالی د حکم لاندې داخل دي او الله تعالی باندې توکل کوئ.(المرقات ۳/۶۳).

**یخطون**: دا د خط راخکو په معنی دی، څنګه چې د کهانت او علم نجوم په ذریعې سره بعضې خلک غیبو ته د رسیدو خبرې کوي. دغه رنګ (رمل) په ذریعې سره هم کوشش کوي. رمل هغه عمل ته ویل کېږي، چې هغې کې خطوط راخکلی شي، بیا حساب لړولو سره پټو خبرو پورې د رسیدو کوشش کوي. (المرقات ۶۳-۳/۶۴).

**نبي من الانبياء**: شارحین لیکي ددې نه خو یا حضرت ادریس عَلَیْهِ السَّلَام مراد دی یا حضرت دانیال عَلَیْهِ السَّلَام مراد دی. (المرقات ۳/۶۴).

**فمن وافقه**: **سوال**: د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کلام نه په ظاهره دا معلومیږي چې ددې عمل اجازت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورکړی دی، حالانکې في الواقع شریعت کې د رمل اجازت نشته.
**جواب**: حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صراحت سره رمل باندې رد نه دی کړی، ددې تردید کې هغه نبي راځي، چې هغه به دا عمل بطور معجزه کولو ، بلکه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکمت په انداز سره یو قاعده بیان کړه، ددې نه ددې عمل ممانعت هم راغلی او د دغه نبي په شان کې بې ادبي هم ونه شوه،
علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دلته تعلیق بالمحال په ذریعې سره د دغه کار منع کړو، یعنې چې د کوم کس خط د نبي د خط موافق وو ، هغه به صحیح وي او ظاهره ده ویلی شي چې زما خطوط د هغې په شان دي، څنګه چې د نبي دي، څوک ددې دعوی نه شي کولی. دویم دا چې د خط په ذریعې سره چې څه کیدل هغه د نبي معجزه وه او څوک په دې عمل کې لړیدل بې فائدې او باطل دي.

**بلفظة كذا**: یعني كذا کلمه لكني د پاسه صاحب جامع الاصول ولیکل. دې طرف ته اشاره وو، چې لكني کلمه صحیح ده، دې کې څه غلطي نشته، (المرقات ۳/۶۵).
د محدثینو په نزد قاعده دا ده، چې کله کلمه کې شک واقع شي او محدثین ددې صحت طرف ته اشاره کول غواړي، نو دوی لفظ كذا دغه کلمې د بره ولیکي، دې حدیث کې لفظ د لكني د مسلم او حمیدي په کتابونو کی دی، مصابیح کې دا لفظ نشته.

## د مونځ په کیفیت کې ډېر ځلې تبدیلي راغلي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ |
| د عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په مونځ کې د سلام جواب ورکولو |

فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ

یو ځوور ځې پس مونږ د نجاشي نه واپس راغلو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو. د غه وخت

سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ کولو مونږ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته سلام وکړو خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زمونږ د سلام جواب رانه کړو،

فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فِي الصَّلَاةِ

کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ وکړو مونږ عرض وکړو یا رسول الله! مونږ به تاسو ته په مونځ کې سلام وکړو،

فَتَرُدُّ عَلَيْنَا فَقَالَ : إِنَّ فِي الصَّلَاةِ لَشُغْلًا ".(متفق عليه)[1]

تاسو به جواب راکولو، نن تاسو جواب رانه کړو، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل مونځ په خپله یو لوی شغل دی.

**توضیح: فلم یرد علینا:** د اسلام په شروع کې مونځ کې خبرې کول جائز وې، بیا موقوف شوې، نو سلام او خبرو دواړو نه منع راغله، خو امام پسې د قرآت اجازت وو، بیا هغه هم موقوف شو، خو د فاتحې لوستلو اجازت وو، بیا د احنافو په نزد باندې هغه هم موقوف شوه. ﴿قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ﴾ ای ساكتين باندې عمل پاتې شو، باب السهو کې په دې باندې کلام راتلونکی دی.(المرقات ۳/٦٦).

**النجاشي:** دا د حبشو عادل بادشاه وو، بیا وروسته مسلمان شو د حبشو د هر بادشاه دا لقب دی، څنګه چې د مصر د بادشاه لقب فرعون دی، د ترک د بادشاه لقب خاقان دی، د یمن د بادشاه لقب تبع دی، د شام د بادشاه لقب قیصر دی، د فارس د بادشاه لقب کسری دی او د هندستان د بادشاه لقب راجه وو. (المرقات ۲/٦۵).

**لشغلا:** یعنې د مونځ خپل اعمال دي، دې کې د ننه اعمالو نه علاوه د نورو اعمالو گنجائش په کې نشته. لهذا سلام او خبرې ممنوع دي، اوس ژبې سره جواب ورکول بالاتفاق مفسد صلواة دي، البته سر اشارې سره که مونځ گزار جواب ورکړي د جمهورو په نزد باندې جائز بلا کراهت دی، البته احناف یې جائز مع الکراهت گڼي، جمهور فرمایي باللسان جواب ممنوع دی او بالاشاره باقي پاتې دی، احناف وایي دواړو طرف ته د ممانعت اشاره ده، ځکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د سر اشارې سره جواب ورنه کړو، دې سره هغه ډیر پریشانه او خفه شو، که جائز وی او کراهت نه وی، نو ابن

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۸/۷، رقم الحديث ۳۸۷۵، ومسلم في الصحيح ۳۸۲/۱ رقم الحديث ۳٤-۵۳۸، وأبو داود ۵٦۷/۱ رقم الحديث ۹۲۳

مسعود رضي الله عنه به خفه کیدو نه، بس سر سره به جواب ورکړی شوی وی، که کراهت په تنزیهي باندې حمل کړی شي، نو د غیر اولی اختلاف به پاتې شي. (المرقات ۲/۶۶).

## په مونځ کې ډیر حرکات منع دي

﴿۳﴾ وَ عَنْ مُعَيْقِيبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الرَّجُلِ

معیقیب رضي الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم نه د هغه کس په باره کې روایت کوي، کوم چې د نبي علیه السلام نه

يُسَوِّي التُّرَابَ حَيْثُ يَسْجُدُ ؟

د خپل ځان باره کې تپوس کړی وو، چې زه (مونځ کې) د سجدې ځای په خاورې سره برابروم. ددې څه

قَالَ : « إِنْ كُنْتَ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً ». (متفق علیه)[1].

حکم دی، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل که تاسو برابروالی ضروري ګڼئ، نو یو ځلې داسې وکړئ.

**توضیح: معیقیب** حضرت معیقیب رضي الله عنه د سعید بن ابی العاص رضي الله عنه آزاد کرده غلام دی، هغه د حضور صلی الله علیه وسلم په ملا باندې د مهر نبوت نه چپه واخسته، بیت المال باندې مامور وو، د هغه وفات سنه ۴۰هـ کې وشو. (المرقات ۲/۶۶).

**فواحدة:** فقهاء احناف لیکي که د مونځ په دوران کې د سجدې په ځای کې کاڼي وو، یا برابر نه وي، دې وجې نه سجده کول مشکل وي، نو کاڼي لرې کول جائز دي، یو یا دوه ځلې ددې نه ډیر جائز نه دي، دې حدیث نه دې حضراتو د پاره لویه تنبیه ده، کومو چې مونځ یوه لوبه ګڼله او د یو بل جیبونو نه به یې کاغذونه راویستل او پوزه به یې صفا کوله، عربستان او جزیره عرب د مسلمانانو نه د مونځ ادب تللې وو د لوبو سره به یې مونځ کولو. انا لله و انا الیه راجعون (المرقات ۶۶-۳/۶۷).

## په مونځ کې خصر ممنوع دی

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الخصر فِي الصَّلَاةِ "[2].

ابوهریره رضي الله عنه راوي دی فرمایي حضور صلی الله علیه وسلم مونځ کې د خصر نه منع فرمایلې ده.

**توضیح: خصر:** اختصار او خصر تشي باندې لاس ایخودلو ته ویل کیږي دواړه لاسونه په دواړو تشو

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۷۹/۳،رقم الحدیث ۱۲۰۷، ومسلم في الصحیح ۳۸۸/۱ رقم الحدیث.۴۹-۵۴۶

(۲) أخرجه البخاري في الصحیح ۸۸/۳،رقم الحدیث ۱۲۲۰، ومسلم في الصحیح ۳۸۷/۱ رقم الحدیث.۴۶-۵۴۵، رأبو داود ۵۸۲/۱ رقم الحدیث :۹٤۷.

بندې ايخودل منع دي ځکه چې، مسنونه طريقه دا ده لاسونه په نوم باندې کېښودل دي.(المرقات ۳/٦٧).

وس سوال دا دی چې په تشي باندې لاس ايخودلو نه ولې منع کړې شوې ده ددې څه وجه ده؟

جواب: دا دی چې حضور صَلَّى‌اللَّهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ ممانعت فرمايلی، نو د تپوس او سوال کولو ضرورت نشته. دا د پوهولو نه لويه وجه ده، چې حضور صَلَّى‌اللَّهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ منع فرمايلې ده. دويم جواب دا دی ميدان محشر کې هغه خلک کوم چې دوزخيان دي په دغه شکل کې به ولاړ وي، ځکه يې د دوي مشابهت نه منع کړل. او يو حديث کې راځي چې دوزخي خپل لاس په طرف باندې کېښودلو سره سکون حاصلوي. ځنګه چې يو کس ډير ستړی شوی وي، نو خپل لاسونه په اطرافو باندې کېږدي او يوه اوږده ساه واخلي.

دريم جواب دا دی، چې د اهل النار نه مراد يهود دي، دغه خلکو په دنيا کې خپل لاسونه په طرف باندې ښودي ولاړ وي، مونځ گزار يې د هغوي د مشابهت نه منع کړو.

څلورم جواب دا دی دا حالت د تکبر دی، او د مسلمانانو د پاره په حالت د مونځ کې داسې ودريدل د کراهت نه خالي نه دي.

## په مونځ کې يو خوا بل خوا کتل د شيطان خوشحاله کول دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الِالْتِفَاتِ فِي الصَّلَاةِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ‌اللَّهُ‌عَنْهَا وايي ما د حضور صَلَّى‌اللَّهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ نه مونځ کې يو خوا بل خوا کتلو باره کې تپوس وکړو |
| فَقَالَ: «هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ». (متفق عليه)[1] |
| آيا دا مفسد صلوة دی او که نه دی؟ نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ وفرمايل دا رابنکل دي، شيطان بنده د مونځ نه راکاږي. |

**توضيح:** **اختلاس**: د باب **افتعال** نه دی **اختلاس** رابنکل او يا يو څيز زر او چټولو په معنی دی، دې سره د انسان مونځ کامل نه پاتې کېږي.(المرقات ۳/٦٨).

په دې حديث کې د التفات نه مراد دا دی، چې مونځ گزار څټ اخوا ديخوا اړوي او د قبلې نه مخ واړوي دا صورت مکروه دی. او که د تاويدو سره سينه او بدن هم د قبلې نه واوړيدو نو په دې صورت کې مونځ فاسديږي. (المرقات ۳/٦٨).

د التفات دريم صورت دا دی صرف د سترګو په طرف سره کتل او سر يا څټ وانه وړي، دا صورت منع نه دی اگرچې خلاف اولی دی، ځکه چې د مونځ د آدابو نه دا هم دي چې نظر د سجدې په ځای باندې وي.

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ۲۳٤/۲،رقم الحديث :۷۵۱، وأبو داود ۵٦۰/۱ رقم الحديث ۹۰۹، والترمذي ۴۸٤/۲ رقم الحديث ۵۹۰

(المرقات ۳/۶۸).

## په مونځ کې د دعاء په وخت کې آسمان ته کتل منع دي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ |
| دحضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: منع دې شي خلک د |
| رَفْعِهِمْ أَبْصَارَهُمْ عِنْدَ الدُّعَاءِ فِي الصَّلَاةِ إِلَى السَّمَاءِ أَوْ لَتُخْطَفَنَّ أَبْصَارُهُمْ». (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]. |
| اوچتولو د نظرونو نه د دعاء په وخت کې آسمان ته، ګينې د هغوی نظرونه به واخيستلی شي. |

**توضيح**: **لتخطفن**: اختطاف د اخيستلو په معنی سره دی. (المرقات ۳/۶۹). ﴿يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ﴾ (البقرة آيت: ۲۰) د همدې نه دی. نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې حديث کې د مونځ يو آدب ذکر کولو ته اشاره کړې، مونځ کې التحيات باندې د دعا په وخت کې خپل نظر آسمان طرف ته مۀ اوچتوئ، دې نه دا وهم پيدا کيږي چې د الله تعالی د پاره په اسمان کې متعين ځای او مکان دی، دې نه جسميت ثابتيږي او جسميت سره حدوث لاوم کيږي، چې دا موجب د بې ادبۍ دی، او د دعا حالت د عاجزۍ دی، او اسمان ته کتل د عاجزۍ خلاف دی، يو روايت کې دي، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کې د دعا په وخت اسمان طرف ته کتل، خو چې دا آيت: ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾ (سورة المؤمنون آيت: ۲) نازل شو، بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل نظر بنکته ساتلو. مونځ نه علاوه د دعا په وخت کې اسمان طرف ته کتل جائز دي، وايي (السماء قبلة الدعاء) خو بعضې علماء دې ته خلاف اولی وايي.

## يو نيم ځلې عمل دائمي سنت نه شي جوړيدی

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَؤُمُّ النَّاسَ |
| ابو قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي ما وليدل چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلکو ته مونځ بنودلو (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| وَ أُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ عَلَى عَاتِقِهِ فَإِذَا رَكَعَ |
| نمسی) امامه بنت ابو العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي عَلَيْهِ السَّلَام اوږه باندې ناسته وه کله به چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام رکوع ته |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۳۳، رقم الحديث ۷۵۰، ومسلم في الصحيح ۱/۳۲۱ رقم الحديث ۱۱۸-۴۲۹.

وَضَعَهَا وَ إِذَا رَفَعَ مِنَ السُّجُودِ أَعَادَهَا " . (متفق عليه)[1].

تل وهغه به يې (اشارې سره ښکته) کينوله او چې سجدې نه به پاڅيد وهغه به يې په اوږه باندې کينوله.

**توضيح:** **امامة:** امامه د حضور ﷺ نمسۍ وه کومه چې د زينب بنت رسول ﷺ زوجه ابو العاص لور وه. دلته دا سوال پيدا کيږي چې حضور ﷺ فرض مونځ کې وو، ځکه چې (**يئوم الناس**) الفاظ په دې دال دي، نو فرض مونځ کې داسې عمل څنګه جائز شو، دا خو په ظاهره عمل کثير دی حضور ﷺ په خپله ددې نه منع فرمايلي. (المرقات ۳/۶۹).

ددې جواب دا دی، چې وړوکی ماشوم يا ماشومه په مونځ کې او چتول عمل کثير نه دی. علماء احناف ليکي چې د ماشوم او چتولو سره مونځ نه فاسديږي، که ښځې ورله پی ورکړه، نو مونځ فاسد شو، اصل مدار عمل قليل او کثير باندې دی، بعضې علماو دا جواب ورکړی دی، دا د هغه وخت خبرې دي، کوم وخت کې چې په مونځ کې د ډيرو اعمالو کولو ګنجائش وو، يا حضور ﷺ د يو وقتي مجبوری نه داسې کړی وو او د وختي مجبوری نه يو عارضي عمل سره کوم چې يې يو نيم ځلې کړی وو دا د امت د پاره مستمره مسنونه قاعده نه شي جوړيدی، بعضې خلک دا حديث ويني نو خپل ماشومان مساجدو ته راولي او په اوږو باندې يې کينوي او مونځ کوي چې دا ددې خلکو په حديثو باندې د پوهې نه لرلو دليل دی اګر چې دوي ځان ته اهل حديث هم وايي. (المرقات ۳/۷۰).

## په مونځ کې د اسويلي کولو په وخت کې خوله بنده ساتل په کار دي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ

ابو سعيد رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ و فرمايل په تاسو کې چا ته مونځ کې اسويلی راشي

فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ». (رَوَاهُ مُسْلِم)[2] وَ فِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ

نو هغه دې حتی الامکان اوسيلی منع کړي، ځکه چې شيطان (خولې ته) ننوځي. او د بخاري الفاظ دا دي،

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: " إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ وَلَا يَقُلْ: هَا

ابو هريره نه تاسو کې چا ته مونځ کې او سيلی راشي حتی الامکان يې منع کوئ او هأ مه وايي (لکه څنګه چې

(۱) أخرجه مسلم ۳۸٦/۱ رقم الحديث ٤٢ ٥٤٣، والنسائي ۱۰/۳ رقم الحديث ۱۲۰۵ وأحمد في المسند ۲۹٦/۵.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۹۳/٤ رقم الحديث ۵۷- ۲۹۹۵ ، وأبوداؤد ۲۸۷/۵ رقم الحديث :۵۰۲۷ ، والترمذي ۲۰٦/۲ رقم الحديث ۳۷۰

| |
|---|
| فَإِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ " |
| داسويلي په وخت بې اختياره د خولې نه دا لفظ اوځي) ځکه چې دا د شيطان طرف نه دی او هغه خاندي. |

**توضيح: تَثَاءَبَ**: د ډير خوراک او درونډ بدن او نارستۍ د وجې نه اوسيلی راځي او عبادت کې د نارستۍ او غفلت ذريعه جوړيږي، په دې شيطان خوشحاله کيږي، ځکه يې نسبت شيطان طرف ته دی. (المرقات ۳/۷۰).

اسلام ددې علاج دا ښودلی، چې خوله بنده کړئ، چې د شيطان وسوسو لاره بنده شي، دې سره د انسان شکل بدل شي، نو شيطان وايي د انسان مکروه شکل ته وګوري او وخاندي. د اوسيلي د ختميدو يو صورت دا هم دی چې، زړه کې خيال کوه چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته کله هم نه دی راغلی.

## حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په مونځ کې جن نيول او پريښودل

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ عِفْرِيتًا مِنَ الْجِنِّ |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي نن شپه د جناتو نه يو ديو (يعني سرکش |
| تَفَلَّتَ الْبَارِحَةَ لِيَقْطَعَ عَلَيَّ صَلَاتِي فَأَمْكَنَنِي اللهُ مِنْهُ |
| شيطان) زما خوا ته راغی دې دپاره چې زما مونځ کې خلل واچوي الله تعالى ماته په ده باندې قدرت راکړو |
| فَأَخَذْتُهُ فَأَرَدْتُ أَنْ أَرْبِطَهُ عَلَى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتَّى تَنْظُرُوا إِلَيْهِ كُلُّكُمْ |
| ما ونيولو او ومې غوښتل چې د مسجد نبوي يوې ستنې پسې يې وتړم چې تاسو ټول يې وګورئ، نو ما ته |
| فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ أَخِي سُلَيْمَانَ: ﴿ رَبِّ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي |
| د خپل ورور سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ دا دعا رايادہ شوه: اې الله! ماته داسې بادشاهي راکړې چې مناسب نه وي |
| لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي ﴾ فَرَدَدْتُهُ خَاسِئًا " (بخاري، مسلم)[1] |
| د ما نه غير بل چا ته د ما نه پس، نو ما دا شيطان ذليله کړو او پرې مې ښودو. |

**توضيح: عفريتا**: سرکش ديو او خبيث پيري ته ويل کيږي، دا لفظ د انسان د پاره هم استعماليږي، ځکه من الجن نه يې ددې خبرې وضاحت کړی دی، چې عفريت د جناتو نه دی. (المرقات ۳/۷۱).

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۵۴/۱، رقم الحديث: ۶۶۱، ومسلم في الصحيح ۳۸۴/۱ رقم الحديث: ۳۹-۵۴۱، أخرجه أحمد في المسند ۲۹۸/۲.

**تفلت**: باب **تفعل** نه د راخلاصیدو په معنی راځي سلیمان عَلَیْهِ السَّلَام لوی لوی جنات په جزیرو او غارونو کې بند کړي دي ددېنه نه دا سرکش و تختیدو او د خباثت سره حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مونځ خراب کیدو د پاره راغلی. (المرقات ۳/۷۱).

**حتی تنظروا الیه**: دې نه معلومه شوه چې، جن نیولو سره تړلی هم شي، دا یو کثیف مخلوق دی لطیف نه دی، دویمه خبره دا معلومه شوه چې د جنات وجود شته، ددې وجود د قرآن او حدیث نه او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د واقعاتو نه ثابت دی، دې باندې د امت اجماع ده، دوي خپل منځ کې واده کېږي، اولاد یې پیدا کېږي، د بعضې انسانانو سره هم واده کېږي، جنات خوري څکي او خوب کوي، جماع کوي، ددې ټول احوال **آکام المرجان في احکام الجان** کې مذکور دي. علامه سیوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ **لقط المرجان في احکام الجان** کې د دوي تاریخ پیدائش او وجود هر څه ذکر کړي دي ددې دلائلو نه پس چې څوک ددې نه انکار کوي، هغه د سرسید احمد خان په شان ملحد کیدی شي. (المرقات ۳/۷۲).

**فذکرت دعوة اخي**: څنګه چې حضرت سلیمان عَلَیْهِ السَّلَام ته په جناتو باندې تصرف حاصل وو. دغه رنګ حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم حاصل وو، خو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ورور سلیمان عَلَیْهِ السَّلَام د دعا د وجې نه تصرف استعمال نه کړو. (المرقات ۷۲-۳/۷۳).

**خاسئا**: ذلیل خوار په معنی دی، سپی چې کله ورټلی شي او پاځولی شي، د هغه د پاره اخساء لفظ استعمالیږي. (المرقات ۳/۷۳).

## امام ته د لقمې ورکولو صورت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلَاتِهِ |
| سهل بن سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چاته چې مونځ کې څه خبره راشي |
| فَلْيُسَبِّحْ فَإِنَّمَا التَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ » . وَ فِي |
| هغه ته په کار دي چې سبحان الله ووایي ، ځکه چې لاسونو ته پړق ورکول د ښځو د پاره خاص دي. او په |
| رِوَايَةٍ : قَالَ : « التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ وَ التَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ » . (متفق علیه)[1]. |
| یو روایت کې دا الفاظ دي وایي: سبحان الله د سړو د پاره خاص دي او پړقې وهل د زنانو د پاره خاص دي. |

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۷۷/۳، رقم الحدیث ۱۲۰۴، ومسلم في الصحیح ۳۱٦/۱ رقم الحدیث ۱۰۲-٤۲۱، وأبو داود ۵۷۸/۱ رقم الحدیث ۹٤۰، والنسائي ۷۷/۲، رقم الحدیث: ۷۸٤.

**توضيح:** **نأبه:** نأب ينوب دا د نصر ينصر باب نه دی په مونځ کې دننه څه واقعه يا حادثه راتلو ته ويل کيږي. (المرقات ۳/۷۳، الکاشف ۲/۴۷۵).
مطلب دا دی چې مونځ کې يو خاص واقعه راشي، مثلاً امام ته مونځ کې سهوه راشي او هغه ته لقمه ورکولو ضرورت راشي، که داسې صورت کې که مونځ گزار سړی وي، نو سبحان الله دې ووايي چې سړی مونځ کې مشغول وي او که زنانه وي او مونځ کې مشغوله وه نو دا دې سبحان الله نه وايي ځکه چې ددې آواز هم پرده دی، هغه دې د ښي لاس تلي باندې د گس لاس بره حصه په داسې انداز کې ووهي، چې د پړق صورت جوړ نه شي، ځکه چې بيا دې سره بيا مونځ ماتيږي، بهر حال د مونځ نه د بهر سړې او يا د امام د پاره د تنبيه دغه صورتونه دي، د جمهورو په نزد باندې داسې دي. او د امام مالک رحمه الله يو روايت دی، چې سړې او زنانه کې هيڅ فرق نشته، دواړو د پاره تسبيح مقرر ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ |
| عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دي وايي چې مونږ به سلام اچولو په نبي عليه السلام باندې په داسې حال کې |
| فِي الصَّلَاةِ قَبْلَ أَنْ نَأْتِيَ أَرْضَ الْحَبَشَةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا |
| چې نبي عليه السلام به په مونځ کې وو مخکې د تللو نه حبشې ته او نبي عليه السلام به د سلام جواب راکولو کله چې |
| رَجَعْنَا مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ أَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي |
| مونږ د ملک حبشه نه واپس شو، زه د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شوم او نبي عليه السلام په مونځ کې ؤ |
| فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ حَتَّى إِذَا قَضَى صَلَاتَهُ قَالَ : « إِنَّ اللهَ |
| ما سلام وکړو خو نبي عليه السلام جواب رانه کړو نبي عليه السلام چې کله د مونځ نه فارغ شو وې فرمايل الله تعالى |
| يُحْدِثُ مِنْ أَمْرِهِ مَا يَشَاءُ وَ إِنَّ مِمَّا أَحْدَثَ أَنْ لَا تَتَكَلَّمُوا |
| چې خپل کوم حکم ښکاره کول وغواړي نو ظاهر کوي يې الله تعالى اوس دا حکم ښکاره کړو چې خبرې مه |
| فِي الصَّلَاةِ ». فَرَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ . وَ قَالَ : « إِنَّمَا الصَّلَاةُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَ ذِكْرِ اللهِ |
| کوئ په مونځ کې بيا يې زما د سلام جواب وکړو او دې نه پس يې وفرمايل مونځ صرف د قرآن او د الله د ذکر |

فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا فَلْيَكُنْ ذٰلِكَ شَأْنَكَ » . ( رَوَاهُ أَبُو دَاوُد )[1].

د پاره دی کله چې تاسو په مونځ کې يئ ستاسو هم دا حال دی، يعنې صرف قرآن وايې او د الله ذکر کوئ.

## په مونځ کې په اشارې سره د سلام جواب ورکول څنګه دي

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قُلْتُ لِبِلَالٍ: كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ

ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي ما د بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو چې څنګه جواب به ورکولو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې

حِيْنَ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ ؟ قَالَ : كَانَ يُشِيرُ بِيَدِهِ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2].

کله به په مونځ کې ؤ او دغه وخت به چې چا سلام وکړو بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل مونږ به په لاس سره اشاره کوله

وَفِي رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ نَحوه وَعوض بِلَال صُهَيْب.

**توضيح: يشير بيده:** مونځ ګزار ته چې به چا د مونځ په حالت کې سلام کولو، نو په لفظونو سره ورته جواب ورکول جائز نه دي، که داسې جواب يې ورکړو، نو د ائمه اربعو په دې باندې اتفاق دی چې مونځ فاسد دی او که اشارې سره جواب ورکړي دې کې د ائمو اختلاف دی.(المرقات ۳/۷۵).

**د فقهاوو اختلاف:** امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمُ اللَّهُ په نزد باندې اشارې سره د سلام جواب ورکول جائز دي، د احنافو په نزد باندې اشارې سره جواب ورکول مکروه دي، خو مونځ کېږي. (المرقات ۳/۷۵).

**دلائل:** جمهور زير بحث حديث نه استدلال کوي او وايي جواب باللسان ممنوع وګرځيده او جواب بالاشاره باقي پاتې شو، احناف وايي جواب باللسان سره سره جواب بالاشاره هم منسوخ شو، ددې تفصيل ددې باب دويم حديث کې ذکر شوی دی، هلته دا هم دي چې اشاره مکروه تنزيهي ده، نو دا اختلاف اولی او غير اولی پاتې شو، علماء ليکي چې سر يا لاس سره اشاره کولو مطلب دا دی، چې لاس مه ملاووئ، که چا مصافحه وکړه، نو مونځ يې فاسد شو.

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ رِفَاعَةَ ابْنِ رَافِعٍ قَالَ : صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

رفاعة بن رافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي يو ورځ ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې مونځ وکړو نو د مونځ په دوران کې

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۵۶۷ رقم الحديث ۹۲۱

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۰۴ رقم الحديث ۳۶۸، والنسائي ۳/۵ رقم الحديث ۱۱۸۷

فَعَطَسْتُ فَقُلْتُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا عَلَيْهِ

ماته اټرنوشی راغلو نو ما وویل: ټول تعریفونه الله لره دي، ډیر زیات تعریف او پاک تعریف ډیر برکت والا

كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَ يَرْضَى فَلَمَّا صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ انْصَرَفَ

تعریف څنګه چې د الله تعالی خوښ وي او هغه پرې راضي کیږي حضور صلی الله علیه وسلم چې مونځ نه فارغ شو

فَقَالَ : « مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ ؟ » فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّانِيَةَ

او وې فرمایل مونځ کې خبرو والا څوک ؤ، د حضور صلی الله علیه وسلم د خفګان د وجې چا هم نه ویل، بیا دویم

فَلَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ

ځل حضور صلی الله علیه وسلم و فرمایل، بیا هم چا جواب ورنه کړو، چې کله دریم ځل نبي علیه السلام و فرمایل نو

فَقَالَ رِفَاعَةُ : أَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ ! فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « وَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ

رفاعه وویل یارسول الله! زه وم نبي علیه السلام و فرمایل هغه ذات باندې قسم چې د هغه په قبضه کې زما ځان

لَقَدِ ابْتَدَرَهَا بِضْعَةٌ وَ ثَلَاثُوْنَ مَلَكًا أَيُّهُمْ يَصْعَدُ بِهَا ».[1]

دی، (ما ولیدل) چې دیرش فرښتو د دغې کلماتو په وړلو کې جلتې کوله، چې څوک به یې مخکې وړي.

﴿۱٤﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « اَلتَّثَاؤُبُ فِي الصَّلَاةِ

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم و فرمایل مونځ کې اوسیلی کول

مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2].

د شیطان نه دی . کله چې تاسو نه یو کس ته اوسیلی راشي، نو تاسو کوشش کوئ چې منع یې کړئ.

او د ترمذي په بل روایت کې او د ابن ماجه په یو روایت کې دا الفاظ دي: چې نبي علیه السلام دا هم و فرمایل

وَ فِيْ أُخْرَى لَهُ وَ لِابْنِ مَاجَهْ: « فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيْهِ ».

چې مونځ کې څنګه اوسیلی راشي، نو خولې باندې لاس کېږدئ.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۸٤/۲، رقم الحديث ۷۹۹، ومسلم في الصحيح ۱۱۹/۱ رقم الحديث: ۱٤۹-۶۰۰، وأبو داود ۱۸۸/۱ رقم الحديث ۷۷۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۰۶/۲ رقم الحديث ۳۷۰، وابن ماجه ۳۱۰/۲ رقم الحديث ۹۶۸

## په مونځ کې تشبیک منع دی

﴿۱۵﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ
کعب بن عجره رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي تاسو کې چې څوک اودس وکړي.
فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يُشَبِّكَنَّ
نو بنه طریقې سره يې اودس وکړه، بیا د مونځ په اراده، بانديې جومات ته لاړ شي. نو تشبيک مه کوئ د
بَيْنَ أَصَابِعِهِ فَإِنَّهُ فِي الصَّلَاةِ». (رَوَاهُ أَحمد وَالتِّرمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ والدارمي)[1].
ګوتو په مینځ کې، ګویا چې دغه وخت په مونځ کې دی.

**توضیح: فلایشبکن:** علماء لیکي د یو لاس ګوتې دویم لاس په ګوتو کې دننه ورکول او لوبې کول دې ته تشبیک ویل کېږي. او په مونځ کې تشبیک منع دی، که څوک مونځ د پاره جوماتونه راځي، نو د کور نه راوتلو سره د مونځ په حکم کې دی، ده باندې د مونځ آداب خپلول واجب دي، نو تشبیک دې نه کوي. دې نه دا خبره معلومه شوه، کوم څیزونه چې د مونځ په دوران کې منع دي هغه د مونځ د پاره راتللو سره هم منع کېږي. (المرقات ۳/۷۸).

## په مونځ کې یو خوا بل خوا کتلو سره ثواب کمیږي

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: "لَا يَزَالُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ مُقْبِلًا
د حضرت ابو زر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، الله تعالی متوجه وي
عَلَى الْعَبْدِ وَ هُوَ فِي صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَلْتَفِتْ فَإِذَا الْتَفَتَ
یو بنده ته چې کله په مونځ کې وي تر څو پورې چې یو خوا او بل خوا نه ګوري، او چې دا یو خوا او بل خوا
انْصَرَفَ عَنْهُ.[2].
وګوري، نو الله تعالی ترې هم مخ واړوي.

**توضیح: علی العبد:** یعني الله تعالی بنده ته متوجه کېږي، **التفت** یو خوا بل خوا کتل مراد دي. او الله تعالی ورته فرمايي ای ابن آدمه! کوم طرف ته ګورې آیا ستا د پاره ما نه علاوه بل نشته، که بنده دې

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۳۸۰/۱ رقم الحديث ۵۶۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۲۸۸/۲، رقم الحديث ۳۸۶.
[2] أخرجه أبو داود في السنن ۵۶۰/۱ رقم الحديث ۹۰۹.

باوجود هم وګوري او دریم ځل داسې وشي، نو الله تعالی خپل مخ مبارک مایلیق بشانه واړوي، د انصرف عنه مطلب هم دا دی. (المرقات ۳/۷۸).

## په مونځ کې د سجدې ځای ته نظر کول په کار دي

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «يَا أَنَسُ اجْعَلْ بَصَرَكَ حَيْثُ تَسْجُدُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي سُنَنِهِ الْكَبِيرِ مِنْ طَرِيقِ الْحَسَنِ عَنْ أَنَسٍ يَرْفَعُهُ. (ترمذي)[1].

د انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم ماته وفرمایل ای انسه! په مونځ کې ته خپل نظر هلته ساته کوم ځای چې سجده کوې، دا روایت بیهقي په سنن کبیر کې د انس رضي الله عنه نه په طریقې د حسن نقل کړی دی، دې ته جزري مرفوع ویلي دي.

**توضیح**: حیث تسجد: علامه طیبی رحمه الله وایي چې مستحب دا ده، چې په حالت قیام کې نظر د سجدې په ځای باندې وي، په رکوع کې نظر د قدم بره حصه باندې وي، په سجده کې نظر په پوزه باندې وي او په قعده کې نظر په لمن باندې وي. (المرقات ۳/۷۹، الکاشف ۲/۴۷۸).
بعضې علماو لیکلي دي: چې په حرم شریف کې نظر په کعبه باندې ساتل په کار دي، متاخرینو علماو دا خبره رد کړې ده. (کذا في اللمعات) (الکاشف ۲/۴۷۸، اشعة اللمعات ۱/۴۶۶).

﴿۱۸﴾ وَ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «يَا بُنَيَّ! إِيَّاكَ وَ الِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ فَإِنَّ الِالْتِفَاتَ فِي الصَّلَاةِ هَلَكَةٌ. فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَفِي التَّطَوُّعِ لَا فِي الْفَرِيضَةِ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2].

د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم ماته وفرمایل ای زما ځویه! ځان بچ کړه د مونځ کې یو خوا او بل خوا کتلو نه ځکه چې مونځ کې یو خوا بل خوا کتل د هلاکت سبب دی او که کتل ضروري وي نو نفلو کې (څه باک نشته) خو فرضو کې کتل نه دي په کار.

**توضیح**: په فرائضو او نوافلو کې فرق دی، یعنې نوافلو کې تخفیف دی او ډیرو څیزونو ګنجائش په کې

---

(۱) أخرجه البیهقي في السنن الکبری ۲/۲۸٤.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/٤۸٤ رقم الحدیث :۵۸۹.

شته. او فرائضو کې نشته، امام صاحب رحمه الله دا حدیث بطور ضابطه اخیستی دی، چې فرائضو سره د نفلو په شان معامله کول صحیح نه ده. (المرقات ۳/۸۰).

﴿۱۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَلْحَظُ فِي الصَّلَاةِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی وایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ کې د سترګو طرف

يَمِينًا وَ شِمَالًا وَلَا يَلْوِي عُنُقَهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ.[1]

سره ښي او ګس طرف ته کتل، خو شاته ملا طرف ته به یې څټ نه اړولو.

﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَفَعَهُ

عدی بن ثابت رضي الله عنه خپل پلار نه او هغه د خپل پلار نه چې هغه دا حدیث نبي علیه السلام پورې رسولی نقل

قَالَ: «الْعُطَاسُ وَ النُّعَاسُ وَ التَّثَاؤُبُ فِي الصَّلَاةِ وَ الْحَيْضُ وَ الْقَيْءُ وَ الرُّعَافُ

کوي حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي مونځ کې اتهوسی، خوب، او سیلی راتلل، حیض، قئ او د پوزې ماتیدل

مِنَ الشَّيْطَانِ».[1]

دا د شیطان (د اثر) نه دي.

**توضیح**: دا شپږ څیزونه داسې دي، چې دې سره شیطان ډیر خوشحاله کیږي، یو حدیث کې دي، چې الله تعالی اتهوسی خوښوي او دلته فرمایي دې سره شیطان خوشحاله کیږي، دا ښکاره تعارض دی، ددې جواب دا دی کثرت سره اتهوسي وي، نو الله تعالی یې نه خوښوي او چې کله کله وي بیا یې خوښوي. (المرقات ۳/۸۱).

## په زړا سره مونځ نه ماتیږي

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشِّخِّيرِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: أَتَيْتُ

مطرف ابن عبدالله بن شخیر رضي الله عنه د خپل پلار نه نقل کوي، هغه ویلي دي، چې زه یو ورځ حاضر شوم د

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ يُصَلِّي وَ لِجَوْفِهِ أَزِيزٌ

حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې دغه وخت نبي علیه السلام مونځ کولو او د نبي علیه السلام د ننه نه آواز راتلو

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۴۸۴ رقم الحديث ۵۸۷، والنسائي ۳/۹ رقم الحديث ۱۲۰۱ وأحمد في المسند ۱/۲۷۵.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۸۱ رقم الحديث ۲۷۴۸:

كَأَزِيزِ الْمِرْجَلِ يَعْنِي: يَبْكِي وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ:
د کټوي د جوش وهلو پشان، یعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژړل او د یو روایت الفاظ دا دي. هغوئ وویل

رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي وَفِي صَدْرِهِ
چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما په مونځ باندې ولیدو دغه وخت د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سینې مبارکې نه د

أَزِيزٌ كَأَزِيزِ الرَّحَا مِنَ الْبُكَاءِ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَرَوَى النَّسَائِيُّ الرِّوَايَةَ الْأُولَى وَأَبُو دَاوُدَ الثَّانِيَةَ)[1].
ژړندې د آواز په شان آواز راختو. (اولنې حدیث نسائي روایت کړې او دویم حدیث ابوداود نقل کړی).

**توضیح:** أزيز: د جوش آواز ته ویلې کېږي، المرجل: دیګچې ته ویلې کېږي. دې حدیث نه معلومه شوه چې. د الله تعالی د ویرې نه مونځ کې ژړلو سره مونځ نه فاسدېږي. (المرقات ۳/۸۲).
هدایه کې لیکي که یو کس د جهنم یا د عذاب د وجې نه وژاړي دده مونځ نه فاسدېږي. یا که د جسم درد د وجې نه وژاړي او الفاظ د آه وغیره د خولې نه ووځي، نو مونځ یې مات شو.

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ
دابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي څوک چې مونځ د پاره ودرېږي. نو

فَلَا يَمْسَحِ الْحَصَى فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[2].
په لاس سره دې کاڼې نه لرې کوي، ځکه چې رحمت مخامخ وي.

## د سجدې ځای د صفا کولو د پاره پو کې مه وهئ

﴿۲۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا لَنَا يُقَالُ لَهُ: أَفْلَحُ إِذَا
ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما یو غلام چې د هغې نوم افلح وو. ولیدو چې هغه به

سَجَدَ نَفَخَ فَقَالَ: «يَا أَفْلَحُ
سجده کوله (د سجدې ځای صفا کولو د پاره) به یې پو کې وهلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمایل: ای افلحه!

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۵۵۷ رقم الحديث ۹۰٤

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۵۸۱ رقم الحديث ۹٤۵، أخرجه الترمذي في السنن ۲ ۲۱۹، رقم الحديث ۳۷۹

تَرِّبْ وَجْهَكَ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].

خپل مخ باندې خاوره ولږوه.

## په مونځ کې په تشو باندې لاس کېښودل د دوزخیانو نښه ده

﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَلِاخْتِصَارُ فِي الصَّلَاةِ رَاحَةُ أَهْلِ النَّارِ». (رَوَاهُ فِي شرح السنة).

دابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل مونځ کې اختصار یعني (تشو باندې لاس کېښودل) د جهنم د آرام اخیستلو صورت دی.

**توضیح**: **نوټ**: د اختصار او خصر پوره وضاحت دد دې باب حدیث نمبر (۴) کې تیر شوی دی. د هغې یو جزء بیا ذکر کوم. (المرقات ۳/۸۴).

علماو د اختصار او خصر یو عجیب شکل ښودلی، علامه شمس الدین رحمه الله وایي: په مرې باندې چې کله ښځه ژاړي، نو اول خپل لاس په سینه باندې وهي، دد دې نه پس بیا د شهات ګوته او چته کړې وي یو خوا بل خوا یې تاووي، ښه چې ستړې شي، بیا دواړه لاسونه په اطرافو باندې کېږدي او ستړې کې پټې کړي. دا آخري حالت د جهنم والا دی. (الآن قد ندمت ولم ینفع الندم)

## په مونځ کې د مار او لړم دوژلو حکم

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ الْحَيَّةَ وَالْعَقْرَبَ». (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَلِلنَّسَائِيِّ مَعْنَاهُ)[2].

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: ووژنئ دوه تور په مونځ کې یعني مار او لړم

**توضیح**: **الاسودین**: مار ته تغلیباً تور ویلی شوی دی، ګینې د سپین او سور مارانو ذکر هم دلته دی، عربي کې د اسود لفظ هر قسم مار د پاره مستعمل دی. او لړم خو عموماً تور وي، الله تعالی دې نور هم تور کړي. (المرقات ۳/۸۴).

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۲ ۲۲۰ رقم الحدیث ۳۸۱

[2] أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۵٦٦ رقم الحدیث ۹۲۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۲ ۲۳۲، رقم الحدیث ۳۹۰

احناف فقهاء اكثريت دا وايي چې مونځ كې درې قدمه مسلسل تلل او درې گزاره كول مونځ فاسدوي. ځكه درې قدمونو نه كم تلل او كم وهلو سره مار مړ كول په كار دي، كه ډير شو. نو عمل كثير به شي او مونځ به مات شي، كه مونځ فاسد شو، نو دې سره مونځ گزار گنهگار نه دی، د ضرورت د وجې نه مونځ ماتولی هم شي او دغه عمل دی وكړي.

علامه سرخسي رَحِمَهُ اللهُ مبسوط كې دا مسئله ليكلې ده او فرمايي تلل او مار وژلو كې څه حد مناسب نه دی. ځكه چې حديث كې د مطلق تللو او وهلو ذكر دی، داسې كول په كار دي. هغه فرمايي كه مونځ كوونكی بې اودسه شي، نو دغه ځای نه بغير د مونځ ماتولو نه بل ځای ته تللی شي چې څومره قدمونه وي نو دلته هم جائز دي. احناف په دې سهولت باندې فتوی نه وركوي او فرمايي دا مباح دي، چې مونځ گزار مونځ مات كړي او لړم مړ كړي، دغه رنگ د چا ضائع كيدل يا كوهي، اور و غيره كې د پريوتو او سوزيدو خطره وي، نو مونځ گزار د پاره مباح دي، چې مونځ دې مات كړي او هغه دې بچ كړي. (المرقات ۳/۸۴).

اگر بينم كه نابينا و چاه است اگر خاموش بنشينم گناه است

## په معمولي عمل سره مونځ نه فاسديږي

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي تَطَوُّعًا وَالْبَابُ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په كور كې نفل مونځ باندې مشغول ؤ او دروازه به يې |
| عَلَيْهِ مُغْلَقٌ فَجِئْتُ فَاسْتَفْتَحْتُ فَمَشَى فَفَتَحَ لِي |
| بند ه ساتله زه به كور ته راغلم دروازه به مې وټكوله نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د دروازې خلاصولو د پاره راتلو، |
| ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مُصَلَّاهُ وَ ذَكَرَتْ أَنَّ الْبَابَ كَانَ فِي الْقِبْلَةِ. وروى النَّسَائِيُّ نحوه.[1] |
| بيا به په مصلې باندې ودريدو، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي دروازه قبلې طرف ته وه. |

**توضيح:** حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نفل مونځ كې مشغول ؤ كله كله به عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دروازه ووهله، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دروازې خلاصولو د پاره واړندې كيدو او واپس به په مصلې باندې ودريدو. د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجره وړه وه، ځكه عمل كثير نه وو. نوافلو كې گنجائش ډير وي، دا نفلو باندې محمول وو، يا د مونځ په شروع كې بعضې اعمال كيدل بيا وروسته پابندې ولږيده، فقهاء ليكي بندې

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۵۶۶/۱ رقم الحديث ۹۲۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۴۹۷/۲، رقم الحديث ۶۰۱

دروازې خلاصولو سره مونځ نه فاسديږي. که عمل قليل وي. خو د کولاوې دروازې بندولو سره مونځ فاسديږي ځکه چې دلته عمل کثير کيږي .(المرقات ٦/٨٥).

## د مونځ په دوران کې که اودس مات شي نو څه به کولې شي؟

﴿٢٧﴾ وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُعِدِ الصَّلَاةَ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1].

د طلق بن علي رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي چې کله هوا لاړه شي په غير د آوازنه ديو کس نه په مونځ کې نو هغه ته په کار دي چې لاړ شي او اودس وکړي او مونځ دې دوباره وکړي.

وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ مَعَ زِيَادَةٍ وَنُقْصَانٍ. (ترمذي).

دا روايت ترمذي هم څه زيادت او نقصان سره نقل کړی دی.

**توضيح: اذا فسا:** يعني بغير د آوازنه يا د آواز سره هوا ووځي د مونځ په حالت کې مونځ گزار به څه کوي؟ دې کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ٣/٨٦).

**د فقهاو اختلاف:** د جمهورو ائمو په نزد باندې هرصورت کې دې مونځ مات کړي او نوی اودس دې وکړي او سرنه دې مونځ وکړي، ائمه احناف فرمايي بهتر او افضل دا ده، چې مونځ دې بيا سرنه وکړي، خو د فقهي د ضوابطو او شرائطو مطابق که يو کس مونځ نه ماتوي او ځي اودس کوي او واپس راتللو سره زوړ مونځ پوره کوي، نو جائز دي.

**دلائل:** جمهور د زير بحث حضرت طلق بن علي روايت نه استدلال کوي، دې کې د مونځ دوباره کولو حکم دی.(المرقات ٣/٥١٤).

د احنافو ائمو اول دليل په ابن ماجه کې د حضرت عائشې رضي الله عنها مرفوع حديث دی الفاظ يې دا دي: **من اصابه قئ او رعاف او قلس او مذي فلينصرف فليتوضأ ثم ليبن على صلوته وهو في ذلک لا يتکلم.** **(ابن ماجه ص ٨٧)**

**د احنافو دويم دليل:** په موطا امام مالک کې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه اثر دی الفاظ يې دا دي: (ان **عبدالله بن عمر کان اذا رعف انصرف فتوضأ ثم رجع فبنى ولم يتکلم) (مؤطاء مالک ص ٢٧).**

[1] أخرجه أبو داود في السنن ١/١٤١ رقم الحديث ٢٠٥، وأخرجه الترمذي في السنن ٣/٤٦٩، رقم الحديث ١١٦٦

**دریم دلیل**: د حضرت ابن عباس رضي الله عنه اثر دی موطا امام مالک کې الفاظ یې دا دي: **مالک بلغه ان عبدالله بن عباس رضي الله عنه کان یرعف فیخرج فیغسل الدم ثم یرجع فیبني علی ما قد صلی** (ص۲۷)

دا ټول وی اختلاف نه دی احنافو په نزد باندې اعاده افضله ده او بناء جائز ده، کوم احادیثو کې چې د اعادې حکم دی هغه افضلیت باندې محمول دی او کوم چې په بناء باندې دی هغه جواز بیان د پاره دی، عمل په دواړو باندې راغلی.

## که مونځ کې اودس مات شونو په پوزه باندې لاس کېږده او ووځه

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَحْدَثَ أَحَدُكُمْ |
| دعائشې رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې: حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې کله بې اودسه شي یو کس |
| فِي صَلَاتِهِ فَلْيَأْخُذْ بِأَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْصَرِفْ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| په تاسو کې په مونځ کې هغه ته په کار دي چې خپله پوزه دې ونیسي او مونځ نه دې ووځي. |

**توضیح: فلیأخذ بأنفه**: یعني مونځ کې د چا نه هوا خارج شوه او د صفونو منځ کې ولاړ وو، اوس که اوځي، نو خلک به وایي چې هوا یې خارج شوه او که نه اوځي او مونځ جاري ساتي، نو لوی به ګناه ده، بلکې د کفر خطره ده، دې کس سره دوه صورتونه دي، د یو ذکر په دې حدیث کې وشو چې خپله پوزه دې ونیسي خلکو ته به پته ولږي چې پوزه یې ماته شوه، دې صورت نه احناف یو عجیبه مسئله راوباسي هغه دا چې د وینې سره اودس ماتیږي او که اودس مات نه شو، نو دا خلکو ته څنګه ښائي چې زما د پوزې نه وینه تلې ده، دې سره مې اودس مات شو، اوس که وینې سره اودس نه ماتیږي، لکه مسلک د شوافعو .نو بیا څنګه حیله کوي. ځکه چې خلک به وایي چې د وینې سره خو اودس نه ماتیږي ددې کس خو هوا خارج شوې ده، ځکه تختي. (المرقات ۳/۸۷).

دویم صورت ورسره دا دی، په صف کې دې ودریږي او مونځ دې مات کړي صرف خلکو سره دې کیني او پاڅي مونځ دې نه وایي ، دا د هغه وخت خبره ده، چې کله صفونو نه وتل ګران وي.

## د سلام نه بغیر د مونځ نه د وتلو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَحْدَثَ |
| دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي کله چې اودس مات شي |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۶۶۶ رقم الحديث : ۱۱۱٤

أَحَدُكُمْ وَ قَدْ جَلَسَ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ فَقَدْ
په تاسو کې د یو کس هغه وخت چې د خپل مونځ اخري قعده کې ؤ او سلام یې ونه ګرځولو نو ددې کس

جَازَتْ صَلَاتُهُ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ
مونځ پوره شو. ترمذي دا روایت کړی دی او وایي دا یو داسې حدیث دی ددې اسناد مضبوط نه دی او

وَ قَدِ اضْطَرَبُوا فِي إِسْنَادِهِ. (ترمذي)[1].
دوی ددې په اسناد کې مضطرب شوي دي.

**توضیح: فقد جازت صلوته:** یعنې که یو مونځ ګزار د تشهد په مقدار قعده آخیرنۍ کې کیناستو او بیا یې اودس مات شو، نو زیر بحث حدیث وایي چې دده مونځ اوشو. او دا د امام صاحب رحمه الله مسلک هم دی هغه فرمایي مونځ کې سلام سره وتل واجب دي، یو کس اختیاري طور باندې منافی صلوة عمل سره مونځ نه وځي فرض یې پوره شو اګر چې واجب پاتې کیدو سره واجب الاعاده دی(المرقات ٣/٨٧) امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي ددې کس مونځ فاسد شو، ځکه چې د دوی په نزد باندې خاص سلام سره وتل فرض دي او هغه فرض پوره نه شو. بهر حال مونځ دوباره د دواړو په نزد باندې ضروري دی، فرق صرف دومره دی امام صاحب په نزد باندې واجب دی. او امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد باندې فرض دی، زیر بحث حدیث د امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ دلیل دی، اګر چې په دې کې د اودس ماتي عمل قصداً نه دی شوی. خو د مونځ کونکي د فعل نه دی او سلام نه بغیر شوی دی، دې حد پورې د امام صاحب دلیل دی، شوافع حضرات دې ته مضطرب وایي. مطلب دا چې دا حدیث ضعیف دی، مطلب دا چې راویانو ته صحیح طور باندې یاد نه دی.(المرقات ٨/٨٨).

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ دا حدیث نه ضعیف ګرځولی دی او نه یې مضطرب ګڼلې، بلکې هغه فرمایي چې دا حدیث دومره ډیرو طریقو سره وارد دی، چې دا حدیث د حسن درجې ته رسیدلی. امام طحاوي دا حدیث ګڼو طریقو سره نقل کړی دی. (المرقات ٨/٨٨).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿٣٠﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ فَلَمَّا
ابوهریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ د پاره تشریف راوړو او کله چې یې د

[1] اخرجه الترمذي في السنن ٢٦١/١، رقم الحديث ٤٠٨

كَبَّرَ انْصَرَفَ وَ أَوْمَأَ إِلَيْهِمْ أَنْ كَمَا

تکبیر کولو اراده وکړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وروسته لاړو او صحابو ته یې اشاره وکړه چې په خپلو ځایونو باندې

كُنْتُمْ . ثُمَّ خَرَجَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ جَاءَ وَ

ودریږئ، جومات نه بهر شو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غسل وکړو او په دغه حالت کې یې تشریف راوړو. او

رَأْسُهُ يَقْطُرُ فَصَلَّى بِهِمْ . فَلَمَّا

دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سر مبارک نه د اوبو قطرې پریوتې، بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابو ته مونځ ورکړو. کله چې د

صَلَّى قَالَ: «إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا فنسيت أَن أَغْتَسِلَ» . (رَوَاهُ أَحمد . مؤطأ مالك)[1].

مونځ نه فارغ شو وې فرمایل ما ته د غسل حاجت وو، خو ما نه غسل هیر شوی وو.

## د ګرمۍ نه د بچ کېدو د پاره په کپړه باندې سجده کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : كُنْتُ أُصَلِّي الظُّهْرَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې ما به د ماسپښین مونځ د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره کولو او په یو |

فَآخُذُ قَبْضَةً مِنَ الْحَصٰى لِتَبْرُدَ فِي كَفِّي

موټي کې به مو کاڼي اخیستل چې زمونږ په لاس کې یخ شي چنانچه (د سجدې په ځای کې) به مو د سختې

أَضَعُهَا لِجَبْهَتِي أَسْجُدُ عَلَيْهَا لِشِدَّةِ الْحَرِّ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. وروى النَّسَائِيُّ نحوه)[2].

ګرمۍ د وجې نه کاڼي د سجدې په وخت کې د تندي نه لاندې کېښودل.

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ : قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَمِعْنَاهُ |
| ابو درداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي یوورځ حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کولو د پاره ولاړ ؤ ما واورېدل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| يَقُولُ : « أَعُوذُ بِاللهِ مِنْكَ » ثُمَّ قَالَ : « أَلْعَنُكَ بِلَعْنَةِ |
| فرمایل: زه ستا نه د الله تعالی پناه غواړم، بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ داو فرمایل زه په تا باندې لعنت کوم لعنت د |
| اللهِ » ثَلَاثًا وَ بَسَطَ يَدَهُ كَأَنَّهُ |
| د الله تعالی دې وي په تا باندې درې ځلې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل لاس مبارک داسې خواره کړل، ګویا چې یو |

(۱) أخرجه ابن ماجه في سننه ۳۸۵/۱ رقم الحديث ۱۲۲۰، وأحمد في المسند ۲ ٤٤٨

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۲۸۲/۱ رقم الحديث ۳۹۹

يَتَنَاوَلُ شَيْئًا فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الصَّلَاةِ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ سَمِعْنَاكَ

څيزرانيسي كله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مونځ نه فارغ شو، مونږ ووېل يارسول الله! نن مونږ واوريده د تاسو نه

تَقُولُ فِي الصَّلَاةِ شَيْئًا لَمْ نَسْمَعْكَ تَقُولُهُ قَبْلَ ذَلِكَ وَ رَأَيْنَاكَ بَسَطْتَ يَدَكَ

په مونځ كې داسې خبره چې كله هم مونږ تاسو نه وه اوريدلې او مونږ نن تاسو په لاس خوځيد وهم وليدئ

قَالَ : " إِنَّ عَدُوَّ اللهِ إِبْلِيسَ جَاءَ بِشِهَابٍ مِنْ نَارٍ لِيَجْعَلَهُ فِي وَجْهِي

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دالله دشمن شيطان په لاس كې داورشغله راوړې وه چې زما په خوله كې يې واچوي

فَقُلْتُ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . ثُمَّ قُلْتُ : أَلْعَنُكَ

ما درې ځلې داووېل چې زه تانه په الله تعالى باندې پناه غواړم. بيا ما ووېل زه په ت باندې لعنت كوم د

بِلَعْنَةِ اللهِ التَّامَّةِ فَلَمْ يَسْتَأْخِرْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ

الله تعالى پوره لعنت دې وي په تا باندې، هغه اخوانه شو دا (الفاظ) يې درې ځلې ووېل بيا چې اخوانه شو

أَرَدْتُ أَخْذَهُ وَ اللهِ لَوْلَا دَعْوَةُ أَخِينَا سُلَيْمَانَ لَأَصْبَحَ

ماهغه نيول غوښتل، خو په الله تعالى قسم كه زما د ورور سليمان عَلَيْهِ السَّلَام دعا نه وى، نو د سحر پورې به

مُوثَقًا يَلْعَبُ بِهِ وِلْدَانُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1].

مې تړلى وى او د مدينې ماشومانو به پرې لوبې كولى.

## په اشارې سره د سلام جواب څنګه دى

﴿۳۳﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ : إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ وَ هُوَ يُصَلِّي

دنافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې يو ورځ ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو كس باندې تېر شو، چې هغه مونځ كولو

فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَرَدَّ الرَّجُلُ كَلَامًا

حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دغه كس سلام واچولو او دغه كس د سلام جواب په ژبې سره وركړو

فَرَجَعَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ فَقَالَ لَهُ : إِذَا سُلِّمَ عَلَى أَحَدِكُمْ وَ هُوَ يُصَلِّي

عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته راغى او ورې فرمايل تاسو ته كه د مونځ په حالت كې څوك سلام وكړي هغه

[1] أخرجه مسلم ۱/۳۸۵ رقم الحديث ۴۰-۵۴۲، والنسائي ۳/۱۳ رقم الحديث ۱۲۱۵

فَلَا يَتَكَلَّمْ وَلْيُشِرْ بِيَدِهِ . (رَوَاهُ مَالِك )[1].

دې خبرې نه کوي، بلکې خپل لاس اشارې سره دې جواب ورکړي.

**توضیح:** **وَلْيُشِرْ بیده:** دا مسئله دې نه مخکې حدیث نمبر(۱۲) کې تفصیلي ذکر شوې ده. بهر حال احناف وايي چې دا حکم په شروع کې ؤ، بیا موقوف شو، باقي ائمه د لاس اشارې سره جواب اوس هم جائز گڼي، د احنافو په نزد باندې مکروه تنزیهي دی، یعني خلاف اولی دی، په دې صورت کې اختلاف ختمیږي. (المرقات ۳/۹۲).



(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱۶۸/۱ رقم الحدیث ۷۶ ، من کتاب قصر الصلاة.

۱۹ ربیع الثاني ۱۴۱۰هـ

## بَاب السَّهْو:
## د سجده سهوې بیان

سها یسهو د نصر ینصر نه په معنی د هیریدو سره دی، ابن اثیر رَحِمَهُ اللّٰهُ نهایة کې لیکلي دي: (السهو في الشيء ترکه من غیر علم والسهو عن الشيء ترکه مع العلم) دا ډیر ښه فرق دی، دې نه دا خبره ظاهره شوه، چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې مونځ کې څو مره ځلې سهوه شوې ده هغه ړومبی قسم سهوه ده، یعني ترک الشيء من غیر علم او دویم قسم سهوه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نه ده شوې، د دې مذمت قرآن کریم کې وارد دی: ﴿الَّذِينَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ﴾ (ماعون آیت: ۵). نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته اولنی سهوه تکویني طور باندې شوې وه، چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام عمل د امت د پاره عملي نمونه جوړه شي، شرعي اخبار او احکام بیانولو کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په اقوالو کې سهوه نه ده شوې، خو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په افعالو کې سهوه کیده، دې کې حکمت وو، چې د امت خلک د سهوې مسائل زده کړي، د مونځ سنن او مستحبات که پاتې شي د دې سره مونځ نه فاسدیږي، بلکې مونځ صحیح وي، خو د سنتو او مستحباتو چې کوم ثواب دی هغه نه ملاویږي، که د مونځ فرائضو نه یو څیز سهواً یا عمداً پاتې شي، نو مونځ فاسدیږي، د دې څه تدارک هم نشته، بلکې مونځ دوباره کول دي او اعاده فرض ده، که مونځ کې یو واجب قصداً یا سهواً پاتې شي د دې هم علاج نشته مونځ دوباره کول او اعاده واجب ده. (المرقات ۳/۹۲)
که واجب سهواً پاتې شي، یا فرضو کې تقدیم او تاخیر اوشي د دې صورت کې د دې علاج سهوه ده، قعده اخیره کې د یو سلام نه پس دوه سجدې کول دي او یا دې د سر نه تشهد شروع کړي او سلام دې واړوي، دې ته سجده سهوه ویلی شي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:
## که د رکعتونو په شمار کې شک شو نو څه کول په کار دي

﴿۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ يُصَلِّي
ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي تاسو کې چې څوک کله او دریږي د مونځ
جَاءَهُ الشَّيْطَانُ فَلَبَسَ عَلَيْهِ حَتَّى لَا يَدْرِي كَمْ
کولو د پاره نو ددې خوا ته شیطان راځي او دا په شک کې اچوي تر دې چې ده ته یاد نه وي چې ده څو رکعاته

صَلَّى؟ فَإِذَا وَجَدَ ذٰلِكَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْجُدْ سِجْدَتَيْنِ وَ هُوَ جَالِسٌ».[1]

مونځ وکړ که تاسو ته دا سې صورت راشي نو په کار دي چې آخیرنۍ قعده کې کیني او دوه سجدې وکړي

**توضیح: حتی لایدري کم صلی:** په دې بحث کې د فقهاء کرامو د اختلاف بیانولو نه مخکې ضروري ده چې دد ې موضوع متعلق کوم آحادیث دي په هغې باندې بحث وشي (المرقات ۳/۹۳).

د مونځ په دوران کې یو کس ته د رکعاتونو شمار کې شک شو، هغه به څه کوي دې کې مختلف احادیث راغلي، دغه شان د فقهاو په منځ کې هم اختلاف دی. دې مسئله کې څلور قسمه احادیث مختلف انداز کې ذکر دي: (۱) هغه احادیث چې هغې کې بناء علی الاقل حکم وي مثال په طور که شک په دوه یا دریو رکعاتو کې شو هغه دې دوه شمار کړي او که څلور او دریو کې تردد شو. نو درې دې شمار کړي. د فصل اول په دویم حدیث کې دا حکم مذکور دی او دد ې باب په آخري حدیث کې هم دا حکم مذکور دی.

(۲) هغه حدیث چې هغې کې دا بیان وي چې د شک صورت کې (تحری) یعنې سوچ کولو سره غالب گومان او جانب راجح باندې عمل کول په کار دي، لکه دد ې باب فصل اول کې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حدیث نمبر (۳) کې دي: (واذا شک احدکم في الصلوة فلیتحر الصواب)

(۳) هغه حدیث کې دا حکم مذکور دی چې د شک صورت کې مونځ د سر نه کول په کار دي دا قسم روایت طبراني کې موجود دی، الفاظ دا دي: (عن عبادة ابن صامت ان رسول الله صلی الله علیه وسلم سئل عن رجل سها في صلوة فلم یدر کم صلی فقال لیعد صلوته) (بحواله اعلاء السنن)

(۴) هغه روایات دي چې مجمل دي دې کې تفصیل نشته، صرف دومره دي چې د سهوې په صورت کې سجده سهوه کول.

**د فقهاو اختلاف:** دا مختلف روایت په نظر کې نیولو سره فقهاء کرامو په خپل فقهي نظر سره څه نا څه حدیث باندې عمل کولو فتوای ورکړې ده امام شعبي او اوزاعي فتوای ورکړې، د شک په صورت کې اعاده هر حالت کې لازم ده، دوی په دریم قسم روایاتو باندې عمل کړی دی. حسن بصري رحمه الله او بعضې سلف څلورم قسم مجمل او مبهم روایاتو باندې فتوی ورکړې ده، هر حالت کې سجده سهوه ده، دا کافي ده، که د رکعات په صورت کې وي یا د بل څه د وجې وي سجده سهوه دې وکړي، امام شافعي، امام مالک، امام احمد بن حنبل رحمهم الله اصولي طور باندې فتوی ورکړې، بناء علی الاقل شک پرېږده او یقین باندې عمل وکړه، دوی اول قسم روایاتو باندې عمل وکړو.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۰۴/۳، رقم الحديث ۱۲۳۲، ومسلم في الصحيح ۳۹۸/۱ رقم الحديث ۸۲-۳۸۹، وأبو داود ۶۲۳/۱ رقم الحديث: ۱۰۳۰، والنسائي ۳۰/۳، رقم الحديث ۱۲۵۲

بره ذکر شوو فقهاو يو قسم احاديث اخيستي او باقي يې ترک کړي. امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ او ائمه احنافو په دې ټولو باندې عمل کولو ښائسته صورت ذکر کړی دی فرمايي دا روايات مختلفو اشخاصو باندې محمول دي، مثلاً که يو کس په اول ځل باندې شک شوی وايې چې دا کس دې اول مونځ ختم کړي او شروع نه دې بيا مونځ وکړي د استيناف روايت دې باندې محمول دی.
که دیو کس عادت وي هغه نه هيريږي او شک کوي داسې کس دې تحری وکړي او صحيح صورت معلومولو کوشش دې وکړي، تحري والا روايات دې کس باندې محمول دي، دا دې غالب گومان باندې عمل وکړي او که د شک صورت داسې وي، چې هغه مساوي وې جانب راجح فيصله نه شي کولی، داسې صورت کې بناء علی الاقل رواياتو باندې عمل اوکړئ او مجمل روايات په دغه درې صورتونو باندې حمل کړئ، داسې به په دريو واړو رواياتو باندې عمل راشي. (**فلله در ابي حنيفة ما ادق نظره والطف فکره**) (المرقات ۳/۹۳).

## سجده سهوه د سلام نه مخکې په کار ده او که وروسته؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| عطاء بن يسار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړی دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| « إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلَمْ يَدْرِ كَمْ صَلَّى ثَلَاثًا أَمْ أَرْبَعًا |
| کله چې تاسو کې يو کس د مونځ په منځ کې شک وکړو او ياد ورته نه وي چې دې درې رکعته کړي او که څلور |
| فَلْيَطْرَحِ الشَّكَّ وَلْيَبْنِ عَلَى مَا اسْتَيْقَنَ |
| ده ته په کار دي چې خپل شک دې ختم کړي او کوم عدد باندې چې يې يقين وي په هغه باندې دې بناء وکړي |
| ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ فَإِنْ كَانَ صَلَّى خَمْسًا شَفَعْنَ لَهُ |
| بيا دې سجده وکړي دوه سجدې مخکې د سلام اړولو نه، که پنځه رکعته يې کړي وي نو جفت به شي دغه |
| صَلَاتَهُ وَ إِنْ كَانَ صَلَّى إِتْمَامًا لِأَرْبَعٍ كَانَتَا تَرْغِيمًا لِلشَّيْطَانِ ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] |
| پنځه رکعته د دوو سجدو سره او که پوره څلور رکعته يې کړي وي نو دا سجدې به د شيطان د ذلت سبب شي. |
| وَ رَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ عَطَاءٍ مُرْسَلًا . وَ |
| او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دا روايت د عطاء رَحِمَهُ اللهُ نه په طريقه د ارسال نقل کړی دی، او دا امام مالک رَحِمَهُ اللهُ |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۴۰۰ رقم الحديث ۸۸، ۵۷۱، ومالک في الموطا ۱/ ۹۵ رقم الحديث ۶۲ من كتاب الصلاة.

فِي رِوَايَتِهِ : « شَفَعَهَا بِهَاتَيْنِ السَّجْدَتَيْنِ ».

په يو روايت کې دا الفاظ دي: مونځ گزار د دغه دوو سجدو په ذريعې سره پنځه رکعته جفت جوړ کړل.

**توضيح: فليطرح الشک**: يعنې کوم کې چې شک دی دغه شک والا صورت په شان د نښتوالي دی. او يقيني والا صورت خپل کړه مثلاً دې حديث کې درې يا څلورو کې شک شو، مشکوک صورت د څلورو دي او يقيني صورتونه درې دي، مونځ گزار ته په کار دي چې څلور رکعاته دې پرېږدي او درې رکعتونو باندې دې فيصله وکړي او د سلام گرځولو نه مخکې دې دوه سجدې وکړي. (المرقات ۳/۹۳).

**فان کان صلی**: دا فاء د تفريع او تفصيل د پاره ده دې نه د حديث روسته د ضابطې تفصيل بيان کول مقصود دي د تفصيل خلاصه داده: که مونځ گزار في الواقع څلور رکعاته کړي وي او د اضافې د وجې نه رکعاتونه پنځه شو دوه سجده سهوې د يو رکعت قائممقام گرځي نو شپږ رکعاته به شي نو د **شفعن له صلواته** چې کومه جمله دي ددې جملې مطلب دا دی چې دې دوه سجدو د طاق مونځ جفت جوړ کړو يعنې پنځه رکعاته يې شپږ کړل. (المرقات ۳/۹۴).

**وان کان**: که في الواقع درې رکعاته کړي دي او يو رکعت په اضافې سره څلور رکعاتونه جوړ شي، نو اوس ددوو سجدو ضرورت رانغې لهذا دا دوه سجدې د شيطان د ذليله کيدو د پاره شوې ځکه چې شيطان مونځ گزار په شک کې اچولی وو چې دده مونځ کم کړي. **و الحمد لله علی ذلک** (المرقات ۳/۹۴).

**قبل ان يسلم**: دې نه معلوم شو چې سجده سهوه د سلام نه رومبی ده دې باره کې د فقهاو اختلاف دی خو دا اختلاف د جواز او عدم جواز نه دی بلکې د اولی او غير اولی دی. (المرقات ۳/۹۴).

**د فقهاو اختلاف**: شوافع حضرات سجده سهوه مطلقا د سلام نه مخکې گڼي او دا افضل گڼي. د مالکيو حضراتو په نزد که د سجده سهوې وجوب مونځ کې د زيادت د وجې نه وو بيا سجده سهوه بعد السلام افضل ده يا وجوب د نقصان د وجې نه وو بيا قبل السلام افضل ده. د امام مالک ددې فرق ياد ساتلو د وجې نه علماو حروف ته اشاره کړې ده (**القاف بالقاف**) يعنې نقصان په صورت کې قبل السلام ده دواړو کې قاف دی **قبل السلام** کې هم او نقصان کې هم (او **الدال بالدال**) د زيادت په صورت کې بعد السلام سجده سهوه ده دواړو کې دال دی، د حروفو په اعتبار سره يو بله خبره هم ياده ساتئ قابل او هابل کې قابل قاتل دی او هابل مقتول دی ځکه چې قاتل کې قاف دی. (المرقات ۳/۹۴).

څلور آسماني کتابونه او چا باندې چې نازل شوي د هغوي نومونه او کوم لغت کې نازل شوي د هغې نومونه دا زده کړي :

"فعم" فرقان په عربي ژبه كې په محمد صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ باندې نازل شوى دى.

"تعم" يعنې تورات په عبراني ژبه كې په موسى عَلَيْهِالسَّلَام باندې نازل شوى دى.

"اسع" يعنې انجيل په سرياني ژبه كې په عيسى عَلَيْهِالسَّلَام باندې نازل شوى دى.

"زيد" زبور په يوناني ژبه كې په داود عَلَيْهِالسَّلَام باندې نازل شوى دى.

همدارنګې دا معلومول چې د حضور صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د معراج په شپه كې كوم پيغمبر سره ملاقات شوى د نبي د نوم ړومبى حرف او ړومبى آسمان دغه ترتيب سره او و اسمانونو كې هر نبي سره ملاقات معلومول دې دپاره اعياهما كلمه ده. د هر پيغمبر د نوم اولني حرف د دې جملې نه واخلئ دغه ترتيب سره آسمانونو كې د حضور صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ سره د دغه نبي ملاقات شوى دى. مثلاً حضرت آدام عَلَيْهِالسَّلَام سره اول اسمان كې ملاقات شوى، دويم كې عيسى عَلَيْهِالسَّلَام سره، دريم كې يوسف عَلَيْهِالسَّلَام سره، څلورم كې ادريس عَلَيْهِالسَّلَام سره. پينځم كې هارون عَلَيْهِالسَّلَام سره، شپږم اسمان كې موسى عَلَيْهِالسَّلَام سره، اووم آسمان كې ابراهيم عَلَيْهِالسَّلَام سره ملاقات شوى دى، دغه شان د جلالين د اولې حصې مصنف څوك وو، سيوطي او محلي كې د واړو كې كوم حروف مقدم وي هغه د اولې حصې مصنف دى، نو سيوطي د اولې حصې مصنف دى، ځكه چې سين حرف په ترتيب كې مقدم دى او دويمې حصې مصنف محلي دى.

بهر حال امام احمد بن حنبل رَحِمَهُاللَّهُ په نزد موقع او محل مناسب قبل السلام باندې څوك عمل وكړي يا بعد السلام باندې يې عمل وكړي ټول جائز دي دا اختلاف د افضليت د پاره دى هر طرف ته صحيح حديث موجود دى. لكه حديث نمبر ۸،٦،۵،۲ نه بالكل واضح دي.

## پنځم ركعت د پاره د پاڅيدو مسئله

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا |
| عبدالله ابن مسعود رَضِيَاللَّهُعَنْهُ وايي يو ورځ حضور صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د ماسپخين پنځه ركعات كړي وو دهغه نه |
| فَقِيلَ لَهُ : أَزِيدَ فِي الصَّلَاةِ ؟ فَقَالَ : « وَمَا ذَاكَ ؟ » قَالُوا : |
| تپوس وكړى شو چې آيا مونځ كې زيادت وشو؟ نبي عَلَيْهِالسَّلَام وفرمايل څه وشو؟ صحابو عرض وكړو تاسو |
| صَلَّيْتَ خَمْسًا . فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ . وَ فِي رِوَايَةٍ : |
| پنځه ركعاته وكړل نو نبي عَلَيْهِالسَّلَام د سلام اړولو نه پس دوه سجدې وكړې په دويم روايت كې دا الفاظ هم دي |
| قَالَ : « إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي |
| چې زه خوانسان يم څنګه چې تاسو خبرې كوئ دغه شان زه هم خبرې كوم مانه چې څه هير شي ماته يې يادوئ |

وَ إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ

تاسو کې چاته چې مونځ کې شک شي هغه دې صحيح رايه قائم کړي په دغه رائې دې مونځ پوره کړي

ثُمَّ لِيُسَلِّمْ ثُمَّ يَسْجِد سَجْدَتَيْنِ». (متفق علي)[1]

او بيا دې د سلام اړولو نه پس دوه سجدې وکړي.

**توضيح: صلى الظهر خمسا:** حضور ﷺ د ماسپخين څلور رکعتونو په ځای پينځه رکعاته اوکړل دا خو واضحه ده خو دا معلومه نه شوه چې حضور ﷺ قعده اخيرنۍ کړې وه او يا يې نه وه کړې. (المرقات ۳/۹۵).

شوافع حضرات فرمايي پينځم رکعات ته د تللو د وجې نه سجده سهوه کافي ده که قعده اخيرنۍ يې کړې وي او که نه سجده سهوه هر صورت کې کافي شافي ده. د ائمه احنافو په نزد دې کې تفصيل دی که مونځګزار پينځم رکعات د پاره بغير د قعدې اخيرنۍ نه پاڅي ترڅو چې دې رکعت د رکوع او سجدې سره نه وي ملاو کړی واپس دې شي او سجده سهوې نه پس دې سلام واړوي مونځ درست دی، که رکعت يې سجدې سره ملاو کړو اوس دا کس نه شي کيناستې چې سلام واړوي بلکې دا دې يو بل رکعت هم سره وکړي شپږ رکعاته دې پوره کړي اوس فرضو کې نفل داخليدو سره مونځ باطل شو.

او دا شپږ رکعاته نفل جوړ شو فرض دې وکړي، که داسې صورت په سحر يا مازيګر کې هم راشي دې صورت کې هم مزيد دوه رکعته ملاو کړئ ټول رکعاتونه به نفل شي دا خيال مه کوئ چې د سحر او مازيګر نه پس نفل نشته دلته څنګه جائز دي؟ ددې جواب دا دی چې تراوسه پورې فرض مونځ پوره شوی نه دی، نو دا نفل بعد الفرض نه دي بلکې قبل الفرض دي که دا صورت د ماښام مونځ کې راشي دغه وخت صرف يو رکعت ورسره يو ځای کړئ څلورو رکعاتو نفلو باندې سلام واړوئ فرض بيا وکړئ.

شوافعو په خپل موقف باندې دا دليل نيولی:

زير بحث حديث کې د قعده اخيري پريخودل او نه پريخودلو ذکر نه دی شوی ددې تفصيل ضرورت نشته بلکه هر دويم صورت کې صرف سجده سهوه د مونځ د صحت د پاره کافي وي. احناف فرمايي دې حديث کې **صلى الظهر** الفاظ دي دې نه اندازه کېږي چې دا هغه صورت دی چې آخره قعده کې حضور ﷺ ناست وو. بيا پينځم رکعت د پاره ودريدلی وو، ځکه چې **صلى الظهر** ظاهري الفاظو مطلب

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۵۰۳،رقم الحديث ۴۰۱، ومسلم في الصحيح ۱/ ۴۰۱ رقم الحديث ۹۲ ۵۷۲، وأبو داود ۱/ ۶۲ رقم الحديث :۱۰۲۲، والنسائي ۳/۳۱، رقم الحديث ۱۲۵۱

دادي چې د ماسپخين مونځ يې پوره کړی دی، داسې صورت کې صرف سجده سهوه کافي ده که د آخري قعدې پاتې کيدو په صورت کې فرض مونځ دوباره کول دي. (المرقات ۳/۹۶).

**بعد ماسَلَّمَ**: يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د دوو سلامونو نه پس دوه سجدې کړې وې دا د احنافو دليل دی چې سجده بعد السلام ده، دې حديث کې دويم روايت بيانولو سره صاحب د مشکوة **ثم يسلم ثم يسجد سجدتين** الفاظو سره هم سجده **بعد السلام** ثابت کړې ده چې د احنافو مسلک دی اختلاف او تفصيل مخکې تير شوی او د **كلام في الصلوة** مسئله اوس راروانه ده لږ انتظار وکړې. (المرقات ۹۵-۳/۹۶).

د سجده سهوې د پاره د سلام طريقه او بيا د سجدې کولو طريقه دا ده که امام وي نو صرف ښي طرف ته دې سلام واوړي، ځکه چې دواړو طرف ته سلام اړولو سره مسبوقينو کې انتشار جوړيږي هغوي به د باقي مونځ د پاره ودريږي که منفرد سړی سجده سهوه کوي راجح دا دی چې دواړو طرف ته دې سلام وروي بيا دې تشهد کولو نه پس سلام واړوي.

## په مونځ کې د خبرو کولو مسئله:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ اِبْنِ سِيْرِيْنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن سيرين د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي هغه وفرمايل چې مونځ وکړو مونږ ته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| إِحْدَى صَلَاتَيِ الْعَشِيِّ قَالَ ابْن سِيرِين سَمَّاهَا أَبُو هُرَيْرَةَ وَ لَكِنْ نَسِيتُ أَنَا قَالَ |
| د ماسپخين يا د مازيګر د کوم نوم چې ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښودلی وو مانه هير شو ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي |
| فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ سره دوه رکعاته وکړل د دريم رکعاته د پاره د پاڅيدو په ځای سلام واړولو |
| فَقَامَ إِلَى خَشَبَةٍ مَعْرُوضَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَاتَّكَأَ عَلَيْهَا كَأَنَّهُ غَضْبَانُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام دلرګي په مدد سره چې جومات کې عرضا ولاړ وو اودريدو ګويا چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام غصه دی |
| وَ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى وَ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَ وَضَعَ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام خپل ښي لاس خپل ګس لاس باندې کيښودو او ګوتو کې يې ګوتې ورکړې او کيښوده خپل |
| خَدَّهُ الْأَيْمَنَ عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى وَ خَرَجَتْ سَرَعَانُ الْقَوْمِ مِنْ أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ فَقَالُوا |
| ښي انګی دګس لاس په بره طرف باندې زرتلو والاخلک د جومات په دروازو ووتل صحابه کرامو وويل |

قَصُرَتِ الصَّلَاةُ وَ فِي الْقَوْمِ أَبُو بَكْرٍ وَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا
آيا مونځ کې کمي راغي؟ صحابه کرامو کې ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم موجود وو

فَهَابَاهُ أَنْ يُكَلِّمَاهُ وَ فِي الْقَوْمِ رَجُلٌ فِي يَدَيْهِ طُولٌ يُقَالُ لَهُ ذُو الْيَدَيْنِ
دهغوي جرأت دتپوس نهٔ صحابو کې يو کسۀ چې دهغه لاس اوږدو وهغه ته ذوالیدين سره آواز کيدى

قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ! أَنَسِيتَ أَمْ قُصِرَتِ الصَّلَاةُ
شو هغه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو يارسول الله! آيا هير شو درنه که مونځ کې کمي راغي؟ حضور

قَالَ : « لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ » فَقَالَ :
صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه هيرشوي دي او نه مونځ کې کمي راغلي دي بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابو ته وفرمايل

« أَكَمَا يَقُولُ ذُو الْيَدَيْنِ ؟ » فَقَالُوا : نَعَمْ . فَتَقَدَّمَ
تاسو هم دا وايئ څه چې ذواليدين وويل صحابو عرض وکړو (آو) دغه خبره ده، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مخکې شو

فَصَلَّى مَا تَرَكَ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ وَ سَجَدَ مِثْلَ
او باقي مونځ يې پوره کړو او سلام يې واړولو او تکبير يې وويلو او سجده يې وکړه په شان د حسب معمول

سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَ كَبَّرَ ثُمَّ كَبَّرَ وَ سَجَدَ
سجدو يا دهغې نه اوږده سجده بيا يې تکبير کولو سره سر اوچت کړو بيا يې تکبير وکړو او سجده يې وکړه د

مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَ كَبَّرَ فَرُبَّمَا سَأَلُوهُ
حسب معمول سجدو په شان يا اوږده سجده بيا يې تکبير کولو سره سر اوچت کړو خلکو ابن سيرين نه تپوس

ثُمَّ سَلَّمَ فَيَقُولُ نُبِّئْتُ أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ
وکړو بيا دهغې نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سلام واړولو هغه وويل ماته دا خبره د عمران بن حصين د طرفه رارسيدلې

قَالَ ثُمَّ سَلَّمَ.(متفق عليه) (1). وَ لَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ
ده هغه به وويل چې بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سلام واړولو دا روايت مسلم او بخاري نقل کړي خو الفاظ د بخاري دي

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۶۲/۱، رقم الحديث ۴۸۲، ومسلم في الصحيح ۴۰۳/۱ رقم الحديث ۹۷-۵۷۳

وَ فِي أُخْرَى لَهُمَا: فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَدَلَ «لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تُقْصَرْ»:

او د بخاري او مسلم په يو روايت کې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې دې دوو خبرو (يعني د مونځ د کميدو

«كُلُّ ذَلِكَ لَمْ يَكُنْ» فَقَالَ: قَدْ كَانَ بَعْضُ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللهِ.

او يا زما نه د هيريدو) کې يو خبره هم نه ده شوې ذواليدين عرض وکړو څه خو شوې دي اې د الله رسوله.

**توضيح: فقال لم انس و لم تقصر**: مونځ کې خبرو کولو سره مونځ فاسديږي او که نه او مونځ کې خبرې قصداً او نسياناً جائز دي او که نه؟. (المرقات ٣/١٠٣).

د: يو اختلافي مسئله ده په دې کې د فقهاو اختلاف دی:

**د فقهاو اختلاف**: د دې باندې اتفاق دی چې د اسلام په شروع کې څه حده پورې خبرې جائز وې بيا منسوخ شوې د فقهاو په دې نسخ کې اختلاف دی، چې آيا هر قسم کلام مکمل طور باندې حرام شوی دی. او که نه د بعضې کلام اجازت او س هم شته، د دې تفصيل دا رنګه دی: د شوافعو په نزد اصلاح د صلوة د پاره قليل کلام کول جائز دي په دې شرط چې نسياناً وي د دې نه مراد دا دی چې مونځ ګزار ته ياد نه وي چې مونځ کې ولاړ يم. او د مونځ د اصلاح د پاره يې وکړي قعده وکړه وغيره تر دې چې زير بحث حديث کې د ذواليدين کلام دی امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي که اصلاح صلوة د پاره کلام قصدا هم وي جائز دی د دې سره مونځ نه فاسديږي. د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په خبرو کې اضطراب دی هر طرف ته يې يو يو قول دی بلکې د دې نه هم ډير اقوال دي د دې ذکر کولو ضرورت نشته مجموعي طور باندې د دې مسئله کې جمهور څه فرق سره يو طرف ته ولاړ دي او ائمه احناف بل طرف ته دي د ائمه احنافو په نزد هر قسم کلام منسوخ دی هر قسم کلام مفسد الصلوة دی که عمداً وي يا نسياناً وي يا خطاء يا قصدا يا کثيرا وي هيڅ ګنجائش نشته.

**دلائل**: جمهور و د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زير بحث حديث نه استدلال کړی دی د دې کې مونځ ګزار ذواليدين هم په وخت د مونځ کې کلام کړی دی او صحابو هم کلام کړی دی همدا رنګې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم خبرې کړې دي بيا ټولو سجده سهوې سره مونځ وکړو د مونځ اعاده يې و نه کړه **معلومه شوه** چې خبرو سره مونځ نه فاسديږي شوافعو دا کلام کلام نسيانا باندې حمل کړی دی او مالکيو دا کلام اصلاح د صلوة د پاره قصدا او عمدا باندې حمل کوي.

**جمهورو** فصل ثالث کې د عمران بن حصين حديث نمبر (٨) نه هم استدلال کړی دی، د دې کې هم دا سې مضمون دی بلکې د دې کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کور ته د تلو او واپس راتلو او د خبرو بيان دی **جمهور** د دې باب حديث نمبر (٢). ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه هم استدلال کړی دی. د دې کې د صحابو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خبرو ذکر دی بيا صرف سجده سهوه کافي ګڼلې ده. **معلوم شول چې کلام قليل**

اصلاح صلوة دپاره وي،نو دا مفسد صلوة نه دى.د ائمه احنافو او د سفيان ثوري رَحِمَهُ اللَّهُ دلائل دير دي :
(۱) حضرت معاويه بن الحكم السلمى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دى كوم چې د مشكوة باب ولايجوز من العمل في الصلوة فصل اول كې رومبى حديث دى دې كې يوه قصه هم ده الفاظ يې دا دي: **(ان هذه الصلوة لا يصلح فيها شئ من كلام الناس)** امام مسلم دا روايت نقل كړى دى دا واضح دليل دى مونځ كې اول كلام ؤ بيا منسوخ شو، اوس مونځ كې ذكر الله، تلاوت او تسبحاتو نه علاوه بل څه جائز نه دي.
(۲) دې باب كې د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت نمبر(۲) دى دې كې دا راغلي چې د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سلام جواب حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ كې نه وو وركړى او بيا يې وفرمايل: **ان في الصلوة لشغلا**.
(۳) ددې باب فصل ثاني كې د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث نمبر(۱۱) دى ددې تخريج ابوداود كړى دى. دې كې واضح الفاظ دي الله تعالى چې كله غواړي د خپل دين په احكامو كې تبديلي كولى شي د حديث الفاظ دا دي: **(و ان مما احدث الا تتكلموا في الصلوة)**
(۴) د احنافو مضبوط دليل د كلام په نسخ باندې واضح دليل دى د قرآن كريم آيت نه هم استدلال دى د حضرت زيد بن ارقم روايت دى امام مسلم په صحيح مسلم كې ذكر كړى دى الفاظ يې دا دي: **(كنا لنتكلم في الصلوة يكلم الرجل صاحبه وهو الى جنبه في الصلوة حتى نزلت ﴿وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ فامرنا بالسكوت و نهينا عن الكلام)** (مسلم، ج۱، ص ۲۰۴)
**د ذواليدين د حديث جواب:** ائمه احنافو زير بحث د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث نه دا جواب وركوي چې خبرې واقعي د اسلام په شروع كې وې كوم وخت چې مونځ كې د خبرو كولو اجازت وو بيا كلام منسوخ شو جمهور د ذواليدين د واقعې نه هله استدلال كولى شي چې دا خبره ثابت كړي چې دا واقعه د كلام منسوخ كيدو نه پس ده دوي دا نه شي ثابتولى بلكې معامله ددې الټه ده.
**د ذواليدين واقعه كله راغلې؟** په دې باندې اتفاق دى چې كلام په شروع كې كيدو بيا منسوخ شو اختلاف دې كې دى چې د ذواليدين دا واقعه (نسخ الكلام) نه مخكې وه يا مونځ كې كلام منسوخ كيدو نه پس راغلې ده؟ شوافع او مالكيه بلكې جمهور فرمايي د ذواليدين واقعه د نسخ الكلام نه پس ده خو څومره چې د كلام في الصلاة گنجائش دې حديث كې دى دومره مونږ قائل يو دې نه علاوه منسوخ دى د ائمه احنافو تحقيق دادى چې د ذواليدين واقعه (نسخ الكلام) نه مخكې راغلې ده نه پس مكمل مونځ كې پابندې راغلې ده دې باندې څومره دلائل وركړى شوي دي.(المرقات ۳/۱۰۳).
**د جمهورو طرف نه يو قرينه**،د يوې قرينې په طور باندې جمهور وايي چې د ذواليدين دا حديث او واقعه چې ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نقل كوي دا سې وايي: **صلى بنا رسول الله** دې الفاظو نه معلوميږي چې ابو هريره

رضي الله عنه د ذواليدين واقعه کې موجود وو حضرت ابوهريره رضي الله عنه (سنـ۷هـ) کې اسلام راوړی وو او د کلام د نسخې حکم ډیر مخکې راغلی وو، معلومه شوه چې په مونځ کې یو حد پورې کلام کولو اجازت اوس هم ثابت دی چې د عامې نسخې نه پس هم باقي دی دې کې نسخ باندې د فقهاو اختلاف دی.

**جواب:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه بیشک (سنـ۷هـ) کې اسلام راوړی دی خود صلی بنا الفاظو سره یقین کول چې ابوهريره رضي الله عنه په دې واقعې کې موجود وو، دا صحیح نه دی ځکه داسې الفاظو سره د صحابو جماعت مراد اخستلی کېږي.

**ای صلی بالمسلمین:** یعنې د مسلمانانو جماعت ته حضور صلی الله علیه وسلم مونځ ورکړی وو داسې تعبیر ابوهريره رضي الله عنه دویم ځای کې هم کړی دی او خومره راویانو چې داسې تعبیر کړی دی حضرت بنوری رحمه الله (معارف السنن ج۳،ص ۵۱۲،) کې داسې اولس ۱۷ مثالونه پیش کړي دي مشهور تابعي حضرت طاوس رحمه الله وویل **قدم علینا معاذ بن جبل...الخ** حضرت معاذ رضی الله عنه چې کله یمن ته راغی دغه وخت کې طاوس پیدا شوی هم نه وو ددې تعبیر حقیقت دا دی **ای قدم علی قومنا معاذ بن جبل الخ** (المرقات ۳/۹۸)

داسې دلته ابوهريره رضي الله عنه **صلی بنا رسول الله** صلی الله علیه وسلم الفاظ هم دي دغه شان نزال بن سعد تابعي وايي: (**قال لنا رسول الله**) دلته هم **قال لقومنا** دی حالانکه نزال تابعي هلته چرته موجود یدلی شي. (المرقات ۳/۱۰۴)

دغه شان ذواليدين په جنګ بدر کې شهيد شوی وو او (سنـ۷هـ) کې ابوهريره رضي الله عنه د هغوي د جملې واقعه څنګه ذکر کوي معلومه شوه چې دا هغه قصه ده **صلی بنا ای صلی بجماعة الصحابة**، طحاوی کې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه قصه مذکور ده چې دده مخې ته د ذواليدين دا حدیث پیش کړی شو هغوی وفرمایل: (**کان اسلام ابي هريرة بعد ماقتل ذواليدين**) (ج۱،ص۲۹۵)

**داحنافو د طرف نه اوله قرینه:** په زیر بحث حدیث کې د **کلام في الصلاة** خبره ده ددې نه جمهورو استدلال کړی دی احناف فرمايي دا واقعه د جنګ بدر نه مخکې وه **نسخ الکلام في الصلوة** هجرت نه څه وخت پس مدینه منوره کې شوې ده دې باندې د احناف طرف نه چند قرائن دي. اوله قرینه دا ده چې زیر بحث حدیث کې د ذواليدين ذکر دی او ذواليدين جنګ بدر کې شهيد شوی دی معلومه شوه دا قصه د جنګ بدر نه مخکې ده او د ذواليدين شهادت باندې **نسخ الکلام في الصلوة** مکمل شوه.

**دویمه قرینه:** دې حدیث کې دا الفاظ دي (**ثم قام الی خشبة معروضة**) دې نه مراد ستن حنانه ده ستن

حنانه د جنګ بدر نه مخکې ورانه شوې ده دې باندې د ټولو اتفاق دی د حضور ﷺ د پاره منبر سنه ۲هـ کې تیار شوی وو، او د جنګ بدر واقعه سنه ۲هـ کې راغلې وه معلومه شوه چې حضور ﷺ د حنانه ستن حنانه ته ډډه وهل او ذوالیدین سره کلام کول دا د جنګ بدر نه مخکې واقعه ده دغه وخت کې نسخ الکلام حکم راغلی.

**دریمه قرینه**: دې حدیث کې ډیر اعمال، افعال او اقوال صادر شوي دي کوم چې د جمهورو په نزد هم یقینا مفسد صلوت دي مثلاً محراب نه اخوا کیدل لرګي ته ډډه وهل قبلې نه مخ اړول او حجرې ته تلل او بیا واپس راتلل او مباحثه کې قصداً او عمداً اوږد کلام کول ددې ګنجائش صرف هغه وخت دی چې مونځ کې کلام وغیره کې ډیر وسعت وو معلومه شوه دا د نسخ الکلام نه مخکې واقعه ده وروسته نه ده.

**د جمهورو اعتراض**: جمهورو د احنافو په دې قرینه باندې اعتراض کړی دی چې دا واقعه د بدر نه مخکې ده او په بدر کې شهید شوې وو، فرمایي تاسو ته غلط فهمي شوې ده چې جنګ بدر کې ذو الیدین شهید شوی وو داسې نه ده جنګ بدر کې ذوالشمالین شهید شوی وو د ذوالیدین نوم خرباق بن عمرو وو او د خزاعه د قبیلې نه وو او ذوالشمالین نو عمیر بن عمرو دی دا د بنو سلیم د قبیلې نه وو ذو الیدین د عثمان رضی الله عنه زمانې پورې ژوندی ؤ او د **کلام في الصلوة** جواز یې بیانولو (المرقات ۳/۱۰۰)

**د احنافو جواب**: ذوالشمالین او ذوالیدین دواړه د یو کس لقبونه وو خلکو به دې ته ذوالشمالین وئیلو چونکه بدفالي او بدشګوني په کې وه نو حضور ﷺ دې ته ذوالیدین وفرمایل عمیر یې نوم وو او خرباق یې لقب وو، خزاعه او سلیم څه ځان له قبیلې نه وې بلکې بنو سلیم د خزاعه بطن او څانګه ده.

د اتول نسبتونه صحیح دي په طبقات د ابن سعد کې یې داسې لیکلي: **ذوالیدین یقال له ذوالشمالین ایضاً**. دغه شان مبرد الکامل کې لیکلي دي: (**ذوالیدین وهو ذوالشمالین کان یسمی لهما جمیعاً**)

مسند بزار او طبراني کې یو حدیث د دواړو ذکر دی: (**صلی النبی ﷺ فقال له ذوالشمالین انقصت الصلوة؟ قال عليه السلام كذلك يا ذاليدين؟ قال نعم**)

دې روایت نه صفا معلومیږي چې ذوالیدین او ذوالشمالین د یو کس دوه لقبه دي او جمهور ددې اقرار کوي، په بدر کې ذوالشمالین شهید شوی وو نتیجه دا راووته چې دغه ذوالشمالین ذوالیدین وو او د ذوالیدین په جنګ بدر کې شهادت واقع شوی وو لهذا زیر نظر حدیث کې دا واقعه بدر نه مخکې ده. نسخ الکلام واقعه هم مخکې ده ددې منسوخ روایت نه استدلال جائز نه دی.

**د حدیث ذوالیدین نه دویم جواب**: حضور ﷺ امت ته تعلیم ورکړی دی که یو امام مونځ کې غلطي وکړي هغه ته فتح ورکوئ سبحان الله لفظ سره او که زنانه وي، نو تصفیق دې کوي یعنې د ښي لاس په تلي باندې د ګس لاس بره حصه ووهئ که مونځ کې د اصلاح صلوة د پاره کلام اجازت وی نو

حضور ﷺ به په دې طريقه باندې کله هم تعليم نه ورکولی معلومه شوه چې د ذواليدين د حديث حکم مکمل طور باندې منسوخ شوی دی د صاحب مشکوة د طرز عمل نه هم اندازه لګي چې دا حکم منسوخ شوی دی ځکه چې د دوی دې حديث د سهوې په باب کې دې طرف ته اشاره کړې ده چې کلام في الصلوة سهوه په طور باندې کيدی شي قصداً عمداً او اصلاحا ممکن نه دی.

**د حديث ذواليدين درېم الزامی جواب**: حديث ذواليدين باندې تاسو کله عمل کوئ په دې حديث کې عمدا کلام شوی دی سوال او جواب مباحثه شوې ده د حضور ﷺ مخ قبلې نه اوړيدلی دی حضور ﷺ کافي حد پورې تلی دی، کور ته تلی دی واپس راغلی دی که تاسو دې حديث نه **کلام في الصلوة** ثابت کوئ بيا مونځ کې تلل هم او قبلې نه مخ اړول هم جائز کړئ. مونځ کې مناظره جائز کړئ ستاسو په نزد هم جائز نه دی بيا کلام ولی جائز کوئ داسې ووائې چې شروع کې داسې وو بيا منسوخ شو او مکمل منسوخ شو څه جزئي نسخ نه ده. (**في يديه طول**) ذواليدين لقب ددې وجې نه دی ګينې هر کس د دوو لاسونو والا دی خو د نورو په نسبت ددې لاسونه لږ اوږده وو. (المرقات ۳/۱۰۰)

**فربما سئلوه ثم سلم**: يعنې ابن سيرين رحمه الله نه بعضې وخت خلکو تپوس کوه چې آيا ابوهريره رضي الله عنه **ثم سلم** فرمايلی دی د سوال مطلب دا دی آيا سجده سهوه د سلام نه مخکې کيده يا بعد کې يې کوله ابن سيرين جواب کې فرمايې د ابوهريره رضي الله عنه روايت کې ماته الفاظ ياد نه دې البته عمران بن حصين چې کله ماته دا حديث واورولو هغې کې **ثم سلم** الفاظ دې ما دلته د ابوهريره روايت کې دا الفاظ د عمران بن حصين د روايت نه راوړې او نقل کړې مې دي.(المرقات ۳/۱۰۲).

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ بُحَيْنَةَ :أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَّى بِهِمُ الظُّهْرَ |
| حضرت عبد الله ابن بحينه فرمايي يو ورځ چې حضور ﷺ صحابو ته د ماسپخين مونځ ورکولو |
| فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ لَمْ يَجْلِسْ فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ |
| اول يې دوه رکعته وکړل (اوله قعده کې بغير د ناستې) نه او درېدو نور خلک هم د نبي عليه السلام سره پاڅېدل |
| حَتّٰى إِذَا قَضَى الصَّلَاةَ وَ انْتَظَرَ النَّاسُ تَسْلِيمَهُ كَبَّرَ وَ هُوَ جَالِسٌ |
| تردې چې مونځ يې وکړو خلک د سلام په انتظار کې وو نو نبي عليه السلام په ناسته ناسته يې تکبير وکړو |

فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ ثُمَّ سَلَّمَ[1].

او سلام اړولو نه مخکې يې دوه سجدې اوکړې دې نه پس يې سلام واړولو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## د سجده سهوې نه پس تشهد کول په کار دي

﴿٦﴾ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَّى بِهِمْ فَسَهَا

عمران بن حصين فرمايي چې حضور صلی الله علیه وسلم خلکو ته مونځ وکړونو سهوه شو حضور صلی الله علیه وسلم

فَسجدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ تَشَهَّدَ ثُمَّ سَلَّمَ.

(سلام واړولو) دوه سجدې يې وکړې هغې نه پس نبي علیه الصلاة والسلام التحيات وويله او سلام يې واړولو

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ . (ترمذي)[2].

امام ترمذي دا حديث نقل کړې او ويلي يې دي چې دا حديث حسن او غريب دی.

**توضيح: فسها:** دې حديث کې هغه رکن نه دی بيان کړې چې دې کې د حضور صلی الله علیه وسلم نه هير شوې دې صرف د هيرې ذکر دی، د تشهد دې حديث نه معلومه شوه چې سجده سهوې کولو نه پس بيا د سر نه التحيات لوستل په کار دي او مکمل تشهد نه پس سلام اړول په کار دي. (المرقات ۳/۱۰۷).

د علماء احنافو په نزد دا بحث تير شوی دی د تشهد نه پس چې کوم درود او دعا ده هغه د اول تشهد سره لوستل په کار دي، او که د دويم او آخري تشهد سره يو ځای کول او لوستل په کار دي امام کرخي رحمه الله او صاحب هدايه دغه خوښ کړې دی چې سجده سهوې نه پس تشهد سره درود او دعاګانې ويل په کار دي د احنافو په دې باندې عمل دی ځينې احناف د اولني تشهد سره لوستل ويلی دی او بعضې د دواړو سره لوستل بهتر او احوط ويلي دی.

## مونځ ګزار ته په اوله قعدې پريښودلو سره څه کول په کار دي

﴿٧﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ الْإِمَامُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ

مغيره بن شعبه راوي دی فرمايي حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي که امام د دوه رکعاتو کولو سره ودريږي

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۹۲/۳، رقم الحديث ۱۲۲٤، ومسلم في الصحيح ۳۹۹/۱ رقم الحديث: ۸۵-۵۷، وأبو داود ۶۲۵/۱ رقم الحديث: ۱۰۳٤، والنسائي ۱۹/۳، رقم الحديث: ۱۲۲۲

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲٤۰/۲ رقم الحديث ۳۹۵.

فَإِنْ ذَكَرَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوِيَ قَائِمًا فَلْيَجْلِسْ وَ إِنِ اسْتَوَى قَائِمًا

که سیده کیدو نه مخکې ورته یاد شي نو هغه ته په کار دي چې کیني او که نیغ اودریدلی وو. نو اوس

فَلَا يَجْلِسْ وَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ» .(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَابْنُ مَاجَهْ)[1].

دې نه کیني او دوه سجده سهوې دې وکړي.

**توضیح: فلایجلس:** یعنې قعده اولی پریږدي او ودریګي یا دې قعدې ته نه راځي. بلکې بعضې علماء وايي چې مونځ يې ماتيږي، ځکه چې دا کس د قیام فرض نه واجب ته منتقل شو دې سره مونځ فاسديږي.

د نور الایضاح په حواشي کې لیکلي چې دا صورت خطرناک خو ډیر دی که چا داسې وکړل. نو مونځ يې نه فاسدیږي ځکه چې دې کس قیام فرض ترک کړی نه دی، بلکې دې کې يې تاخیر وکړو قعدې نه پس دې یا دغه قیام ته لاړشي اداء به يې کړي که پوره اودریدلی نه وي او **اقرب الی القیام** هم نه وي بلکې **اقرب الی القعود** وي دې ته واپس قعدې طرف ته تلل په کار دي اوس **اقرب الی القیام و القعود** معیار او حد څه دی؟ علماء لیکي چې د پاڅیدو په وخت کې که خپې نیغې نه وي دا **اقرب الی القعود** دی دې صورت کې څه مضائقه نشته خپل مونځ دې مکمل کړي او که خپې نیغې وې باقي بدن نیغ نه وي، نو دا کس **اقرب الی القیام** دی واپسي جائز نه ده او سجده سهوه لازم ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۸﴾ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَّى الْعَصْرَ وَ سَلَّمَ

عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو ورځ نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د مازیګر مونځ وکړو او سلام يې وګرځولو

فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ ثُمَّ دَخَلَ مَنْزِلَهُ فَقَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ الْخِرْبَاقُ وَ كَانَ فِي يَدَيْهِ

په درې رکعته کولو سره او کور ته يې تشریف یوړ یو کس وویل چې د هغه نوم خرباق وو او لاسونه يې څه

طُولٌ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ فَذَكَرَ لَهُ صَنِيعَه فَخرج غَضْبَانَ

اوږده وو اودریدو عرض يې وکړو یارسول الله! او هغه واقعه يې بیان کړه نبي عَلَيْهِ السَّلَام راووتو او په غوسه

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۶۲۹/۱ رقم الحديث : ۱۰۳۶ ؛ أخرجه ابن ماجه في سنن ۳۸۱/۱ رقم الحديث ۳۹۵.

يَجُرُّ رِدَاءَهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَى النَّاسِ فَقَالَ : « أَصَدَقَ هٰذَا ؟ ».
کې خپل څادر راکش کړو او خلکو خواته جومات کې ورغلو او وې فرمايل آيا ذواليدين صحيح وايي صحابو

قَالُوا: نَعَمْ فَصَلَّى رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ .(رَوَاهُ مُسلم)[1].
وويل چې آو نبي عليه السلام يو رکعت وکړو بيا يې سلام واړولو بيا يې دوه سجدې وکړې او سلام يې واړولو.

﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَلَّى صَلَاةً
عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وايي ما د حضور صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي چې ويل يې چا چې مونځ وکړو

يَشُكُّ فِي النُّقْصَانِ فَلْيُصَلِّ حَتَّى يَشُكَّ فِي الزِّيَادَةِ » . (رَوَاهُ أَحمد)[2].
او شک يې شي په کمي کې نو هغه ته په کار دي چې بل مونځ وکړي تر دې چې د زياتوالي شک يې شي.



(۱) أخرجه مسلم ۱/۴۰۴ رقم الحديث : ۱۰۱-۵۷۴، وابن ماجه ۲/۳۸۴ رقم الحديث ۱۲۱۵.
(۲) أخرجه احمد في المسند ۱/۱۹۵.

۲۰ ربيع الثاني ۱٤۱۰هـ

# بَاب سُجُود الْقُرْآن:

قال الله تعالى: ﴿وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ﴾ (سورة انشقاق آيت: ۲۱).

و قال الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ﴾ (سورة حج آيت: ۷۷).

په قرآن كريم كې ځينې آيتونه داسې دي چې په لوستلو يا اوريدلو سره يې سجده واجبيږي دې ته سجده د تلاوت ويل كيږي سجود القرآن نه مراد سجده د تلاوت ده. امام صاحب دې سجدې ته واجب وايي او د نورو ائمو په نزد باندې سجده د تلاوت سنت ده سجده تلاوت يوه سجده ده خو دوو تكبيرونو سره ده دويم تكبير د سجدې په وخت كې دى لاسونه غوړونو ته د وړو ضرورت نشته دغه شان د تشهد او سلام ضرورت هم نشته تكبير كولو سره پاځيدل په خپله سلام دى سجده تلاوت د پاره نيت وي خو د آيت د تعين ضرورت نشته كوم وخت چې آيت ولولي او فوراً سجده اوكړي د نيت ضرورورت نشته سجده تلاوت د پاره او دس كول قبلې ته مخ كول كپړې صفا ساتل او د پردې خيال ساتل هم ضروري دي، څنګه چې مونځ كې ضروري دي. سجده تلاوت كې هم دوه اهمې مسئلې دي اول دا چې د سجدو تعداد څومره دى په دې كې د امامانو اختلاف دى دويمه مسئله دا چې سجده تلاوت سنت ده يا واجب ده دې كې د فقهاو اختلاف دى دواړه مسئلې راتلونكي دي.

## الْفَصْل الأول:

## سورة نجم كې تكويني (طبعي) سجده ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّجْمِ |
| د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم په سورة نجم كې سجده وكړه |
| وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مسلمانانو، مشركانو، جناتو او ټولو سجده وكړه. |

**توضيح**: والجن والانس: يعني حضور صلى الله عليه وسلم د سورة نجم د سجدې والا آيت اولوستلو حضور صلى الله عليه وسلم سجده وكړه او مسلمانانو هم وكړه نو ددې نه ثابت شوه چې سجده تلاوت اوريدلو او

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ٦١٤/٨، رقم الحديث ٤٨٦٢، والترمذي ٤٦٤/٢ رقم الحديث: ٥٧٥.

لوستلو والا دوارو باندې واجبيږي.(المرقات ۳/۱۰۹).

**والمشركون:** يعنې مشركانو او جن انس هم سجده وکړه يعنې طبعي شکل سره الله تعالى په دوي باندې سجده وکړه د قرآن اعجاز ښکاره شو يا داسې وګڼه چې حضور ﷺ د الله تعالى په حکم باندې سجده وکړه او مسلمانانو د حضور ﷺ په اطاعت کې سجده وکړه ټول حاضرينو سجده وکړه که جنات وو يا انسانان وو دوي هم هلته حاضر وو ټولو سجده وکړه شيطان د حضور ﷺ د لوستلو نه پس آواز ورکړو **تلك الغرانيق العلى وان شفعاتهن لترتجى** دا چې يې واوريدل نو کفار خوشحاله شول او سجده کې پريوتل، خو راجح دا دی چې مشرکينو کله د الله تعالى نعم باهره او قدرت کامله وليدل او واوريدل بغير د اختياره سجده کې پريوتل. باقي د غرانيق بې بنياده قصه د شان نبوت خلاف ده تقريبا ټول قابل اعتماد مفسرينو د دېته غير ثابت او غلط ويلي دي. (المرقات ۳/۱۰۹).

## د سورة انشقاق او سورة علق سجدې

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَجَدْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي: |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې مونږ سجده وکړه د رسول الله ﷺ سره په |
| ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ﴾ و ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾.[1] |
| ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ﴾ او ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ کې. |

**توضيح: في اذا السماء انشقت:** احاديثو کې مختلفې سجدې د سورتونو ثابت دي خو بيان کې يې تفاوت دی بعضې احاديثو کې تعين يو شان دی او بعضې رواياتو کې انداز بدل وي دې وجې نه د قرآن کريم په سجدو کې په تعداد او مقاماتو کې اختلاف دی.(المرقات ۳/۱۱۱).

**د فقهاو اختلاف:** د امام مالک رحمه الله په نزد په مفصلاتو يعنې سورة نجم او سورة انشقاق او سورة علق کې سجده نشته دی، لهذا د ده په نزد تعداد د سجدو يولس دی. د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې قرآن کريم کې ټولې څوارلس سجدې دي خو د سورة په تعين کې فرق دی هغه فرمايي سورة (ص) کې سجده نشته او سورة (حج) کې د يوې په ځاى باندې دوه سجدې دي ټولې څوارلس سجدې دي. د امام احمد بن حنبل په نزد باندې ټولې پنځلس سجدې دي سورة (حج) کې د شوافعو په شان دوه سجدې مني او سورة (ص) کې يې د احنافو په شان يوه سجده منلې، نو پنځلس سجدې شوې. د احنافو په نزد باندې

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۰۶ رقم الحديث:۱۰۷-۵۷۸،والترمذي ۲/۴۶۲ رقم الحديث : ۵۷۳ ، وابن ماجة ۱/۳۳۶، رقم الحديث: ۱۰۵۸.

قرآن کې ټولې څوارلس سجدې دي په سورة(حج) کې يوه سجده ده او په سورة(ص) کې هم يوه سجده ده دغه شان ټولې سجدې څوارلس شوې. (المرقات ۱۱۴-۳/۱۱۵).

**دلائل:** امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی مشکوة (ص. ۹۴) باندې فصل ثانی حدیث نمبر ۱۱ دی الفاظ يې دا دي: **ان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لم يسجد في شيء من المفصل منذ تحول الى المدينة (ابوداود)**

د سورة حجرات نه د قرآن کریم اخره پورې ټولو ورو سورتونو ته مفصلات ويلی شی لهذا دې سره د امام مالک درې سجدې کمې شوې يولس باقي پاتې شوې، امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ د زيد بن ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت نمبر ۴ نه هم استدلال کړی دی چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورة نجم سجده ونه کړه. (المرقات ۳/۱۱۵).

د امام شافعي په نزد باندې څوارلس سجدې دي، خو سورة(حج) کې دوه دي دې باندې هغوي د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث نه هم استدلال کړی دی مشکوة (ص ۹۳) باندې حدیث نمبر(۷) دی الفاظ يې دا دي: **(قلت يارسول الله فضلت سورت الحج بأن فيها سجدتين قال نعم)**

امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په سورة (ص) کې سجده نه مني دې باندې دليل د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث نمبر(۵) دی دې کې دا الفاظ دي: **(سجدة ص ليست من عزائم السجود)**.

امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ ټولې پنځلس سجدې مني ددې دليل فصل ثانی حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث دی دې کې ښکاره دا الفاظ دي: **(خمس عشرة سجدة في القرآن منها ثلاث في المفصل وفي سورت الحج سجدتين)** (ابوداود، ابن ماجه) (المرقات ۳/۱۱۵).

امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ د سورة (ص) سجده هم مني ټولې پنځلس سجدې شوې دې باندې د هغوي دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مجاهد والا روايت نمبر(۵) دی **(قال مجاهد قلت لابن عباس اسجدة في ص فقرا ... الخ)** يعني سورة (ص) کې سجده ده. (المرقات ۳/۱۱۵).

امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ د سورة (ص) د سجدې د ثبوت د پاره د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث نمبر(۵) د مجاهد والا روايت نه استدلال کړی دی نقلي دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت دی. دغه امام طحاوي رَحِمَهُ اللّٰهُ سند صحيح سره نقل کړی دی الفاظ يې دا دي: **(عن ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قال في سجود الحج الاول عزيمة والاخر تعليم) (طحاوي ج۱ ص ۲۴۹) (المرقات ۳/۱۱۳)**.

دغه شان ابو حمزه هم ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت نقل كړى دى. (**قال في الحج سجدة**) يعنې په سورة (حج) كې يوه سجده ده.
امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په موطا محمد كې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره كې دا سې روايت نقل كړى دى: (**كان ابن عباس لايرى في سورة الحج الاسجدة واحدة الاولى**) دغه شان د مجاهد اثر دى الفاظ يې دا دي: (**السجدة الاخرة فى الحج انما هي موعظة ليست بسجدة**)
احناف سورة (حج) كې د يوې سجدې په ثبوت باندې عقلي دليل دا سې پيش كوي هلته د دوو سجدو ذكر دى خو دې كې دويمه سجده صلوتيه ده تلاوتيه نه ده يعنې مونځ والا سجده ده دې باندې قرينه هم ده دې سره واركعوا لفظ موجود دى.
**جواب:** جمهور د امام مالک دليل نه جواب دا وركوي چې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت قابل استدلال نه دى، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او يحى بن معين او ابو حاتم رَحِمَهُ اللهُ دا لره ضعيف گرځولى دى، دې مقابله كې د ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت مضبوط دى دې كې د مفصلاتو د سجدو ذكر دى. ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللهُ د حضرت ابن عباس رضى الله عنه روايت ته منكر ويلي دي. يا دا جواب دى چې حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت د پاره ناسخ دى. امام مالک دويم دليل د حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى ددې جواب دا دى چې زر سجده نه كول د عدم سجدې دليل نه دى كيدى شي دغه وخت كې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عذر د وجې نه نه وي كړې او وروسته يې كړې وې. سجده تلاوت كې تاخير منع نه دى او نه مكروه دى. د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د دليل جواب دا دى چې په خپله د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت په آخر كې د مجاهد په حوالې سره سورة(ص) د سجدې ثبوت او وجوب مذكور دى د روايت شروع الفاظو مطلب دا دى (**ليس من عزائم السجود**) يعنې فرض نه ده، بلكې واجب ده يا سنت ده خو ثابت ده، دې نه د شوافعو استدلال صحيح نه دى په خپله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې باب فصل ثالث كې آخري حديث نمبر(۱۵) نه د سورة (ص) د سجدې ثبوت منقول دى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: (**سجدها داؤد توبة ونسجدها شكرا**) ددېنه پس ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **ليس من عزائم السجود** يو محتمل الفاظو سره يو ثابت شده سجدې نه انكار كول ډير لرې معلوميږي حالانكې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې سجدې اهتمام كولو. (المرقات ۳/۱۱۲)
**په كومو سورتونو كې سجدې دي**: قرآن كريم كې اوله سجده سورة اعراف كې ده دويمه سجده په سورة رعد ده كې دريمه سجده په سورة نحل كې ده څلورمه سجده په سورة بني اسرائيل كې ده پنځمه سجده په سورة مريم كې ده شپږمه سجده په سورة حج په دويمه ركوع كې ده اوومه سجده په سورة فرقان كې ده

ائمه سجده په سورة نمل کې ده نهمه سجده په سورة الم تنزيل السجده کې ده لسمه سجده په سورة ص کې ده يولسمه سجده په سورة حم السجدة کې ده دولسمه سجده په سورة نجم کې ده دیارلسمه سجده په سورة انشقاق کې ده څوارلسمه سجده په سورة علق کې آخري سجده ده.

**فائده مهمه لکل مهمه**: د فقه کتاب نور الايضاح کې يې ليکلي دي که څوک د قرآن کريم ټولو سجدو والا آيتونه په يوه ناسته کې قبلې ته مخامخ کيناستلو سره اولولي او هر آيت باندې سجده وکړي او خپل جائز حاجاتو د پاره دعا وکړي الله تعالى به يې دا حاجات پوره کړي دا خبره مجربه ده. فقهاو ليکلي دي چې تلاوت په وخت کې د سجدې آيت پرېښودل مکروه دي د مونځ په دوران کې د سجدې آيت راشي نو سجده کول په کار دي که سجدې باندې قرآت ختم شي او رکوع ته لاړ شي او رکوع کې د سجده تلاوت نيت هم وکړي نو اداء به شي يا رکوع کې نيت ونه کړي بلکې رکوع نه سجدې ته لاړ شي د سجدې په ضمن کې د تلاوت سجده هم اداء شوه. (نور الايضاح ١١٥).

## آيا سجده د تلاوت واجب ده او که سنت؟

| |
|---|
| ﴿٣﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ (السَّجْدَةَ) وَنَحْنُ عِنْدَهُ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به سجدې لوستلې مونږ د حضور صلى الله عليه وسلم سره نژدې وو |
| فَيَسْجُدُ وَ نَسْجُدُ مَعَهُ |
| کله چې حضور صلى الله عليه وسلم سجده کوله مونږ به هم د حضور صلى الله عليه وسلم سره سجده کوله او مونږ د خلکو |
| فَنَزْدَحِمُ حَتَّى مَا يَجِدُ أَحَدُنَا لِجَبْهَتِهِ مَوْضِعًا يَسْجُدُ عَلَيْهِ.[1] |
| دومره ګڼه وه چې د سجدې کولو د پاره ځای نه ملاويدو. |

**توضيح: ونسجد معه ولزحم**: يعني د ډيرو خلکو د وجې نه څمکه باندې سرکېښودلو ځای نه ملاويدو (نو مونږ به سجده نه پرېښودله بلکې د يو بل په ملا باندې سجدې کولې) دې روايت نه د سجدې تلاوت وجوب ثابتيږي په دې کې هم د فقهاو اختلاف دی چې آيا سجده د تلاوت واجب ده او که سنت. (المرقات ٣/١١١).

**د فقهاو اختلاف**: دائمو ثلاثو په نزد باندې سجده د تلاوت سنت ده صاحبين هم د جمهورو سره دي امام صاحب رحمه الله په نزد باندې سجده د تلاوت واجب على التراخى ده واجب على الفور نه ده.

**دلائل**: ائمه ثلاثو او صاحبينو دې ټولو رواياتو نه استدلال کړی دی دې نه معلومه شوه چې کله کله به

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٢/٥٥٧، رقم الحديث ١٠٧٦، ومسلم في الصحيح ١/٤٠٥ رقم الحديث ١٠٤-٥٧٥.

حضور ﷺ سجده د تلاوت اولوستله او سجده به یې ونه کړه سجده نه کول ددې دلیل دی چې دا واجب نه ده، زید بن ثابت روایت نمبر (۴) کې (فلم یسجد) الفاظ موجود دي، د جمهورو دویم دلیل د حضرت عمر رضي الله عنه اثر دی، ترمذی کې مذکور دی الفاظ یې داسې دي: (ان الله لم یکتب علینا السجود الا ان نشاء)

دې روایت نه صفا معلومیږي چې حضرت عمر رضي الله عنه سجده د تلاوت نه فرض ګڼلې او نه واجب. (المرقات ۳/۱۱۲).

د امام صاحب رحمه الله دلیل صحیح مسلم کې حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دی الفاظ یې دا دي:

**(اذا قرء ابن آدم السجدة اعتزل الشیطان یبکی یقول یا ویله امر ابن آدم بالسجود فسجد فله الجنة وامرت بالسجود فابیت فلی النار.) (مسلم)**

دې حدیث کې د سجدې د تلاوت د پاره امر لفظ راغلی دی یعنې ابن آدم ته د سجدې حکم الله تعالی ورکړو دا د وجوب دلیل دی دې روایت کې ترک د سجدې باندې یې د اور وعید اورولی دی دا د وجوب په ترک باندې کېږي. دا قول اګر چې د شیطان دی، لیکن حضور ﷺ چې کله نقل کړو دې باندې یې سکوت اوکړو، نو دا یو مرفوع حدیث شو دې نه احنافو استدلال وکړو امام صاحب رحمه الله دویم دلیل زیر بحث روایت دی دې کې دي چې د ډیر تنګوالي او د ګڼې د وجې نه صحابو به سجده د تلاوت کول ضروري ګڼله دا د وجوب دلیل دی.

**د امام صاحب دریم دلیل**: په قرآن کریم کې چې کوم د سجدو والا ایتونه دي دې کې د امر صیغه ده او سجدې نه کولو باندې سخت وعید ورکړی دی همدارنګه کفارو ته سجدې کولو نه انکار باندې مذمت بیان کړی دی یا د سجدې حکم هغه وخت وو کله چې د نبی توبه قبوله شوې وه یا د نوي نعمت د شکریه په وخت کې سجدې ذکر راغلی دی او دې خلکو ته د انبیاو د اتباع او نقش قدم باندې د چلیدو حکم کړی دی دا ټول داسې امور دي. دې سره سجده کول واجبیږي مونځ څومره اهم عبادت دی بیا په دې کې قیام او قرآت فرض دی دې دوران کې که د سجدې والا آیت راشي د شریعت حکم دی چې فرض موقوف کړه رومبی سجده وکړه. دا ددې ښکاره دلیل دی چې سجده د تلاوت واجب ده.

**جواب**: جمهور د زید بن ثابت رضي الله عنه د حدیث نه چې کوم استدلال کړی دی د هغې جواب دا دی چې د سورة نجم د سجدې په باره کې ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې حضور ﷺ او مسلمانانو او عامو انسانانو او جناتو ټولو سجده وکړه د زید بن ثابت رضي الله عنه د روایت مطلب به دا واخلو چې فوراً حضور ﷺ سجده نه وه کړې وروسته یې کړې وې. احناف هم د واجب علی الفور قائل نه دي بلکې د واجب علی التراخی قائل دي یا حضور ﷺ بیان جواز د پاره تاخیر کړی د عمر رضي الله عنه

اثر باره کې احناف فرمايي چې د مرفوع حديث په موجودګۍ کې د اثر څه ضرورت دی د اثر په تاويل او خصوصي احوالو کې څه نا څه وجه کيدی شي خو د مسلم په مرفوع حديث کې هيڅ وجه نه شي کيدی. (المرقات ۳/۱۱۲).

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ : قَرَأْتُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ (وَ النَّجْمِ) |
| دزيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د سورة نجم تلاوت وکړو |
| فَلَمْ يسجد فِيْهَا . (متفق عليه)(۱). |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجده د تلاوت ونه کړه. |
| ﴿٥﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : سَجْدَةُ (ص) لَيْسَ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دی هغوي وفرمايل چې سورة (ص) کې سجده نه ده (يعني تاکيدي سجده |
| وَ قَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يسجد فِيهَا . وَ فِي رِوَايَةٍ : |
| نه ده) او ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې سورة کې په سجده کولو باندې ليدلی دی، يو روايت کې دي چې |
| قَالَ مُجَاهِدٌ : قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ : أَأَسْجُدُ فِيْ (ص) |
| مجاهد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو آيا زه سورة (ص) کې سجده وکړم حضرت |
| فَقَرَأَ : ﴿ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَ سُلَيْمَانَ ﴾ حَتّٰى أَتَى ﴿ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ ﴾ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د آيت ﴿ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسليمَان ﴾ نه تر ﴿ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ ﴾ پورې ولوستلو او |
| فَقَالَ: نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِمَّنْ أُمِرَ أَن يَقْتَدِيَ بهم. (رَوَاهُ البُخَارِيّ)(۲). |
| وې فرمايل ستاسو پيغمبر هم د هغه خلکو نه دی چې هغوي ته د رومبو پيغمبرانو د اتباع حکم وو. |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۵۵٤،رقم الحديث ۱۰۷۲، ومسلم في الصحيح ۱/٤۰٦ رقم الحديث ۱۰٦ ،۵۷۷، وأبو داود ۲/۱۲۱ رقم الحديث ۱٤۰٤.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۵۵۲،رقم الحديث ۱۰٦۹

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## په قرآن کریم کې د پنځلسو سجدو ثبوت

﴿٦﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَ عَشْرَةَ سَجْدَةً فِي الْقُرْآنِ

عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د قرآن کریم پنځلس سجدې لوستلې دي

مِنْهَا ثَلَاثٌ فِي الْمُفَصَّلِ وَ فِي سُورَةِ الْحَجِّ سَجْدَتَيْنِ.[1]

دې کې درې سجدې په مفصل کې دي او دوه سجدې په سورة حج کې دي.

**توضیح**: دا روایت د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل دی هغه د پنځلسو سجدو قائل وو احناف د یو څو روایاتو او اثر د وجې نه سورة حج کې د یوې سجدې قائل دي که دې کې دوه سجدو باندې عمل وشي اختلاف به ختم شي او څه بنه به وشي. په (فتح الملهم) کې علامه شبیر احمد عثماني میلان هم دې طرف ته دی د سورة حج دویمه سجده د حدیث نه ثابته ده. راقم الحروف وايي چې زه به ان شاء الله دې نه پس دې حدیث باندې عمل کوم او د سورة حج دواړو سجدو باندې به عمل کوم د مشکوة په بعضې نسخو کې د قراءة په ځای **أَقْرَأَنِي** دی یعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ته دلوستلو حکم راکړو یا دا مطلب دی چې **اقرأني** د اعلمني په معنی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ته پنځلس سجدې وښودې دا مطلب ډېر واضح دی (المرقات ۳/۱۱۴).

## د سورة حج فضیلت

﴿۷﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فُضِّلَتْ سُورَةُ الْحَجِّ

عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو یا رسول الله! دا فضیلت

بِأَنَّ فِيهَا سَجْدَتَيْنِ؟ قَالَ: نَعَمْ وَ مَنْ لَمْ يَسْجُدْهُمَا

حاصل دې سورة حج ته چې دوه سجدې په کې دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې کوم کس دواړه سجدې نه کوي

فَلَا يَقْرَأْهُمَا".[2] وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ. وَ فِي

نو د دواړو سجدو آیاتونه دې نه لولي. او امام ترمذی وايي د دې حدیث اسناد مضبوط نه دي، او په

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۰/۲ رقم الحديث ۱۴۰۱، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۳۳۵/۱ رقم الحديث ۱۰۵۷

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۰/۲ رقم الحديث ۱۴۰۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۴۷۰/۲، رقم الحديث ۵۷۸

الْمَصَابِيحِ: «فَلَا يَقْرَأُهَا» كَمَا فِي شرح السنة.

مصابيح كې د فلايقراهما په ځاى فلايقراها ذكر دى.

﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ فِيْ صَلَاةِ الظُّهْرِ ثُمَّ قَامَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي يو ورځ حضور صلى الله عليه وسلم د ماسپخين مونځ كې سجده وكړه بيا اودريدو

فَرَكَعَ فَرَأَوْا أَنَّهُ قَرَأَ تَنْزِيلَ السَّجْدَةَ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

بيا يې ركوع وكړه د خلكو دا ګومان وو چې حضور صلى الله عليه وسلم سورة الم تنزيل السجدة ولوستله.

**توضيح: فركع:** يعني حضور صلى الله عليه وسلم سجده تلاوت وكړه چې واپس شو نو فورًا يې ركوع وكړه د سورة باقي حصه يې ونه لوستله. دا صورت هم جائز دى دا صورت ډير افضل دى چې د سورة باقي حصه ولولې كيدى شي حضور صلى الله عليه وسلم بيان جواز د پاره داسې كړي وي همدارنګه دا صورت اولى او افضل وو چې حضور صلى الله عليه وسلم سجدې ته لاړو ورنه كه د قرآت حكم كيدو باندې سجده تلاوت آيت ولوستلى شي او ركوع ته نيغ لاړ شي يا ركوع نه سجدې ته لاړ شي سجده د تلاوت اداء شوه خو مستقل سجدې ته تلل افضل دي حضور صلى الله عليه وسلم افضل باندې عمل كړى دى، نن سبا د حرمينو شريفينو ائمه هم داسې كوي. (المرقات ۱۱۶-۳/۱۱۷).

## سجده د تلاوت په قاري او سامع دواړو باندې ده

﴿۹﴾ وَعنهُ: أَنه كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ فَإِذَا مَرَّ بِالسَّجْدَةِ

ابن عمر رضي الله عنه وايي حضور صلى الله عليه وسلم زمونږ مخكې قرآن لوستلو او چې د سجدې آيت ته به ورسيدو

كَبَّرَ وَسَجَدَ وَسَجَدْنَا مَعَهُ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2].

تكبير به يې وويلو او سجده به يې وكړه او مونږ به هم د حضور صلى الله عليه وسلم سره سجده وكړه.

**توضيح: كبر:** دې نه معلومه شوه چې د سجدې تلاوت وخت كې الله اكبر ويل كافي دى لاس اوچتول او تحريمه كولو ضرورت نشته، د احنافو مسلك دا دى. البته شوافع حضرات لاس اوچتولو او تحريمه كولو نه پس الله اكبر ويل او سجدې ته د تلو قائل دي د حضرت عائشې رضي الله عنها يو روايت نه معلوميږي چې سجدې د تلاوت د پاره اودريدل او الله اكبر ويل مستحب او افضل دي دې نه دا هم

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۵۰۷/۱ رقم الحديث ۸۰۷

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۵/۲ رقم الحديث ۱۴۱۳

معلومه شوه چې لوستونکي او اوریدونکي دواړو باندې سجده د تلاوت واجبیږي که اوریدونکی د اوریدو اراده وکړي یا ونه کړي د احنافو دا رائی ده. (المرقات ۱۱۷-۱۱۸/۳).

## د سجدې د تلاوت اهمیت

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَامَ الْفَتْحِ سَجْدَةً فَسَجَدَ

ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فتحې مکې په کال د سجدې آیت ولوسته نو سجده وکړه

النَّاسُ كُلُّهُمْ مِنْهُمُ الرَّاكِبُ وَ السَّاجِدُ عَلَى الْأَرْضِ

ټولو خلکو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د سجدې کولو کې بعضې په سورلو باندې وو او بعضې په ځمکه

حَتَّى إِنَّ الرَّاكِبَ لَيَسْجُدُ عَلَى يَدِهٖ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

باندې وو سورلو والا په خپل لاس باندې سجده کوله.

## مفصلاتو کې د سجدې نه کولو مطلب

﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسْجُدْ فِي شَيْءٍ

د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجده نه وه کړې په هیڅ یو سورت کې

مِنَ الْمُفَصَّلِ مُنْذُ تَحَوَّلَ إِلَى الْمَدِينَةِ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2].

په مفصلو سورتونو کې د کوم وخت نه چې مدینې منورې ته تشریف راوړې ؤ.

**توضیح**: دې روایت نه دا معلومیږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مفصلاتو کې سجده د تلاوت نه ده کړې اوس ددې حدیث د ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث نمبر(۲) سره ښکاره تعارض دی هغې کې دي چې مفصلاتو کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجده کړې ده او دلته دا دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجده نه ده کړې دې تعارض ختمولو د پاره یو طریقه دا وه چې یو حدیث ته به ترجیح ورکړې، لهذا جمهور د ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت راجح ګرځولی، ځکه چې ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سنه۷ هـ کې اسلام راوړی دده قول او فعل متاخر دی د سابقه حکم د پاره ناسخ ګرځي. (المرقات ۱۱۹/۳).

دویمه طریقه دا ده چې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت د قوت او صحت په اعتبار سره اعلی او اولی دی لهذا راجح دی دریمه طریقه دا ده چې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه د اثبات اشاره وځي او

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۵/۲ رقم الحديث ۱۴۱۱

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۱/۲ رقم الحديث ۱۴۰۳

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نه د نفي اشاره وځي او په وخت د تعارض کې اثبات په نفي باندې مقدم وي، ځکه چې اثبات کې علم ډير وي. (المرقات ۳/۱۱۹).

## په سجده تلاوت کې دننه دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې د قرآن کريم په سجدو کې دا تسبيح لوستل: |
| «سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ)[1] |
| زما مخ هغه ذات ته سجده وکړه چا چې دا پيدا کړي او خپل قوت او قدرت سره يې سترګې او غوږونه جوړ کړي |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. |
| او امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: چې دا حديث حسن او صحيح دی. |

**نوټ:** څوک چې دا دعاء لوستلی شي نو صحيح ده ورنه د احنافو په نزد باندې سجده د تلاوت کې سبحان ربي الاعلى لوستل کافي دي.(المرقات ۳/۱۲۰).

## عجيبه خوب او عجيبه دعاء

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وايي چې يوه ورځ يو کس د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ رَأَيْتُنِي اللَّيْلَةَ وَ أَنَا نَائِمٌ كَأَنِّي أُصَلِّي خَلْفَ شَجَرَةٍ |
| چې يارسول الله مانن شپه خوب کې خپل ځان ليدلی چې زه ديوې ونې لاندې مونځ کوم او دامې هم وليدل |
| فَسَجَدْتُ ، فَسَجَدَتِ الشَّجَرَةُ لِسُجُودِي فَسَمِعْتُهَا تَقُولُ : |
| چې سجده د تلاوت مې وکړه نو دغې ونې هم ما سره سجده وکړه ما دا او ريدل چې دغې ونې دا دعا ويله |
| اللّٰهُمَّ اكْتُبْ لِيْ بِهَا عِنْدَكَ أَجْرًا وَضَعْ عَنِّي بِهَا وِزْرًا وَاجْعَلْهَا لِي عِنْدَكَ |
| اې الله! زما دپاره د دې سجدې ثواب ځان سره کيږده او د دې وجې نه زما ګناه معاف کړه دا سجده زما دپاره |
| ذُخْرًا وَ تَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ عَبْدِكَ دَاوُدَ . |
| ذخيره جوړه کړه او ځان سره يې کيږده زما سجده داسې قبوله کړه لکه څنګه چې دې د خپل بنده داؤد عَلَيْهِ السَّلَام |

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۲۶ رقم الحديث . ۱۴۱۴ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۴۷۴، رقم الحديث : ۵۸۰.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : فَقَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَجْدَةً ثُمَّ سَجَدَ
نه قبوله کړې وه ابن عباس رضي الله عنه وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم د سجدې آيت ولوستلو او سجده يې وکړه
فَسَمِعْتُهُ وَهُوَ يَقُولُ مِثْلَ مَا أَخْبَرَهُ الرَّجُلُ عَنْ قَوْلِ الشَّجَرَةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ ابْنُ مَاجَةَ
او حضور صلى الله عليه وسلم هغه کلمات وويل کوم چې دغه کس دونې نه نقل کړي وو ( يعني نبي عليه السلام دغه
إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ وَ تَقَبَّلْهَا مِنِّي كَمَا تَقَبَّلْتَهَا مِنْ
دعا ولوستله دا روايت ابن ماجه هم نقل کړی خو هغه روايت کې نشته دا **وتقبلها مني كما تقبلتها من**
عَبْدِكَ دَاوُدَ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ .[1]
**عبدک داوٗد** الفاظ ، امام ترمذی رحمه الله فرمايي : دا حديث غريب دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿١٤﴾ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ ( وَالنَّجْمِ ) فَسَجَدَ فِيهَا
ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم يو ورځ د سورة نجم تلاوت وکړو او دې کې يې سجده
وَ سَجَدَ مَنْ كَانَ مَعَهُ غَيْرَ أَنَّ شَيْخًا مِنْ قُرَيْشٍ أَخَذَ كَفًّا
او سجده يې وکړه هغه چا چې څوک ددوي سره وو په غير د قريشو د هغه بوډا نه چې را واخيستو يو موټې
مِنْ حَصًى أَوْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ إِلَى جَبْهَتِهِ وَ قَالَ : يَكْفِينِي هٰذَا . قَالَ
د کانړو يا د خاورې يو موټی او خپل تندي پورې يې راخکو او وې ويل : زما د پاره دا کافي ده ، وايي
عَبْدُ اللهِ : فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا .
عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه : ما ددې واقعې نه پس وليدو چې هغه کس د کفر په حالت کې مړ شو.
وَ زَادَ الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ : وَ هُوَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ .[2]
بخاري يو روايت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې هغه بوډا اميه بن خلف دی.

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٤٥٥/٥ رقم الحديث ٣٤٢٤.

(٢) أخرجه البخاري في الصحيح ٦٤٣/٢،رقم الحديث ١٠٧٠، ومسلم في الصحيح ٤٠٥/١ رقم الحديث.١٠٥-٥٧٦، وأبو داود ١٢٢/٢ رقم الحديث :١٤٠٦.

## د سورة (ص) سجده ثابت ده:

﴿۱۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَجَدَ فِيْ (ص) وَ قَالَ:

ابن عباس رضي الله عنه وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم سورة ص کې سجده وکړه او وې فرمايل چې کړې وه دا

سَجَدَهَا دَاوُدُ تَوْبَةً وَ نَسْجُدُهَا شُكْرًا. (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1].

سجده داؤد عليه السلام د توبې قبلولو د پاره او مونږ دا سجده د شکر په طور باندې کوو.



[1] أخرجه النسائي في السنن ۲/۱۵۹، رقم الحديث : ۹۵۷.

# بَاب أَوْقَات النَّهْيِ اى الاوقات التي كره فيها الصلوة:

## د ممنوع وختونو بيان

آحاديث مقدسو کې چې کومو وختونو کې مونځ کولو نه منع راغلې ده هغه پنځه وختونه دي خو د دوو حيثيت جدا دی او د دريو حيثيت جدا نوعيت لري خو آسانتيا د پاره اول الذکر دوه وختونه د قسم اول نوم سره او ثاني الذکر دري وختونه قسم ثانی نوم سره يادوم. د قسم اول دوه وختونه دا دي: ۱- د مازيگر مونځ کولو نه د لمر پريوتلو پورې ۲- د سحر د مونځ کولو نه پس د لمر راختلو پورې.

د قسم ثانی درې وختونه دا دي: ۱- د لمر راختو نه واخله تر د لمر زيړيدو پورې مکروه وخت دی کله چې زيړ والی ختم شي او لمر کې تيزي راشي بيا مکروه وخت نه دی. ۲- نصف النهار وخت مکروه دی ۳- د مازيگر وخت د لمر زيړيدو نه تر پريوتلو پورې وخت مکروه دی. مختصر انداز سره دې ته لمر راختل، لمر پريوتل، استواء الشمس په نومونو سره ياديږي.

د قسم اول په دوو وختونو کې د مونځ کولو ممانعت والا آحاديث متواتر دي د جرح او تعديل علماو او محدثينو ددې متواتر کيدو تصريح کړې ده (معارف السنن)

او د قسم ثاني وختونو کې د نهي آحاديث صحيح دي خو متواتر نه دي.

**په ممنوعه وختونو کې د مونځ کولو حکم**: د شوافعو او حنابلو په نزد د قسم اول او قسم ثاني وختونو حکم يو شان دی څه فرق نشته هغه حکم دا دی: دې وختونو کې فرائض مطلقا جائز دي او نوافل ذوات السبب هم جائز دي البته نوافلو کې غير ذوات السبب جائز نه دي نوافل ذوات السبب هغه دي چې دې د پاره سبب جديد پيدا شوی وي مثلاً تحية المسجد، تحية الوضوء، صلوة الکسوف او صلوة استسقاء دا ټول نوافل د جديد سبب د وجې نه کولی شي. کومو نوافلو د پاره چې جديد سبب يا څه علت وجه نه وي هغې ته غير ذوات السبب وايي ددې کول منع وختونو کې جائز نه دي، د مالکيو حضراتو په نزد باندې دغه ممنوعه وختونو کې فرائض کول جائز دي خو نوافل جائز نه دي، ائمه احنافو دغه دواړه قسمونو کې فرق کړی دی د دوي په نزد قسم اول کې فرائض جائز دي او نوافل جائز نه دي او قسم ثاني کې دې وختونو کې نه نوافل جائز دي او نه فرائض جائز دي، که څوک دغه وخت کې نفل کوي کراهت تحريمي سره اداکيږي، بلکې نفل شروع کولو نه پس بنه دا ده چې مات دې کړي او دويم وخت کې دې قضاء وکړي که دې وخت کې څوک فرض يا واجب کوي هغه به باطل شي، څو څيزونه ددې نه مستثنی دي. ۱- د لمر پريوتو وخت کې وختي مازيگر مونځ صحيح دی. ۲- دغه وخت کې جنازه کول صحيح ده چې راشي. ۳- که دې وختونو کې سجده د تلاوت لازم شي اداء کولی يې شي.

**وجه فرق**: حنفيه اول قسم او قسم ثاني کې فرق کوي قسم ثاني کې دريو وختونو کې د مونځ کولو نه د نهي علت دغه وختونو کې نقص او حامي وجود دی دا وختونه ناقص دي ددې په ذات کې حامی ده دې کې هر

قسم مونځ جائز نه دی خو دقسم اول دوو ختونو کې ذاتي نقص او حامي نشته، بلکې خارجي وجې نه دې کې ممانعت راغلی، وجه يې داده دا دواړه وختونه افضل دي شريعت دغه فرائضو دپاره خاص کړي دي چې دواړه وختونه مشغول بحق الفرض پاتې شي او د نوافلو په کې دخل نه وي، ځکه نوافل جائز نه دي.

## الْفَصْلُ الأَوَّلُ:

﴿۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَتَحَرَّى أَحَدُكُمْ فَيُصَلِّيَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي تاسې د مونځونو قصد مه کوئ

عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَلَا عِنْدَ غُرُوبِهَا». وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ: «إِذَا

د لمر راختو او پريوتو په وخت کې او د يو روايت الفاظ دا دي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي کله چې د

طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَبْرُزَ. وَإِذَا غَابَ حَاجِبُ الشَّمْسِ

لمر غاړه راښکاره شي مونځ پرېږدئ تر دې چې لمر ښه راښکاره شي، همدارنګې کله د لمر غاړه پريوځي

فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَغِيبَ وَلَا تَحَيَّنُوا بِصَلَاتِكُمْ

مطلقا کوم مونځ چې وي فرض وي يا نفل پرېږدئ تر دې چې لمر پوره ډوب شي، او د مونځ اراده مه کوئ

طُلُوعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوبَهَا فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ (متفق عليه)[1]

د لمر راختو او پريوتو په وخت کې ځکه چې لمر د شيطان د دواړو ښکرونو په مېنځ کې راخيژي.

**توضيح: ولا تحينوا:** تحين د حين نه دی وخت مقرر کولو په معنی دی د قصد په معنی سره هم راځي او د دې لفظ معنی انتظار هم دی دې ټولې معناګانې دلته صحيح دي. (المرقات ۳/۱۲۴).

**قرني الشيطان:** د دې جملې دوه مفهومه دي اول مفهوم دا دی چې د شيطان عبادت په مخامخ څوک نه کوي او نه شيطان د خپل ځان معبود کول غواړي نو لمر راختو او پريوتو او استواء الشمس په وخت کې د لمر عبادت کونکي عبادت کوي، نو شيطان لمر ته شاه کړي او مخامخ ودرېږي او د سپوږمۍ عبادت کوي، نو لمر د شيطان په دواړو ولو او څټ باندې راخيژي چې لمر والا عبادت کوي، نو شيطان خوشحاله کېږي چې زما عبادت کېږي، ځکه شريعت دې وختونو کې سجده کولو نه منع فرمايلې ده چې د عُبّاد شيطان سره مشابهت را نه شي. د دې دويم مطلب دا دی چې لمر پرستو مشرکانو ته شيطان وايي.

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ٦/٣٣٥،رقم الحديث : ٣٢٧٢، ومسلم في الصحيح ١/٥٦٧ رقم الحديث:٢٨٩-٨٢٨، والنسائي ١/٢٧٨، رقم الحديث: ٥٧٠.

شوي دي دا شیطانان خلک دې درې وختونو کې د لمر عبادت کوي، ځکه چې دې دریو وختونو کې عبادت کول د مشرکانو سره مشابهت راځي، ځکه منع راغلې ده. (المرقات ۳/۱۲۵).

د افسوس مقام دی چې نن سبا بعضې عرب شیوخ او ځان ته سلفي ویونکي مستعرب او متعرب بالکل په دې وختونو کې پاڅي او دوه رکعته نفل کوي او د بخاري او د مسلم د صحیح حدیثو مخالفت کوي انصاف خو دادی چې نبي کریم ﷺ د ممنوعه وختونو اعلان چې د کومو خلکو د پاره کړې وو هغه صرف د عجمو د پاره نه دي بلکې نبي کریم ﷺ چیرته چې وو د هغه ځای د خلکو د پاره براه راست اعلان وو او د نورو خلکو د پاره بالواسطه وو، اوس عرب وایي چې دا حکم زمونږ د پاره نه دی د نورو خلکو د پاره دی دا عجیبه خبره ده.

## په مکروه او ممنوعه وختونو کې د جنازې مونځ نه کول

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ ثَلَاثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِنَّ أَوْ |
| عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ منع کړې ده د مونځ کولو نه په دریو وختونو کې او |
| نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا: حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتَّى تَرْتَفِعَ وَحِينَ يَقُومُ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ حَتَّى |
| د خپل مړي دفن کولو نه: اول د لمر راختو وخت کې تردې چې اوچت شي دویم د زوال په وخت کې تردې |
| تَمِيلَ الشَّمْسُ وَحِينَ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]. |
| چې لمر نرم شي. او دریم هغه وخت کې چې کله لمر پریوځي تردې چې ډوب شي. |

**توضیح: نقبر فیهن:** یعنې درې داسې مکروه او ممنوعه وختونه دي چې حضور ﷺ په دې کې مونځ کولو نه منع فرمایلې ده، بلکې د جنازې کولو نه یې هم منع فرمایلې ده یو د لمر د راختو وخت دویم د زوال وخت دریم د لمر پریوتو وخت. (المرقات ۳/۱۲۵).

**نقبر:** د دفن کولو په معنی ده خو دلته **نقبر** د **نصلی** په معنی سره دی د دې نه مراد د جنازې مونځ دی په مکروه وخت کې مه کوئ افضل او اولی دا ده چې مکروه وختونو کې جنازه نه وي که دې مکروه وختونو کې جنازه راوړلی شي نو جنازه کولی شي. (المرقات ۳/۱۲۵).

**تضیف:** ضیف د اضافت نه دی د مائل کیدو په معنی کې ده سپوږمۍ مراوې کیدل مراد دي. (المرقات ۳/۱۲۷).

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵٦۹ رقم الحديث: ۲۹۳-۸۳۱، ۲، والنسائي ۱/۲۷۷، رقم الحديث. ۵٦۵

## د سحر او ماز يگر نه پس مونځ صحيح نه دی

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «لَا صَلَاةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى

ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل يو مونځ نه كيږي پس د سهر نه هغه وخت

تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ وَلَا صَلَاةَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغِيبَ الشَّمْسُ (متفق عليه) (بخاري ،مسلم)[1].

پورې چې لمر اوچت نه شي او نه كيږي يو مونځ پس د ماز يگر مونځ نه هغه وخت پورې چې لمر پټ نه شي.

## په مكروه وختونو كې هيڅكله مونځ مه كوئ

﴿٤﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ

عمرو بن عبسه وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدينې ته تشريف راوړو زه هم مدينې ته راغلم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام

فَقَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي عَنِ الصَّلَاةِ فَقَالَ:

خدمت كې حاضر شوم عرض مې وكړو يا رسول الله ما ته د مونځ وختونه وښايه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

«صَلِّ صَلَاةَ الصُّبْحِ ثُمَّ أقصر عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَتَّى تَرْتَفِعَ فَإِنَّهَا تَطْلُعُ حِينَ تَطْلُعُ

د سحر مونځ وكړه بيا د مونځ نه منع شه تر څو چې لمر اوچت شوی نه وي ځكه چې لمر راخيژي نو راخيژي د

بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَحِينَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ ثُمَّ صَلِّ فَإِنَّ

شيطان دواړو ښكرونو په مينځ كې د غه وخت كافر هغه ته سجده كوي. بيا (اشراق) مونځ وكړه ځكه چې

الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَحْضُورَةٌ حَتَّى يَسْتَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمْحِ

دغه وخت كې مونځ مشهوده دی كې فرښتې حاضريږي تر دې چې كله سوری په نيزه باندې وخيژي

ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهُ حِينَئِذٍ تُسْجَرُ جَهَنَّمُ فَإِذَا أَقْبَلَ الْفَيْءُ فَصَلِّ

او ځمكې ته نه راپريوځي مونځ نه منع شه دغه وخت دوزخ گرمولی شي بيا چې سوری خورشي مونځ وكړه

فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَحْضُورَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ الْعَصْرَ ثُمَّ أَقْصِرْ عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى

دا وخت د فرښتو د حاضريدو دی تر دې چې تاسو د ماز يگر مونځ وكړئ بيا مونځ نه منع شئ تر دې چې

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ٦٩/٢،رقم الحديث .٥٨١، ومسلم في الصحيح ٥٦٦/١ رقم الحديث:٢٨٦-٨٢٦، وأبو داود ٥٦/٢، رقم الحديث ١٢٧٦، والترمذي ٣٤٣/١ رقم الحديث ١٨٣ ، وابن ماجة ٣٩٦/١، رقم الحديث:١٢٥٠

تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَإِنَّهَا تَغْرُبُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَ حِينَئِذٍ يَسْجُدُ لَهَا الْكُفَّارُ»

لمر پریوځي دا د شیطان د دواړو ښکرونو په مینځ کې ډوبیږي دغه وخت کفار دې طرف ته سجده کوي.

قَالَ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ فَالْوُضُوءُ حَدِّثْنِي عَنْهُ قَالَ :

عمرو بن عبسه وایي چې ما عرض وکړو یا رسول الله دا او دس متعلق ما ته ښود نه وکړه! نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل

«مَا مِنْكُمْ رَجُلٌ يُقَرِّبُ وَضُوءَهُ

تاسو کې چې څوک دا ودس اوبه راواخلي (د نیت کولو، بسم الله لوستلو او دواړه لاسونه مړوندونو پورې

فَيُمَضْمِضُ وَ يَسْتَنْشِقُ فَيَسْتَنْثِرُ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا

د وینځلو نه پس) خولې ته اوبه واچوئ او پوزه کې اوبه اچولو نه پس تو ک کړئ نو معاف کیږي صغیره ګناهونه

وَجْهِهِ وَفِيهِ وَخَيَاشِيمِهِ ثُمَّ إِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ كَمَا أَمَرَهُ اللهُ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا وَجْهِهِ مِنْ أَطْرَافِ لِحْيَتِهِ

د مخ او خولې او پوزې بیا چې خپل مخ د الله تعالی د حکم مطابق وینځئ نو پریوځي ګناه د مخ د ګیرې د غاړو

مَعَ الْمَاءِ ثُمَّ يَغْسِلُ يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا يَدَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ

نه د اوبو سره چې کله خپل دواړه لاسونه د څنګلو سره وینځئ نو غورځیږي د لاسونو ګناهونه د لاس د ګوتو نه

مَعَ الْمَاءِ ثُمَّ يَمْسَحُ رَأْسَهُ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا رَأْسِهِ مِنْ أَطْرَافِ شَعْرِهِ مَعَ الْمَاءِ ثُمَّ يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ

د اوبو سره، چې کله مسح کوئ نو د سر ګناهونه د ویښتو سرونو نه اوبو سره غورځیږي خپل دواړه خپې د

إِلَى الْكَعْبَيْنِ إِلَّا خَرَّتْ خَطَايَا رِجْلَيْهِ مِنْ أَنَامِلِهِ مَعَ الْمَاءِ فَإِنْ هُوَ

ګیټو پورې وینځئ، نو د دواړو خپو ګناهونه د خپو د ګوتو د سرونو نه د اوبو په ذریعې سره پریوزي چې

قَامَ فَصَلَّى فَحَمِدَ اللهَ وَ أَثْنَى عَلَيْهِ وَ مَجَّدَهُ بِالَّذِي

کله او دریږئ او مونځ کوئ همد ارنګې د الله تعالی تعریف کوئ او ثناء یې بیانوئ او د الله تعالی د بزرګۍ.

هُوَ لَهُ أَهْلٌ وَ فَرَّغَ قَلْبَهُ لِلّٰهِ إِلَّا انْصَرَفَ مِنْ خَطِيئَتِهِ

سره چې لائق دی یادوئ چې او خپل زړه الله تعالی ته متوجه کوئ نو د ګناهونو نه د!سې پاک وي ګویا

كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ» (رَوَاهُ مُسلم)[1].

چې نن د مور نه پیدا شوی یاست.

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مازیګر د مونځ نه پس دوه رکعته ولې کول

﴿۵﴾ وَ عَنْ كُرَيْبٍ : أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ

کریب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خادم دی) راوي دی وايي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. مسور ابن مخرمه او

عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْأَزْهَرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَرْسَلُوْهُ إِلَى عَائِشَةَ فَقَالُوْا

عبد الرحمن ابن ازهر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا کریب د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې ولیږلو او ورېو واړو ورته ووېل

اقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ وَ سَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ

چې د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې سلام پیش کړه د مازیګر نه پس دوه رکعتو په باره کې ترې تپوس وکړه

قَالَ : فَدَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَبَلَّغْتُهَا مَا

کریب وايي چې زه د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شوم زه چې دوي د کوم کار د پاره ورلیږلی وم

أَرْسَلُوْنِي فَقَالَتْ سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ فَخَرَجْتُ إِلَيْهِمْ

هغه مې دوي ته راورسولو عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وکړه زه بيا د دړو واړو صحابو

فَرَدُّوْنِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

خواته راغلم چې زه خو هغې د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خواته ولیږلم ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَنْهٰى عَنْهُمَا ثُمَّ رَأَيْتُهُ يُصَلِّيهِمَا

نه اوریدلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به دوه رکعتونه منع فرمایله بیا ما ولیدو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دوه رکعته کول

ثُمَّ دَخَلَ فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ الْجَارِيَةَ

په کور کې یا مسجد کې یا بهر صحن کې د کور په دننه حصه کې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې خادمه ولیږله

فَقُلْتُ : قُوْلِي لَهُ تَقُوْلُ أُمُّ سَلَمَةَ يَا رَسُوْلَ اللهِ سَمِعْتُكَ

او هغې ورته ووېل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړه شه او ورته ووايه ام سلمه وايي یارسول الله! ما تاسو نه اوریدلي

---

[1] أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۶۹ رقم الحديث ۲۹۴-۸۳۲

تَنْهَى عَنْ هَاتَيْنِ وَ أُرَاكَ تُصَلِّيهِمَا ؟

دي تاسو خو ددې دوو رکعتونو نه منع فرمايله او ما په دغه دوو رکعتونو کولو باندې تاسو وليدئ نبي

قَالَ : « يَا ابْنَةَ أَبِي أُمَيَّةَ سَأَلْتِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَ إِنَّهُ

عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل دابو اميه لور! تا د مازيګر نه پس د دوو رکعتو په باره کې تپوس وکړو صورت حال دا دی

أَتَانِي نَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ فَشَغَلُونِي عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ

چې د عبدالقيس قبيلې نه څه خلک زما خوا ته راغلي وو د ماسپخين نه پس دوه رکعته پاتې شوي وو

فهما هَاتَانِ». (متفق عليه)[1].

هغه مې د مازيګر نه پس وکړل.

**توضيح**: سل ام سلمة: دا واقعه ام سلمه سره پيش راغلې وه ام سلمه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بطور اشکال تپوس کړی دی يارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاسو د مازيګر نه پس مونځ کولو نه منع فرمايلې او تاسو دوه رکعته کولو باندې ما اوليدئ دا ولې دې وجې نه عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قاصد ام سلمه طرف ته اوليږلو چې حقيقت معلوم شي.

**فخرجت اليهم**: کريب صحابه کرامو د مسئلې د معلومولو د پاره د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په خدمت کې وليږلو، چونکه دده تلل ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا طرف ته شو، ځکه صحابه کرامو ته د تپوس کولو د پاره واپس راغی بيا ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا خوا ته لاړ دا د ژوند يو ادب دی چې خپل طرف نه اقدام نه دی په کار اګر چې دلته مقصود د حصول د پاره بيا د نوی اجازت ضرورت نه وو. کريب د صحابه کرامو نه بيا تپوس وکړو او ام سلمه خواته لاړو او هغې د مسئلې نه په صحيح طريقې سره خبر کړو (المرقات ۴/۱۳۲) دې حديث نه دا خبره معلومه شوه چې د سنت مؤکده قضاء شته، ځکه چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسپخين دوه رکعاته سنت د مازيګر نه پس اوکړل فقهاو کې د امام شافعي دا مسلک دی چې د سنتو قضاء شته او احناف فرمايي چې د سنتو قضاء نشته دلته د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معامله نوره وه هغه دا چې کله حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو عمل يو ځلې کوي، نو بيا دغه عمل دائمي طور باندې جاري ساتي چې دې کې دوام او استمرار قائم وي دې قاعدې د لاندې کله چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د ماسپخين دوه رکعاته سنت د مشغولتيا د وجې نه پاتې شو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مازيګر نه پس يو ځلې وکړه بيا

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۰۵/۳، رقم الحديث ۱۲۳۳، ومسلم في الصحيح ۵۷۱/۱ رقم الحديث ۲۹۷-۸۳۴، وأبو داود ۲/ ۵۱ رقم الحديث: ۱۲۷۳.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کله نه دي پريښودي، لهذا دا د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذات سره متعلق خاص عمل دی د امت افراد دي په دې کې نه پريوځي. امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا يو حديث مخې ته راوړو هغه وايي: (**ماكان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يأتيني يوما بعد العصر الا صلى ركعتين**) (**بخاری و مسلم**) دې روايت د وجې نه دې مسئله کې اختلاف د فقهاو دی.

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي بعدالعصر دوه رکعته کول د امت د پاره جائز دي جمهور وايي چې د امت افرادو د پاره جائز نه دي چې د مازيګر نه پس دوه رکعته نفل وکړي (المرقات ۳/۱۳۳)

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د روايت نه استدلال کړی دی چې دې کې دوام سره د دوو رکعتو ذکر دی جمهورو د دې متواترو احاديثو نه استدلال کړی دی دې کې د مازيګر او سحر فرائضو نه بعد مونځ کولو ممانعت راغلی دی د جمهورو دويم دليل د امام دارمي هغه فيصله ده دارمي کې مذکور دي چې چا د امام دارمي نه د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د حديث باره کې تپوس وکړو جواب کې يې وفرمايل: (**اما انا فاقول بحديث عمر عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا صلوة بعد العصر حتى تغرب الشمس و عن الصلوة بعد الفجر حتى تطلع الشمس**).

د جمهورو دريم دليل راتلونکی حديث نمبر (۱۲) دی امام بخاری رَحِمَهُ اللّٰهُ هم نقل کړی دی حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي (**انكم تصلون صلوة لقد صحبنا رسول الله فما رئينا يصليهما ولقد نهى عنهما يعني الركعتين بعد العصر**) (**بخاري**)

**جواب**: د عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د روايت هغه جواب دی کوم چې ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا جواب ورکړی وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معروضي صورت کې دوه رکعته کړي دي دا د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت وو، طحاوي د ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا روايت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې په خصوصيت پيغمبري باندې واضح دليل دی ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا تپوس اوکړو (**افنقضيهما اذا فاتتا قال لا**) راتلونکی د قيس بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حديث نمبر (٦) ابتدائي کلام دې مد نظر وساتل شي دا کافي دی. (المرقات ۳/۱۳۳).

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

## د سحر د سنتو د قضاء مسئله

﴿٦﴾ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا

محمد بن ابراهيم د قيس بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل کوي هغه وويل يو ورځ حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو کس وليده

**توضیح: أیة ساعة شاء**: د بیت الله طواف په ورځ کې هر وخت جائز دی دې د پاره وخت مکروه نشته دې کې د چا هم اختلاف نشته خو د طواف نه پس دوو رکعتو کې د فقهاو اختلاف دی دغه شان په نورو نوافلو کې هم اختلاف دی چې په مکروه وخت کې جائز دي او که نه بلکه په حقیقت کې دا اختلاف په دې باندې مبنی دی چې په مکه کې مکروه وختونه شته او که نه. (المرقات ۳/۱۳۶).

**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې بیت الله کې هر وخت او هر قسم مونځ کول جائز دي، برابره خبره ده که مکروه وخت وي او یا د طواف نه پس دوه رکعته وي یا بل یو مونځ وي ټول جائز دي امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې بیت الله کې مکروه وختونو کې صرف د طواف دوه رکعته کېږي دې نه علاوه جائز نه دي ائمه احناف او جمهور فرمايي خانه کعبه کې مکروه وخت کې یو مونځ هم جائز نه دی د وختونو مکروه کیدل د مکې او غیر مکې دواړو د پاره یو شان دي. (المرقات ۳/۱۳۶).

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د زیر بحث د حضرت جبیر بن مطعم د حدیث نه استدلال کړی دی چې په هغې کې (**أیة ساعة شاء**) الفاظ دي ددې مطلب دا دی چې په کوم وخت کې کوم مونځ کولی شي کیږي.

د شوافعو دویم دلیل د حضرت ابوزر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث ددې باب آخري حدیث دیارلسم نمبر دی دې کې درې ځلې استثناء شوې ده (**الا بمکة الا بمکة الا بمکة**) یعنې مکه کې په مکروه وخت کې هم کولی شی ګویا چې د مکروه وخت په مکه کې وجود هم نشته د جمهورو دلیل هغه دی چې په متواترو احادیثو کې مطلقا په مکروه اوقاتو کې د مونځ ممانعت راغلی دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکروه وخت کې د مونځ نه کولو حکم ورکړی دی هغه وخت په مکه کې وو او که په مدینه کې وو نو آیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هلته مقیم وو او د کراهت حکم یې بیانولو نو هغه حکم دغه ځای د پاره نه وو؟ دا عجیبه ده بیان په مکه کې کېږي او حکم خراسان او پاکستان د پاره دی دا جملې زه ځکه لیکم دا ځکه چې مسجد نبوي کې غیر مقلدین سلفیان د لمر پریوتو په وخت کې ودرېږي او نفل کوي ګویا چې ممانعت د بل چا د پاره دی. (المرقات ۳/۱۳۶).

د جمهورو دویم دلیل د حضرت ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واقعه ده چې ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د بیت الله طواف د سحر په وخت کې وکړو او د طواف دوه رکعته یې د لمر راختو نه پس بهر لاړه ویې کړل د بخاری د حدیث الفاظ دي چې (**لم تصل حتی خرجت**) امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو اثر داسې نقل کړی دی: **ان ابن عمر قدم مکة صلوة الصبح فطاف ولم یصل الا بعد ما طلعت الشمس**. (ج۱ص ۴۲۲)

**جواب**: جمهور د جبیر بن مطعم د حدیث جواب ورکوي اول دا حدیث خپل مدعا باندې صریح نه دی چې شوافعو ته ددې نه څه فائده وشي په دې کې صرف دومره خبره ده ای بنو عبد مناف بیت الله ته تالې مه لګوئ چې بند یې کړئ، بلکې خلک پرېږدئ چې شپه او ورځ په دې کې مونځ کوي دا د کوم ځای نه ثابت دي چې مکروه وخت کې هم مونځ کوه ددې حدیث عموم په هغو احادیثو سره خاص شوی دی

کومو کې چې مکروه وخت کې د مونځ کولو نه ممانعت راغلی دی. دویمه خبره دا ده‌دا حدیث دغه متواترو احادیثو مقابله نه شي کولی دې کې مطلقا مکروه اوقاتو کې د مونځ کولو ممانعت راغلی دی دریمه خبره داده چې حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه وغیره صحابو روایات نفي باندې دال دی. دلته مبیح او محرم خبره راغله ترجیح حرمت ته ده باقي د ابوذر غفاري رضي الله عنه روایت معلول دی دې کې اضطراب دی او ضعیف روایت هم دی ابن حجر رحمه الله په خپله دا ضعیف تسلیم کړی دی دا رنګه دا روایت منقطع هم دی لهذا کمزوري روایات د دغه روایاتو مقابله نه شي کولی.

## آیا د جمعې په ورځ نصف النهار کې مونځ جائز دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ نِصْفَ النَّهَارِ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې حضور صلی الله علیه وسلم منع فرمایلې د مونځ کولو نه د غرمې په وخت کې |
| حَتَّى تَزُوْلَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ. (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ)[1]. |
| کله چې لمر زائل شوی نه وي مونځ نه منع فرمایلې ده البته د جمعې په ورځ جائز دی. |

**توضیح**: د جمعې په ورځ عین استواء الشمس په دوران کې مونځ کول جائز دي یا نه دي کې د فقهاو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف**: د امام شافعي رحمه الله، امام احمد رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله مسلک دا دی چې د جمعې په ورځ نصف النهار کې مونځ کول جائز دي دا جواز د عام ممانعت د احادیثو نه مستثنی دی. امام صاحب او امام محمد رحمهما الله په نزد جمعې سره ټوله هفته کې ټول مکروه وختونو کې مونځ کول جائز نه دي. (المرقات ۳/۱۳۷).

**دلائل**: شوافع او حنابله زیر بحث حدیث د ابوهریره رضي الله عنه او د هغې سره متصل د ابو قتادة رضي الله عنه حدیث نه استدلال کړی دی دې کې د جمعې استثنی ده ائمه احنافو هغه روایاتو نه استدلال کړی دی کوم متواتر دي او صحیح هم دي او صریح هم دي دې نه یې هم استدلال کړی دی. حضور صلی الله علیه وسلم خپل ټول ژوند کې یو ځل هم په مکروه وخت کې مونځ نه دی کړی که جائز وی، د جواز بیان د پاره به یې یو ځل عمل کړی وی. معامله چې د حرمت او اباحت وې ترجیح به حرمت ته وي د ابو قتادة روایت کې انقطاع هم ده علماء احنافو کې بعضو د امام ابویوسف قول باندې فتوی ورکړې ده بعضو د طرفینو په قول باندې فتوی ورکړې نو معامله یو څه آسانه شوې ده. (المرقات ۳/۱۳۷).

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص ٦٣.

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي الْخَلِيْلِ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَرِهَ الصَّلَاةَ

ابو الخلیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړي دي وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مکروه ګڼلو مونځ د

نِصْفَ النَّهَارِ حَتَّى تَزُوْلَ الشَّمْسُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ قَالَ:

ماسپخین وخت کې ترڅو چې لمر زائله شوی نه وو په غیر د جمعې د ورځې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ارشاد فرمايي

«إِنَّ جَهَنَّمَ تُسَجَّرُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَ قَالَ

علاوه د جمعې ورځې نه روزانه دوزخ ګرمولی شي دا روایت امام ابو داود نقل کړی دی او ویلي یې دي

أَبُو الْخَلِيْلِ لَمْ يَلْقَ أَبَا قَتَادَةَ. (رواه ابو داؤد)[1].

چې ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د ابو الخلیل ملاقات ثابت نه دی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د مکروه وختونو تفصیل

﴿۱۰﴾ عَن عبد الله الصنابحي قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ وَمَعَهَا

عبد الله الصنابحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي کله چې لمر راخيژي هغې سره د

قَرْنُ الشَّيْطَانِ فَإِذَا ارْتَفَعَتْ فَارَقَهَا ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ قَارَنَهَا فَإِذَا

شیطان ښکرې دي کله چې اوچت شي جدا کېږي بیا نصف النهار شي شیطان لمر خواته نزدې شي او چې

زَالَتْ فَارَقَهَا فَإِذَا دَنَتْ لِلْغُرُوبِ قَارَنَهَا فَإِذَا

کله لمر زائل شي د هغې نه جدا شي بیا چې لمر پرېوتو ته نزدې شي شیطان ورته نزدې راشي او کله چې

غَرَبَتْ فَارَقَهَا، وَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي تِلْكَ السَّاعَاتِ[2].

لمر ډوب شي شیطان دې نه جدا شي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې وختونو کې مونځ کولو نه منع فرمایلې ده.

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۶۵۳/۱ رقم الحديث ۱۰۸۳.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۲۷۵/۱ رقم الحديث ۵۵۹، وابن ماجه ۳۹۷/۱ رقم الحديث: ۱۲۵۳، ومالک في الموطأ ۲۱۹/۱ رقم الحديث ۴۴ من كتاب القرآن

## د مازیګر نه پس یو مونځ هم نشته

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي بصرة الْغِفَارِيِّ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُخَمَّصِ صَلَاةَ الْعَصْرِ

ابو بصره غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته مقام مخمص کې د مازیګر مونځ راکړو

فَقَالَ: «إِنَّ هٰذِهِ صَلَاةٌ عُرِضَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَضَيَّعُوهَا فَمَنْ

او ویایې وفرمایل دا مونځ تاسو نه مخکې خلکو باندې لازم کړې شوی وو هغوي ضائع کړو څوک چې د دې

حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَ لَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ وَلَا صَلَاةَ بَعْدَهَا حَتَّى يَطْلُعَ الشَّاهِدُ».

حفاظت کوي ده ته به دبل ثواب ملاویږي او د مازیګر مونځ نه پس یو مونځ هم نشته تر څو چې شاهد نه وي

وَالشَّاهِدُ النَّجْمُ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]

راوتی او شاهد هغه ستوری دی.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: إِنَّكُمْ لَتُصَلُّونَ صَلَاةً لَقَدْ صَحِبْنَا رَسُولَ اللهِ

د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې تاسو خلک مونځونه کوئ او مونږ په صحبت د رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْنَاهُ يُصَلِّيهِمَا

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې وو خو مونږ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې دوو رکعتونو کولو باندې نه وو لیدلی، بلکې

وَ لَقَدْ نَهَى عَنْهُمَا يَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)[2].

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دې نه یعنې د مازیګر نه پس د دوه رکعتونو کولو نه منع فرمایلې وه.

## د بیان جواز په وخت خپل تعارف کول ضروري دی

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ وَقَدْ صَعِدَ عَلَى دَرَجَةِ الْكَعْبَةِ: مَنْ عَرَفَنِي فَقَدْ عَرَفَنِي

ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې مروي دي چې هغه د کعبې په زینې باندې او ختو چا چې زه وپیژندم هغه وپیژندم

وَمَنْ لَمْ يَعْرِفْنِي فَأَنَا جُنْدُبٌ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او چا چې زه ونه پیژندم هغه ته وایي چې زه جندب یم ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې د

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۵۶۸/۱ رقم الحديث ۲۹۲- ۸۳۰، والنسائي ۲۵۹/۱ رقم الحديث ۵۲۱.

[2] أخرجه البخاري في صحيحه ۶۳/۲ رقم الحديث ۵۸۷.

| |
|---|
| «لَا صَلَاةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ |
| سحر مونځ نه پس ترڅو چې لمر نه وي راختلی يو مونځ هم نه کېږي او نه د ماز يګر نه پس ترڅو چې ډوب شوي |
| الشَّمْسُ إِلَّا بِمَكَّةَ إِلَّا بِمَكَّةَ إِلَّا بِمَكَّةَ» (رَوَاهُ أَحْمد، ورزين)[1] |
| نه وي لمر. خو مکه کې، خو مکه کې، خو مکه کې. |

**توضیح: فأنا جندب:** ما چې څوک پېژني نو صحيح ده د هغه په ما باندې اعتماد دی چې زه څوک يم او زما په خبره کې څه وزن دی او که ما نه پېژني هغه دې پوه شي زما نوم جندب دی او ابوذر زما کنيت دی. (المرقات ۳/۱۴۰).

د بيان کيدو نه مخکې ابوزر ددې تعارف ضرورت څکه محسوس کړو چې د خلکو اعتماد وي او دا هم معلوم وي چې د بيان کولو والا عالم دی د حضور ﷺ صحابي دی عام کس نه دی.

نن سبا خه خلک په غټو غټو اجتماعاتو کې بيان کوي او څه پته يې هم نه لګي چې عالم دی او که غير عالم دی، مستند دی او که غير مستند دی؛ قابل د اعتماد دی او که نه دی، نو که هغه غلط بيان هم وکړي نو څوک هم په ده نيوکه نه شي کولې څکه چې پته يې نه لګي دا صاحب څوک دی، يو چا ښه ويلي دي:

کس نمی داند که بهیا کون ہے ❁ پاؤ ہے یا سیر ہے یا پون ہے

دا حضرات بالعکس په علماو باندې د ريا کاري الزام لګوي چې دوي خپل تعارف کوي نو تکبر کوي حقيقت دادی چې دا خلک تعارف ددې مجبورۍ د وجې نه شي کولې چې په دې کې عام طور بيان کولو والا ډاکټر، انجينر، پروفيسر او بابو وي که چيرته تعارف وکړي نو د خلکو اعتماد به پاتې نه شي چې دا خو بابو صاحب دی ددې وجې نه دا حضرات په خاموشۍ سره د علماو په جبو او قبو کې ځان ملبوس کړي او غلط بيان کوي چې خلک پوه شي چې څومره لوی مستند عالم دی.



(۱) أخرجه أحمد في المسند ١٦٥/٥.

# بَابُ الْجَمَاعَةِ وفضلها:

## د جمعې سره د مونځ کولو فضيلت

قال الله تعالى: ﴿وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ﴾. (سورة البقرة آيت: ۴۳).

د معراج په شپه چې کله مونځ فرض شو د ورځې حضرت جبرائيل د ماسپخين مونځ په جمعې سره وکړو، جمعې سره د مونځ مشروعيت کله شوی دی دې کې د علماو دوه رائې دي د علماو يوې طبقې رايه دا ده چې جمعې سره مونځ کولو مشروعيت مکه کې شوی دی خو د دويمې طبقې خيال دا دی چې مشروعيت يې په مدينه منوره کې شوی دی خو اصل کې د جمعې مشروعيت مکه کې شوی دی دې باندې د جبريل د امامت حديث دال دی خو جمعه باندې هميشه والی مدينه منوره کې شوی دی مکه کې د کفارو د غلبې د وجې نه ښکاره مونځ نه شو کولی د جمعې په فضيلت او ترغيب او ترهيب کې دومره ډير آحاديث دي که ټول يو ځای کړی شي نو لويه خزانه ترې جوړيږي، تردې چې حضور صلى الله عليه وسلم مرض الوفات کې د دوو کسانو په تعاون باندې جمعې سره مونځ کولو له راغلی. مونځ چې کله فرض شو، نو اول مونځ يې هم د جمعې سره کړې وو دا هم د جمعې د اهميت نښه ده.

### جمعه فرض ده او که سنت او که واجب؟

دې باندې اتفاق دی چې د سړو د پاره جمعې سره مونځ کول د يواځې مونځ نه ډير افضل دی او بغير د عذر شرعي نه جمعه پريښودل بده خبره ده دې باندې د امت اتفاق دی بعضې داسې عذرونه شته چې د هغې د وجې نه جمعه ترک کول جائز دي او که شرعي عذر نه وي، نو جمعې سره مونځ کول دده د پاره آيا فرض دي او که واجب دي يا سنت دي دې کې د علماو اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف:** د شوافعو مختار او اصح قول دا دی چې فرض مونځ د پاره جمعه فرض کفايه ده محققين شوافع دې ته ترجيح ورکوي خو د شوافعو مشهور قول دا دی چې جمعه سنت مؤکده ده. امام مالک رحمه الله په نزد جمعه سنت ده امام احمد رحمه الله په نزد جمعې سره مونځ کول فرض عين دي خو د مونځ د پاره شرط نشته. لهذا د ځان ته کس مونځ کېږي خو گناه گار به وي اهل ظواهرو په نزد باندې مونځ د پاره جمعه کول د شرط په درجه کې دی که بغير د عذر نه چا د جمعې نه بغير مونځ وکړو مونځ نه دی شوی. (المرقات ۳/۱۴۱).

د احنافو ائمو د کتابونو نه معلوميږي چې د جماعت په باره کې ددوي دوه قوله دي د يو قول مطابق جماعت واجب دی دويم قول مطابق سنت مؤکده دی کوم چې واجبو ته نزدې دی وجوب قول راجح دی علامه ابن الهمام وايي چې زمونږ د اکثرو مشائخو مسلک دا دی چې جماعت واجب دی دې باندې د سنت اطلاق ځکه شوی دی چې دا د سنتو نه ثابت دي يعنې په خپله جماعت سنت نه دی بلکې ددې ثبوت د سنت نه دی بعضې احناف د سنت فتوی ورکوي متقدمين احناف د سنت قائل دي.

**محاکمه**: ددې اوږد اختلاف او د متفرقو اقوالو وجه څه ده په دې باره کې حضرت علامه انورشاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ داسې محاکمه او فیصله کوي چې دا اختلاف په حقیقت کې د تعبیر اختلاف دی د مال په اعتبار سره دومره غټ اختلاف نه دی وجه دا ده چې په احادیثو کې جماعت سره مونځ نه کولو په باره کې سخت وعید راغلی دی، په بعضې روایاتو کې راغلي دي چې د آذان اوریدو نه پس په جماعت کې نه حاضریدلو والا مونځ نه کیږي په بعضې روایاتو کې راغلي دي چې د جمات د ګاونډي مونځ د جماعت نه بغیر صحیح نه دی او دلته بعضې روایاتو نه معلومیږي چې ددې په باره کې ډیره نرمي ده چې لږ شان باران وشي نو مونځ په کورونو کې کول په کار دی، د خوراک که ډیره تقاضا وي نو د جمعې پریښودل د خوراک کولو اجازت دی لهذا کومو حضراتو چې د سختۍ او تهدید او وعید لیدلي دي نو هغوي جمعې ته فرض ویلي دي یا یې د مونځ د صحیح کیدو د پاره شرط ګرځولې دی او کومو حضراتو چې نرم طرف لیدلي وي نو هغوي د سنت فیصله پرې کړې ده او کومو خلکو چې دواړه طرفه لیدلي دي نو هغوي د واجب او یا د سنت مؤکده حکم پرې لګولې دی همدا رنګې دا اختلاف رابنکاره شو او د نبي عَلَیْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ یو فرمان هم په زمکه ونه غورځیدو یو نه یو فرمان یې د سینې سره ولګولو او وي ویل:

عبارا تنا شتی و حسنک واحد ✿ وکل الی ذاک الجمال یشیر

گلہائے رنگا رنگ سے ہے رونق چمن ✿ اے ذوق اس جہاں کو ہے زیب اختلاف سے

**د جماعت فوائد**: حضرت شاه ولی الله حجة الله البالغه کې د جماعت ډیر فوائد ذکر کړي دي خو دلته یې بعینه الفاظ نه دي ذکر کړي بلکې خلاصه ده.

(۱) جماعت د وجې نه مونځ په شان لوی عبادت رسم تام او د عام رواج او مزاج حصه جوړه شي ددې پریښودل آسان نه وي. (۲) عوام الناس او خواص یې یو ځای اداء کوي، چا ته چې د مونځ مسائل نه وي یاد نو علماء به د هغه خلکو اصلاح کوي. (۳) څوک چې مونځ نه کوي هغه به هم ښکاره شي چې دا مونځ نه کوي. (۴) اجتماعي دعا په دربار د رب کې لوی اثر لري جماعت سره دا نعمت حاصلیږي. (۵) جماعت کې لوی اتحاد دی او د اسلام یو شان دی. (٦) هر کس ته به د بل د بې وسې پته ولګیږي، نو مدد به ورسره کوي (۷) جماعت کې برابر والی دی، مالدار او غریب یو صف کې ولاړ وي.

ایک ہی صف میں کھڑے ہوگئے محمود و ایاز ❀ نہ کوئی بندہ رہا نہ کوئی بندہ نواز

**د جماعت پریښودو یو څو عذرونه**: (۱) سخت باران د وجې نه (۲) لارې کې خټې وي (۳) ستر عورت پټ نه وي (۴) د سختې یخنۍ د وجې نه چې بیمار به شي یا به مرض ډیر شي (۵) لاره کې د ځان دښمن وي (٦) مسجد ته که لاړ شي نو شاته د مال خطر وي (۷) د شپې سخته تیاره وي (۸) د یو کور یا سامان څوکیداري کول (۹) دیو بیمار تپوس کول (۱۰) د سخت او دس ماتي تقاضا وي (۱۱) د سفر په دوران کې د قافلې نه د پاتې کیدو خطره وي (۱۲) درس او تدریس کې داسې مشغولیدل چې د کولو فرصت نه وي

خو دا عذر کله نا کله وي(۱۳) دومره بیمار شي چې د تللو باندې قدرت نه لري یا ړوند وي(۱۴) روښنی تیاره وي او د خرابیدو ویره وي او سخته ولږه وي.

## الْفَصْلُ الأَوَّل:

## په جمعې سره مونځ او بغیر د جمعې نه په ثواب کې فرق

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ
د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې د جمعې مونځ د

تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً». (متفق علیه)[1]
ځانله مونځ نه اوویشت(۲۷) درجې زیات وي.

**توضیح: بسبع وعشرین درجة:** حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه مروي دي فرمایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چې د جماعت سره مونځ د ځان له مونځ نه اوویشت ۲۷ درجې ډیر معلومیږي دې نه علاوه په نورو آحادیثو کې (۲۵) درجې یې زیات ښودلی دی دا په ښکاره تعارض دی. (المرقات ۳/۱۴۱).

**جواب:** اعدادو کې تعارض نشته عدد اکثر د عدد اقل نفی نه شي کولی بلکې اقل د اکثر په ضمن کې وي

**دویم جواب:** اول د الله تعالی طرف نه (۲۵) درجې انعام وو بیا (۲۷) درجې ته ورسیدو.

**دریم جواب:** دا دی دا تفاوت کثرت جماعت او کم خلکو د وجې نه دی. **څلورم جواب:** دا تفاوت د درجاتو د امکنو د وجې نه دی. **پنځم جواب:** د درجاتو دا فرق او تفاوت د اشخاصو او د هغوي د اخلاص د وجې نه دی ظاهره ده که مسجد کې صرف طلباء او صلحاء وي هغه یو شان سره وي بل ځای کې اخلاط الناس جماعت وي هغه د بلې درجې وي علماء لیکي چې د جماعت دا فضیلت د هر ځای جماعت د پاره دی مسجد سره خاص نه دی. (المرقات ۳/۱۴۲).

## د جمعې پریښودو باندې سخت وعید

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِيْ
ابوهریره رضي الله عنه اوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چې قسم دې وي زما په هغه ذات باندې

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ۱۳۱/۲، رقم الحديث ۶۴۵، ومسلم في الصحيح ۱/ ۴۵۰ رقم الحديث: ۲۴۹-۶۵۰، أخرجه أحمد في المسند ۶۵/۲

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفْسِيْ | بِيَدِهٖ | لَقَدْ | هَمَمْتُ | أَنْ | آمُرَ | بِحَطَبٍ | فَيُحْطَبَ |

چې د چا په قبضه کې زما روح دی ما اراده وکړه چې د لرګو د جمع کېدو حکم وکړم او چې لرګي جمع شي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | آمُرَ | بِالصَّلَاةِ | فَيُؤَذَّنَ | لَهَا | ثُمَّ | آمُرَ | رَجُلًا | فَيَؤُمَّ | النَّاسَ |

ر د مونځ د پاره د آذان حکم وکړم او چې آذان وشي او خلکو ته د مونځ ورکولو د پاره بل کس مامور کړم

ثُمَّ أُخَالِفَ إِلَى رِجَالٍ . وَ فِي رِوَايَةٍ :

او دهغه خلکو طرف ته لاړ شم چې بغیر د عذر نه کور کې مونځ کوي او مسجد ته نه راځي یو روایت کې دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | يَشْهَدُونَ | الصَّلَاةَ | فَأُحَرِّقَ | عَلَيْهِمْ | بُيُوتَهُمْ | وَ الَّذِيْ |

هغه خلکو طرف ته لاړ شم چې مونځ کې نه حاضر یږي او د دوي کورونه وسوزوم او قسم دی وي زما په هغه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفْسِيْ | بِيَدِهٖ | لَوْ | يَعْلَمُ | أَحَدُهُمْ | أَنَّهُ | يَجِدُ | عَرْقًا | سَمِيْنًا | أَوْ |

ذات باندې چې د چا په قبضه کې زما ساه ده که چا ته معلوم شي چې ملا ویږي د غوښې بنه پوټې د غوا یاد

مِرْمَاتَيْنِ حَسَنَتَيْنِ لَشَهِدَ الْعِشَاءَ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهٗ.(۱)

چیلۍ بنې څرېې، نو ماسخوتن مونځ کې به حاضر شي.

**توضیح: فأحرق علیهم:** ددې حدیث د وعید د وجې نه متأخرینو احنافو د جماعت د وجوب قول کړی دی خو متقدمینو احنافو د سنت مؤکده قول کړی دی هغوی فرمایي ددې حدیث وعید هغه کس د پاره دی چې مسلسل تارک جماعت وي او دا یې عادت وي ددې نه دا خبره معلومه شوه چې د جماعت ترک کونکي ته دنیاوي تعزیر هم جائز دی او اخروي سزا هم ده دویمه دا خبره معلومه شوه چې حضور ﷺ د سزا ورکولو اراده کړې وه خو عمل یې پرې ونه کړو ددې وجه علماء دا بیانوي چې تارک جماعت سره د کور سوزولو نه بې ګناه افرادو خطره ده، لکه ماشومان او زنانه وي.(المرقات ۳/۱۴۲).

ددې حدیث نه او ددې نه پس حدیث نمبر(۲۲) نه یو عجیبه اشاره ملاویږي چې جماعت فرض نه دی هغه ځکه چې حضور ﷺ وفرمایل چې ځان سره یو څو ځوانان کړم او جماعت بل ته حواله کړم ددې نه دا معلومه شوه چې جماعت د ترک کولو ګنجایش شته او فرض نه دی.

ددې حدیث نه دا خبره معلومه شوه چې امام د ضرورت په وخت کې نائب مقرر کولی شي، ددې حدیث په

(۱) أخرجه مسلم في الصحیح ۴۵۱/۱ رقم الحدیث:۲۵۱-۶۵۱، وأبو داود ۳۷۱/۱ رقم الحدیث :۵۴۸، والنسائي ۱۰۷/۲، رقم الحدیث: ۸۴۸.

آخر کې هغه کم عقل انسانانو ته هم اشاره ده که چرته د دنیا یو معمولي څیز مسجد کې ملاویږي تهول وریسې ځي خو یو لوی عبادت د پاره جمع کېدل وي هغې له څوک نه ځي، عرق هډوکي ته ویلی شي مرماتین اول میم باندې کسره او فتحه دواړه دي (نوک) ته ویلی شي یا د نوک په منیځ کې د غوښې بوټی مراد ده.

## د چا شان چې اوچت وي هغه دې په عبادت کې بنه کوشش وکړي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَجُلٌ أَعْمَى |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ړوند کس (عبد الله ابن مکتوم) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض |
| فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ لَيْسَ لِي قَائِدٌ يَقُودُنِي إِلَى الْمَسْجِدِ فَسَأَلَ رَسُولَ |
| یې وکړو یا رسول الله! زما د پاره یو رهبر نشته چې ما مسجد ته بوځي بیا یې دا درخواست وکړو د رسول |
| اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ يُرَخِّصَ لَهُ فَيُصَلِّيَ فِي بَيْتِهِ فَرَخَّصَ لَهُ |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې ده ته په کور کې د مونځ کولو رخصت ورکړي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته اجازت ورکړو |
| فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ فَقَالَ : « هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ ؟ » قَالَ : نَعَمْ |
| کله چې واپس شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه راوبلو او ورته یې وفرمایل آیا ته آذان اورې هغه وویل چې آو |
| قَالَ : « فَأَجِبْ » . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل ستا د پاره جومات ته حاضریدل ضروري دي. |

**توضیح: لیس لي قائد**: زما د پاره رهبر نشته دا صحابي عبد الله ابن مکتوم دی. (المرقات ۳/۱۴۶).

**سوال**: مسئله دا ده که یو کس ړوند وي او جومات ته د بوتللو د پاره خادم نه وي هغه معذور دی دلته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ابن مکتوم ته اجازت ولې ورنه کړو؟ احادیثو کې راځي چې یو صحابي عتبان بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل د ړوندوالي شکایت وکړو هغه ته یې اجازت ولې ورکړی ؤ او دلته یې اجازت ورنه کړو.؟

**جواب**: ددې جواب دا دی چې د یو صحابي د شان موازنه د غیر صحابي سره نه کېږي که غیر صحابي ته یو څیز کې اجازت وي هلته د صحابو شان ته وګوري اجازت نه ورکوي دغه شان د صحابو جماعت کې چې د چا شان اوچت وي د هغې معیار د نورو په مقابله کې اوچت وي چونکې ابن مکتوم صحابي هم وو

[1] أخرجه مسلم في الصحيح ۳۷۴/۱ رقم الحديث: ۲۵۵-۶۵۳، وأبو داود ۳۷۴/۱ رقم الحديث: ۵۵۲، والنسائي ۱۰۹/۲، رقم الحديث: ۸۵۰

او لوی صحابو کې هم وو ددې وجې نه دده معیار د عتبان بن مالک نه اوچت وساتلو ده ته حکم وشو چې ته هر حالت کې جماعت کې حاضرېږه دغه شان بعضې وختونو کې د صحابو مقابله کې د اهل بیتو معیار اوچت ساتلی دی دوي ته د خرچې ذخیره کولو نه منع کړې ده بیا حضور ﷺ خپل معیار د دوي نه اوچت وساتلو او داسې اعمال یې خپل کړل چې امت ددې تصور هم نه شي کولی دا فرق د مراتبو دی دې سره ډیر مسائل حل کېږي. (المرقات ۳/۱۴۶).

## د سختې یخنۍ د وجې نه جماعت ترک کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ : أَنَّهُ أَذَّنَ بِالصَّلَاةِ فِي لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَ رِيحٍ |
| د ابن عمر رضي الله عنه په باره کې مروي دي چې يوه شپه سخته يخني او هوا وه مونځ د پاره يې آذان وکړو دې |
| ثُمَّ قَالَ أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ ثُمَّ قَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ |
| ووييل خبردار خپلو کورونو کې مونځ وکړئ بيا يې ووييل چې حضور ﷺ به مؤذن ته حکم کولو |
| إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ ذَاتُ بَرْدٍ وَ مَطَرٍ يَقُولُ : أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ. (متفق عليه)[1]. |
| چې کله به د شپې يخني او باران وُ چې آذان کولو سره دې دا هم وواييې چې خپلو کورونو کې مونځ وکړئ. |

**توضیح:** د ختو او باران د وجې نه کور کې مونځ کولی شي الرحال چت او کور ته ويلی شوي دي (اذا ابتلت النعال فالصلوة فى الرحال) نعال پيزار ته وئيلی شي او سختې ځمکې ته هم وئيلی شي يعنې سخت باران چې وشي ځمکه لونده شي، نو بيا کور کې مونځ کوئ. (المرقات ۳/۱۴۶).

## اول ډوډۍ بيا مونځ

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ وايي چې کله کيښودلې شي د ماښوتن ډوډې |
| أَحَدِكُمْ وَ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَؤُوا بِالْعَشَاءِ وَلَا يَعْجَلْ |
| تاسو کې يو چا ته او دغه وخت کې تکبير وشي هغه دې ډوډۍ وخوري او جلتي دې په کې نه کوي بلکې |
| حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ » وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُوضَعُ لَهُ الطَّعَامُ |
| اطمينان سره دې فارغ شي د ابن عمر رضي الله عنه په باره کې ويلی شي چې د هغه مخې ته چې کله ډوډۍ کيښودلې |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۵۶/۲، رقم الحديث: ۶۶۶، ومسلم في الصحيح ۴۸۴/۱ رقم الحديث: ۲۲-۶۹۷، وأبو داود ۶۴۲/۱ رقم الحديث: ۱۰۶۳، والنسائي ۱۵/۲، رقم الحديث: ۶۵۴

وَ تُقَامُ الصَّلَاةُ فَلَا يَأْتِيهَا حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ وَ إِنَّهُ لَيَسْمَعَ

شوه او مونځ به شروع كيدونو مونځ ته به تر هغه وخت پورې نه تللو چې ډوډۍ نه به فارغ نه ؤ او اوريدو

قِرَاءَةَ الْإِمَامِ. (متفق عليه)[1]

به يې قرائت د امام.

**توضيح: فابدوا بالعشاء:** عشاء د عين فتحې سره د ماښام ډوډۍ ته ويل كېږي كه د مونځ وخت كې وسعت وو نو بهتر داده چې خوراك دې وكړي چې مونځ كې فكر او انتشار نه وي د جمهورو په نزد مشتاق طعام د پاره دغه بهتر دى ځكه چې ممكنه ده چې ډوډۍ يخه شي او خرابه شي يا سپي يا پيشو يې وخوري يا ددې تاخير سره غير ته تكليف وي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې: **لأن يكون طعامي كله صلوة احب الي من ان تكون صلوتي كلها طعاما.**

كله چې په ډوډۍ كې د مونځ فكر وې ګويا دا په مونځ كې دى او كله چې په مانځه كې د ډوډۍ فكر وې ګويا دا په ډوډۍ كې مصروف دى. (المرقات ۳/۱۴۷).

## كه ډوډۍ مخامخ وي يا د اودس ماتى حاجت وي نو مونځ وروسته كول په كار دي

﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ: «لَا صَلَاةَ

د عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه روايت دى وايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې مونځ كامل نه وي

بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا هُوَ يُدَافِعُهُ

چې كله خوراك مخامخ او حاضر وي او نه په هغه حالت كې (مونځ كامل وي) چې كله ختم كړي حضور

الْأَخْبَثَانِ ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

قلبي دوه خبيثه (يعنې وړوكى اودس ماتى او لوى اودس ماتى).

**توضيح:** مونځ داسې وخت كې كول په كار دي چې د الله تعالى مخې ته انسان خشوع او خضوع قائم وي ليكن چې كله په انسان باندې د وړوكي او د ك اودس ماتي سخت دباو او زور وي يا د خوراك خواهش لرونكي وي او همدا رنګې قئ كيفيت وي يا د بادو (هوا، پوسكۍ) شكايت وي نو په دې ټولو صورتونو كې به مونځ وروستو كولې شي او جمعه به پرېښودلې شي.

---

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ۱۵۹/۲، رقم الحديث: ۶۷۳، ومسلم في الصحيح ۳۹۱/۱ رقم الحديث ۶۶-۵۵۹.

[2] أخرجه مسلم في الصحيح ۳۹۳/۱ رقم الحديث ۶۷-۵۶۰.

**اخبثان** : **ای ولا صلوة حاصلة للمصلي في حال يدافعه الا خبثان**، دې نه مراد وړوکی او غټ اودس ماتی دی په دې صورت کې مونځ وروسته کولی شی که بول او براز موجب ثقل صلوة وي دغه حالت کې مونځ کول مکروه تحریمي دي دې صورت کې جماعت ترک کول بهتر دي خو دا مسائل هغه صورت کې دي چې کله وخت ډیر وي که وخت کم وي، نو بیا دغه وخت کې هم مونځ کول په کار دي.(المرقات ۳/۱۴۸).

## چې کله مونځ اودریږي بیا سنت مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چې کله مونځ اودریږي |
| فَلَا صَلَاةَ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ». (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| نو د فرضو نه علاوه بل مونځ کول نه دي په کار. |

**توضیح**: **الا المکتوبة**: سحر نه علاوه ځلورو وختونو کې اقامت اوشي نو اتفاقا سنت کول مکروه تحریمي دي البته د سحر سنتو کې سخت تاکید دی بعضې علماو دېته د سنت په ځای واجب ویلي دي حدیث کې دي : **صلوها و ان طردتکم الخیل** یعنې د دښمن آسونه که تاسو پایمال هم کړي د سحر سنت مه پریږدئ ، د دې تاکیداتو د وجې نه دا مسئله مختلف فیها شوه. (المرقات ۳/۱۴۹).

**د فقهاو اختلاف**: د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نزد باندې د باقي مونځونو د سنتو په شان د سحر سنت د جمعې د ودریدو په وخت کې مکروه تحریمي دي او د اهل ظواهرو په نزد باندې د دې مونځونو انعقاد هم نه دی صحیح.د امام مالک رحمه الله په نزد د سحر سنت د قیام جماعت په وخت کې داخل مسجد کې جائز نه دي او خارج مسجد کې صحیح دي . (المرقات ۳/۱۴۹).

احناف فرمایي چې د دې سنتو تاکید د وجې نه قیام جماعت وخت کې هم کول په کار دي که مسجد لوی وو ، نو په یو طرف کې دې سنت وکړي او که مسجد وړوکی وو بیا دې مسجد نه بهر سنت وکړي په دې شرط چې آخرنی رکعت مکمل راونیسي چې احراز د فضیلتینو مکمل طور باندې وشي ، مسجد کبیر هغه دی چې (۶۰) قدمو پورې وي ګیني وړوکی دی. (المرقات ۳/۱۴۹).

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۹۳ رقم الحديث:۶۳-۷۱۰، وأبو داود ۲/۵۰ رقم الحديث :۱۲۶۶، والنسائي ۲/۱۱۶، رقم الحديث: ۸۶۵.

## د زنانو د جمعې د سره مونځ کولو حکم

﴿۸﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ
ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې کله اجازت وغواړي يوه ښځه په
أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يَمْنَعَنَّهَا». (متفق عليه)[1].
تاسو کې د يو چا نه مسجد ته د تللو ، نو مه يې منع کوئ.

**توضيح: اذا ستأذنت امراة:** د ډېرو احاديثو نه ثابته ده چې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به زنانه مسجد ته تللې خو په هغې وخت کې هم څه شرائط وو مطلق اجازت ورته نه وو. (المرقات ۳/۱۵۰).
**يو څو شرائط** : (۱) زنانو ته حکم ؤ چې خوشبو به نه لګوي د مسجد ته د تللو په وخت کې او نه به د زيب او زينت لباس اغوندي .(۲) ښځو ته حکم ؤ چې چې د سړو نه په آخر کې به راځي او په آخري صفونو کې به کيني او سلام نه بعد به فوراً اوځي. (۳) سړو ته دا حکم ؤ چې تر څو زنانه تللې نه وي تاسو به نه ځئ. (۴) عمر رسيده زنانو ته اجازت وو او هغه هم د تيارې مونځونو کې مثلاً د سحر، ماښام او ماسخوتن کې او ځوانانو زنانو ته اجازت نه وو. (۵) ښځو ته ښکاره ويلې شوي وو چې هغه مونځ چې تاسې يې په کورونو کې کوئ دا بهتر دي د دې نه چې په جوماتو کې يې وکړئ. (المرقات ۳/۱۵۰).
**د هغه وخت ضرورت:** هغه وخت کې د زنانو حاضريدل ځکه ضروري وو چې نوي مسائل به راتلل او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مواعظ به جوماتو کې وو او د دې د حصول واحد ذريعه جوماتو کې حاضريدل وو د دې مجبورئ په وجه ښځو ته جوماتو ته د تللو اجازت ورکړې شوې وو.
**د هغه وخت ماحول:** دا خبره هم په خيال کې ساتل په کار دي چې د هغه وخت ماحول څه ؤ چې په هغه وخت کې به ښځې به جوماتو ته تللې ، که لږ سوچ وکړو او وګورو نو صحابه کرام د فرشتو په شان يو جماعت وو او په هغه وخت کې په خپله حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ موجود وو او د صحابو دور وو حضرت جبرائيل امين به په خپله مقدسه ځمکه باندې ګرځيدو او د قرآن کريم د ايتونو مبارکو د نازليدو د تقوى ماحول وو د زنانو جوماتو ته تلل د فتنې نه خالي وو ، بلکه باعث د برکت وخت وو د اسې ماحول باندې بل ماحول مه قياس کوئ.
نن سبا دور کې د زنانو تلل جوماتو ته صحيح نه دي عهد صحابو کې حضرت زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپله ښځه د جوماتو نه منع کوله هغې خبره وانه وريده ، ځکه چې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجازت وو او مضبوط دليل وو ، نو زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په لاره کې کيناستو او خپله ښځه يې په کاڼي باندې اويشتله مغه په ځای باندې

---

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ۹/۳۳۷، رقم الحديث ۵۲۳۸، ومسلم في الصحيح ۱/۳۲۶ رقم الحديث: ۳۱-۴۴۲.

و دریده او انالله وانا الیه راجعون یې وویل او کور ته لاړه حضرت زبیر رضي الله عنه ته یې واقعه ذکر کړه اوویل یې چې اوس هغه دور نه دی چې زنانه جوماتونو ته تللې.

د حضرت عبدالله ابن عمر او د هغه د ځوی خبرې مذکور دي ابن عمر رضي الله عنه وفرمایل چې زنانو په باره کې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې دوي مه منع کوئ. او دده ځوی بلال وویل چې زه به یې منع کوم دې صورې معارضه باندې ابن عمر رضي الله عنه ډیر خفه شو چې ټول عمر یې دې سره خبرې نه کولې بلال رضي الله عنه دده دې حدیث معارضې او انکار نه دی کړی صرف صورت د معارضې جوړ شوی دی کله چې دا واقعه حضرت عائشې رضي الله عنها ته معلومه شوه ویې فرمایل الله تعالی دې په ابن عمر رضي الله عنه باندې رحم وکړي که رسول الله صلی الله علیه وسلم دې دور کې ژوندی وی، نو ښځې به یې د جومات نه منع کولې لکه څنګه چې د بني اسرائیلو زنانه منع وې.په بخاري شریف کې د حضرت عائشې رضي الله عنها روایت داسې دي : **لو ادرک رسول الله صلی الله علیه وسلم ما احدث النساء لمنعهن المسجد کما منعت نساء بني اسرائیل** (بخاري ج۱ ص ۱۲۰) (المرقات ۳/۱۵۰).

بهرحال د زنانو مسجد ته تلل د فقهاء احنافو ددې معروضې احوالو د لاندې مکروه لیکلي د حدیث جواز په خپل ځای باندې صحیح دی خو د حدیث د پاره هغه ماحول نشته کوم ماحول کې چې دا حدیث وئیلی شوی دی او د کومې مجبورۍ د وجې نه چې وئیلی شوې وو هغه مجبوري پاتې نه شوه دې وجې نه علماء لیکي (**فلایمنعنها**) کې چې کومه نهې راغلې دغه مکروه تنزیهي باندې محمول ده یعنې منع کول خلاف اولی دي مطلب دا چې څوک منع کړی هم جائز دی.

**چې کله ښځې عبادت ته مسجد ته نه شي تللې نو چیله کې څنګه تللې شي؟** : د احنافو فقهاو د فقه په متونو کې یو حکم لیکلی دی (**ولا یحضرن الجماعات**) یعنې ښځې د جمعې په مونځ کې نه شي حاضریدې.

: کنزالدقائق ددې عبارت شرحه علامه ابن نجیم رحمه الله په بحر الرائق کې دارنګې کړې ده :

**ولا یحضرن الجماعات لقوله تعالی: ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾ ، و قال صلی الله علیه وسلم صلوتها في قعر بیتها افضل من صلوتها في صحن دارها و صلوتها في صحن دارها افضل من صلاتها في مسجد و بیوتهن خیر لهن ولانه لا یؤمن الفتنة من خروجهن اطلقه فشمل الشابة و العجوزة و الصلوة النهاریة و اللیلیة . قال المصنف في الکافي و الفتوی الیوم علی الکراهة في الصلوة کلها لظهور الفساد و متی کره حضور المسجد للصلوة . فلأن یکره حضور مجالس الوعظ . خصوصاً عند هؤلاء الجهال الذین تحلوا بحلیة العلماء اولی ( ذکره فخر الاسلام ) و في فتح القدیر المعتمد**

منع الكل في الكل الا العجائز المتفانية فيما يظهر لي دون العجائز المتبرجات و ذوات الرمق (بحر الرائق ج١ص ٣٥٨)

ترجمه : او ښځې د جمعې مونځ ته نه شي حاضريدلې ځکه چې د الله تعالى فرمان دی : چې په کورونو کې ناستې اوسې او د اولنې جهالت په وخت په شان بهر مه راوځئ ، همدارنګې د نبي کريم ﷺ حديث دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د ښځې مونځ په کور کې په تهه خانه کې کول دا بهتر دی د هغه مونځ نه چې د کور په صحن کې وي ، او په کور کې په صحن کې مونځ کول دا بهتر دی ددې نه چې په مسجد کې مونځ وشي او د ښځو د پاره ددوي کور دا بهتر ځای دی ، د قرآن او حديث دليل نه پس عقلي دليل دا دی چې د ښځو د وتلو سره دوي په فتنه کې د واقع کيدو خطره ده ، په متن کې د منع مسئله يې عامه ذکر کړي ده لهذا دا حکم ځواني او بوډئ ټولو ښځو ته شامل دی همدارنګې د ورځې او د شپې په مونځونو کې هيڅ فرق نشته (ټول منع دی) .

مصنف په کافي کتاب کې ليکلي دي چې نن سبا د کراهت دا فتوي د ټولو مونځونو د پاره ده ځکه چې شر او فساد ښکاره شوې دی ، او چې کله د مونځ د پاره مسجد ته حاضريدل مکروه دی نو د وعظ مجالسو کې حاضريدل بطريق اولی مکروه دی خصوصاً د هغه جاهلانو د وعظ مجلس ته تلل چې د علماو په جبو او قبو او ددوي په دستار او لباس کې ځان پټ کړي او راشي ، فخر الاسلام علي بزدوي رحمه الله دا ذکر کړي دي .

په فتح القدير کې يې ليکلي دي چې احتياط په دې کې دی چې په ټولو مونځونو کې د هر قسم ښځو مسجد ته راتلل منع دی او هغه بوډۍ هم نه شي تللې چې زيب او زينت کوي او د سړو د پاره قابلې د نظر او التفات وي .

ددې عبارت نه معلومه شوه چې د ښځو په چيلو کې وتل ، ګشت لګول او په محلو او لرې علاقو ته تلل مکروه او ممنوع دی ، همدارنګې د ښځو د مدرسو چې کوم طوفان را الوتي دي دا هم د خطرو نه خالي نه دي اګر چې ددې ثبوت په نبوي دور کې ملاويږي ليکن د نبي کريم ﷺ مبارک دور په دې اوسني پُر فتن دور باندې قياس کول د هغه مخکني دور بي ادبي او ګستاخي ده .

## زنانه چې خوشبو ولګوي نو بهر دې نه وځي

﴿٩﴾ وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَتْ : قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

زينب چې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه بي بي ده وايي چې حضور ﷺ مونږ ته وفرمايل : تاسو

«إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ فَلَا تَمَسَّ طِيباً». (رَوَاهُ مُسلم)[1].

کې څوک (زنانه) چې جومات ته ځي نو عطر دې نه لګوي.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُورًا

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل کومه زنانه چې خوشبو لګوي

فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ». (رَوَاهُ مُسلم)[2].

هغه دې مونږ سره د ماسخوتن مونځ کې نه يو ځای کېږي.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿۱۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ

ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي چې تاسو مه منع کوئ خپلې زنانه د

الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[3].

جومات نه مه منع کوئ خو کور د هغوي د پاره بهتر دی.

## د زنانه د پاره کور کې مونځ کول افضل دي

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم د زنانه مونځ کور کې د ننه کول، په

أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[4]

صحن کې کولو نه بهتر دی او کوټې کې مونځ کول د خلاص ميدان کې کولو نه بهتر دی.

**توضيح: حجرتها:** د کوټو مخې ته صحن ويل کېږي او بيت اطلاق کور باندې هم کېږي خو دلته کيدی شي برنده او دالان مراد وي. (المرقات ۳/۱۵۱).

**مخدعها:** مخدع د خدع نه دی ميم باندې فتحه او ضمه دواړه وي دهو کې ته ويل کېږي دلته د زنانه

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۲۸/۱ رقم الحديث ۱۴۲ ۴۴۳، والنسائي ۱۵۴/۸، رقم الحديث: ۵۱۲۹.

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۲۸/۱ رقم الحديث ۱۴۳ ۴۴۳، وأبو داود ۴۰۱/۴ رقم الحديث :۴۱۷۵.

(۳) أخرجه أبو داود في السنن ۳۸۲/۱ رقم الحديث : ۵۶۷ .

(۴) أخرجه أبو داود في السنن ۳۸۳/۱ رقم الحديث ۵۷۰.

هغه کوټنۍ مراد ده چې هغې کې خپل پټ سامان کېښودلی شي دې ته خدره هم ویل کېږي (المرقات ۳/۱۵۱).

لکه امرء القیس وایي:

و یوم دخلت الخدر خدر عنیزة فقالت لک الویلات انک مرجل

تقول وقد مال الغبیط بنامعا عقرت بعیري یا امرء القیس فانزل

ددې حدیث نه دا یو عجیب تعلیم حاصلیږي او هغه دا چې اکثرې ښځې مسجد ته ډیرې تږې ناست وي چې دوي مسجد ته لاړ شي او ثواب وګټي که چیرته ددوي نه پوښتنه وشي چې دا راته ووایه چې تاسې ته د مسجد ته د تللو شوق ولې دی؟ که چیرته ددې وجې نه دي چې د جمعې او مسجد ثواب حاصل شي نو هغه ثواب خو کور کې هم درته ملاویږي بلکې ددې نه یو څه بهتره ملاویږي، او که چیرته مسجد ته د تللو شوق د بلې وجې نه دی نو هغه هم لږ راته په شوق ووایه چې په دې باندې عور وشي.

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ حِبِّي أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| ابوهریره رضی الله عنه راوي دی وایي چې ما د خپل محبوب ابوالقاسم صلی الله علیه وسلم نه دا واوریدل چې د هغه |
| «لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ امْرَأَةٍ تَطَيَّبَتْ لِلْمَسْجِدِ حَتَّى تَغْتَسِلَ |
| زنانه مونځ نه قبلیږي چې جومات ته تللو سره عطر لګوي او که لګولی یې وي، نو غسل دې وکړي لکه |
| غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وروى أحمد، وَالنَّسَائِيُّ نحوه)[1] |
| څنګه چې ناپاکۍ د پاره کولی شي. |

## پر دیو سړو ته عطر بوئ کولو والا زنانه بدکاره ده

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ وَإِنَّ |
| د ابوموسی رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چې هره سترګه زناکاره ده او که |
| الْمَرْأَةَ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ |
| زنانه عطر ولګوي او په مجلس باندې تیره شي او مقصد یې دا وي چې زما طرف ته خلک وګوري دغه |

[1] أخرجه أبو داود في السنن ۴/۴۰۱ رقم الحديث ۴۱۷۴

فَهِيَ كَذَا وَكَذَا» . يَعْنِي زَانِيَةً . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ ، وَلِأَبِي دَاوُد ، وَالنَّسَائِيِّ نَحوه)(1).

زنانه داسي او داسي ده يعني زانيه ده.

## په منافقانو باندې کوم مونځ بوج دی

﴿١٥﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا الصُّبْحَ فَلَمَّا سَلَّمَ

ابي بن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ورځ مونږ ته د سحر مونځ وکړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام سلام

قَالَ : « أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟ » قَالُوا : لَا. قَالَ : « أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟» قَالُوا : لَا.

واړولو نو وې فرمايل چې فلانی کس حاضر دی صحابو عرض وکړو چې نه ،دوه ځلې يې وفرمايل دې نه

قَالَ : « إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِينَ وَ لَو

پس نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل ټولو مونځونو کې دا دواړه مونځونه په منافقانو باندې ګران وي که تاسو ته

تَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا لَأَتَيْتُمُوهمَا وَ لَو حَبْوًا عَلَى الرُّكَبِ وَ إِنَّ الصَّفَّ الْأَوَّلَ عَلَى

پته ولګي چې ددې دواړو څومره ثواب دی تاسو به په ځيور اېنګلو سره راتلئ اول صف د فرښتو د صف په

مِثْلِ صَفِّ الْمَلَائِكَةِ وَ لَو عَلِمْتُمْ مَا فَضِيلَتُهُ لَابْتَدَرْتُمُوهُ

شان دی که ددې فضيلت معلوم شونو ددې د پاره به په جلتی سره راتلو کې کوشش کوئ د ځان له مونځ کولو

وَإِن صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ وَصَلَاتَهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ

نه دويم کس سره مونځ کولو ثواب ډير دی د دوو کسانو سره مونځ د يو کس سره د کولو نه ډير ثواب لري

وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللهِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد ، وَالنَّسَائِيُّ)(2).

څومره چې کسان زيات وي الله تعالی ته ډير محبوب وي.

**توضيح:** د منافقانو هر عمل د ريا د پاره وي د سحر او ماسخوتن کې محنت ډير وي يو د خوب نه پاڅيدل وي او دويم کې د خوب نه منع کول وي منافق د ا خلاص نه خالي وي او ناراستي نه ډک وي چې د منافق محبوب به سرمايه وي. لوحبوا: په زنګونانو باندې تللو ته ويلی شي. (المرقات ۳/۱۵۳).

---

(1) أخرجه أبو داود في السنن ٤/٤٠٠ رقم الحديث ، ٤١٧٣ ، وأخرجه الترمذي في السنن ٥/٩٨، رقم الحديث ٢٧٨٦.

(2) أخرجه أبو داود في السنن ١/٣٧٥ رقم الحديث : ٥٥٤ .

## په کلي او ځنګل کې هم مونځ په جماعت سره کوئ

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ ثَلَاثَةٍ فِي قَرْيَةٍ وَلَا بَدْوٍ
ابو درداء رضی الله عنه راوي دی وایي حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي کوم کلي او ځنګل کې چې درې سړي وي
لَا تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلَاةُ إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ
او جماعت سره مونځ نه کوي دوي باندې شیطان غالب کېږي تاسو جماعت په ځان باندې لازم کړئ هغه
فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُد، وَالنَّسَائِيُّ[1].
چیلۍ شرمخ خوري کوم چې د چیلو د کنډک نه جدا شي.

**توضیح: في قرية**: که کلي کې درې سړي وي هغوي ته په کار دي چې یو امام او دوه مقتدیان شي. جمعه دې وکړي چې د جمعې ثواب حاصل شي او د مسلمانانو د اجتماعیت شان هم باقي وي ترڅو چې باقي وې شیطان نه به بچ وي لکه څنګه چې چیلو کنډک کې شرمخ نه شي ورتللی او جرات نه شي کولی خو چې ځان له وي شرمخ یې خوري همدارنګې د جمعې نه یواځې مونځ کوونکي به یو ورځ د شیطان په قابو کې راځي او خوري به یې. (المرقات ۳/۱۵۵).

**استحوذ**: دا د غلبې او قابو په معنی سره دی.

**القاصية** کنډک نه ځان له چیلۍ ته قاصیه ویل کېږي ددې حدیث او وروستني حدیث نه وجوب معلومیږي. (المرقات ۳/۱۵۵).

﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ سَمِعَ الْمُنَادِي
ابن عباس رضی الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي څوک چې د مؤذن آواز واوري او د
فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنِ اتِّبَاعِهِ عُذْرٌ» قَالُوا
مؤذن د تابعداری نه یې (یعني جماعت کې شریک کیدو نه) څه عذر نه منع نه کړي خلکو تپوس وکړو
وَمَا الْعُذْرُ؟ قَالَ: «خَوْفٌ أَوْ مَرَضٌ لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلَاةُ الَّتِي صَلَّى» رَوَاهُ أَبُو دَاوُد، وَالدَّارَقُطْنِيُّ[2].
عذر څه دی هغه وویل د ښمن نه ویریدل یا بیماری، د وجې نه مونځ بغیر د جماعت نه وکړي نه قبلیږي.

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۷۱ رقم الحديث: ۵۴۷.
(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۷۳ رقم الحديث: ۵۵۱، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۶۰ رقم الحديث: ۷۹۳.

## كه تش اودس ماتې تيزوي نو اول ځان فارغول په كار دي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ |
| عبد الله ابن ارقم رضي الله عنه وايي چې ما د حضور صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې كله اودريږي مونځ او |
| وَوَجَدَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَرَوَى مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ نَحوه[1]. |
| چاته وروكى حاجت وي هغه ته په كار دي چې اول وروكى اودس ماتى وكړي (اګرچې جماعت ترک شي) |

## پيش امام ته عامه دعاء كول په كار دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ثَلَاثٌ |
| حضرت ثوبان رضي الله عنه راوي دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي چې درې څيزونه داسې دي چې |
| لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَفْعَلَهُنَّ: لَا يَؤُمَّنَّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ |
| دهغې كول چاته حلال نه دي اول داچې څوک ديو جماعت امام جوړشي اودعاكې جماعت شريک كولو |
| دُونَهُمْ فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ. وَلَا يَنْظُرْ فِي قَعْرِ بَيْتٍ |
| نه بغير خپل ځان مخصوص كړي كه دايې وكړل نو خيانت يې وكړو دويم داچې نظرمه كوئ دچاپه كوركې |
| قَبْلَ أَنْ يَسْتَأْذِنَ فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ |
| بغير داجازت نه كه داسې چا وكړل نو دكوروالاسره يې خيانت وكړو دريم داچې څوک په داسې حالت كې |
| وَلَا يُصَلِّ وَ هُوَ حَقِنٌ حَتّٰى يَتَخَفَّفَ ". (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، والترمذي نحوه)[2]. |
| مونځ نه كوي چې وروكى يا لوى اودس ماتى ورته، تيز ورغلى وي تردې چې هغه سپک كړي. |

**توضيح: فيخص نفسه:** يعنې قوم پريږدي او امام خپل ځان له دعا اوغواړي او خلک امين وايي دا عمل د امام غلط دى.

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۶۸/۱ رقم الحديث ۸۸، وأخرجه الترمذي في السنن ۱ ۲۶۲، رقم الحديث ۱۴۲، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۰۲/۱ رقم الحديث ۶۱۶

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۷۰/۱ رقم الحديث ۹۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۲ ۱۸۹، رقم الحديث: ۳۵۷، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۹۸/۱ رقم الحديث: ۹۲۳.

**سوال:** حضور ﷺ حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه ته دعاګانې ليکلي او ښودلي يي هغه د منفرد او د خپل نفس سره خاص وي او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه غوښتلي دلته څنګه حضور ﷺ نفي فرمايلې؟

**جواب:** تخصيص دا ممانعت د قنوت نازله په دعاء کې دی د عامې دعا مسئله نه ده. دويم جواب دا دی چې دا نهي د هغې دعا په وخت کې ده چې د اجابت دعا وخت وي خلک صرف امين وايي او امام صاحب د منفرد صيغې استعمالوي دا د قوم سره خيانت دی.

صاحب د التعليق الفصيح ليکي کوم ماثوره دعاګانو کې چې مقتدي په امام باندې اعتماد نه کوي، نو په خپله دې هم وايي لکه د تشهد دعاګانې مقتدي هم وايي او امام يې هم وايي په داسې صورت کې امام صاحب منفرد صيغه استعمالولی شي او کوم ځای کې چې مقتدي امين وايي بيا دې امام عامې صيغې استعمال کړي خپل نفس دې نه خاص کوي.

## مونځ د څه وجې نه مه مؤخر کوئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « لَا تُؤَخِّرُوا الصَّلَاةَ |
| د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې : حضور ﷺ فرمايي مه وروسته کوئ مونځ د |
| لِطَعَامٍ وَلَا لِغَيْرِهِ» (رَوَاهُ فِي شرح السنة)[1]. |
| ډوډۍ د پاره يا د بل څه وجې نه . |

**توضيح:** دې حديث نه مخکې حديث نمبر(٦) سره تعارض دی هغې کې دی چې د خوراک د وجې نه مونځ کې تاخير کولی شي او دې حديث کې دي چې د څه وجې نه تاخير نه شي کولی ددې جواب دا دی چې په زير بحث حديث تعلق دې صورت سره دی چې کله د مونځ وخت ختميږي يا مؤخر کول صحيح نه دي او د حديث نمبر(٦) تعلق دې صورت سره دی چې وخت کې وسعت وي نو مونځ وروسته کولی شي يعنې عذر او بغير عذر احوالو باندې دواړه حديثونه محمول دي. (المرقات ۳/۱۵۸).

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ٤ ١٣٥ رقم الحديث ٣٧٥٨

۲۲ ربیع الثاني ۱٤۱۰هـ

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

## مونځ د جمعې سره کولو ترغیب

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : لَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنِ الصَّلَاةِ إِلَّا |
| عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وايي مونږ وليدو چې د جماعت نه صرف هغه منافق خلک وروسته کيدل د |
| مُنَافِقٌ قَدْ عُلِمَ نِفَاقُهُ أَوْ مَرِيضٌ إِنْ كَانَ الْمَرِيضُ لَيَمْشِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ |
| کوم چې نفاق معلوم شوی وو يا به هغه بيمار وروسته کيدو کوم بيمار چې به د دوو کسانو په مينځ کې تللی |
| حَتّٰى يَأْتِيَ الصَّلَاةَ وَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَّمَنَا سُنَنَ الْهُدٰى |
| شو هغه به هم راتلو عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه وويل چې حضور صلی الله علیه وسلم مونږ ته: هدايت لارې ښودلي |
| وَ إِنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى الصَّلَاةُ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِيْ يُؤَذَّنُ فِيهِ . وَ فِيْ |
| وې او د هدايت د لارو نه يوه لاره داده چې يو جومات کې مونځ کول دي کوم کې چې آذان کولی شي، او يو |
| رِوَايَةٍ : " مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَلْقَى |
| بل روايت کې دي ابن مسعود رضي الله عنه وايي کوم کس د پاره چې دا خبره د خوشحالۍ وي چې ملاقات کوي |
| اللهَ غَدًا مُسْلِمًا فَلْيُحَافِظْ عَلٰى هٰؤُلَاءِ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ |
| د الله تعالی سره سبا ورځ د کامل مسلمان په حيثيت هغه ته په کار دي چې حفاظت وکړي د دې پنځو مونځونو |
| حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ فَإِنَّ اللهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ |
| په هغه ځای کې کوم ځای کې چې آذان وي ځکه چې الله تعالی مقرر کړي دي ستاسو نبي صلی الله علیه وسلم د پاره |
| سُنَنَ الْهُدٰى وَ إِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى وَ لَوْ أَنَّكُمْ |
| لارې د هدايت او پنځه مونځونه د جماعت سره کول هم د هدايت د طريقو نه يوه طريقه ده که تاسو خپل |
| صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ كَمَا يُصَلِّي هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ فِي بَيْتِهِ |
| مونځونه کورونو کې کوئ لکه څنګه چې وروسته پاتې کيدونکو (يعني منافق) به مونځ کولو نو په دې شئ |
| لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ وَ لَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ |
| تاسو به د خپل نبي صلی الله علیه وسلم سنت پرېښودونکي وئ او که د خپل نبی صلی الله علیه وسلم سنت پرېږدئ تاسو |

لَضَلَلْتُمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُورَ ثُمَّ يَعْمِدُ إِلَى مَسْجِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ

به گمراه شئ او کوم کس چې ځان صفا کړي او ښه طريقې سره اودس وکړي بيا جوماتونو نه يو جومات کې

إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا حَسَنَةً وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً و يحط عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً

مونځ وکړي دده په هر يو قدم باندې يوه نيکي ليکلې کېږي او يوه درجه يې اوچتيږي او يوه بدي دده نه لرې

وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ مَعْلُومُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتَى بِهِ

کېږي مونږ وکتل ښکاره منافق نه علاوه به بل کس د جماعت نه نه وروسته کيدو تردې چې بيمار کس به

يُهَادَى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتَّى يُقَامَ فِي الصَّفِّ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1].

د ضعف د وجې نه به د دوو کسانو په مدد سره جماعت ته راوستلی شو او صف کې به ودرولی شو.

**توضيح:** سنن الهدى: يعنې د هدايت طريقې او هغه سنت چې باعث د هدايت دي (المرقات ۳/۱۵۹).

ياد ساتئ چې د حضور ﷺ مسنون افعال اعمال دوه قسمه دي يو قسم هغه افعال دي چې حضور ﷺ په طريقې د عبادت کولو او دويم هغه افعال دي چې حضور ﷺ به دعادت په طريقې باندې کول کوم اعمال مسنونه چې په طريقه د عبادت خپل کړي وو هغې ته سنن هدى ويل کېږي او دغه سنت مؤکده دي او کوم چې په طريقې د عادت دي هغې ته سنن زوائد ويل کېږي د مستحب د قبيلې نه دي. د قسم اول مثال د سحر، ماسپخين، مابنام او ماسخوتن مونځونو نه مخکې او وروسته دولس رکعته سنت دي او د قسم ثاني مثال لکه د حضور ﷺ کپړې، خوراک او څښاک وغيره. سنن زوائدو باندې د عمل ثواب هله ملاويږي چې د حضور ﷺ د اتباع نيت او کړی که نيت يې نه وي ثواب نه ملاويږي لکه بعضې قومونو پټکی د رواج د وجې نه دی نه د نيت د اتباع د رسول الله ﷺ.

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَوْلَا مَا فِي الْبُيُوتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ

ابو هريره رضي الله عنه روايت کوي چې حضور ﷺ فرمايي که کورونو کې زنانه او ماشومان نه وي

أَقَمْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ وَأَمَرْتُ فِتْيَانِي يُحْرِقُونَ مَا فِي الْبُيُوتِ بِالنَّارِ. (رَوَاهُ أَحْمَد)[2].

نو ما به د ماسخوتن مونځ قائم کړي وي او خادمانو ته به مې حکم ورکړي وي چې کورونو کې په اور کې وسوزوئ

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۵۳ رقم الحديث ۲۵۶ ۶۵۴، وأخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۷۳ رقم الحديث ۵۵۰.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۶۷.

## د آذان نه پس جومات نه وتل منع دي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " إِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ |
| ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته حکم کړی وو چې تاسو جومات کې موجود يئ |
| فَنُودِيَ بِالصَّلَاةِ فَلَا يَخْرُجْ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُصَلِّيَ. (رَوَاهُ أَحْمد)[۱]. |
| او مونځ د پاره آذان اوکړی شي، نو مونځ کولو نه بغير جومات نه مه وځئ. |

**توضیح: فلايخرج:** آذان په وخت کې د سړي د ځای اعتبار شته داخل د مسجد او خارج د مسجد کې فرق شته کوم کس چې د مسجد نه خارج وي هغه د پاره وعيدات نشته او که مسجد کې داخل وي او آذان وشي اوس وتل مکروه دي ځکه چې دا صورت اعراض عن الجماعة دی کوم چې موجب د تهمت دی که مسجد د بریلویانو او اهل بدعت والا وي هغې نه هم وتل صحيح نه دي، بلکې د هغوي سره مونځ وکړئ يا د مونځ اعاده وکړئ فتاوى رشيديه کې يې ليکلي د ارادې سره د اهل بدعاتو مسجد ته تلل نه دي په کار که څوک په غلطۍ سره د بریلویانو مسجد ته لاړو يا دې هلته مونځ وکړي او دوباره دې اعاده وکړي. تبليغ والا په دې مسئله کې دوه غلطي کوي: يو دا چې په ارادې سره د اهل بدعتو مسجدونو ته ځي او دوي پسې مونځ کوي او دوباره دا مونځ نه راګرځوي، دوهمه غلطي دا کوي چې دا غلطه طريقه اصلاح او ترويج د دين لاره ګڼي اګر که واقعتا اصلاح هم وي نو بيا هم ځي مګر دا طريقه غلطه ده، بهر حال هغه انسان د مسجد نه د آذان نه پس وځي چې دده په ذمه باندې د بل مسجد انتظام وي يا هلته امام وي يا هلته د درس پروګرام يې وي يا دده د وجې نه د عوام د کثرت ذريعه وي يا ددې نه غير بل ضروري کار وي يا د يو څه وخت د پاره ووځي او واپس راځي دا عذرونه دي، دې نه بغير وتل موجب د عملي نفاق دي لکه څنګه چې راروان دي. (المرقات ۳/۱۶۲).

| |
|---|
| ﴿۲٤﴾ وَ عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ : خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا أُذِّنَ فِيهِ |
| د ابو الشعثاء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: د آذان کولو نه پس يو کس د جومات نه ووتلو، حضرت |
| فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[۲]. |
| ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل دې کس د ابو القاسم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نافرماني وکړه. |

---

(۱) احمد في المسند ۲/۵۳۷.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۴۵۳ رقم الحديث . ۲۵۸-۶۵۵، وأخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۶۶ رقم الحديث : ۵۳۶ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۹۷، رقم الحديث : ۲۰۴.

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ

د حضرت عثمان رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي کوم کس چې

أَدْرَكَهُ الْأَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ وَهُوَ لَا يُرِيدُ الرَّجْعَةَ

جومات کې وي او آذان وشي او بغیر د ضرورت نه د جومات نه وځي او د واپس راتلو اراده یې هم نه وي

فَهُوَ مُنَافِقٌ». (رَوَاهُ ابن مَاجَه)[1].

نو دا کس منافق دی.

## قول او عمل سره د آذان جواب ورکول لازم دي

﴿۲۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْهُ

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چاچې آذان واوریدو او جواب یې ورنه

فَلَا صَلَاةَ لَهُ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ». (رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ)[2].

کړو، نو دده مونځ (کامل او یا نه قبلیږي) مګر د څه عذر د وجې نه داسې وشو څه باک نشته.

**توضیح:** د اجابت آذان دوه طریقې دي یوه طریقه ژبې سره ده چې د کلماتو د آذان جواب ورکړی شي.

دویمه طریقه د اجابت عملي ده چې مؤذن داسې ووايي **حي على الصلوة** او اوریدونکی لاړشي، علماء وايي چې څوک اجابت عملي کوي نو په اجابت قولي نه کولو باندې په ده څه وعید نشته یا څوک جومات کې ناست وي او تلاوت کوي او د آذان جواب ورنه کړي دا کس وعید کې نه راځي، ځکه چې دا د مخکې نه موجود دی او یو کس نه په ژبې سره جواب ورکړي او نه جومات ته د راتلو سره مونځ وکړي، بلکې کور کې مونځ وکړي دده مونځ مقبول نه دی او څوک چې بالکل مونځ نه کوي دغه لوی بدبخته دی. (المرقات ۳/۱۶۳).

﴿۲۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الْمَدِينَةَ كَثِيرَةُ الْهَوَامِّ وَالسِّبَاعِ

عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه وايي چې ما عرض وکړو چې یارسول الله! مدینه کې خطرناک ځناور زیات دي

وَأَنَا ضَرِيرُ الْبَصَرِ فَهَلْ تَجِدُ لِي مِنْ رُخْصَةٍ؟

او زه ړوند یم آیا تاسو ماته اجازت راکوئ چې زه جومات ته نه راځم او خپل مونځ په کور کې کوم نبي

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۲۴۲ رقم الحديث ۷۳۴

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۲۵۹ رقم الحديث ۷۹۳

| |
|---|
| قَالَ : « هَلْ تَسْمَعُ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ؟ » قَالَ : نَعَمْ . |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام اوريې ما عرض وکړو چې آو ، وفرمایل چې ته حي على الصلاه حي على الفلاح عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام |
| قَالَ : «فَحَيَّهَلًا» وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ.[1] |
| وفرمایل بیا جومات ته راځه او جومات ته د نه راتلو اجازت يې ورنه کړو. |
| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ : دَخَلَ عَلَيَّ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَ هُوَ مُغْضَبٌ فَقُلْتُ : |
| ام درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي (يو ورځ زما خاوند) ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما خوا ته د غوسې نه ډک راغی ما تپوس وکړو |
| مَا أَغْضَبَكَ ؟ قَالَ : وَ اللهِ مَا أَعْرِفُ مِنْ أَمْرِ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ شَيْئًا إِلَّا |
| کوم څيز ته غوسه کړې هغه وويل په الله قسم د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په امت کې يو څيز هم نه ګورم خو |
| أَنَّهُمْ يُصَلُّونَ جَمِيعًا . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[2]. |
| صرف دا خبره پيژنم چې هغوي صرف د جمعې سره مونځ کوي. |

**توضيح: هو مغضب:** دا داسم مفعول صیغه ده يعنې د غوسې نه ډک وو يعنې چا په غوسه کې اچولی وو د ام درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د سوال په جواب کې چې ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه وويل نو شارحين وايي دا اصل کې د سوال جواب نه جوړيږي بيا شارحينو قسم قسم جوابونه کړي دي بعضو تردې پورې ويلي دي چې ابو درداء جواب ورکړی نه دی، لکه لمعات کې دي .(اشعة اللمعات ۱/۵۰۰).

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ يوه توجيه کړې ده او ټولو ورته بنه ويلي ده هغه دا : **اى اغضبنى الامور المنكرة المحدثة في امة محمد رأني والله ما اعرف من أمرهم شيئا على الجادة الا انهم يصلون جميعا فيكون الجواب محذوفا والمذكور دليل الجواب) (المرقات ٣/١٦٤)** يعنې زه دې څيز غوسه کړې يم چې امت محمديه کې قسما قسم منکرات او بدعات پيدا شو اوس يو څيز هم په خپل حالت کې پاتې نه شو ها صرف جمعې سره مونځ کول دغه څيز باقي دی چې خپل اعتدال باندې دی اوس هغه هم رخصت کيږي.

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۷۵ رقم الحديث : ۵۵۳

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۱۳۷ ، رقم الحديث ۶۵۰ ، وأحمد في المسند ۶/۴۴۳.

## د سحر مونځ جماعت سره کول د ټولې شپې تهجد کولو نه بهتر دی

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ: إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقَدَ سُلَيْمَانَ بْنَ أَبِي حَثْمَةَ

ابوبکر بن سلیمان بن ابی حثمه رضي الله عنه وایي چې عمر فاروق رضي الله عنه ونه موندو سلیمان بن ابي حثمة د

فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ وَإِنَّ عُمَرَ غَدَا إِلَى السُّوقِ وَمَسْكَنُ سُلَيْمَانَ بَيْنَ الْمَسْجِدِ وَالسُّوقِ

سحر مونځ کې عمر رضي الله عنه چې کله سحر بازار ته لاړو نو د سلیمان کور د بازار او جومات په منځ کې وو،

فَمَرَّ عَلَى الشِّفَاءِ أُمِّ سُلَيْمَانَ فَقَالَ لَهَا لَمْ أَرَ سُلَيْمَانَ فِي الصُّبْحِ

ځکه هغه د سلیمان مور شفاء خوا ته لاړو او هغې نه یې تپوس وکړو نن یې سلیمان د سحر مونځ کې ونه لیدو

فَقَالَتْ إِنَّهُ بَاتَ يُصَلِّي فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ

مور یې ورته وویل سلیمان نن ټوله شپه مونځ کې تیره کړې ده او سحر ته یې سترګې پټې شوې، حضرت

فَقَالَ عُمَرُ لَأَنْ أَشْهَدَ صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي الْجَمَاعَةِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَقُومَ لَيْلَةً. (رَوَاهُ مَالِك)[1].

عمر رضي الله عنه ورته وفرمایل: چې زه د سحر مونځ جماعت سره کول د ټولې شپې د عبادت نه بهتر ګڼم.

**توضیح**: حضرت عمر رضي الله عنه د وخت خلیفه ؤ او سلیمان یو صحابي ؤ حضرت عمر رضي الله عنه دیني معامله کې د مونځ په باره کې د خپلو ملګرو نګراني کوله د صحابو دومره لوی جماعت کې د یو صحابي غیر حاضري محسوس کړه بیا بازار کې د مور نه ورله تپوس وکړو ما نن سلیمان په سحر مونځ کې ونه لیدلو خیر خو وو؟ مور یې ورته جواب کې فرمایي هغه نن ټوله شپه تهجد مونځ کړی دی سحرپې سترګې پټې کړې یعني د عمر رضي الله عنه په نزد د جماعت ډیر اهمیت دی او فرمایي ما ته د جمعې سره مونځ کول د ټولې شپې د تهجدو نه خوښ دی، سبحان الله څومره دیني ماحول دی؟ (المرقات ۳/۱۶۵).

## دوه کسانو په منځ کې جماعت جائز دی

﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اثْنَانِ

د ابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل که دوه کسان وي یا د

فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه)[2].

دوو نه ډیر وي دې سره جماعت کېږي.

(۱) أخرجه مالک في الموطا ۱۳۱/۱ رقم الحدیث ۷ من کتاب صلاة الجماعة.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۳۱۲/۱ رقم الحدیث: ۹۷۲.

**توضیح**: مطلب دا دی جماعت د صحت د پاره دا ضروري ده چې ډیر تعداد کې خلک جمع وي یا کم از کم درې کسان ضروري دي داسې معامله نه ده بلکې د دوو کسانو جماعت هم صحیح دی یو امام جوړ شي او بل مقتدي خو مقتدي به د امام ښي طرف ته ودریږي. (المرقات ۳/۱۶۵).

## د حضرت ابن عمر او د هغه د ځوی خفګان

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ بِلَالِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت بلال بن عبد الله بن عمر د خپل پلار نه روایت کوي وایي چې حضور ﷺ فرمایلي چې |
| « لَا تَمْنَعُوا النِّسَاءَ حُظُوظَهُنَّ مِنَ الْمَسَاجِدِ إِذَا اسْتَأْذَنَّكُمْ » . فَقَالَ بِلَالٌ: |
| زنانه جوماتونه د تلو اجازت وغواړي تاسو هغوي د جومات د حصې نه محرومه کوئ مه، بلال وویل: |
| وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ . فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ: أَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په الله قسم! موږ به یې ضرور منع کوو حضرت عبد الله بلال ته وویل زه چې څه وایم دا نبي علیه السلام وایي |
| وَتَقُولُ أَنْتَ لَنَمْنَعُهُنَّ . وَفِي رِوَايَةِ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: فَأَقْبَلَ |
| او ته وایي چې موږ به یې ضرور منع کوو. او یو بل روایت سالم د خپل پلار نه نقل کوي بیا متوجه شو |
| عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ فَسَبَّهُ سَبًّا مَا سَمِعْتُ سَبَّهُ مِثْلَهُ قَطُّ |
| عبد الله بلال طرف ته متوجه شو او هغه ته یې دومره بد وویل چې ترته هم د عبد الله د ژبې نه داسې بد نه وو |
| وَقَالَ: أُخْبِرُكَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقُولُ: وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ. (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]. |
| اوریدلي او بیا یې وویل زه وایم چې دا د حضور ارشاد دی او ته وایې چې موږ به یې ضرور منع کوو. |

**توضیح: والله لنمنعهن**: حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه د زنانو متعلق جوماتونه د تللو او هلته مونځ کولو حدیث ذکر کړو او بلال زنانه د جوماتونه منع کول، دې باندې د ابن عمر او بلال د دواړو تبادله داسې وشوه چې د حضرت بلال د کلام د حدیث د ظاهر سره داسې د معارضې صورت پیدا شو خو معارضه صورةً وه حقیقة بالکل نه وه ځکه چې بیا انکار حدیث راځي او دا د بلال نه تصور هم نه پیدا کېږي. بهر حال ابن عمر په دغه صورې منازعې د خپل ځوی نه ناراضه شو او خپل ځوی ته یې داسې وویل چې زه به تول عمر تا سره خبرې نه کوم. (المرقات ۳/۱۶۶).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۳۲۸/۱ ، رقم الحديث : ۱۴-۴۴۲، وأخرجه أبو داود في السنن ۳۸۲/۱ رقم الحديث : ۵۶۶.

اوس د دې ورځو پورې خبرې نه کول دنياوي اغراضو د وجې نه حرام دي او ديني غيرت د وجې نه جائز دي او دې واقعې معلومات چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وشو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې الله تعالى دې په ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې رحم وکړي، او بلال صحيح خبره کوي که نن سبا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وى، نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په خپله زنانه جومات ته د تللو نه منع کولى، او راتلونکي حديث کې هم دا صورت مذکور دى تفصيل دې نه مخکې حديث نمبر (۸) کې تير شوى دى.

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «لَا يَمْنَعَنَّ |
| مجاهد د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي :نه دې منع کوي |
| رَجُلٌ أَهْلَهُ أَنْ يَأْتُوا الْمَسَاجِدَ» . فَقَالَ ابْنٌ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ : فَإِنَّا لَنَمْنَعُهُنَّ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: |
| هيڅ يو کس خپل اهل د جوماتو نه ، د عبد الله يو ځوی بلال وويل مونږ خو به يې منع کوو نو وويل عبد الله |
| أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ تَقُولُ هٰذَا ؟ قَالَ : |
| بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته زه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث ذکر کوم او ته دا وايې، د راوي بيان دى دې نه |
| فَمَا كَلَّمَهُ عَبْدُ اللهِ حَتّٰى مَاتَ . (رَوَاهُ أَحمد)[1]. |
| پس ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځوى سره تول عمر خبرې نه وې کړې تردې چې وفات شو. |



(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۳٦.

# بَاب تَسْوِيَةِ الصَّفّ:

قال الله تعالى: ﴿وَالصَّافَّاتِ صَفًّا ١ فَالزَّاجِرَاتِ زَجْرًا ٢ فَالتَّالِيَاتِ ذِكْرًا﴾ (الصافات آيت: ١-٣)

د مانځه د صفونو متعلق پنځه اهم مسائل دي چې ټولو مسائلو د پاره بنيادي حيثيت لري.

(١) صف بالكل سيدها وي چې دې سره تير سيدها كړى. (٢) صفونو كې تلاصق او تلازق وي يعنې داسې ودريدل چې شيطان د پاره په كې د وتو لار نه وي. (٣) پش امام په داسې ځاى ودريدل چې دواړو طرف ته مقتديان برابر وي. (۴) د اولنې صف مكمل كيدو نه پس دويم بيا دريم بيا څلورم الى آخره صفونه جوړول. (۵) صفونه داسې مقدار سره وي چې منځ كې د سجدې مقدار هومره ځاى وي. دې قاعدې باندې د فقهاو څه مسائل بناء دي. د فقهاو دې باندې اتفاق دى كه صفونو مينځ كې نهر يا سړك نه وي دا متصل دي امامت او جماعت صحيح دى او كه سړك يا نهر وغيره وي نو د امام مالك او امام شافعي رَحِمَهُمَااللهُ په نزد دا اقتداء صحيح ده، امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دا اقتداء صحيح نه ده كه امام مسجد كې وي او مقتدي نزدې كور كې ولاړ وي خو مينځ كې داسې څيز حائل وي چې امام په نظر نه راځي او امام نه وروسته صفونه هم په نظر نه راځي. جمهور فرمايي چې دا اقتداء صحيح نه ده خو د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول دا دى چې دا اقتداء صحيح ده اگر چې د جمهورو په نزد د بُعد او قُرب اعتبار كوي حائل اعتبار نه كوي مونځ كې صفونه نيغول سنت مؤكده دي بعضو ورته واجب ويلي، ځكه چې صفونه نه نيغولو باندې دير وعيدات احاديثو كې راغلي دي، دا د وجوب دليل دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَول:

## د صف د نيغولو حكم

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا حَتَّى كَأَنَّمَا |
| د حضرت ابن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ صفونه به نيغول گويا چې |
| يُسَوِّي بِهَا الْقِدَاحَ حَتَّى رَأَى أَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ |
| تير به هم ددې صف سره نيغولى شو، تردې چې مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه د صفونو د نيغولو اهميت زده كړو. |
| ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا فَقَامَ حَتَّى كَادَ أَنْ يُكَبِّرَ فَرَأَى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهُ مِنَ الصَّفِّ |
| يوورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَام تشريف راوړو او اودريدو تكبير كولو والا وو چې د يو كس سينه د صف نه لږه بهر وه |
| فَقَالَ: «عِبَادَ اللهِ لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل اى د الله تعالى بندگانو! خپل صفونه نيغ كړئ |

أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ ».[1]

ګيني الله تعالی به ستاسو منځ کې اختلاف واچوي.

**توضيح: القداح:** قداح تير او نيزې ته ويل کيږي عرب خلکو به تير او نيزې نيغولو کې کوشش کوو په دې کې چې لږ هم کوږ والی وي نو نښانه به پرې صحيح نه لګي، ځکه به دوی د نورو ځيزونو تشبيه تير او نيزې سره ورکوله، دلته دا مبالغه بيانوي چې حضور ﷺ به صفونه داسې سيده کړل چې تير به د دې سره نيغولی شو. (المرقات ۳/۱۶۹)

**قدعقلناعنه:** يعني حضور ﷺ ته اندازه وشوه چې مونږ د حضور ﷺ نه د صفونو د هموار او سيدها کولو مسئله زده کړه.

**او ليخالفن الله:** علامه مظهري وايي چې ظاهري ادب د باطني ادب او منلو علامت دی که تاسو صفونو کې غلط ودريږئ ظاهري اطاعت نشئ کولی، نو ظاهري نافرماني به تاسو باطني نافرمانی ته ورسوي يعنې زړونو پورې اختلاف ورسيږي (المرقات ۳/۱۶۹).
د دې انجام به دا وي چې يا خپل مينځ کې عداوت او کينه او بغض پيدا شي دې وجې نه په زړونو کې اختلاف راشي او د زړونو د اختلاف نتيجه دا ده چې يو بل سره به اعراض او انقباض شروع شي. د دې زير بحث حديث کې د دغه پس منظر بيان شوی دی.(المرقات ۳/۱۷۰).

﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَجْهِهِ

انس رضي الله عنه وايي چې مونځ او دريدو حضور ﷺ خپل مخ مبارک زمونږ طرف ته متوجه کړو او

فَقَالَ: «أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ وَتَرَاصُّوا فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي» (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ

وې فرمايل خپل صفونه نيغ کړئ او يو بل سره يو ځای او دريږئ زه شاته هم تاسو وينم. او د بخاری او مسلم

قَالَ: « أَتِمُّوا الصُّفُوفَ فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي ».[2]

دواړو روايت دا دی (حضور ﷺ فرمايي) صفونه پورا کوئ زه تاسو د شاته نه هم وينم.

**توضيح: تراصوا:** جوخت جوخت صف جوړولو ته تراصوا ويلی شي. (المرقات ۳/۱۷۰).

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۰۶،رقم الحديث ۷۱۷، ومسلم في الصحيح ۱/۳۲۴ رقم الحديث ۱۲۸-۴۳۶، وأبو داود ۱/۴۳۲ رقم الحديث ۶۶۳، والنسائي ۲/۸۹، رقم الحديث ۸۱۰

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۰۸،رقم الحديث ۷۱۹، ومسلم في الصحيح ۱/۳۲۴ رقم الحديث ۱۲۵-۴۳۴، والنسائي ۲/۹۲، رقم الحديث ۸۱۴

جلد 2 38

**فائي اراکم:** دې حديث باندې اول کلام شوی دی دا حالت دائمي نه دی بلکې مونځ کې د ننه انکشاف تام کيدو د وجې نه حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ته علم کيدو.

## صف برابر ساتل د مونځ دمکمل کيدو حصه ده

| |
|---|
| ﴿٣﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «سَوُّوا صُفُوفَكُمْ فَإِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوفِ |
| انس رَضِيَ اللّٰہُ عَنْہُ وايي چې حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو خپل صفونه برابر ساتئ ځکه چې صفونه برابر |
| من إِقَامَةِ الصَّلَاةِ » إِلَّا أَنَّ عِنْدَ مُسْلِمٍ: مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ. (متفق عليه)[1] |
| ساتل د مونځ د تکميل حصه ده. د مسلم روايت کې اقامة الصلوة په ځای من تمام الصلوة الفاظ دي. |

**توضيح:** په قرآن کريم کې ﴿أَقِيمُواْ الصَّلَاةَ﴾ يعني مونځ د ټولو آدابو سره قائم کولو حکم دی د مونځ آداب تعديل ارکان لحاظ ساتل او د سنتو او آدابو او مستحباتو خيال ساتل په کې داخل دي ددغه آدابو نه دې حديث کې د يو آدب طرف ته اشاره ده صفونه سيدها ساتئ ځکه صفونه سيده ساتل د مانځه د تکميل حصه ده دې حکم ﴿أَقِيمُواْ الصَّلَاةَ﴾ کې ورکړی شوی دی.

## د علم او پوهې خلک دې امام سره نزدې ولاړ وي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلَاةِ |
| ابو مسعود انصاري رَضِيَ اللّٰہُ عَنْہُ وايي چې حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ زمونږ په ولو باندې لاس کيښودو په مونځ کې |
| وَ يَقُولُ: « اسْتَوُوا وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ |
| او وې فرمايل چې برابر اوسئ مختلف مه کېږئ ګيني ستاسو په زړونو کې به اختلاف پيدا شي تاسو کې |
| لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُوا الْأَحْلَامِ وَ النُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ |
| چې کوم خلک عاقل او بالغ وي هغه زما سره نزدې کېږئ او بيا هغه خلک چې هغوي ته نزدې وي او بيا |
| ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ». قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ: فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ أَشَدُّ اخْتِلَافًا. (رواه مسلم)[2]. |
| هغه چې هغوي ته نزدې وي حضرت ابو مسعود رَضِيَ اللّٰہُ عَنْہُ وفرمايل نن تاسو کې اختلاف ډير دی. |

**توضيح:** يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا: د صف سيده کولو د يو کيفيت بيان کوي حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ چې څنګه ژبې

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٢٠٩/٢، رقم الحديث ٧٢٣، ومسلم في الصحيح ٣٢٤/١ رقم الحديث ١٢٤-٤٣٣

(٢) أخرجه مسلم ٣٢٣/١ رقم الحديث ١٢٢-٤٣٢، وأبو داود ٤٣٦/١ رقم الحديث ٦٧٤، والنسائي ٨٧/٢، رقم الحديث ٨٠٧

مبارکې سره ددې بیان کوي دغه شان عملي طور باندې به یې صفونه نیغول او زمونږ په ولو باندې به یې لاس کیخودل او صفونه به یې نیغول ددې وجه دا ده صف نیغولو د پاره ولو او ګیټو نیغول ضروري دي ددې ذکر راتلونکی حدیث دی. (المرقات ۳/۱۷۱).

**ولا تختلفوا**: یعنې صف کې برابر اوسئ چې د بدن حصه مخکې وروستو نه وي دې ظاهري افتراق نه به باطني افتراق بغض او عداوت او نفرت پیداشي تفصیل یې مخکې تیر شوی دی(المرقات ۳/۱۷۱)

**لیلني**: یعنې کوم خلک چې عاقل او بالغ وي مخکې صف کې ماسره خواته ودریږئ چې زما د مونځ پوره نقشه وګوري او امت ته یې ورسوي او امام ته سهوه راشي چې صحیح فتحه ورکړي یا امام ته حادثه راشي چې خپل نائب مقرر کړي چې صف کې افراد افراد نزدې ولاړ وي ددې ذمه داري قبلولو اهلیت لري. (المرقات ۱۷۱–۳/۱۷۲).

اوس د صفونو ترتیب داسې دی چې اولنې صف کې عاقل او بالغ خلک وي بیا ددې نه پس قریب البلوغ مراهق خلک وي او ماشومان هم وي بیا دې نه پس خنثی خلک وي یعنې دوي کې د سړو او زنانو علامات په یو ځای وي بیا آخري صف کې زنانه وي.

**اشد اختلافاً**: حضرت ابو مسعود رضي الله عنه ددې کلام مقصد دا دی چې نن سبا تاسو د صفونو په سیدها کولو کې احتیاط نه کوئ دې وجې نه ستاسو په مینځ کې به اختلاف وي ځومره چې د صفونو افتراق وي هغومره به په تاسو فتنې راځي اول د ظاهر اختلاف غم وکړئ بیا د باطني فکر کوئ(المرقات ۳/۱۷۲).
بهر حال ابو مسعود رضي الله عنه دا خطاب تابعینو ته وو دې کې دا نقصان راغلی.

## په جوماتونو کې شور مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لِيَلِنِي |
| دعبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل ماسره نزدې او دریږي |
| مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ » |
| په تاسو کې چې کوم خلک صاحب عقل او بالغ وي بیا هغه خلک ودریږئ کوم چې دوي ته نزدې وي دا |
| ثَلَاثًا وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| الفاظ حضور صلی الله علیه وسلم درې ځلې وفرمایل او تاسو د بازار په شان شور کولو نه بچ شئ. |

(۱) أخرجه مسلم ۳۲۳/۱ رقم الحدیث ۱۲۲-۴۳۲، وأبو داود ۴۳۶/۱ رقم الحدیث ۶۷۵، والترمذي ۴۴۰/۱ رقم الحدیث ۲۲۸.

**توضيح: هيشات:** جمع ده ددې مفرد **هيشة** دى دا لفظ د نصر ينصر نه دى ددې ترجمه د ګډوډ ده ددې ترجمه شور هم ده دلته دواړه ترجمې صحيح دي لهذا ددې دوه مطلبه شو جومات کې د بازار په شان شور مه کوئ، بلکې خاموشي سره مونځ کوئ دا مطلب ډير واضح دى اصل عبارت دا دى: **وايا کم وهيشات کهيشات الأسواق**، دويم مطلب يې دا دى چې په دا سې ځاى کې مونځونه مه کوئ چې هلته شور وي او حضورى قلبي نه وي. (اشعة اللمعات ۱/۵۰۴).

دې حديث کې د زنانو د صف ذکر دى، ځکه حضور ﷺ **ثم الذين** الفاظ درې ځل ويل دغه شان د صف د څلورو درجو ذکر دى، عاقل او بالغ اول صف کې او مراهق او هلکان دويمې درجې کې خناثى دريمې درجې کې او زنانه څلورمې درجې کې دې نه اولنى حديث کې د زنانو د صف ذکر نشته، ځکه هلته دوه ځلې (**ثم الذين يلونهم**) يې فرمايلي.

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي أَصْحَابِهِ تَأَخُّرًا |
| ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دى وايې چې حضور ﷺ چې کله وکتل چې صحابه تاخير کوي |
| فَقَالَ لَهُمْ: «تَقَدَّمُوا وَ أْتَمُّوا بِي وَ لْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ |
| حضور ﷺ ورته وفرمايل: مخکې شئ زما اقتداء وکړئ او ستاسو اقتداء دې وکړي هغه څوک |
| بَعْدَكُمْ لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللهُ». (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]. |
| کوم چې تاسو پسې دي يوه ډله هميشه تاخير کوي تردې چې الله تعالى به هم دوى شاته واچوي. |

**توضيح: وليأتم بکم:** ددې مطلب دا نه دى چې اول صف دې زما اقتداء وکړي او وروستو خلک دې د دوي اقتداء وکړي، ځکه چې يو صف د بل صف والا اقتداء نه شي کولى، بلکې ټول خلک د امام په اقتداء کې وي د حديث مطلب دا دى اولنى صف والا مونځ کې ما ويني او وروستو خلک دوي ته ګوري نو متابعت به روان وي دا متابعت فى الافعال دى متابعت فى الاقتداء نه دى. (المرقات ۳/۱۷۳)

## په مسجد کې د حلقو په ځاى په صف کې ناسته په کار ده

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَرَآنَا |
| جابربن سمرة رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ يو ورځ زمونږ خوا ته تشريف راوړوا و مونږ يې وليدو |

---

(۱) اخرجه مسلم ۳۲۵/۱ رقم الحديث ۱۳۰ ۴۳۸، وأبو داود ۱ ۴۳۸ رقم الحديث ۶۸۰، والنسائي ۲ ۸۳، رقم الحديث ۷۹۵

حلقا فَقَالَ : « مَا لِي أَرَاكُمْ عِزِينَ ؟ » ثُمَّ

په مختلفو دائرو کې، نو وې فرمایل: چې څه وجه ده زه تاسو جدا جدا دائرو کې وینم بیا یو ځل حضور

خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ : « أَلَا تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ

صلی الله علیه وسلم زمونږ خواته تشریف راوړو وې فرمایل داسې صفونه ولې نه جوړوئ څنګه چې صف تړلي وي

عِنْدَ رَبِّهَا ؟ » فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ ! وَ كَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا ؟

فرښتو د الله تعالى په حضور کې مونږ عرض وکړو یا رسول الله! څنګه صف تړي فرښتې د الله تعالى په دربار

قَالَ : « يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْأُوَلَ وَ يَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ » . (رَوَاهُ مُسلم)[1].

کې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل اولني صفونه پوره کوي او صف کې یو ځای ودریږي.

**توضيح: عزين:** ځان له ټولګي او دائرو شکل کې ناستې ته ویلی شي.

**حلقا:** د حلقة جمع ده ددې مطلب هم د عزين په شان دی.

**يتراصون:** نږدې نږدې برابر برابر صف کې اودریدو ته ویلی شي.(المرقات ۳/۱۷۳).

## د زنانو او سړو بهترین صف کوم یو دی

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایې د سړو اولني صف بهتر

وَ شَرُّهَا آخِرُهَا وَ خَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَ شَرُّهَا أَوَّلُهَا » . (رَوَاهُ مُسلم)[2].

دی او بدترین صف وروستنی صف دی او زنانو د پاره آخري صف بهتر دی او بدترین صف اول دی.

**توضيح: خير صفوف:** د سړو صف اول کې دا فضیلت د دوو وجهو نه دی یو خو د اول صف فضیلت په دویم او دریم باندې ډیر دی ددې اعتبار سره ویلی شوي دي چې د سړو اول صف د نورو صفونو په اعتبار سره د ثواب په لحاظ سره بهتر دی یعنې ددې ثواب ډیر دی دویمه وجه دا ده د سړو صف اول هغه وخت بهترین صف دی چې وروستو د زنانو صفونه وي هغې نه لرې د شیطان وسوسې دوي ته به نه رسي څکه

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۳۲۲ رقم الحديث ۱۱۹-۴۳۰، وأبو داود ۱/۴۳۱ رقم الحديث ۶۶۱، والنسائي ۲/۹۲، رقم الحديث، ۸۱۶

(۲) أخرجه مسلم ۱/۳۲۶ رقم الحديث ۱۳۲-۴۴۰، وأبو داود ۱/۴۳۸ رقم الحديث ۶۷۸، والنسائي ۲/۹۳، رقم الحديث: ۸۲۰

بهترین صف دی. او د سړو خو اخري صف د امام نه لري وي دویم زنانو ته نزدې وي دې کې د وساوس شیطاني او نسواني احتمال زيات وي، ځکه بدترین صف دی. (المرقات ۳/۱۷۴).

**صفوف النساء**: د زنانو صفونو کې افضل او غیر افضل وجه يو کيدی شي هغه دا چې د سړو نه ډير لرې وي وسوسې په کې نه وي ځکه ثواب په اعتبار سره افضل دی د زنانو صف اول بدترين يو دې وجې نه دی چې امام پسې نزدې ولاړ وي ثواب ورته په دې نه ملاويږي، دويم د سړو سره خواته وي دې کې ثواب کم او خطره ډيره وي، ځکه بدترين صف دی. (المرقات ۳/۱۷۴).

**سوال**: صفونه خو د مونځ د پاره دي او مونځ خو خير خير دی يا د مونځ صف ته بدترين ولې ويلی شوی دی که هغه صف د سړو وي يا د زنانو.

**جواب**: بدترين صف ورته د مونځ د صف په حيثيت سره نه دی وئيلی شوی بلکې د صف خارجي بد اثراتو د وجې نه ورته بدترين ويلی شوی دی.

**دويم جواب**: شرها أ خيرها مقابله کې راغلی دی د دې ترجمه بدترين نه ده بلکې افضل مقابله کې غير افضل دی او افضليت او غير افضليت د ثواب د کموالي په اعتبار سره دی نو د زنانو د پاره صف اول کې ثواب کم دی او سړو د پاره آخري صف کې ثواب کم دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## په صفونو کې خالي ځای پريښودل نه دي په کار

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «رُصُّوا صُفُوفَكُمْ وَ قَارِبُوا |
| انس رضي الله عنه وايي دی چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي چې خپلو صفونو کې جوخت شئ او نزدې او دريږي |
| بَيْنَهَا وَ حَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ فَوَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ |
| د صفونو مينځ کې يعنې خپل ستونه برابر ساتئ قسم په هغه ذات باندې چې د هغه په قبضه کې زما ځان |
| إِنِّيْ لَأَرَى الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ كَأَنَّهَا الْحَذَفُ». (رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُد)[1]. |
| دی چې شيطان د توري چيلې بچي په شان ستاسو صفونو په کولا و والي کې ننوتو باندې وينم. |

**توضيح**: **وقاربوا بينهما**: يعنې دوو صفونو په مينځ کې دومره فاصله مه ساتئ چې يو صف په کې ودريږي دا د **قاربوا** يو مطلب دی دويم مطلب دا دی چې خپل مينځ کې نيږدې او دريږئ مينځ کې خلا

---

(۱) أخرجه أبو داود ۱/۲٤۲ رقم الحديث ۶۶۷، والنسائي ۲/۹۲، رقم الحديث: ۸۱۵.

پاتې نه شي. (المرقات ۳/۱۷۵).

**وحاذوا:** دا د محاذات نه دی د برابرۍ معنی سره دی یعنې ستونه او ولې یو شان ساتئ مخکې وروستو په کې مه کوئ د دې ممانعت راغلی. د ملاعلي قاري دا توجیه خوښه نه ده هغه فرمایي چې ستونه برابر ساتئ مطلب دا دی صفونو کې څوک په اوچت ځای باندې څوک ښکته یا امام اوچت او مقتدي ښکته وي چې په دې سره د بعضو څټونه اوچت او د بعضو لاندې پاتې وي (دا معنی داسې بعیده شان ده) (المرقات ۳/۱۷۵).

**خلل:** خا او لام دواړو باندې فتحه ده د مونځ کوونکو په مینځ کې فاصلې ته ویلی شي دې ته **فرجة** هم ویلی شی، د دې جمع **فرجات** ده.

**الحذف:** حا لفظ باندې فتحه ده یا **ذال** باندې هم فتحه ده د ګډې بچې ته ویلی کېږي چې بالکل تور وي نه یې غوږونه شته او نه یې لکۍ. دا قسم بچې د حجاز او یمن په ګډو کې وي دا د شیطان د اولاد یو نوټو کاپي ده. حدیث نمبر (۱۷) کې حذف تفسیر (**اولاد الضأن الصغار**) سره یو راوي کړی دی هغه یو مسند تفسیر دی (المرقات ۳/۱۷۵).

**کانها:** دې روایت کې ضمیر تانیث دی یو روایت کې **کانه** ضمیر مذکر دی د دې یو جواب دا دی چې مذکر ضمیر شیطان طرف ته راجع دی او مؤنث ضمیر په اعتبار د خبر سره دی ځکه چې حذف مؤنث دی.

**دویم جواب:** د ضابطې او قاعدې په طور باندې دا دی (**زید ها هو**) که لفظ زید طرف ته ضمیر راجع کېږي نو **هو** ضمیر به راځي که د لته لفظ د زید د **کلمة** معنی سره واخلی ضمیر **ها** به راځي دا قاعده هر ځای کې جاري ده د لته هم داسې کېږي **کانه ای لفظ شیطان** او **کانها ای کلمة الشیطان**. (المرقات ۳/۱۷۵).

## په مخکې صفونو کې باید څه نقص نه وي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ ثُمَّ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې اولنی صف پوره کړئ بیا دې |
| الَّذِي يَلِيهِ فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| سره نژدې صف پوره کړئ او صف کې که کوم کمي وي هغه آخري صف کې کېدل په کار دي. |

(۱) أخرجه أبو داود ۱/۲۳۵، رقم الحديث: ۶۷۱، والنسائي ۲/۹۳، رقم الحديث: ۸۱۸.

## صف مكمل كولو سره لوی ثواب دی

| |
|---|
| ﴿١١﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ |
| د حضرت براء بن عازب نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به فرمايل: چې الله تعالى او ملائكې |
| يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِينَ يَلُونَ الصُّفُوفَ الْأُولَى وَمَا مِنْ خُطْوَةٍ |
| رحمت ليږي په هغه كسانو باندې كوم چې اولني صفونو ته نږدې وي او الله تعالى ته د دې قدم نه بل |
| أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ خُطْوَةٍ يَمْشِيهَا يَصِلُ الْعَبْدُ بِهَا صَفًّا.[1] |
| محبوب قدم نشته كوم چې د صف د يو ځاى والى د پاره استعمال شي. |

## په صف كې ښي طرف ته او دريدل بهتر دي

| |
|---|
| ﴿١٢﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى |
| عائشه رضي الله عنها فرمايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې الله تعالى او فرښتې رحمت ليږي د |
| مَيَامِنِ الصُّفُوفِ». (رَوَاهُ أَبُودَاوُد) (٢). |
| صف ښي طرف والا وو باندې. |

## د تكبير نه پس هم امام صفونه برابرولى شي

| |
|---|
| ﴿١٣﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا إِذَا |
| د نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به زمونږ صفونه نيغول كله چې |
| قُمْنَا إِلَى الصَّلَاةِ فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ[3]. |
| به مونږ او دريدو مونځ د پاره چې صفونه به برابر شو د هغې نه پس به نبي عليه السلام تكبير تحريمې وويلو. |
| ﴿١٤﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَنْ يَمِينِهِ: «اعْتَدِلُوا |
| د انس رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به خپل ښي طرف ته فرمايل نيغ او دريږئ او |

---

(١) أخرجه أبو داود ١/٤٣٢ رقم الحديث ٦٦٤، والنسائي ٢/٨٩، رقم الحديث ٨١١

(٢) أخرجه أبو داود ١/٤٣٧ رقم الحديث ٦٧٢.

(٣) أخرجه أبو داود ١/٤٣٥ رقم الحديث ٦٧٠

سَوُّوا صُفُوفَكُمْ ». وَ عَنْ يَسَارِهِ : « اعْتَدِلُوا سَوُّوا صُفُوفَكُمْ ».

خپل صفونه برابر کړئ او ګس طرف ته به يې هم فرمايل چې صفونه نيغ ودروئ او برابر شئ.

## په مونځ کې ولي (اوږې) نرم ساتل بهتر دي

﴿۱۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « خِيَارُكُمْ

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل تاسو کې بهترين خلک هغه دي

أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلَاةِ» [1].

چې نرم وي ولي د دوي په مونځ کې.

**توضيح: الينكم مناكب:** يعنې مونځ کې بنه سړی هغه دی چې مونځ کې ولي نرم وساتي (المرقات ۳/۱۷۷).

د دې شارحين مختلف مطلبونه ذکر کړي: (۱) د صفونو د نيغولو د پاره يو سړی راشي او صف کې د ولاړو خلکو د نيغولو د پاره د هغوي ولي ونيسي او مخکې وروسته يې کړي نو بنه سړی هغه دی چې د بل لاس کې خپل ولي د صف نيغ کيدو د پاره ورکړي او ضد نه کوي تکبر نه کوي په راتلونکي حديث نمبر (۱۷) کې الفاظ (**ولينوا في ايدی اخوالكم**) نه دا مطلب واضح طور باندې متعين دی .(المرقات ۳/۱۷۷).

دويم مطلب دا دی چې د مونځ دوران کې ځای تنګ وي نوی راتلونکی مونځګزار يا ورسره ولاړ ملګري د پاره ولي نرم کړي او په ولي سره په صف کې ولاړو کسانو ته ديکه مه ورکوي دا مطلب بنه دی بعضې نادان خلک دا ناداني کوي.

دريم مطلب دا دی چې په مونځ کې په بنه خشوع او خضوع سره ولي نرمول او تاويل دا مطلب يو څه بعيد دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۶﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: «اسْتَوُوا اسْتَوُوا اسْتَوُوا فَوَالَّذِي

انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايې تاسو برابر ودريږئ او قسم دې وي په هغه

(۱) أخرجه أبو داود ۱/۱۳۵ رقم الحديث ۶۷۲

نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ من خَلْفِي كَمَا أَرَاكُم مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

ذات چې د ځا په قبضه کې زما ساه ده څنګه چې تاسو مخې ته وینم دغه شان خپل شاته هم وینم.

## په ولو او ګیتو سره صف نیغیږي

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى

ابو امامة راوي دی وايي چې: حضور ﷺ فرمايي الله تعالى او دهغه فرښتې رحمت لیږي په

الصَّفِّ الْأَوَّلِ» قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَ عَلَى الثَّانِي قَالَ: «إِنَّ اللهَ

اول صف باندې صحابو عرض وکړو يارسول الله! دويم صف باندې هم حضور ﷺ وفرمايل الله

وَ مَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ» قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَ عَلَى الثَّانِي

تعالى اوفرښتې اول صف باندې رحمت وايي، صحابو عرض وکړو يا رسول الله! دويم صف باندې هم

قَالَ: «إِنَّ اللهَ وَ مَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصَّفِّ الْأَوَّلِ» قَالُوا

حضور ﷺ وفرمايل الله او د هغه فرښتې په اول صف باندې رحمت لیږي صحابو عرض وکړو

يَا رَسُولَ اللهِ! وَ عَلَى الثَّانِي؟ قَالَ: «وَ عَلَى الثَّانِي» قَالَ

يا رسول الله! په دويم صف باندې هم، رسول الله ﷺ وفرمايل: په دويم باندې هم بيا وفرمايل

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَوُّوا صُفُوفَكُمْ وَحَاذُوا بَيْنَ مَنَاكِبِكُمْ وَلِينُوا فِي أَيْدِي إِخْوَانِكُمْ

رسول الله ﷺ خپل صفونه برابر ساتئ او خپل ولي هوار ساتئ او د خپل ورور لاسو نو مخې ته نرم

وَسُدُّوا الْخَلَلَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ بَيْنَكُمْ بِمَنْزِلَةِ الْحَذَفِ» يَعْنِي أَوْلَادَ الضَّأْنِ الصِّغَارِ.[2]

کېږئ صفونو کې خلا مه پیدا کوئ شيطان حذف يعنې د ګډو رکې بچي جوړشي او ستاسو مينځ کې ننوځي

**توضیح: وعلى الثاني:** دې ته عطف تلقين ويلی شي يعنې صحابو د حضور ﷺ توجه صف ثاني د فضيلت طرف ته اړول غواړي يارسول الله ﷺ صف اول فضيلت خو تاسو بيان کړو د دويم صف فضيلت هم بيان کړه چې الله تعالى په دويم صف باندې هم رحمت وليږي، ځکه حضور ﷺ دريم ځل باندې د دويم صف فضيلت بيان کړو.

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۹۱/۲ رقم الحديث ۸۱۳.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۹٦۲/۵

**المناکب:** دلته د ولو ذکر بار بار راغلی دی بعضې روایاتو کې قدمین هم راغلي دي اصل خبره دا ده. چې صف د انسان د بدن د ولو او ګیټو په ذریعه باندې نیغ او سیدها کولی شي دا هغه اعضاء دي که دا برابر شي نو پوره صف به سیدها شي د خپو مخکې او وروستو حصې سره صف نه سیده کېږي، ځکه چې د چا خپې اوږدې وي د چا وړې وي خو ګیټې داسې ځای واقع دي د دې برابرولو سره ټول اعضاء برابرېږي. (المرقات ۳/۱۷۸).

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَقِيمُوا الصُّفُوفَ وَحَاذُوا |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل صفونه سید د کړئ او برابر والي ساتئ |
| بَيْنَ الْمَنَاكِبِ وَ سُدُّوا الْخَلَلَ وَ لِينُوا بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ وَلَا تَذَرُوا فُرُجَاتٍ |
| د خپلو ولو منځ کې د صفونو خالي ځایونه ډک کړئ خپل ورور په لاس کې نرم او سئ او مه پرېږدئ خلا په |
| الشَّيْطَانِ وَ مَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ وَ مَنْ |
| صفونو کې د شیطان د پاره کوم کس چې صف یو ځای کړو الله تعالی به هغه یو ځای کړي او څوک چې |
| قَطَعَهُ قَطَعَهُ اللهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَ النَّسَائِيُّ مِنْهُ قَوْلَهُ: وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا إِلَى آخِرِهِ.[1] |
| صف وران کړي الله تعالی به هغه مات کړي. نسائی دا حدیث من وصل صفا نه اخره پورې نقل کړی دی. |

## امام په مینځ کې اودرول په کار دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «تَوَسَّطُوا الْإِمَامَ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه راوي دی چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي امام منځ کې اودروئ (یعنې صف |
| وَ سُدُّوا الْخَلَلَ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد).[2] |
| بندي داسې کوئ چې امام بني او چپ طرف کسان برابر وي) او د صف خالي ځایونه بند کړئ. |

## په اول صف کې په شمولیت نه کولو باندې سخت وعید

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «لَا يَزَالُ قَوْمٌ |
| د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وویل چې څه خلک دي چې همیشه نه |

(۱) أخرجه أبو داود ۱/۴۳۳، رقم الحديث ۶۶۶، والنسائي ۲/۹۳ رقم الحديث: ۸۱۹.

(۲) أخرجه أبوداؤد ۱/۴۳۹، رقم الحديث ۶۸۱

يَتَأَخَّرُونَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللهُ فِي النَّارِ».[1]

وروستو كيږي د اولني صف نه ترديٰ چې الله تعالى دوي دوزخ كې واچوي.

**توضيح: يتاخرون عن الصف:** مراد دا دى چې يو كس مسلسل نيكئ كې سستي كوي تاخير كوي (المرقات ۳/۱۸۰)

د ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ (البقرة آيت:۱٤۸) پروا نه كوي ده ته ددې عمل عين مطابق سزا ملاويږي او هغه سزا ده چې كوم كس تولو نيكيو كې وروستو پاتې شي ددې اثر دا دى چې دا كس اخر دوزخ ته لاړ شي آخر دا چې دا كس دوزخ والاو ته نزدې شي دا مطلب واضح دى بنكاره معلوميږي ددې حديث وعيد هغه منافقينو د پاره دى چې د دوي دا عادت وي او نفاق د وجې نه داسې كوي لكه دويم حديث كې دي (لايأتون إلى الصلوة الا دبرا) قرآن كې دي: ﴿قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ﴾ (نساء آيت: ۱٤۲)

ددې توجيه ضرورت ځكه دى چې ټول مسلمانان اولني صف كې نه دريږي آخر صحابو دوركې هم اتم لسم صف كې خلك ودريدل.

## په صف كې وروسته د يواځې اودريدووالا حكم

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي |
| د وابصة بن معبد رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم يو كس وليدو چې مونځ يې كولو |
| خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيدَ الصَّلَاةَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ[2] |
| صف كې وروسته ځانله حضور صلى الله عليه وسلم ورته دوباره د مونځ كولو حكم وركړو. |

**توضيح: ان يعيد الصلوة:** مخكې صف كې چې ځاى وي او وروسته صف كې ځان له مونځ كوى آيا دا مونځ كيږي او كه نه كيږي دې كې اختلاف دى. (المرقات ۳/۱۸۰).

**د فقهاو اختلاف:** امام احمد بن حنبل رحمه الله وايي ددې كس مونځ ونه شو، لهذا د مونځ فاسد كيدو سره د مونځ اعاده دې وكړي دريواړه ائمه جمهور وايي داسې كول مكروه تحريمي دي ددې كس مونځ خو وشو خو د مكروه تحريمي د وجې نه اعاده ده كه استحباباً وي او كه لزوماً وي.

---

(۱) أخرجه أبوداؤد ۱/٤۳۸، رقم الحديث ۶۷۹

(۲) أخرجه أبو داود ۱/٤۳۹ رقم الحديث ۶۷۲، والترمذي ۱/٤۶٦ رقم الحديث ۲۳۰ وأحمد في المسند ٤/۲۲۸.

**دلائل**: امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ زیر بحث حدیث دوابصه نه استدلال کړی دی دې کې واضح الفاظ دي چې مونځ دوباره وکړه، لهذا اعاده د بطلان صلاة په وجه ده. (المرقات ۳/۱۸۰).
جمهورو د حضرت ابوبکر روایت نه استدلال کړی دی کوم چې باب الموقف کې د فصل اول حدیث نمبر(۵) دی دا بخاری ذکر کړی دی.
دې کې مذکور دي چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صف نه بهر دروازې سره نیت وکړو او د رکوع په حالت کې صف ته نزدې شو خو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اعادې حکم ورنه کړو. (المرقات ۱۸۰- ۳/۱۸۱).
فتاوی ظهیریه کې د علماء احنافو مسلک مطابق تفصیل داسې دی که مخکې صف ډک وي او یو کس وروسته راغی، نو مخکې صف نه دې یو کس را وروسته کړي مونځ دې وکړي که د فتنې خطره وي نو څوک دې نه راوروسته کوي، بلکې ځان له دی او دریږي مونځ کېږي. که د دې امورو رعایت ونه شو، نو مونځ به مکروه شي.
علامه محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ د علماو فتوی نقل کړې ده نن سبا دور کې د زمانې د فساد او د کم عقلۍ او د جهل د وجې ځان له دې ودریږي دا بهتره ده ګینې راخکلو سره به مونځ کې جګړه شروع شي.
**جواب**: جمهور د زیر بحث حدیث نه دا جواب ورکوي دې حدیث کې امام ترمذی اضطراب ذکر کړی دی علامه ابن رشد مالکی هم فرمایي دې حدیث کې اضطراب دی، دا قابل استدلال نه دی.
**دویم جواب** دا دی اعاده د امام احمد او اسحاق په نزد ده، نور ائمه هم د اعادې خبره کوي. دا حدیث د هغې په خلاف کې نه شي پیش کولی د اعادې نوعیت او حیثیت جدا جدا دی. د امام احمد او اسحاق رَحِمَهُمَا اللهُ په نزد اعاده د **بطلان صلوة** د وجې نه ده او د جمهورو په نزد د کراهت تحریمي د وجې نه ده بهر حال اعاده خو په هر حال شته دی چې د هرې وجې نه وي. صاحب هدایه لیکي: کراهت د وجې نه اعاده د مونځ راځي.
یو جواب دا هم دی شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دا اختلاف هغه وخت دی چې ټول مونځ وروسته وکړی او صف کې خالي ځای دی هغه لاړ نه شي که نیت وروسته وکړي او باقي صف ته په مزه مزه ورشي نو دده د پاره د اعادې حکم نشته. (اشعة اللمعات ۸۰۵)



# بَاب الْموقف:

## په مونځ کې د اودريدو بيان

ج. عت سره مونځ کولو متعلق صاحب مشکوة عجيبه طرز باندې عنوانات قائم کړي وو تولو نه ړومبی يې د جماعت فضيلت او په جماعت پرېښودلو باندې وعيدات بيان کړل کله چې فضيلت ذهن کې راغې، نو د امام او مقتدي ودريدو يعنې صفونه برابرولو او دې کې د قيام په دوران کې هيت کذائيه بيان کړو تردې چې د جماعت طريقه يې اوښودله چې صفونه يې داسې جوړ کړئ کله چې عملي طور باندې صفونو کې ودريدل، اوس يې صفونو کې د ودريدو بيان شروع کړو، کله چې د بيان اوريدونکو او د زده کونکو شوق پيدا شو، اوس به دا جماعت څوک کوي، باب الامامة سره يې د دې بيان وکړو ددې ډير زيات ضرورت وو او ويې ښودل چې د جماعت اهل فلان فلان خلک دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل:

## نفلي جمعه غير اختياري جائز ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : بِتُّ فِي بَيت خَالَتِي مَيْمُونَةَ فَقَامَ رَسُولُ اللهِ |
| عبدالله بن عباس رضي الله عنه وايي ما خپلې ترور ميموني رضي الله عنها سره شپه تيره کړه نو اودريدو رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَ بِيَدِي |
| صلى الله عليه وسلم (تهجد) مونځ د پاره زه هم د نبي عليه السلام چپ طرف ته اودريدم نو ونيو نبي عليه السلام لاس زما |
| مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ فَعَدَلَنِي كَذَلِكَ مِنْ وَرَاءِ ظَهره إِلَى الشق الْأَيمن. (متفق عليه)[۱]. |
| وروسته زما نه نو زه يې داسې واړولم د خپل وروسته جانب نه ښي طرف ته. |

**توضيح: فاخذ بيدي:** اکثر رواياتو کې راغلي چې غوږ نيولو سره يې تاو کړی دی، دې حديث نه علماو ډير مسائل ثابت کړي دي. (۱) بغير تداعي غير ارادي طور باندې نفل جماعت جائز دی. (۲) که امام سره جماعت کې صرف يو مقتدي وي د امام سره به ښي طرف ته ودريږي. (۳) مونځ کې عمل قليل کولی شي. (۴) مقتدي له امام نه مخکې کيدل په کار نه دي اگر چې لږ وخت د پاره وي حضور

---

۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۹۰/۲،رقم الحديث ۲۹۷، ومسلم في الصحيح ۵۳۱/۱ رقم الحديث:۱۹۲-۷۶۳، وابو داود ۴۰۷/۱ رقم الحديث :۶۱۰، والنسائي ۱۰۴/۲، رقم الحديث: ۷۴۲ ، والترمذي ۴۵۱/۱ رقم الحديث ۲۳۲ ، وابن ماجة ۳۱۲/۱، رقم الحديث: ۹۷۳. أخرجه أحمد في المسند ۲۴۹/۱.

ﷺ محنت وکړو ابن عباس رضي الله عنه يې د ښا طرف نه بل طرف ته کړو. (۵) داسې کس اقتداء کول جائز دي کوم کس چې شروع کې د جماعت اراده نه وي کړي او اوس يې اراده وکړه. (المرقات ۳/۱۸۲).

## که مقتديان دوه کسان وي څنګه به او دريږي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِيُصَلِّيَ فَجِئْتُ |
| حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ مونځ کولو د پاره ودريدو زه راغلم او د نبي علیه السلام |
| حَتَّى قُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَدَارَنِي حَتَّى أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِه ثُمَّ جَاءَ جَبَّارُ بْنُ صَخْرٍ |
| چپ طرف ته ودريدم نبي علیه السلام زما لاس ونيوا وخپل ښي طرف ته يې ودرولم بيا جبار بن صخر راغی د |
| فَقَامَ عَنْ يَسَارِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ بِيدينا جَمِيعًا فدفعنا حَتَّى أَقَامَنَا خلفه. [1] |
| نبي علیه السلام چپ طرف ته او دريدو نبي علیه السلام زمونږ د دواړو لاسونه ونيول او وروستو يې ودرولو. |

**توضيح**: که مقتدي يو وي دده خبره خو مخکې معلومه شوه که مقتديان دوه وي د بعضو خيال دا دی چې منځ کې دې ودريږي او چپ او ښي طرف ته مقتديان. دې حديث نه دا هم معلومه شوه يو وخت دواړو لاسونو له حرکت ورکول جائز دي دا د نوافلو خبره ده دې کې سهولت دی، ابن مسعود رضي الله عنه د علقمة او اسود په منځ کې او دريدو مونځ يې ورکړو کيدی شي ځای تنګ وُ يا څه بل عذر وُ دا يو جزئي واقعه ده مسنونه طريقه نه ده. (المرقات ۳/۱۸۳).

## مقتدي زنانه او سړی به څنګه او دريږي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: صَلَّيْتُ أَنَا وَ يَتِيمٌ فِي بَيْتِنَا خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ |
| د انس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: ما او يتيم خپل کورکې حضور ﷺ سره مونځ وکړو او |
| أُمِّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا. (رَوَاهُ مُسلم)[2]. |
| ام سليم زمونږ نه وروسته وه. |

**توضيح**: **يتيم**: د حضرت انس رضي الله عنه د وړور نوم يتيم وو، بعضې وايي ضميره نوم يې وو په يتيم سره مشهور دی. (المرقات ۳/۱۸۳).

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۲۵ رقم الحديث ۱۸۱ ۷۶۳

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۱۲، رقم الحديث ۷۲۷

**ام سلیم**: د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مور نوم دی یو روایت کې العجوز وراء نا الفاظ هم دي مراد ام سلیم ده دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعي خاله یا عمه وه. (المرقات ۳/۱۸۳).

دې حدیث نه معلومه شوه که مقتدي زنانه او سړی مشترک وي د زنانه صف وروسته ځان ته په کار دی. اګر چې زنانه د محارمو نه ولې نه وي که زنانه د سړو د صف په مېنځ کې او دریږي امام صاحب طرف ته منسوب دی د هغه په نزد زنانه نه بېي او چپ طرف او دې نه وروسته یعنې درې کسانو مونځ باطل دی نو د زنانه خپل مونځ صحیح دی د ائمو ثلاثو په نزد باندې مونځ باطل نه دی چې چیرې امام د زنانو د امامت نیت ونه کړي د زنانو مونځ به فاسد شي.

## مقتدي یو سړی او زنانه وي جماعت به څنګه او دریږي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ صَلَّى بِهِ وَ بِأُمِّهِ |
| انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وکړو ده (یعنې انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) او د ده مور (ام |
| أَوْ خَالَتِهِ قَالَ : فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ وَ أَقَامَ الْمَرْأَةَ خَلْفَنَا . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| سلیم) یا ده ترورسره، انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زه خپل نبي طرف ته او زنانه یې وروسته زمانه ودروله |

## د صف ته د رسیدو نه اخوا که رکوع وکړي نو څه به کوي؟

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دي هغه یو ځل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره مونځ کې شاملیدو د پاره هغه وخت ورسیدو |
| وَ هُوَ رَاكِعٌ فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الصَّفِّ ثُمَّ مَشَى إِلَى الصَّفِّ. |
| چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رکوع کې وُ هغه صف ته رسیدو نه مخکې رکوع ته لاړو بیا ورو ورو لاړو صف کې شامل |
| فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : « زَادَكَ |
| شو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یې د دې واقعې ذکر وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته وفرمایل چې زیات دې |
| اللهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ » . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[2]. |
| کړي الله تعالی ستاسو حرص نور هم خو آینده داسې مه کوئ. |

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۸۶/۲ رقم الحديث ۸۰۳

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۶۷/۲، رقم الحديث : ۷۸۳.

**توضيح**: **لم ركع**: يعني صف كې شامل نه وو خو جماعت موندلو د پاره مسجد ته داخل شو هغه ځاى نه ركوع ته لاړو بيا حالت ركوع كې تلو تلو صف كې داخل شو دا كار حضرت ابو بكرة حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونځ كولو په دوران كې كړى دى بيا يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د مسئلې تپوس وكړه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ صحيح ګرځولى دى.خو دا عمل دوباره بيا مه كوه .(المرقات ۳/۱۸۴).

دې حديث نه معلومه شوه چې ځان له صف كې وروسته ودريدلو سره مونځ نه فاسديږي. لكه د جمهورو مسلک مخكې بيان شو، دويمه خبره ددې حديث نه دا معلومه شوه چې امام پسې فاتحه لوستل فرض يا واجب نه دي كه داسې وى نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به صحابي ته حكم كولى چې لاړشه مونځ وكړه دې صحابي فاتحه نه ده لوستلې او د لوستلو وخت كله وو شوافع حضرات هم وايي چې ركوع كې مقتدي امام سره شريک شو هغه دا ركعت اوموندلو مونږ وايو كه ركعت يې اوموندو نو فاتحه يې كله وويله او مونځ څنګه صحيح شو. معلومه شوه مقتدي باندې فاتحه لوستل فرض نه دي غير مقلدين حضرات خلک شک كې اچوي.

**ولاتعد**: دا د باب **نصر ينصر** نه د **عود** په معنى سره دى يعني دوباره داسې مه كوه دې كې د صف نه جدا ودريدل لازم راځي بيا حالت ركوع كې تلل راځي.

(۲) دا لفظ د **عدا يعدو** نه هم دى د منډې معنى كې دى يعني داسې په منډه صف كې شامل كيدو كوشش مه كوئ بلكې سكون سره راځئ ثواب به ملاويږي بيا د منډې فائده څه شوه.

(۳) دا د باب **افعال** نه هم كيداى شي د اعادې په معنى سره دى يعني مونځ واپس كولو ضرورت نشته بهر حال اوله صيغه او اول مطلب ډير واضح او مناسب دى. (المرقات ۳/۱۸۴).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا كُنَّا ثَلَاثَةً |
| سمرة بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته دا حكم وكړو چې كله مونږ درې كسان يو |
| أَنْ يَتَقَدَّمَنَا أَحَدُنَا . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1]. |
| مونږ كې به يو كس مخكې شي (يعني زمونږ امام به جوړشي). |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۴۵۲ رقم الحديث ۲۳۳

## امام ته یو اځې په اوچت ځای باندې اودریدل مکروه دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ : أَنَّهُ أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ وَ قَامَ عَلَى دُكَّانٍ |
| د عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دي هغه مدائن کې ته خلکو امامت وکړو او اودریدو په چوتره باندې د |
| يُصَلِّي وَ النَّاسُ أَسْفَلَ مِنْهُ فَتَقَدَّمَ حُذَيْفَةُ فَأَخَذَ عَلَى يَدَيْهِ |
| مونځ کولو دپاره او مقتدیان یې ښکته ولاړ وو حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخکې شو او عمار یې د دواړو لاسونو نه ونیو |
| فَاتَّبَعَهُ عَمَّارٌ حَتَّى أَنْزَلَهُ حُذَيْفَةُ فَلَمَّا فَرَغَ عَمَّارٌ مِنْ صَلَاتِهِ |
| عمار د حذیفه سره څه مقاومت ونه کړو ښکته یې راکوز کړو عمار چې کله د مونځ نه فارغ شو وویل هغه ته |
| قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ : أَلَمْ تَسْمَعْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : «إِذَا أَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ |
| حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: آیا تا نه دي اوریدلي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي کله چې یو کس امام جوړ شي د قوم |
| فَلَا يَقُمْ فِي مَقَامٍ أَرْفَعَ مِنْ مَقَامِهِمْ أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ ؟ » فَقَالَ عَمَّارٌ : |
| نو په هغه ځای دې نه ودریږي چې د مقتدیانو ځای نه اوچت وي یا دې په شان الفاظ یې وفرمایل عمار |
| لِذَلِكَ اتَّبَعْتُكَ حِينَ أَخَذْتَ عَلَى يَدَيَّ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| جواب ورکړو، ځکه خو چې تا زما لاس ونیوو ما ستا اتباع وکړه. |

**توضیح: المدائن:** دا د دولت ساساني او کسری د فارس پای تخت وو دې ته قصر ابیض نوم هم وئیلی شي حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا فتح کړو د کسری سرکاري پارلیمنټ کې یې د جامع مسجد بنیاد کېښودو او د غه علاقه کې رومبی د جمعې مونځ ورکړو نن هم دغه مسجد د مدائن نوم سره یادیږي. حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدائن یو مقام کې جماعت ورکولو حضرت حذیفه بن الیمان چې د فارس ګورنر وو هغه هم هلته وو حضرت عمار بن یاسر یو اوچت ځای باندې ودریدو او مقتدیان یې ښکته وو حذیفه ورمخکې شو او د لاس نه یې ونیولو او ښکته یې راکوز کړو مخکې شوی به وو خو لا نیت یې نه وو تړلی صرف اراده به یې کړې وه او حدیث نه دا سې معلومیږي چې نیت یې تړلی وو.

**شیخ عبدالحق** رَحِمَهُ اللهُ فرمایي **:فأخذ على يديه اى جر حذيفة عمارا من خلف ظهره لينزله.**
د ملا نه نیول او پوندو نه رانیول د دې خبرې دلیل دی چې هغه مانځه کې ولاړ وو، او اوچت ځای باندې ودریدل مکروه دي د دې وجې نه حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاندې راکوز کړه.(اشعة اللمعات ۱/۵۱۰).

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/۳۹۹ رقم الحديث :۵۹۸.

**د کراهت وجه**: شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ د کراهت وجه دا ذکر کړې ده چې دې کې اهل کتابو سره مشابهت راځي هغوي به خپل امام مخصوص ځای باندې ودرولو مسلمانان يې ددې نه منع کړل که اوچت ځای باندې د امام سره يو څو مقتديان شريک شول بيا کراهت نشته.

**که امام ښکته ځای کې ولاړ وي نو بيا کراهت د څه وجې نه دی؟** که امام ښکته وي او مقتديان اوچت وي، نو دې کې کراهت شته يا نشته که وي نو د څه وجې نه دی: دې مسئله کې د امام طحاوي خيال دا دی چې دا صورت مکروه نه دی، ځکه چې اهل کتابو سره مشابهت نشته لهذا جائز دی خو جمهور احناف فرمايي چې دا صورت هم مکروه دی دې کې د کراهت وجه جدا ده او هغه دا ده چې دې کې د امام توهين او تحقير لازم راځي چې هغه په کندې او کوهي کې اسوء حالا په طور باندې ولاړ وي او مقتدي اوچت احسن حالا ولاړ وي د امام سره دا طريقه د توهين او مکروه نه ده، نو څه ده؟.(المرقات۳/۱۸۶).

**د اوچت والي حد څومره دی؟**: شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لمعات کې ليکي: معتدل سړی د قد وقامت برابر اوچت والی وو مکروه دی. دويم قول ليدلو کې که امام ممتاز او ښکاره په نظر راتلو نو دې حد پورې مکروه دی. دريم قول که د يو لاس اوچت والی په اندازه وو دا هم مکروه دی دا آسان او واضح دی.

سوال دا چې کله کله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منبر باندې مونځ ورکړی دی هغه څنګه جائز شو ددې جواب دا دی د تعليم امت د پاره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيت وو بل چا د پاره جائز نه دی اوس يو بل سوال دی چې عمار ته دا مسئله معلومه وه بيا اوچت ځای باندې ولې ودريدو؟

**جواب**: کيدی شي دغه وخت دا مسئله او حديث دده نه هير شوی وو خو حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عملي طور باندې پوهه کړو. (المرقات۳/۱۸۶).

**اولحو ذلک**: د حضرت حذيفه روايت کيدی شي بالمعنی وي، ځکه يې وفرمايل چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفاظ داسې وو يا ددې په شان وو. (المرقات۳/۱۸۷).

## د تعليم په غرض امام په اوچت ځای باندې او دريدی شي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ سُئِلَ : مِنْ |
| سهل بن سعد ساعدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې منقول دی چې ده نه تپوس وکړی شو چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَيِّ شَيْءٍ الْمِنْبَرُ؟ فَقَالَ: هُوَ مِنْ أَثْلِ الْغَابَةِ عَمِلَهُ فُلَانٌ مَوْلَى فُلَانَةَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| منبر د څه ؤ هغه وفرمايل چې د ځنګل د لرګي نه وو لکه فلانکی کس د فلانکۍ غلام ؤ هغه جوړ کړی ؤ |
| وَ قَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حِينَ عُمِلَ وَ وُضِعَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَ كَبَّرَ |
| کله چې تيار شو او کيښودی شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی باندې او دريدو او قبلې ته يې مخ کړو او تکبير تحريمه |

وَ قَامَ النَّاسُ خَلْفَهُ فَقَرَأَ وَ رَكَعَ وَ رَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهُ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ

يې وويله تو لو خلكو د حضور صلى الله عليه وسلم نه شاته ركوع وكړه بيا حضور صلى الله عليه وسلم او چت كړو خپل سر

ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى فَسَجَدَ عَلَى الْأَرْضِ ثُمَّ عَادَ إِلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ قَرَأَ

مبارك د ركوع نه او خپه يې ماته كړه او ځمكه باندې يې سجده وكړه بيا يې منبر ته تشريف راوړو قرآت

ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرِي حَتّٰى سَجَدَ بِالْأَرْضِ.

يې وكړو او ركوع يې وكړه ركوع نه يې سرا وچت كړو بيا يې خپه ماته كړه او ځمكه باندې يې سجده وكړه

هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ وَ فِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ نَحْوُهُ وَ قَالَ فِي آخِرِهِ :

دا الفاظ د بخاري دي او د بخاري او مسلم روايت داسې دى د دې حديث راوي په آخر كې دا وويل چې نبي

فَلَمَّا فَرَغَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ: «أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا صَنَعْتُ هٰذَا لِتَأْتَمُّوا بِي وَلِتَعَلَّمُوا صَلَاتِي»[1].

عليه السلام فارغ شونو وې فرمايل دا ما ځكه وكړل چې تاسو زما اتباع وكړئ او زما مونځ زده كړئ.

**توضیح**: مدينې منورې نه نهه ميله كې يو ځنګل دى چې غابه ورته ويلى شي هلته ونې ډيرې زياتې دي (المرقات ۳/۱۸۷).

**اثل**: دويم روايت كې طرفاء لفظ راغلى دى دا دواړه د يو قسم ونې نوم دى دې ته كيكر ويلى شي.

**فلان**: دې نه مراد باقوم رومي دى دا ماهر تركاڼ وو د حضرت سعيد بن العاص رضي الله عنه غلام وو ده په سنه ۲هـ كې منبر نبوي صلى الله عليه وسلم جوړ كړې وو (المرقات ۳/۱۸۷).

(مولى فلانه) دې روايت كې واضح طور باندې مذكور دي يعني رومي د حضرت سعيد رضي الله عنه سره وو يا حضرت عائشه انصاريه رضي الله عنها سره وو د فلانه نه مراد عائشة انصاريه ده (المرقات ۳/۱۸۸).

علماء ليكي چې د حضور صلى الله عليه وسلم منبر د درې وړو پوړو والا وو په يوې پوړۍ ختل او كوزيدل عمل كثير خو نه دى بلكه عمل قليل دى كه عمل كثير هم شي د تعليم امت د پاره جائز نه بلكې ضروري دى.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۹۷،رقم الحديث ۹۱۷، ومسلم في الصحيح ۱ ۳۸٦ رقم الحديث ٤٤-٥٤٤، والنسائي ۲/۵۷، رقم الحديث ۷۳۹.

## په حالت د اعتکاف کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امامت

﴿۹﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي حُجْرَتِهِ

د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې: حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله حجره کې مونځ وکړو

وَالنَّاسُ يَأْتَمُّونَ بِهِ مِنْ وَرَاءِ الْحُجْرَةِ.[1]

او خلکو د حجرې نه بهر اقتداء وکړه.

**توضیح: في حجرته:** دې نه د کور حجره مراد ده بلکې اعتکاف په دوران کې په روژه کې جومات کې د پوزې چاردیوالي وه هغې ته یې حجره ویله هغې نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آواز هم راتلو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ترې کتل دې کې اشکال نشته مونځ کې د ځای متحد کېدل په کار دي، او اتحاد د مکان حاصل وو. (المرقات ۳/۱۸۹).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟

د مالک بن اشعري نه مروي دی چې هغه وویل آیا زه تاسو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ نه خبر نه کړم؟

قَالَ : أَقَامَ الصَّلَاةَ وَ صَفَّ الرِّجَالَ وَ صَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ

نو وې ویل :نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اودرولو مونځ( اول یې) د سړو صف قائم کړو بیا یې د هلکانو صف وتړلو او

ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ فَذَكَرَ صَلَاتَهُ ثُمَّ قَالَ :

هغوي ته یې مونځ ورکړو ابو مالک د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ بیان کړو (وې ویل ) چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

« هٰكَذَا صَلَاةُ » قَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى : لَا أَحْسَبُهُ إِلَّا قَالَ: أُمَّتِي ". (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2].

فرمايي مونځ داسې کوئ عبد الاعلی وايي زما خیال دی چې ابو مالک (زما امت) هم ویلي دي یعنې

ابو مالک د حدیث آخري الفاظ داسې نقل کړي: حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : (هكذا صلوة امتي) یعنې زما د امت مونځ دې داسې شي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۶۷۱ رقم الحديث ۱۱۲۶

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۲۷۷ رقم الحديث .۶۷۷

## د ماتحت خلکو ګمراه کوونکي حاکمان تباه دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا فِي الْمَسْجِدِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ فَجَبَذَنِي رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي جَبْذَةً |
| قیس بن عباد رضي الله عنه وایي زه جومات کې اول صف کې اودریدم یو کس زه د شا څخه راخکلم او زه يې |
| فَنَحَّانِي وَ قَامَ مَقَامِي فَوَاللّٰهِ مَا عَقَلْتُ صَلَاتِي . فَلَمَّا |
| یو طرف ته کړم په خپله زما په ځای باندې اودریده په الله قسم زه په خپل مونځ هم پوهه نه شوم کله چې دغه |
| انْصَرَفَ إِذَا هُوَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فَقَالَ : يَا فَتَى |
| کس مونځ وکړو پته ولګیده چې دغه کس ابی بن کعب رضي الله عنه دي هغه وفرمایل ای ځوانه زمونږ د پاره د |
| لَا يَسُوءُكَ اللّٰهُ إِنَّ هٰذَا عُهِدَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَيْنَا أَنْ نَلِيَهُ |
| حضور صلی الله علیه وسلم وصیت دی چې مونږ د حضور صلی الله علیه وسلم سره او درېږو (د نبي علیه السلام نه پس مونږ |
| ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَقَالَ : هَلَكَ أَهْلُ الْعُقْدِ |
| د امام سره نزدې ودریږو کوشش کوو) قبلې طرف ته مخ کړو او وې ویل چې هلاک شو اهل عقد (سرداران) |
| وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ : وَ اللّٰهِ مَا عَلَيْهِمْ آسَى وَ لٰكِنْ آسَى عَلٰى مَنْ |
| د کعبې په رب قسم درې ځل يې وویل بیا يې وفرمایل په الله قسم ماته د سردارانو غم نشته خفګان په هغه |
| أَضَلُّوا . قُلْتُ يَا أَبَا يَعْقُوبَ |
| خلکو دی کوم چې سرداران ګمراه کوي. قیس بن عباد وایي ما ابی بن کعب ته عرض وکړو ابو یعقوب! |
| مَا تَعْنِي بِأَهْلِ الْعُقْدِ ؟ قَالَ : الْأُمَرَاءُ . (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1]. |
| اهل عقد نه ستا څه مراد دی دې وفرمایل امراء یعني سرداران او بادشاهان). |

**توضیح: فجبذني:** که چیرې دا کلمه جبذني ولوستلی شي بیا هم معنی یو ده ځکه چې دا لفظ جذبني نه مقلوب دی یعني زه يې راخکلم **جبذة** دا مصدر د عدد د پاره هم اخیستلی شي یعني **مرة واحدة** دا د تاکید د پاره هم استعمالولی شي ای **جبذة شدیدة**. (المرقات ۳/۱۹۰، الکاشف ۳/۵۶).

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۸۸/۲ رقم الحديث : ۸۰۸ ، وأحمد في المسند ۱۴۰/۵.

**فنحاني**: یعنې زه یې د خپل ځای نه اخوا کړم یو طرف ته، او په خپله زما په ځای باندې اودرېدو. (المرقات ۳/۱۹۰).

**ماعقلت صلاتي**: د خپل ځای نه اخوا کولو د وجې دومره غوسه شوم چې مونځ کولو باندې پوهه نه شوم چې ما څنګه او څو رکعته وکړه. (المرقات ۳/۱۹۱).

**عهد**: دا د حضور ﷺ وصیت وو. چې پوهه خلک علماء او فضلاء مخکې وي او ماشوم آخري وي قیس بن عباد وړوکی وو دا صحابي نه بلکې تابعي وو.

(**هلک اهل العقد**) دا اصطلاحي لفظ دی پوره لفظ (**اهل الحل والعقد**) دې نه مراد د حکمرانانو طبقه ده چې د خلکو معاملات بنده وي او خلاصه وي. (المرقات ۳/۱۹۱، الکاشف ۳/۵۶).
د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه مقصد دا دی د بادشاهانو په ذمه د خپل ما تحت صحیح اصلاح کول دي دا هغوی نه کوي، نو ګمراه شول خو دې باندې دومره افسوس نه دی. دې وجې نه ماتحت خلک د ښه اعمالو نه محروم وي. ابی بن کعب د لوی مرتبې والا صحابي دی هغه چې بادشاهانو باندې طعن کړی دی کیدی شي مخکې راتلونکي بادشاهان مراد وي یا د دوي په زمانه کې مراد وي دا خو په خپله د حضرت عثمان رضي الله عنه زمانه کې وو کیدی شي دغې کې بعضې ګورنران (والیان) د دې طعن نښانه وو خو دا په خپله بالکل نه دی.



**۲۵ ربیع الثاني ۱٤۱۰هـ / د ششماهي امتحان نه پس**

# بَابُ الْإِمَامَةِ:

یو امامت کبری دی او بل امامت صغری دی امامت کبری ته امارت او خلافت هم وئیلی شي ددې تعریف دا دی: د شریعت په رڼا کې د انسانانو دین او د دنیا د ټولو امورو قیادت او سیادت او اصلاح نوم خلافت او امامت دی دې موضوع باندې علم الکلام کې خبره کېږي دلته د امامت صغری بیان دی چې احادیثو کې بنه بیان شوی دی مونځ لوی عبادت دی لوی شان والا دی دې کولو والا هم لوی شان والا دي دا وجه ده چې اسلام کې څنګه امامت کبری د پاره یو معیار متعین دی او ددې د پاره څه شرائط دي دغه شان د امامت صغری د پاره دی. نو امام به لوی عالم او بزرګ وي که چیرې محلې والا د امامت د پاره یو کس باندې متفق شو او دغه خلک اکثر مونځګزار او دینداره وو نو هغه به امام وي او دغه کس باقاعده امام دی دده په موجودګی کې که لوی عالم راشي دده اجازت نه بغیر مونځ نه شي کولی ګینې انتظام کې به خلل راشي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### د امامت مستحق څوک دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « يَؤُمُّ الْقَوْمَ |
| ابن مسعود رضي الله عنه او وي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د قوم امامت دې هغه کس کوي |
| أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ |
| چې بنه قاري وي که په قرآن لوستلو کې ټول برابر وي نو هغه کس دې امامت وکړي چې بنه عالم وي په سنتو |
| فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً |
| که د سنت علم او پوهه کې برابر وو نو هغه کس دې امامت وکړي چې اول یې هجرت کړی وي او راغلی وي |
| فَإِنْ كَانُوا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ سِنًّا وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ |
| که هجرت کې برابر وو نو هغه کس دې امامت وکړي چې عمر کې لوی وي او امامت دې نه کوي یو کس |
| الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ وَلَا يَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ |
| د بل چا په علاقه کې (یعني د ویم مقرر امام په ځای دې امامت ونه کړي) او نه دې کیني د یو چا په کور کې |

عَلَى تَكْرِمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ». [1]

د هغه د عزت په ځای باندې بغیر د اجازت نه.

وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُ : « وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي أَهْلِهِ ».

او د مسلم یو بل روایت کې دا الفاظ دي: څوک دې د بل په کور کې د هغه د اجازت نه بغیر امامت و نه کړي

**توضیح: في القراءة سواء:** لکه مخکې اشاره شوې وه چې د مسجد مقرر شوی امام موجود وو نو د امامت د ټولو نه زیات حقدار هم هغه دی، دې حدیث کې چې د امام اعلی او ادنی افضل او غیر افضل او د صفات حسنو قلت او کثرت او د ترجیحاتو کوم بیان کړی دی دا د هغه وخت خبره ده چې کله خلک سفر کې وي ابو سعید خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت نمبر (۲) دې باندې دال دی دې کې د مسافر او د سفر ذکر دی (اذا کانوا ثلاثة) الفاظ د سفر بیان دی یا د سفر نه علاوه د کومې جلسې او اجتماع یا د جهاد په ځایونو کې مسلمانان جمع وي او علماء هم موجود وي هلته دا ترتیب په کار دی. (المرقات ۳/۱۹۲).

**د امامت د حقدار جوړیدو د پاره دې حدیث کې څه ترجیحات دي:** (۱) ټولو نه رومبی د کتاب او سنت عالم وي. (۲) که دې کې برابر وي یا د ښا تلاوت د تجوید سره وي. (۳) که دواړو صفاتو کې برابر وي یا په دوي کې چې کوم یو وجیه او شکیل وي. (۴) که دې کې هم برابر وي یا د ښا اخلاق چې ښه وي. (۵) که دې کې برابر وي یا هغه کس چې ښه متقي وي. (۶) یا د نسب په اعتبار سره اوچت وي. (۷) آخره کې یا قرعه اندازي کول په کار دي. (المرقات ۳/۱۹۲).

مذکور حدیث کې څلور صفات ذکر شو اول قرآت، دویم علم، دریم هجرت او څلورم عمر رسیده. نور صفات هم فقهاو راویستلي خو زیات بحث ته ضرورت نشته.

**د اقرأ او اعلم مسئله:** د دې ټولو صفاتو په ترتیب کې د فقهاو اتفاق دی دوه صفاتو کې اختلاف دی یعنې اقرا مقدم دی او که اعلم یعني جید قاري مقدم دی او که جید عالم.

**د فقهاو اختلاف:** د امام احمد بن حنبل، اسحاق بن راهویه او د ابو یوسف رحمهم الله مسلک دا دی چې د امامت د پاره اقرأ ډیر مستحق دی دې نه پس اعلم دی د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ یو قول دا هم دی د امام صاحب ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ، او د امام مالک او امام شافعي مسلک دا دی چې اعلم مقدم دی یا اقرأ دی قاري نه مراد د قراءت د فن ماهر دی او قرآن ورته ښه یاد وي. (المرقات ۳/۱۹۲).

**دلائل:** فریق اول د زیر بحث حدیث د ابو مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه استدلال کړې او دا دلیل هم پیش کوي چې قرآت د مونځ د ارکانو نه یو رکن دی د دې اهتمام ډیر دی، فریق ثاني یعني جمهور خپل استدلال کې د

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۴۶۵ رقم الحديث ۲۹۰-۶۷۳، وأبوداؤد ۱/۳۹۰ رقم الحديث ۵۸۲، والنسائي ۲/۷۶، رقم الحديث: ۷۸۰ .

ابوبکر رضي الله عنه امامت بطور دليل پيش کوي ابوبکر رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم په ابی بن کعب باندې مقدم کړو دا اعلم بالکتاب دی او اُبي بن کعب رضي الله عنه اقرأ دی لکه د حديث الفاظ دي: **واقرأهم ابي بن كعب**، معلومه شوه اعلم مقدم دی د جمهورو يو دليل دا هم دی چې قرآت اګر چې رکن صلوة دی خو د دې ضرورت صرف يو رکن کې راځي او علم د مونځ ټولو ارکانو کې راځي (المرقات ۳/۱۹۳).

**جواب**: د زير بحث حديث يو جواب دا هم دی چې دوي سره څه جواب نشته دې کومو حضراتو چې دا جواب کړی دی چې دغه زمانه کې اقرا هغه وو چې کوم به اعلم وو دې جواب سره زير بحث ترتيب ماتيږي حالانکه ترتيب حضور صلى الله عليه وسلم ذکر کړی دی، او دويم اشکال دا راځي چې حضرت أبي بن کعب د ټولو نه لوی عالم ومنل شو حالانکه د ابوبکر رضي الله عنه په باره کې صحابه فرمايي چې ابوبکر اعلمنا خبره دلته راغله چې ددې حديث جواب دا دی چې ددې جواب نشته دويم جواب دا دی د اسلام په شروع کې د قرآن اشاعت او عام کولو د اهتمام د وجې نه يې وفرمايل د قرآن په ذريعه نکاح کول، د مجاهدينو امير جوړيدل، د کثرت قرآن د وجي نه اجتماعي قبرونو کې حافظ قرآن مقدم کول او کثرت قرآن د وجې نه جومات کې امام جوړول دا ټول اهتمام دې د پاره وو چې خلک ډير نه ډير د قرآن الفاظ ياد کړي دې وجې نه په دغه زمانه کې دا حديث ارشاد فرمايلی دی. دې نه پس حکم موقوف شو او د علم په ترغيب باندې يې زور ورکړی دی دې وجې نه يې صديق اکبر رضي الله عنه مقدم کړو چې د علم اصل حيثيت برقرار پاتې شي، لهذا نن هغه حيثيت باقي دی او عالم عوام الناس هم په قاري باندې مقدم کوي صرف قرآت اوريدل او خوشحاله کيدل جدا څيز دی. (المرقات ۱۹۳-۳/۱۹۴).

**ولا يؤمن في سلطانه غيره**: د ملا علی قاري رحمه الله مرقات کې د کلام نه داسې معلوميږي درې قسمه خلک دي چې د هغوی د اجازت نه بغير د هغوی په ځای کې امامت کولو نه منع کړې ده. (۱) مذکوره حديث کې (**سلطانه**) لفظ دی دې نه د وخت بادشاه مراد دی يعنې د وخت حاکم خواته چې لاړ شی د هغه په ځای باندې امامت نه شې کولی او د هغه د طرف نه نائب په ځای هم امامت مه کوه خاصکر جمعه او اخترونو په موقع باندې بالکل مناسب نه دي (۲) د سلطان اطلاق د جومات په امام باندې هم کيږي ځکه چې د جومات اختيار دده په لاس کې وي (۳) دغه شان يو کس د خپل خاندان مشر وي او خپل قوم ته مونځ ورکوي د هغه په ځای هم مونځ ورکول د هغه د اجازت نه بغير ناجائز دي (المرقات ۳/۱۹۴).

دويم روايت کې (**في أهله**) الفاظ راغلي، دې نه مراد دغه قسم خلک کيدی شي دغه شان که يو سړی د خپل کور افراد جمع کړي او مونځ ورته ورکړي دده د اجازت نه بغير هم دده په ځای امامت نه شی کولی که امامت کبری والا وي يا امامت صغری والا هر يو ته سلطنت ملاؤ دی د دوی اجازت نه بغير امامت کول د شريعت خلاف دي اسلام کې جماعت او امامت د مشروعيت مقصد خلکو کې اتفاق او اتحاد

دی او دا حرکتونه بغض او عناد پیدا کوي ځکه حضور ﷺ د دې سد باب وفرمایلو چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه جلیل القدر صحابي حجاج بن یوسف ظالم پسې آخیر څه مقصد د پاره مونځ کولو. (المرقات ۳/۱۹۵).

**على تكرمته: تكرمة تفعلة** په وزن مصدر دی باب **تفعیل** نه دی **تكریم** د عزت په معنی سره دی دلته کور کې یو خاص جوړ شوي ځای ته ویلی شي چې هغه ځای باندې د کور مشر کس کیني دغه ځای باندې دده اجازت نه بغیر ناسته صحیح نه ده هغه ته تکلیف وي نن سبا عرب خلک په دې سخت حفه کېږي او عجمو کې پیران صاحبانو د پاره چې کوم ځای جوړ وي هغه هم مراد دی یا مدرسه کې د نګران ځای هم مراد دی، د هغوی د اجازت نه بغیر هلته کیناستل منع دي. (المرقات ۳/۱۹۵).

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِذَا كَانُوْا ثَلَاثَةً |
| دابو سعید رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي کله چې درې کسان وي دې کې |
| فَلْيَؤُمَّهُمْ أَحَدُهُمْ وَ أَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| یو کس دې امام جوړ شي او دې کې د امامت مستحق هغه دی چې تعلیم یافته وي. |
| (وَ ذُكِرَ حَدِيثُ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ فِي بَابٍ بَعْدَ بَابِ فَضْلِ الْأَذَانِ). |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « لِيُؤَذِّنْ لَكُمْ |
| ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور ﷺ وفرمایل آذان دې کوي په تاسو کې هغه کس |
| خِيَارُكُمْ وَ لِيَؤُمَّكُمْ قُرَّاؤُكُمْ » . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2]. |
| چې بهتر وي او امامت دې کوي په تاسو کې هغه څوک چې ښه قرآن لولي. |

**توضیح: لیؤذن لکم**: یعني مؤذن ښه سړی په کار دی هغه د اوقاتو امین دی چې وخت کې خیانت ونه کړي هغه د آذان د پاره چت ته خیژي هلته نه خواشاه کورونو باندې نظر پریوځي دې تجربې نه ثابته ده چې د قوم او امام په مینځ کې اختلاف او افتراق د مؤذن د وجې نه وي چې مؤذن امانت دار وي نو د خیانت او خباثت ویره به نه وي او امام عالم په کار دی چې د مونځ مسائلو کې غلطي رانه شي. (المرقات

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۶۴ رقم الحديث ۲۸۹ ۶۷۲.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۹۶ رقم الحديث ۵۹۰

۱۹۵-۳/۱۹۶).

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَبِي عَطِيَّةَ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنِ الْحُوَيْرِث يَأْتِينَا إِلٰى مُصَلَّانَا يَتَحَدَّثُ

ابو عطيه عقيلي تابعي وايي چې مالک بن حويرث (صحابي) زمونږ مسجد ته به راتلو او حديث به يې بيانولو

فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ يَوْمًا قَالَ أَبُو عَطِيَّةَ: فَقُلْنَا لَهُ: تَقَدَّمْ فَصَلِّهِ.

يو ورځ د مونځ وخت شو ابو عطيه وايي مونږ مالک رضي الله عنه ته وويل مخکې شه او مونږ ته مونځ راکړه

قَالَ لَنَا قَدِّمُوْا رَجُلًا مِنْكُمْ يُصَلِّي بِكُمْ وَ سَأُحَدِّثُكُمْ

مالک رضي الله عنه وويل تاسو خپل طرف نه څوک مخکې کړئ چې هغه تاسو ته مونځ درکړي او زه تاسو ته وايم

لِمَ لَا أُصَلِّي بِكُمْ؟ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ زَارَ قَوْمًا

چې زه ولې مونځ نشم درکولی ما د حضور صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي څوک چې د يو قوم سره ملاؤ شي

فَلَا يَؤُمَّهُمْ وَ لِيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ». [1]

هغه دې د دوی امامت نه کوي خپل مينځ کې يو کس دې د دوی امامت وکړي.

وَ النَّسَائِيُّ إِلَّا أَنَّهُ اقْتَصَرَ عَلٰى لَفْظِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ. [2]

نسائی هم دا روايت نقل کړی دی خو هغه صرف د نبي علیه السلام الفاظو باندې اکتفاء کړې يعنې هغه خپل روايت کې د مالک رضي الله عنه د مسجد راتلو واقعه او د امامت نه انکار کولو ذکر نه دی کړی بلکې صرف د نبي علیه السلام الفاظ (من زار) نه آخره پورې يې نقل کړی دی.

## د ړوند کس امامت جائز دی

﴿٥﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: اسْتَخْلَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ

د انس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم ابن ام مکتوم خپل ځای باندې نائب کړی وو

يَؤُمُّ النَّاسَ وَ هُوَ أَعْمٰى. [3]

چې خلکو ته مونځ ورکړي او هغه ړوند وو.

---

(١) أخرجه أبو داود في السنن ٣٩٩/١ رقم الحديث ٥٩٦، وأخرجه الترمذي في السنن ١٨٧/٢، رقم الحديث ٣٥٦.

(٢) أخرجه النسائي ٨٠/٢، رقم الحديث ٧٨٧، مسند أحمد ٣٥/٥

(٣) أخرجه أبو داود في السنن ٣٩٨/١ رقم الحديث ٥٩٥

**توضيح**: ابن ام مکتوم رضي الله عنه دا يو ړوند صحابي وو مکه مکرمه کې يو ځل حضور صلى الله عليه وسلم په مجلس کې حاضر شو مسئلې تپوس يې وکړو دغه وخت کې حضور صلى الله عليه وسلم د قريشو سردارانو سره مشغول وو او دې صحابي ته جواب ورکولو کې يې بې توجهي وشوه الله تعالى سورة عبس نازل کړو حضور صلى الله عليه وسلم ته يې محبت اميز عتاب وکړو او د دغه صحابي شان يې ورته ذکر کړو حضور صلى الله عليه وسلم چې به دې نه پس ابن ام مکتوم راتلو باندې ليدلو نو ويل به يې (**مرحبا لمن عاتبني فيه ربي**) دې وجې نه حضور صلى الله عليه وسلم دا صحابي تقريباً څوارلس ځلې مدينې کې نائب جوړ کړې وو حضور صلى الله عليه وسلم جهاد ته چې تلو، نو ابن ام مکتوم به د حضور صلى الله عليه وسلم نائب وو زير بحث حديث د انس رضي الله عنه کې دا خبره ده چې حضور صلى الله عليه وسلم ابن ام مکتوم صحابي رضي الله عنه خپل نائب جوړ کړې وو هغه امير هم وو او د خلکو امامت به يې هم کولو او ړوند وو.

اوس دا مسئله چې ړوند امام جوړيدی شي يا نه؟ (**رحمة الامة في اختلاف الائمة**) د اتمې صدی مشهور عالم شافعي عالم محمد بن عبدالرحمن دمشقي ليکي: (**امامة الاعمى صحيحة بالاتفاق غير مكروهة الا عند ابن سيرين**) (ص ۵۰)

اوس خبره دې کې ده چې د ړوند امامت افضل دی او که د صحيح کس امامت افضل دی ددې تفصيل داسې دی که اعمى اعلم هم وي اقرأ هم وي او ورع هم وي ددې مقابله کې کوم بينا موجود نه وي دا اعمى بالامامة دی که د ړوند په مقابله کې داسې فاضل عالم بينا موجود وي د جمهورو په نزد دا بينا اولى بالامامة دی خو امام غزالي دې صورت کې هم اعمى امامت له ترجيح ورکوي په دې شرط چې پاکي حاصلوي هغه فرمايي چې ړوند د نظري جرائمو نه محفوظ وي ځکه دا اولى بالامامة دی، باقي دا خبره چې فقهاء احنافو وغيرو د اعمى امامت مکروه ليکلی هغه ولې ددې جواب دا دی کراهت د هغه ړوند باره کې دی چې ګندګۍ نه محفوظ نه وي يا په کې علم او تقوى نه وي که ددې مقابله کې اعلى او عمده بينا عالم موجود وي دغه وخت کې د اعمى امامت مکروه دی. (المرقات ۳/۱۹۷).

## د شرعي عيب والا امام مونځ قبول نه دی

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثَةٌ لَا تُجَاوِزُ صَلَاتُهُمْ |
| ابو امامه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي درې کسان داسې دي چې بره نه ځي مونځ د دوي |
| آذَانَهُمْ : الْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ وَ امْرَأَةٌ |
| د دوي د غوږونو نه: يو مالک نه تختيدلی غلام تر دې چې واپس رانه شي، دويم هغه زنانه چې په داسې |

| |
|---|
| بَاتَتْ وَ زَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ وَ إِمَامُ قَوْمٍ وَ هُمْ لَهُ كَارِهُونَ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| حالت كې شپه تيره كړي چې خاوند ترې خفه وي دريم هغه امام چې قوم يې نه خوښوي امام ترمذي دا روايت |
| وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ .(ترمذي).[1] |
| نقل كړى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى. |

**توضيح: امراة:** دا هغه وخت دى چې زنانه بد اخلاقه وي نافرمانه او بې ادبه وي دې وجې نه خاوند خفه وي كه جرم د خاوند وي دې صورت كې زنانه بچ ده بلكې خاوند يې گناه گار دى. (المرقات ۳/۱۹۸).

**وهم له كارهون:** كه قوم د شرعي عيب فسق او بې ادبۍ او بې علمۍ د وجې نه خفه وي دا وعيد امام د پاره دى كه امام كې شرعي عيب نه وو بلكې مقتديانو د دنياوي اغراضو يا ذاتي مفاداتو د وجې نه امام سره دښمني كوي دې صورت كې مقتديان گناه گار دي دغه رنگه امام الحى پيش امام كې هم دا تفصيل دى. بلكې دا تفصيل د ملك بادشاه او د وطن امام هم دى. (المرقات ۳/۱۹۸).

## د درې كسانو مونځ نه قبليږي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " ثَلَاثَةٌ لَا تُقْبَلُ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل درې كسان داسې دي چې نه قبليږي |
| مِنْهُمْ صَلَاتُهُمْ : مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَ هُمْ لَهُ كَارِهُونَ |
| مونځ ددوي (يعني دوى ته ثواب نه ملاويږي) يو هغه كس چې د قوم امام وي او قوم دده نه خفه وي دويم |
| وَ رَجُلٌ أَتَى الصَّلَاةَ دِبَارًا وَ الدِّبَارُ : أَنْ يَأْتِيَهَا بَعْدَ أَنْ تَفُوتَهُ وَ رَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً ".[2] |
| هغه كس چې مونځ كې وروسته يعنې د مونځ وخت نه پس راشي او دريم هغه كس چې آزاد كس غلام گڼي |

**توضيح: بعد ان تفوته:** د مونځ فوت كيدو مطلب دا دى چې مستحب وخت ختم شي يا دا مطلب چې د مونځ پوره وخت وځي يا جماعت وشي، ټولو صورتونو طرف ته **لاتقبل** متوجه دى علماء ليكي دلته **لاتقبل** كې نفى د كمال ده يعنې كامل طور باندې مونځ نه قبليږي يا د مكمل مونځ نفى ده خو دا هغه وخت دى چې يو كس خپل عادت داسې جوړ كړي چې هميشه داسې كوي . (المرقات ۳/۱۹۹).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۹۱/۲ رقم الحديث ۳۵۸

(۲) أخرجه أبو داؤد في السنن ۳۹۷/۱ رقم الحديث . ۵۹۳ ، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۳۱۱/۱ رقم الحديث:۹۷۱

**اعتبد محررا : ای اتخذ لنفسه معتقة عبدا،** یعنې آزاد کس غلام جوړ کړي یا ددې دوه مفهومه دي یو بره عربي عبارت کې بیان دی چې آزاد کس ونیسي او غلام یې جوړ کړي یا د خرڅولو سلسله شروع کړي، دویم مفهوم دادی چې یو غلام یې آزاد کړو خو ده ته یې دا ونه ویل د آزادۍ نه پس یې غلام ساتلی وو هغه ته اطلاع هم نه وه چې دا آزاد دی. (المرقات ۳/۱۹۹).

## عامو محلو کې د عالم نشتوالي د قیامت نښه ده

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ سُلَامَةَ بنت الحر قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ |
| سلامه بنت حر رضي الله عنها راویه ده وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي د قیامت د علاماتو نه دا هم ده |
| أَنْ يَتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ لَا يَجِدُونَ إِمَامًا يُصَلِّي بِهِمْ» . رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1]. |
| چې د جوماتو خلک امامت د پاره یو بل په زوره مخکې کوي او د مونځ د پاره هیڅ کس هم نه ملاویږي. |

**توضیح: ان یتدافع:** دا یې قیامت ته نژدې نقشه ذکر کړې ده جهالت او فسق به دومره زیات شي دې نه به محله ډکه شي او خلک به دومره نا اهل وي چې د امامت اهل به یو کس هم نه وي یو بل له به دیکې ورکوي چې مونځ ورکړي هر کس به د نا اهلۍ د وجې نه وروسته کیږي او مونځ به نه ورکوي نن سبا دا نقشه تیاره شوې ده محلې ورانې پرتې دي دې کې د عالم قدر نشته چې خلکو ته مونځ ورکړي. (المرقات ۳/۲۰۰).

## د فاسق امیر په نګرانۍ کې هم جهاد جائز دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْجِهَادُ وَاجِبٌ عَلَيْكُمْ مَعَ كُلِّ أَمِيرٍ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم په تاسو باندې جهاد واجب دی د هر سردار سره |
| بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَ إِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ . وَ الصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَيْكُمْ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ |
| که هغه نیک وي یا بد وي اګر که هغه ګناه کبیره کوي او تاسو باندې د هر مسلمان نه شا ته مونځ کول واجب |
| بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَ إِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ . وَ الصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا |
| دي که هغه نیک وي یا بد اګر که ګناه کبیره کوي او جنازه هر مسلمان باندې واجب ده که هغه مړی نیک |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۹۰ رقم الحديث ۵۸۱ .

كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَ إِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ » . [1]

وي يا بد اګر چې ګناه کبيره يې کړي وي.

**توضيح: الجهاد واجب:** دلته واجب د فرض په معنى سره دی د جهاد د مشروعيت دوه حالته وي يا فرض کفايه وي يا فرض عين مطلب دا چې يو جهادي امير که هغه باد شاه وي يا نائب وي چې د جهاد جنډه 'وچتوي او د کفارو مقابله کې جنګ کوي نو د هغه د امر لاندې جهاد کې شامل شئ. که هغه امير فاسق ولی نه وي دا دده خپل عمل دی تا خو په ښه کار وراچوي ته خپل نيک عمل ته اوګوره که داسې نخرې کوې نو جهاد به پاتې وي څوک چې عيب لټوي هغه بې دوسته پاتې کېږي.(المرقات ۳/۲۰۰).

**خلف كل مسلم:** هر امام نه وروسته مونځ کوه که نيک وي او که فاسق دلته هم بره والا تقرير دی دلته مطلب داسې دی، چې يو ظالم حکمران په تاسو مقرر شو او هغه مونځ ورکوي تاسو ده پسې مونځ اوکړئ اګر چې فاسق وي، خو ددې فسق نه مراد مونځ کې دننه فسق نه دی بلکې مونځ نه بهر د فسق ارتکاب کوي ګويا حديث کې د مجبورۍ ذکر دی چې قصدا او جبرا امام جوړوی يا امامت نه پس فسق کوي حديث مطلب دا نه دی چې تاسو فاسق او فاجر سړی امام جوړ کړئ او دا مطلب هم نه دی چې مونځ کې دننه فسق کوي مثلا بې اودسه مونځ درکوي يا قراءت غلط وايې بلکې د مونځ نه بهر د فسق ارتکاب مراد دی. (المرقات ۳/۲۰۱).

**على كل مسلم:** د جنازې مونځ مراد دی يعنې د هر قسم مسلمان جنازه کوئ اګر چې فاسق او فاجر ولې نه وي خو چې کافر نه وي چې نوم يې د مسلمانانو وي او عقيده يې د کفر وي مثلا قاديانې، رافضي يا منکر حديث وي. (المرقات ۳/۲۰۱).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د نابالغ ماشوم د امامت مسئله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ | عَمْرِو | بْنِ | سَلِمَةَ | قَالَ : | كُنَّا | بِمَاءٍ | مَمَرِّ النَّاسِ |
| د عمرو بن سلمة رضي الله عنه روايت دی وايي چې مونږ دا وبو په غاړه پاتې کيدو چې د خلکو تيريدو لاره | | | | | | | |
| وَ كَانَ | يَمُرُّ | بِنَا | الرُّكْبَانُ | نَسْأَلُهُمْ | مَا | لِلنَّاسِ | مَا لِلنَّاسِ ؟ |
| کومه قافله چې به زمونږ په خوا تيريدله مونږ به د هغوي نه تپوس کوو د خلکو تعلق (يو کس يعنې نبي | | | | | | | |

[1] اخرجه ابو داؤد في السنن ۱۰۳ رقم الحديث ۲۵۳۳

مَا هٰذَا الرَّجُلُ

عَلَيْهِ السَّلَام کوم چې دين راویستې دی هغه) څه دی او د هغه کس (یعني حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) صفات څه دي

فَيَقُوْلُوْنَ يَزْعُمُ أَنَّ اللهَ أَرْسَلَهُ

خلک یې مونږ ته بیان کوي چې هغه (رسول) دعوی کوي چې الله تعالی هغه (خپل نبي په حقه باندې جوړ

أَوْحٰى إِلَيْهِ

کړی) او رالیږلي یې دی او د قافلې خلکو د قرآن کریم آیتونه اوریدل او ویل به یې چې دا هغه ته وحي راځي

أَوْ أَوْحَى اللهُ كَذَا . فَكُنْتُ

(همدا رنګې) د هغه خوا ته وحي راځي چنانچه ما (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام اوصاف چې کوم د قافلې والا خلکو به

أَحْفَظُ ذٰلِكَ الْكَلَامَ

بیانول او کلام) یعني د قافلې والا چې کوم آیتونه ویل او اوریدل کیدل به هغه به یې هماغه شان یادول

فَكَأَنَّمَا يُغْرٰى فِيْ صَدْرِيْ وَ كَانَتِ الْعَرَبُ

ګویا چې هغه زما په سینه کې نښتې وي (یعني د قرآن کریم آیتونه ما ته به یاد یدل) اهل عرب (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام

تَلَوَّمُ بِإِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ

د جماعت نه غیر) د اسلام راوړو په سلسله کې د مکې د فتح کیدو انتظار یې کولو (یعني دا به یې ویل چې

فَيَقُوْلُوْنَ اتْرُكُوْهُ وَ قَوْمَهُ

که چیرته مکه فتح شوه نو مونږ به اسلام راوړو او دا) به یې ویل چې د دوي رسول د دوي په قوم باندې پریږده

فَإِنَّهُ إِنْ ظَهَرَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ صَادِقٌ

که چرته غالب راغې (او مکه یې فتح کړه) نو پوهه شئ چې ربښتنې پیغمبر دی (ځکه چې د ده ظاهري بې

سر او سامانې او مادي کمزوري باوجود په اهل عربو باندې غالب راتلل او مکه فتح کول به د ده معجزه

وي او معجزه صرف د ربښتینې پیغمبر نه صادریږي نو کله چې الله تعالی د خپل دین شان اوچت کړو او)

فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ الْفَتْحِ بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِإِسْلَامِهِمْ وَ بَدَرَ أَبِيْ قَوْمِيْ بِإِسْلَامِهِمْ

مکه فتح شوه نو خلکو اسلام راوړلو باندې رامات شو زما پلار په قوم باندې مخکې شو او اسلام یې راوړو

فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ جِئْتُكُمْ وَ اللهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ حَقًّا فَقَالَ :

واپس راغلو او خپل قوم ته یې وویل په الله قسم د ربښتنې پیغمبر د خوا نه راغلم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

«صَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا وَصَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فليؤذن أحدكم
فلان وخت کې داسې مونځ کوئ او فلان وخت کې داسې مونځ کوئ او کله چې د مونځ وخت شي یو کس آذان
فَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْثَرُكُمْ قُرْآنًا»
کوئ او تاسو کې قرآن کې ماهر وي هغه دې ستاسو امامت وکړي چې د مونځ وخت راغې او جماعت تیار شو
فَنَظَرُوا فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَكْثَرَ قُرْآنًا مِنِّي
خلکو خپل مینځ کې وکتل (چې امام څوک جوړ کړي؟) ما نه ماهر په قرآن کې بل څوک نه وو ما به د قافلې
لِمَا كُنْتُ أَتَلَقَّى مِنَ الرُّكْبَانِ فَقَدَّمُونِي بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَأَنَا ابْنُ سِتٍّ أَوْ سَبْعِ سِنِينَ وَكَانَتْ عَلَيَّ
والاوو نه قرآن یاد ولو او خلکو زه مخکې کړم د غه وخت کې زما عمر شپږ یا اوه کاله ؤ او زما په بدن باندې
بُرْدَةٌ كُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّي فَقَالَتِ
یو څادر ؤ چې سجده به مې کوله نو څادر به د بدن نه اخوا کیدو (یعني لاندې حصه به ښکاره کیده) نو وویل
امْرَأَةٌ مِنَ الْحَيِّ أَلَا تُغَطُّونَ عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ فَاشْتَرَوْا
یوې زنانه د قوم نه زمونږ مخې ته تاسو د خپل امام ستر ولې نه پټوئ خلکو ماته کپړه واخیسته او زما
فَقَطَعُوا لِي قَمِيصًا فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرَحِي بِذَلِكَ الْقَمِيصِ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1].
د پاره یې کرته جوړه کړه ماته په دې باندې داسې خوشحالي او شوه داسې ماته کله هم نه ده شوې.

**توضیح:** عمرو بن سلمة چرته هم د سلمه لفظ احادیثو کې راغلی تو لو کې را باندې فتحه ده صرف عمرو بن سلمه کې په لام باندې کسره ده، (المرقات ۳/۲۰۲).

په دې حدیث کې یو څو الفاظ دی چې تشریح یې ضروري ده:

**مر الناس:** د خلکو د تلو خای مراد دی. (المرقات ۳/۲۰۲).

**الرکبان:** را باندې ضمه ده راکب جمع ده د ابنانو قافلې سره خاص دی (المرقات ۳/۲۰۲).

**ما للناس ما للناس:** تعجب بنیاد باندې تکرار وکړو د خلکو څه وشو دین څنګه دی. (المرقات ۲۰۲-۳/۲۰۳).

**ما هذا الرجل:** دلته اشاره ذهنیه ده یعني دا سړی څوک دی ده صفات یې څه دي (المرقات ۳/۲۰۳).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲۲/۸ رقم الحديث :۴۳۰۲، و أحمد في المسند ۳۰/۵.

**اوحى اليه كذا**: دلته هم تكرار د تعجب او اهتمام په بنياد دى، **يغرى في صدري**: دا صيغه د غرى يغرى د باب سمع يسمع نه معروف صيغه ده د مخكني كلام احفظ د پاره مزيد وضاحت دى يعني زما سينې پسې به يو ځاى كيدو او ښه به يادېدو.

**تلوم**: دا صيغه د باب تفعل نه ده د انتيظار معنى كې ده اصل كې **تتلوم** وو يعني عرب دى انتيظار كې وو چې دا كس مكه فتح كولى شي يا نه، ځكه چې دې باندې غلط كس نه شي راتلى كه مكه فتح كړي دا رښتني نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دى (المرقات ۳/۲۰۳).

**بادر**: **مبادر** د جلدي او تادي په معنى كې دى (**بدر ابي قومي**) بدر فعل ماضي دى او ابي فاعل دى او قومي مفعول به دى .(المرقات ۳/۲۰۳).

**تقلصت**: باب **تفعل** نه په معنى د راغونډيدو دى، څادر وړوكي ؤ نو د سجدې په حالت كې به راغونډيدو او شرمگاه به يې ښكاره كيده .

**تفطون**: يعني خپل امام لاندې حصه موږ نه پټ كړى يعني تاسو دومره نشئ كولى چې يو څادر په ده باندې واچوئ دې واقعه كې بنيادي وجه دا ده چې عمر بن سلمه ماشوم نابالغ وو شپږ اووه كالو وو دده امامت څنگه جائز كيږي نيز دا متنفل وو ده نه وروسته مفترضين مونځ څنگه جائز شي دې كې د فقهاو اختلاف دى دا مخكې تير شوى وو دلته د بيان اشاره كوم چې زير بحث حديث نه څه حق ملاويږي.

**د فقهاو اختلاف**: د امام شافعي او امام بخاري په نزد باندې نابالغ ماشوم امام جوړيدى شي البته د جمعې مونځ كې د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دوه قوله دي يو د جواز دى دويم د عدم جواز دى امام صاحب، امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد د نابالغ هلک پسې مونځ جائز نه دى نابالغ هلک امام نه شي جوړيدى. (المرقات ۳/۲۰۴).

البته د ائمه احنافو په خپل مينځ كې اختلاف دى نابالغ ماشوم د نوافلو امام جوړيدى شي يا نه مثلا تراويحو كې يا نوافلو كې قرآن اورولى شي دا څنگه دى؟

د فقهاء احنافو نه د بلخ بخارا علماو او د مصر او شام د علماو دا مؤقف دى نوافلو كې نابالغ ماشوم امام جوړيدى شي دا حضرت دې فتوى باندې هم عمل كوي .

دې نه علاوه د ټولو فقهاء احنافو موقف دا دى نابالغ په نوافلو كې هم امام نه شي جوړيدى دا ضمني خبره ده دا پريږدئ او د غتو اختلافاتو دلائل وگورئ .(المرقات ۳/۲۰۵).

**دلائل**: امام شافعي او امام بخاري د عمرو بن سلمه زير بحث حديث نه استدلال كړى دى خپل مدعا باندې واضح دليل دى جمهور (**الامام ضامن والمؤذن مؤتمن**) دا سې رواياتو نه استدلال كړى دى او

فرمايي چې د امام مونځ ضامن دی، د مقتدي مونځ دې کې ضم او ضمن کې وي. لهذا د امام حالت مقتدي حالت نه اقوی دی.
متنفل امام اضعف حالاً دی لهذا دا دې مضبوط مورچه نه سنبالوي، د جمهورو دويم دليل د ابن عباس رضي الله عنه اثر دی وايي: **لا يؤم الفلاح حتى يحتلم** (مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۳۹۸). (المرقات ۳/۲۰۶).

جمهور دريم دليل دی چې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اثر دی ارشاد فرمايي: **لا يؤم الفلاح الذي لا تجب عليه الحدود.**

**جواب:** عمرو بن سلمه رضي الله عنه د امامت واقعه د دغه خلكو او علاقو د پاره بالکل واضح او مشروع مسئله ده دا يو جزئي واقعه ده دا د حضور صلى الله عليه وسلم د اجازت نه هم نه ده دې باندې تقرير رسول هم نشته او نه د حضور صلى الله عليه وسلم مخې ته پېش شوې، ځکه محتمل واقعې نه د يو ضابطې د پاره استدلال نه شي کولی وګورئ عمرو بن سلمه مونځ دوران کې ستر بنکاره کيدو آيا دا به هم بطور ضابطه اخيستلی شي مونځ کې ستر بنکاره کول جائز دي.
خلاصه دا ده چې د عمرو بن سلمه امام جوړول ددې علاقې خپل اجتهادي مسئله ده شوافعو حضراتو لره تعجب دی د عمر فاروق، ابن عباس او ابن مسعود رضي الله عنهم په شان جليل القدر صحابو د تقليد په ځای د يو نابالغ هلک عمل واجب العمل ګرځي. (المرقات ۳/۲۰۶).

## اسلام د مساوات بنه مذهب دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْأَوَّلُونَ الْمَدِينَةَ كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې کله مديني ته اول راتلونکي مهاجرين راغلل نو مونځ ورکولو سالم |
| مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ وَفِيهِمْ عُمَرُ وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الْأَسَدِ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| رضي الله عنه چې دا بو حذيفه آزاد شوی غلام ؤ او دې کې حضرت عمر، ابو سلمة او ابن عبد الاسد رضي الله عنهم وو |

**توضيح: سالم:** حضرت سالم رضي الله عنه د حضرت حذيفة آزاد کړی شوی غلام دی د قرآن بنه قاري دی د قرآن په برکت سره د لويو صحابه کرامو امام جوړ شو دې کې حضرت عمر او حضرت ابو سلمه بن عبد الاسد رضي الله عنهما په شان نامور صحابه کرام وو قرآن بعضې خلک آسمان ته او خيژوي. دې حديث نه افضل موجودګۍ کې د مفضول امام جوړيدلو جواز ملاويږي دې حديث نه عادلانه انداز هم معلوميږي

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸٤/۲ رقم الحديث: ٦٩٢

چې آقا او غلام يې يو صف کې ودرولي، او د هر کمال والا يې اکرام کړې دی او د اسلامي مساوات علمبردار جوړ شو . (المرقات ۳/۲۰۶).

ایک ہی صف میں کھڑے ہو گئے محمود و ایاز ❁ نہ کوئی بندہ رہا نہ کوئی بندہ نواز

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " ثَلَاثَةٌ لَا تُرْفَعُ لَهُم |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي درې کسان داسې دي چې بره نه ځي |
| صلاتهم فَوْقَ رُؤُسِهِمْ شِبْرًا : رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَ هُمْ لَهُ |
| مونځ دده (يعنې درجې د قبوليت ته نه رسي) نه يو هغه کس چې دقوم امام وي او قوم دده نه (په ديني |
| كَارِهُونَ وَ امْرَأَةٌ بَاتَتْ وَ زَوْجُهَا عَلَيْهَا |
| امورو کې) خفه وي دويم هغه زنانه چې داسې حالت کې شپه تيره کړي چې ددې خاوند (ددې د نافرماني |
| سَاخِطٌ وَ أَخَوَانِ مُتَصَارِمَانِ " . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه)[1]. |
| يا د خاوند د حق د نه ادا کولو په وجه) خفه وي دريم داسې دوه ورونه چې خپل مينځ کې سره وران وي . |

**توضيح**: تصارم : د صرم نه دی کټ کولو ته وايي ،مراد ترې هغه دوه مسلمان ورونه دي کوم چې په غير د شرعي عذر نه درې ورځو نه زياتې خبرې بندې کړي. (المرقات ۳/۲۰۷).



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۳۱۱ رقم الحديث ۹۷۱

۱ جمادی الاولی۱٤۱۰هـ

# بَابُ مَا عَلَى الْإِمَامِ:

کله چې مصنف د جمعې احکام بیان کړل بیا یې د امامت احکام بیان کړل بیا ضروري شوه چې د امام او مقتدي ذمه واریانې بیان کړي دې مقصد د پاره مصنف دوه جدا بابونه مقرر کړل یو کې د امام ذمه واریانې او دویم کې د مقتدي ذمه واریانې بیانوي، د امام اهمه ذمه واري دا ده چې مونځ کې د مقتدي خیال ساتل مونځ کې د بوډاګانو او بیمارانو خیال ساتل په کار دي مونځ مختصر کول چې خلک متنفره نه شي مطلب دا نه دی چې رکوع، سجده، قیام، جلسه او مسنون قرآت پریږدي. مسنون قرآت آحادیثو کې چې کوم ذکر دی د هغې خیال ساتل دغه شان تسبیحاتو کې اعتدال کول. یو حدیث کې د حضور ﷺ د مونځ باره کې راغلي (کان رسول الله اخف الصلوة في تمام) د في تمام مطلب دغه دی چې د حضور ﷺ مونځ سپک وو خو رکوع او سجده او تعدیل راکان به مکمل کیدل د حضور ﷺ قرآت سرعت سره هم وو او آوریدلو کې سرور او خوشحالي وه.

د مقتدیانو اهمه ذمه واري دا ده چې د امام متابعت او اطاعت وکړي، امام نه مخکې رکوع او سجده کې لاړ نه شي مد امام پسې چې دده کوم عمل دی چې په ښې طریقې سره یې کوي، ښه او دس سره اول صف کې کیني او بیا تکبیر اولی سره مونځ کې شامل شي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### مونځ دروند کول نه دي په کار

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ إِمَامٍ قَطُّ أَخَفَّ صَلَاةً وَلَا أَتَمَّ صَلَاةً مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| انس رضي الله عنه راوي دي وايي چې ما نه دی کړي هیڅ یو امام پسې سپک او مکمل مونځ د نبي عليه الصلاة والسلام |
| وَ إِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ |
| د مونځ په شان او د نبي عليه السلام (عادت دا و) چې کله به حضور ﷺ د ماشوم د ژړا آواز آوریدو |
| فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَنَ أُمُّهُ . (متفق عليه). (۱) |
| ددې د ویرې د وجې نه چې مور یې فکرمنده نه شي مونځ به یې سپک کړو. |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۰۱،رقم الحديث :۷۰۸، ومسلم في الصحيح ۱/۳٤۲ رقم الحديث:۱۹۰-۶۹٤)، وأبو داؤد ۱/٤۹۹ رقم الحديث :۷۸۹، والنسائي ۲/۹۵، رقم الحديث: ۸۲۵.

**توضیح**: اخف تعلق عام طور باندې د قرآت تخفیف سره دی او اتم لفظ عام طور تعدیل ارکان د پاره استعمالیږي مطلب دا چې د حضور ﷺ قرآت به سپک وو رکوع او سجده او قومه، جلسه ټول به مکمل وو. (المرقات ۳/۲۰۷).

**مخافة ان تفتن امه**: یعنې د مور په مونځ کې شریکیدل او نزدې د ماشومانو د ژړا آواز راتلو یا. جومات کې دغه زنانه سره د ماشوم د ژړا آواز راتلو حضور ﷺ د دې وجې نه تخفیف فرمایلو چې مور یې خفه نه وي او چې مونځ یې خراب نه شي. (المرقات ۳/۲۰۸).
علامه خطابي رحمه الله وایي که مونځ کې مونځګزار ته معلومه شوه چې څوک راځي امام انتظار کولی شي چې هغه کس رکوع کې شامل شي، امام مالک هم د دې قائل وو. (المرقات ۳/۲۰۸).
ائمه احناف فرمایي که دا طریقه د تقرب الی الله په غرض نه وي بلکې د کس لحاظ کول وي د دې صورت کې انتظار کول مکروه تحریمي دي بلکې د دې کې د شرک احتمال هم شته. (المرقات ۳/۲۰۸).
بعضې علماء فرمایي که امام ته ذاتي طور باندې د دغه کس معلومات نه وي بیا ګنجائش شته خو د دې ترک هم اولی دی.

د دې حدیث نه پس راتلونکی هم تقریبا داسې دی. د دې کې تجوز لفظ راغلی دی د اختصار په معنی سره دی او هلته وجد امه لفظ دی وجد معنی او ترجمه سخت غم دی.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَأَدْخُلُ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا أُرِيدُ إِطَالَتَهَا |
| ابو قتاده راوي دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي زه مونځ کې داخلیږم د مونځ داوږدولو اراده کوم |
| فَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ فِي صَلَاتِي مِمَّا أَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وجد أمه من بكائه (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1] |
| خو چې د ماشوم د ژړا آواز واورم نو پوهه شم چې د ژړا د وجې نه میندې به فکرمندې شي مونځ کې تخفیف کوم |
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذا صلى أحدكم النَّاس |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي کله چې تاسو کې څوک خلکو ته مونځ |
| فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيهِمُ السَّقِيمَ وَ الضَّعِيفَ وَ الْكَبِيرَ. |
| وکړي هغه ته په کار دي چې مونځ سپک کړي ځکه چې مقتدیانو کې بیمار او کمزوري او بوډاګان وي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۰۲، رقم الحديث ۷۰۹.

وَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ ».(متفق عليه)(۱).

او كه څوک په تاسو کې ځان له مونځ کوي هغه ته اختيار دى چې څومره مونځ اوږدوي اوږد دې كړي.

﴿٤﴾ وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو مَسْعُودٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ

قيس بن حازم رضي الله عنه وايي چې ابن مسعود رضي الله عنه وفرمايل: چې يو كس وويل اى د الله رسوله! زه د

إِنِّي لَأَتَأَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيلُ بِنَا

سحر مونځ نه شاته ځكه پاتې كيږم چې فلانكى فلانى مونږ ته ډير اوږد مونځ كوي ابو مسعود رضي الله عنه وايي

فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ ثُمَّ قَالَ:

ما نبي عليه السلام نصيحت كولو په باره كې دديې ورځ غصې نه زيات ډک نه ؤ ليدلى نبي عليه السلام وفرمايل

" إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِينَ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ

تاسو كې بعضې خلكو كې نفرت پيدا كوي تاسو كې چې څوک مونځ وكړي هغه ته په كار دي چې خلكو ته

فَلْيَتَجَوَّزْ: فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ وَ الْكَبِيرَ وَ ذَا الْحَاجَة ".(متفق عليه)(۲)

سپک مونځ وكړي ځكه چې مقتديانو كې كمزوري، بوډاګان او حاجتمند خلک وي.

**توضيح:** ددې حديث نه معلومه شوه چې سوال كونكى كس څوک دى او من اجل فلان كې فلان نه ابى بن كعب رضي الله عنه مراد دى. (المرقات ۳/۲۱۰).

## د غلط مونځ كولو والا امام په خپله مجرم دى

﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: « يُصَلُّونَ لَكُمْ فَإِنْ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي تاسو ته به امام مونځ دركوي كه هغه

أَصَابُوا فَلَكُمْ وَ إِنْ أَخْطَئُوا

مونځ بنې طريقې سره وركوي د هغه فائده ستاسو د پاره ده (او د هغه د پاره هم ده) كه هغه خطاء وكړه

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۹۹/۲،رقم الحديث ۷۰۳، ومسلم في الصحيح ۳٤۱/۱ رقم الحديث:۱۸۳-٤٦۷، وأبو داود ٥۰۲/۱ رقم الحديث ۷۹٤، والنسائي ۹٤/۲، رقم الحديث ۸۲۳ ، والترمذي ٤٦۱/۱ رقم الحديث : ۲۳٦ ، وابن ماجة ۳۱٦/۱، رقم الحديث ۹۸۷.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۰۰/۲،رقم الحديث : ۷۰٤، ومسلم في الصحيح ۳٤۰/۱ رقم الحديث:۱۸۲-٤٦٦، وأبو داود ٥۰۲/۱ رقم الحديث :۷۹٥.

| |
|---|
| فَلَكُمْ وَ عَلَيْهِمْ » . ( رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ )[1]. |
| تاسو ته به ثواب ملاویږي او ګناه به هغه باندې وي. |

**توضیح: یصلون لکم** : دا ټوله جمله خبر واقع کېږي او مبتداء مخذوف ده کوم چې **ائمتکم** دی ددې تعلق هغه امامانو سره دی کوم چې حکمرانان دي او حکمرانان دین ورانولو هم دي.

حضور ﷺ راتلونکي بادشاهانو باره کې فرمایي هغوی مونځ خراب کوي صحابو عرض وکړو بیا خو هغه پسې مونځ نه دي کول په کار حضور ﷺ وفرمایل هغه به مونځ کوي تاسو به ورسره مونځ کوئ که هغوي صحیح طریقې سره مونځ کوو دهغه او ستاسو دواړو فائده ده که هغه غلطې طریقې سره مونځ وکړو د غلطۍ هغه په خپله ذمه دار دی او په خپله مجرم دی تاسو خو بنه کار کړی دی تاسو باندې د هغه د غلطۍ اثر نه پریوځي.(المرقات ۲۱۰-۳/۲۱۱).

## وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

| |
|---|
| ﴿٦﴾ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ: آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «إِذَا |
| عثمان ابن ابی العاص رضی الله عنه وایي چې حضور ﷺ ماته آخري وصیت چې کړی ؤ هغه دا ؤ کله |
| أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمُ الصَّلَاةَ » . رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُ : |
| چې خلکو ته مونځ ورکوی هغوي ته سپک مونځ ورکوه . او په مسلم کې د دویم روایت الفاظ دا دي چې |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ : « أُمَّ قَوْمَكَ » . قَالَ : قُلْتُ |
| حضور ﷺ عثمان رضی الله عنه ته وفرمایل دخپل قوم امامت کوه عثمان رضی الله عنه وایي ما عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا . قَالَ : « ادْنُهْ » . |
| یارسول الله ماته خپل زړه کې څه شی محسوسیږي حضور ﷺ وفرمایل ماته نزدې راشه حضور |
| فَأَجْلَسَنِي بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ فِي صَدْرِي بَيْنَ ثَدْيَيَّ ثُمَّ قَالَ : |
| ﷺ خپلې مخې ته کینولم او زما سینه باندې دواړو تیونو په منیځ کې لاس کیښودو او وې فرمایل |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۷/۲،رقم الحديث ۶۹۴

| |
|---|
| « تَحَوَّلْ » . فَوَضَعَهَا فِيْ ظَهْرِيْ بَيْنَ كَتِفَيَّ ثُمَّ قَالَ : |
| ملا راواړوه حضور ﷺ زما ملا باندې دواړو ولو مينځ کې لاس راښکلو وې فرمايل (لاړشه) او |
| « أُمَّ قَوْمَكَ فَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ |
| خپل قوم ته امامت وکړه او يو کس چې د قوم امام جوړ شي هغه ته په کار دي چې سپک مونځ وکړي ځکه |
| فِيْهِمُ الْكَبِيْرَ وَإِنَّ فِيْهِمُ الْمَرِيْضَ وَإِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَإِنَّ فِيْهِمْ ذَا الْحَاجَةِ فَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ وَحْدَهُ |
| هغوی کې بيماران، کمزوري او خاوند د حاجتونو وي نو که څوک يو اځې مونځ کوي نو څنګه چې دې |
| فَلْيُصَلِّ كَيْفَ شَاءَ» .(مسلم)[1] |
| زړه غواړي هغه شان مونځ وکړه . |
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِالتَّخْفِيْفِ |
| ابن عمر رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ مونږ ته د سپک مونځ حکم کړی دی او هغه چې به مونږ ته |
| وَ يَؤُمُّنَا بِالصَّافَّاتِ ) . (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[2]. |
| مونځ کولو نو سورة الصافات به يې لوستلو . |

**توضيح: الصافات:** ددې حديث په دواړو ټکړو کې په ظاهره تعارض دی او هغه دا چې حضور ﷺ صحابو ته د تخفيف صلاة ښه تاکيد فرمايلو خو په خپله سورة صافات لولې يو اوږد سورة دی .

ددې جواب دا دی چې د حضور ﷺ لوستلو انداز عجيبه دی لړ وخت کې اوږد سورة لولي نورو کې دا څيز نه وو ځکه يې هغوي منع کړل.

دويم جواب دا دی چې د حضور ﷺ د لذت والا مونځ نه خلک خوند اخلي هلته د ستړي والي تصور نه وو ځکه يې اوږد سورة لوستلو نورو کې دا خصوصيت چيرته دی. (المرقات ۳/۲۱۳).



(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳٤۱ رقم الحديث : ۱۸٦-٤٦۸.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۲/۹۵ رقم الحديث : ۸۲٦.

# بَابُ مَا عَلَى الْمَأْمُومِ مِنَ الْمُتَابَعَةِ وَحُكْمِ الْمَسْبُوقِ:

## د امام د تابعدارۍ بیان

دې کې وایي چې د امام متابعت څومره ضروري دی او مقتدي له د امام تابعداري کومو څیزونو کې څنګه کول په کار دي مونځ کې کوم ارکان فرض یا واجب دي دې کې مقتدیانو د پاره د امام متابعت واجب دی کوم چې سنت دي دې کې د امام متابعت واجب نه دی لکه رفع الیدین، آمین بالجهر او قنوت مسئله و غیره، مثلا شافعي امام سحر کې قنوت شروع کړی حنفي مقتدي باندې دې کې د امام متابعت لازم نه دی هغه دې خاموش وي او وترو کې قنوت واجب دی که یو شافعي امام ماسخوتن نه پس وترو کې د خپل مذهب موافق قنوت د رکوع نه پس وایي نو حنفي مقتدیانو ته هم د امام متابعت او موافقت کې د رکوع نه پس قنوت لوستل په کار دي دا یو ښه طریقه او ضابطه ده چې حرمینو کې په وترو کې د احنافو په کار راځي.

# الْفَصْلُ الأَوَّلُ:

## د امام متابعت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: كُنَّا نُصَلِّي خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ |
| براء بن عازب رضي الله عنه وایي مونږ د حضور صلی الله علیه وسلم شاته مونځ کولو کله به یې چې وویل سمع الله لمن |
| حَمِدَهُ . لَمْ يَحْنِ أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتَّى يَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حمده نو نه به ښکته کوله یو کس د مونږ نه ملا خپله تر څو چې به حضور صلی الله علیه وسلم (سجدې د پاره) څمکه |
| جَبْهَتَهُ عَلَى الأَرْضِ. (متفق علیه) [1]. |
| باندې تندی مبارک نه وو ایښې. |

**توضیح: لم یحن:** حنا یحنو ښکته کیدو په معنی سره دی دا لفظ ضرب یضرب او نصر ینصر دواړو نه راځي، مراد دا دی مونږ چې کله رکوع نه واپس قومې ته تللو نیغ به ولاړ وو تر څو چې حضور صلی الله علیه وسلم څمکه باندې سجده نه وه کړې مونږ به نه کړیدو چې حضور صلی الله علیه وسلم نه سجده کې

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۱۸۱/۲،رقم الحدیث :۶۹۰، ومسلم في الصحیح ۳۴۵/۱ رقم الحدیث:۱۹۷-۴۷۴، وأبو داود ۱۶۲/۱ رقم الحدیث :۶۲۲.

مخکیوالی لازم نه شي . (المرقات ۳/۲۱۴).

اوس فقهي مسئله داسې ده: امام نه مخکیوالی د ټولو ائمو په نزد حرام دي بلکې متابعت ضروري دی یا د متابعت دوه صورتونه دي اول مقارنت دویم موافقت، مقارنت هغه دی چې د امام د افعالو سره متصل د مقتدي فعل شروع کېږي. موافقت هغه دی چې د امام افعالو نه لږ وخت پس د مقتدي فعل شروع شي، د فقهاو په نزد د افضلیت اختلاف دی، چې مقارنت افضل دی یا موافقت افضل دی د احنافو په نزد مقارنت افضل دی صرف تکبیر تحریمي کې موافقت افضل دی د شوافعو په نزد تاخر افضل دی د امام فعل په انتهاء سره د مقتدي فعل شروع کېږي مذکوره حدیث د شوافعو دلیل دی احناف فرمايي دا حدیث د اوږد حدیث حصه ده دي کې مسابقت نه ممانعت راغلی اصل مقصد دا دی چې مسابقت رانه شي کله چې د حضور ﷺ بدن درونډ شو عمر ډیر شو دغه وخت کې د مسابقت خطره ډیره شوه دي وجې نه حضور ﷺ وفرمایل مسابقت مه کوئ ترڅو پورې زه سجدې ته لاړ نه شم تاسو معمولي هم مه کږېږئ صحابه نه ښکته کېدل، ددې حدیث مطلب دا نه دی ترڅو حضور ﷺ سجدې ته نه وي تلی، صحابو ته حرکت کولو مجال هم نه وو حاصل، بلکې اصل مقصد دا وو حضور ﷺ تیز حرکت نه شو کولی تاسو انتظار کوئ چرته داسې مه کوئ چې حضور ﷺ نه مخکې شئ ځکه یې وفرمایل لم یحن یعني څوک ښکته کېدل نه. (المرقات ۳/۲۱۴).

﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ

انس رضي الله عنه وايي يو ورځ حضور ﷺ مونږ ته مونځ مونږ ته وکړو او خپل مخ مبارک يې مونږ ته متوجه کړو

فَقَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ! إِنِّي إِمَامُكُمْ فَلَا تَسْبِقُونِي بِالرُّكُوعِ وَلَا بِالسُّجُودِ

اووې فرمایل خلکو! زه ستاسو امام یم نو تاسې مخکې والې مه کوئ دما نه په رکوع کولو ،سجده کولو

وَلَا بِالْقِيَامِ وَلَا بِالِانْصِرَافِ: فَإِنِّي أَرَاكُمْ أَمَامِي وَمِنْ خَلْفِي". (رَوَاهُ مُسْلِم)[1].

قیام کولو او تللو کې ځکه زه تاسو مخکې او وروستو نه وینم.

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُبَادِرُوا الْإِمَامَ

ابوهریره رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ فرمايي خپل امام باندې مخکیوالی مه کوئ

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۳۲۰ رقم الحديث ۱۱۲-۴۲۶

إِذَا كَبَّرَ فكبروا وَ إِذا قَالَ : وَلَا الضَّالِّين . فَقُولُوا : آمِينَ وَ إِذَا

کله چې امام تکبیر وکړي تاسو تکبیر کوئ، کله چې امام ولا الضالین ووایي تاسو آمین وایي کله چې امام

رَكَعَ فَارْكَعُوا وَ إِذَا قَالَ : سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا : اللَّهُمَّ رَبَّنَا

رکوع ته لاړشي تاسو رکوع ته ځئ او چې امام کله سمع الله لمن حمده ووایي نو تاسو ووایي اللهم ربنا

لَكَ الْحَمد "إِلَّا أَنَّ الْبُخَارِيَّ لَمْ يَذْكُرْ : " وَإِذَا قَالَ: وَلَا الضَّالِّين ".(مسلم)[1].

**لک الحمد**(ای الله ای زمونږ ربه ټول تعریفونه ستا دپاره دی). او بخاري خپل روایت کې **و اذا قال ولا الضالین** الفاظ نقل کړي نه دي.

## که امام معذور وي د هغه متابعت ضروري دی

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا فَصُرِعَ عَنْهُ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آس باندې ناست ؤ چې آس نه پريوتو دې وجې نه د

فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام نبي طرف (داسې) زخمي شو (چې په ولاړه باندې په مونځ کولو قادر نه ؤ) نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام

فَصَلَّى صَلَاةً مِنَ الصَّلَوَاتِ وَ هُوَ قَاعِدٌ فَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ قُعُودًا فَلَمَّا

مونځ وکړو (د پنځو مونځونو يو مونځ) او مونږ هم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام پسې وروسته مونځ وکړو کله چې د مونځ

انْصَرَفَ قَالَ : « إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا

کولو نه فارغ شو نو وې فرمایل امام دې د پاره مقرر دی چې د هغه اقتداء وشي نو که امام په ولاړه مونځ وکړي

فَصَلُّوْا قِيَامًا فَإِذا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَ إِذَا رَفَعَ

تاسو هم په ولاړه مونځ کوئ کله چې هغه رکوع ته لاړشي تاسو هم رکوع وکړئ کله چې هغه رکوع نه پاڅي

فَارْفَعُوا وَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُوْلُوْا رَبَّنَا وَ لَكَ الْحَمد وَ إِذَا

تاسو هم د رکوع نه پاڅئ کله چې هغه سمع الله لمن حمده ووایي تاسو ربنا لک الحمد وایي کله چې امام

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۳۱۰/۱ رقم الحديث ۸۷- ٤١٥، والنسائي ۹٦/۲، رقم الحديث ۸۳۰.

| |
|---|
| صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا أَجْمَعُونَ » قَالَ الْحُمَيْدِيُّ : قَوْلُهُ : |
| په ناسته مونځ کوي تاسو مقتديان هم په ناسته مونځ وکړئ. حميدي وايي حضور ﷺ دا ارشاد |
| « إِذَا صَلّٰى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا » هُوَ فِي مَرَضِهِ الْقَدِيمِ |
| چې امام په ناسته مونځ کوي تاسو هم په ناسته مونځ کوئ د حضور ﷺ اولني بيمارۍ کې وو |
| ثُمَّ صَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَالِسًا وَ النَّاسُ خَلْفَهُ |
| دې نه پس (مرض الوفات نه يو ورځ مخکې) حضور ﷺ په ناسته مونځ وکړو او خلکو ورپسې |
| قِيَامٌ لَمْ يَأْمُرْهُمْ بِالْقُعُودِ وَ إِنَّمَا يُؤْخَذُ |
| په ولاړه مونځ وکړو او حضور ﷺ دوي ته د ناستې حکم ونه کړو او د حضور ﷺ په دې |
| بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ. هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ. وَاتَّفَقَ مُسْلِمٌ إِلٰى أَجْمَعُونَ. |
| فعل باندې عمل کولی شي کوم چې آخري دی. دا الفاظ د بخاري دي او متفق دی مسلم تر **اجمعون** پورې |
| وَ زَادَ فِيْ رِوَايَةٍ : « فَلَا تَخْتَلِفُوْا عَلَيْهِ وَ إِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا »[1]. |
| يو بل روايت کې مسلم مزيد الفاظ نقل کړي چې د امام خلاف مه کوئ چې هغه سجده وکړي تاسو يې هم سجده کوئ. |

**توضيح: فصلوا جلوسا:** د دې حديث خلاصه دا ده چې يو ځلې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د آس نه پريوتو او د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام ښي طرف مکمل زخمي شو نبي عَلَيْهِ السَّلَام يو مونځ کور کې د جمعې سره داسې وکړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ناست وُ او ملګري يې هم ناست وو مونځ نه فارغيدو نه وروسته حضور ﷺ د معذور امام متعلق دا مسئله بيان کړه چې کله امام کيني تاسو هم کينئ او مونځ اداء کړئ.

**اذا صلى جالسا فصلوا جالوسًا:** د دې حديث د وجې نه يو اختلافي مسئله پيدا شوه او هغه دا چې د **قادر على القيام** اقتداء **عاجز عن القيام** پسې جائز ده او که نه او که جائز وي نو مقتدي په ناسته مونځ وکړي او که په ولاړه دې کې د فقهاو اختلاف دی. (المرقات ۳/۲۱۶).

**د فقهاو اختلاف:** د امام مالک، او محمد رَحِمَهُمَا اللهُ مسلک دا دی چې **قادر على القيام** مقتدي **عاجز عن**

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۷۳/۲ برقم الحديث :۶۸۹، ومسلم في الصحيح ۳۰۸/۱ رقم الحديث:۷۷-۴۱۱، وأبو داود ۴۰۱/۱ رقم الحديث :۶۰۱، والنسائي ۹۸/۲، رقم الحديث: ۸۳۲ .

**القيام** امام پسې مونځ كولى نه شي. امام صاحب، امام شافعي او امام ابويوسف رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد باندې **قادر على القيام** مقتدي **عاجز عن القيام** امام پسې اقتداء كولى شي. خو قادر مقتدي په ولاړه باندې مونځ وكړي او كه په ناسته امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد عاجز امام پسې قادر مقتدي اقتداء صحيح ده خو مقتدي به هم د امام په شان په ناسته مونځ كوي. (المرقات ۲۱۶-۳/۲۱۷).

**دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دا اقتداء صحيح نه ده د صحيح مقتدي مونځ قوي دى او د قاعد امام مونځ ضعيف دى او د امام مونځ ضامن وي او د مقتدي مونځ د دې په ضمن كې وي، نو ضعيف مونځ كې قوي مونځ څنګه راتلى شي. كه مقتدي كيني هم صحيح نه دى ځكه چې صحيح د پاره ناستې اجازت څنګه دى؟ دا اقتداء باطله ده. اوس صرف د جمهورو او د امام احمد مقابله ده امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ دليل زير بحث حديث دى خپله مدعا باندې واضح دليل دى. (المرقات ۲۱۶-۳/۲۱۷).

د امام صاحب او امام شافعي او ابويوسف رَحِمَهُمُ اللهُ دليل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مرض الوفات په وخت كې د مونځ كولو يو قصه ده دې كې واضح طور باندې راغلي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ناسته مونځ وركولو او صحابه كرام ورپسې ولاړ وو دا حديث زير بحث حديث نه بعد راتلونكى حديث نمبر(۵) دى (المرقات ۳/۲۱۶).

ددې حضراتو دويم دليل د قرآن آيت ﴿وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ دى كې د قيام هر تندرست باندې فرض كړى دى او قوموا امر نه د مونځ قيام مراد دى بل قيام داسې نشته چې هغې ته د عبادت درجه حاصله وي او هغه مامور به وي.

**جواب**: د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د دليل جواب دا دى چې د حديث نه مستنبط دا حكم وروستو راتلونكى حكم نه منسوخ شو دا واقعه سنه ۵ هـ) ده او مونږ چې كوم دليل نه استدلال كړى دى هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوند آخري وخت وو او شريعت كې هر متاخر حكم خپلولى شي، ځكه چې د نسخ نه محفوظ وي.

**قال الحميدي**: دا حميدي د بخاري استاد دى جامع صحيحين والا حميدي نه دى دا هم دلته فرمايي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر هغه فعل چې آخر كې شوى وي هغه واخلئ، ځكه چې دې كې د نسخ احتمال نشته. (المرقات ۳/۲۱۶).

## د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امامت او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيماري

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمَّا ثَقُلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې كله نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ډير بيمار شو بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خواته د مونځ د تلو د پاره راغې

فَقَالَ: «مُرُوا أَبَا بَكْرٍ أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ» فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل ابوبكر ته ووايه چې هغه خلكو ته مونځ وركړي نو مونځ وركړو ابوبكر

تِلْكَ الْأَيَّامَ ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ خِفَّةً

رضي الله عنه خلكو ته په دغه ورځو کې او لس مونځونه کله چې حضور صلى الله عليه وسلم خپل طبيعت سپک محسوس-

فَقَامَ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ

کړو نو نبي عليه السلام د دوو کسانو په مدد باندې لاړو او حضور صلى الله عليه وسلم خپل لاس د صحابو په ولو باندې

وَ رِجْلَاهُ يخطان فِي الْأَرْضِ حَتَّى دَخَلَ الْمَسْجِدَ

ايخې وو او حضور صلى الله عليه وسلم خپلې خپې مبارکې ځمکه باندې راخکلې تردې چې جومات ته داخل شو

فَلَمَّا سَمِعَ أَبُو بَكْرٍ حِسَّهُ ذَهَبَ يَتَأَخَّر فَأَوْمَأَ

کله چې محسوس کړو ابوبکر رضي الله عنه کشارې د حضور صلى الله عليه وسلم دراتللو نو وروستو کيدو نو اشاره وکړه

إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَن لَا يَتَأَخَّر فَجَاء حَتَّى جَلَسَ

حضور صلى الله عليه وسلم ابوبکر رضي الله عنه ته چې مه وروسته کيږه، بيا حضور صلى الله عليه وسلم مخکې شو او کيناستو

عَن يسَار أَبِي بكر فَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي قَائِمًا وَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ابوبکر رضي الله عنه چپ طرف ته ابوبکر رضي الله عنه ولاړه باندې مونځ وکړو او حضور صلى الله عليه وسلم (د کمزورۍ

يُصَلِّي قَاعِدًا يَقْتَدِي أَبُو بَكْرٍ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ النَّاسُ يَقْتَدُونَ

د وجې) په ناسته مونځ وکړو ابوبکر رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم د مونځ اقتداء کوله او خلکو اقتداء

بِصَلَاةِ أَبِي بكر. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: يُسْمِعُ أَبُو بَكْرٍ النَّاسَ التَّكْبِيرَ.[1]

کولو د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د مونځ.

**توضيح: مروا ابابكر ان يصلي بالناس:** په امامت صغرى باندې د ابوبکر صديق رضي الله عنه مقرر ول امامت کبرى طرف ته اشاره وه حضرت علي رضي الله عنه دې نه استدلال کړی دی چې حضور صلى الله عليه وسلم ابوبکر رضي الله عنه زمونږ د پاره د دين امام جوړ کړو، نو مونږ د پاره د دنيا هم امام شو، که خلافت طرف ته اشاره نه وی، نو حضور صلى الله عليه وسلم به د ابوبکر رضي الله عنه په حق کې دومره اصرار نه کولی، عمر فارق رضي الله عنه په باره کې د ازواج مطهراتو سفارش هم وو حضور صلى الله عليه وسلم په سختۍ سره منع وفرمايل او ابوبکر رضي الله عنه يې په امامت باندې برقرار وساتو. (المرقات ۳/۲۱۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۴۷/۲، رقم الحديث : ۶۸۴، ومسلم في الصحيح ۳۱۳/۱ رقم الحديث: ۹۵-۴۱۸

**يهادى**: د دوو كسانو په ولو باندې لاس كيښودل او د هغوى په تعاون سره تللو ته تهادي ويل كيږي.

**والناس يقتدون بصلاة ابى بكر**: د حضور ﷺ خصوصيت وجه وه چې بغير د استخلاف نه حضور ﷺ په خپله خليفه جوړ شو ابوبكر نه منصب امامت حضور ﷺ ته منتقل شو امام حضور ﷺ وو او ابوبكر رضي الله عنه د حضور ﷺ طرف نه مكبر وو، په ظاهره امام نظر راتلو. (المرقات ۳/۲۱۹).

## د امام نه مخكې د سر اوچتولو والا سر به د خر جوړيږي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَمَا يَخْشَى الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ |
| ابوهريره رضي الله عنه راوي دى وايي چې حضور ﷺ فرمايي آيا هغه كس نه ويريږي كوم چې اوچتوي |
| قَبْلَ الْإِمَامِ أَنْ يُحَوِّلَ اللهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ». (متفق عليه)[1] |
| سر خپل مخكې د امام نه، ددې نه چې الله تعالى به دده سره بدل كړي د خر سر به ترې جوړ كړي. |

**توضيح: رأس حمار**: يعنې يو كس د امام نه ركوع او سجده كې سر مخكې اوچتوي د هغه باره كې خطره موجود ده چې د هغه د سر نه به د خر سر جوړ شي علماو ددې ډير مطلبونه ذكر كړي دي: اول دا چې دا كلام په حقيقت نه بلكې مجاز باندې محمول دى يعنې دده سر واقعي د خر نه جوړيږي بلكې دا به د خر په شان بې عقل او بليد وي، گويا دا كلام تشبيه باندې محمول دى. دويم مطلب ابن حجر رحمه الله دا بيان كړى چې دا مسخ كيدل خاص دي دا يو جزئي حالت سره متعلق ده ددې واقع كيدل منع دي او يو عام مسخ ده چې پوره امت مسخ شي هغه منع ده، لهذا احاديثو كې چې د كوم مسخ ممانعت خبره ده هغه دغه عام مسخ دهٔ ددې حديثونو كې هيڅ معارض نشته. ددې حديث دريم مطلب دا دى چې د مسخ نه مراد حقيقي مسخ كيدى شي او ددې امكان نه شي رد كيدى ځنگه چې اشراط الساعة كې د مسخ د واقعاتو ذكر دي او مخكې زمانو كې هم د مسخ حقيقي واقعات موجود شوي دي. (المرقات ۳/۲۲۱).

**عبرتناكه قصه**: ملا علي قاري رحمه الله ددې حديث لاندې په مرقات ۳ جلد ۹۸ صفحه باندې يوه عبرتناكه قصه ليكلې ده چې يو جليل القدر محدث د علم حديث د حصول د پاره يو مشهور شيخ الحديث خوا ته دمشق ته لاړو چې دده د علم او د حديثو په هغه وخت كې يوه چرچا وه د علم حديث ددې شوقين طالب

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۲/۲، رقم الحديث ۶۹۱، ومسلم في الصحيح ۳۲۰/۱ رقم الحديث ۱۱۴-۴۲۷، وأبو داود ۴۱۲/۱ رقم الحديث ۶۲۳، والنسائي ۹۶/۲، رقم الحديث ۸۲۸، والترمذي ۴۷۵/۲ رقم الحديث: ۵۸۲، وابن ماجة ۳۰۸/۱، رقم الحديث: ۹۶۱

علم دد ې شیخ نه د حدیثو زده کړه شروع کړه او ټول آحادیث یې دد ې شیخ نه حاصل کړل . لیکن عجیبه صورتحال دا مخې ته راغلو چې په ټول وخت کې استاذ د ې خپل عقید تمند شاګرد ته خپله څیره هیڅکله ښکاره نه کړه بلکې په پرده کې به یې د ې شاګرد ته حدیث ویل . چې کله استاذ ته اندازه وشوه چې اوس شاګرد په پوره عقیدت او د خدمت پوره جذبه او د حدیثو پوره شوق حاصل شو او اوس دا قابل اعتماد دی نو استاذ پرده د مخ نه لرې کړه ، شاګرد چې کله د استاذ څیره ولیده نو حیران پاتې شو ځکه چې دده د استاذ څیره د خر څیرې په شان شوې وه ، دده د حیرانتیا په وجه استاذ وویل چې ای زویه ! د مونځ په ارکانو کې د ښویدو نه بچ شه ( او د حدیثو په تعلیم او فرمان کې د شک کولو نه ځان وساته ) ځکه چې ما کله دا حدیث واوریدو نو زما یقین نه راتللو چې واقعتاً داسې کیدې شي نو ما په ارکانو کې د امام نه مخکې والې وکړو نو زما څیره د خره شوه لکه اوس یې ګورئ والعیاذ بالله . ( المرقات ۳/۲۲۱ )

# الْفَصْلُ الثَّانِي:

## د امام موافقت

| |
|---|
| «۷» عَنْ عَلِيٍّ وَ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَا : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِذَا أَتَى |
| حضرت علي او معاذ بن جبل رضي الله عنهما راویان دي وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي کله چې راشي په |
| أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ وَ الْإِمَامُ عَلَى حَالٍ فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الْإِمَامُ ». |
| تاسو کې څوک مونځ ته او امام کوم حالت کې وي څه چې امام کوي هغه ته هم په کار دي چې هغه شان وکړي |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ . (ترمذي)[1]. |
| دا حدیث امام ترمذي نقل کړی دی او وایي چې دا حدیث غریب دی . |

## رکوع کې شریک کیدو سره رکعت ملاویږي

| |
|---|
| «۸» وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «إِذَا جِئْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ وَنَحْنُ |
| ابو هریره رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي چې کله تاسو مونځ ته راشئ او ما د |
| سُجُودٌ فَاسْجُدُوا وَلَا تَعُدُّوهُ شَيْئًا |
| سجدې حالت کې وو مومئ . نو تاسو هم په سجده کې شئ او دغه سجده په څه حساب کې مه لګوئ ، خو |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲: ۱۸۵ رقم الحديث : ۵۹۱

وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ» . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

که یو کس (امام سره) رکوع ومونده هغه رکعت ومونده لو .

**توضیح: فاسجدوا:** بعضې خلک امام سجده کې بیاموځي نو ولاړ وي او انتظار کوي چې امام پاڅي مونږ به ده سره یو ځای شو . دې حدیث کې یې دا خبره وخوده چې تاسو په سجده کې شریک شئ خو د سجدې په وجه رکعت مه حسابوئ که رکوع ملاو شي تاسو پوره رکعت ومونده لو .

**رکعة:** ددې یو مطلب دا هم دی چا چې رکوع ومونده هغه مونځ ومونده لو یعنې دا رکعت ده ته ملاو شو

دلته **رکعة** نه مراد رکوع ده او **صلاة** نه مراد رکعت دی.

دویم مطلب دا چې چا پوره مونځ کې یو رکعت هم امام سره ومونده لو ده پوره مونځ ومونده لو ده ته د جماعت ثواب ملاو شو ، دې سره غیر مقلدینو ته سخته دیکه ملاویږي ځکه چې بغیر د فاتحې نه د مقتدي مونځ صحیح شو او ده ته رکعت هم ملاو شو . (المرقات ۳/۲۲۲)

## د تکبیر اولی لوی فضیلت

﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ صَلَّى لِلّٰهِ أَرْبَعِينَ

انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چا چې مونځ وکړو د الله تعالی د پاره څلوېښت

يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ :

ورځې په جماعت سره داسې مونځ چې تکبیر اولی هم وموميي نو ده د پاره لیکلي شي دوه قسمه نجاته :

بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ " . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[2].

یو د دوزخ نه د خلاصي دویم نفاق نه د بري کیدو .

## که جمعه ونیسي یا نه خو ثواب ملاویږي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چا چې اودس وکړو او ښه اودس یې وکړو

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۵۵۳ رقم الحديث ۸۹۳

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲ ۷ رقم الحديث ۲۴۱

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | رَاحَ | فَوَجَدَ | النَّاسَ | قَدْ | صَلَّوْا | أَعْطَاهُ | اللهُ | |

او بيا (جومات) ته لاړو هلته يې وكتل چې خلكو مونځ كړى دى، نو وربه كړي الله تعالى دغه كس ته

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِثْلَ | أَجْرِ | مَنْ | صَلَّاهَا | وَ | حَضَرَهَا | لَا | يَنْقُصُ |

ثواب د مونځ كوونكو برابر، كوم چې جماعت كې حاضري وكړه او مونځ يې وكړو، او كمي به نه راځي

ذَٰلِكَ من أُجُورهم شَيْئًا». (۱)

د حاضرو خلكو په ثواب كې.

## د جماعت فضيلت

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ وَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابي سعيد خدري رضي الله عنه وايي يو كس داسې وخت ته راورسيدو چې حضور صلى الله عليه وسلم مونځ كړى وو

فَقَالَ: «أَلَا رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ عَلَى هٰذَا فَيُصَلِّيَ مَعَهُ؟»

حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل يو كس داسې نشته چې د الله تعالى په لاركې وركړه وكړي او ده سره مونځ

فَقَامَ رَجُلٌ فيصلى مَعَه". (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ، وَأَبُو دَاوُد)(۲).

وكړي يو كس اودريدو او دغه كس سره يې مونځ وكړو.

**توضيح: وقد صلى:** يعنې حضور صلى الله عليه وسلم مونځ كړې وو او اوس دا معلومه نه ده چې دا كوم مونځ وو، ائمه احناف فرمايي چې د مازيګر او ماښام نه علاوه مونځ وو ځكه چې مازيګر نه پس نفل جائز نه دي او ماښام كې دري ركعته نفل كول شريعت كې معهود نه دي. (المرقات ۳/۲۲۵).

**يتصدق:** دا د صدقې په معنى سره ذى دلته احسان كول مراد دي، علامه مظهري فرمايي دې عمل ته يې صدقه ځكه وويله كه دا كس ځان له مونځ كوي ده ته به د جماعت ثواب نه ملاويږي كله چې يې جماعت سره مونځ وكړو، ګويا جمعې برابرولو والا په ده باندې احسان وكړو د يو په ځاى (۲۶) زيات مونځونو ثواب هغه ته ملاو شو. اوس مسئله دا ده دغه كس سره مونځ كولو والا ابوبكر رضي الله عنه وو او ابوبكر رضي الله عنه خپل مونځ كړى وو بيا هغوى ځنګه وكړو د متنفل پسې د مفترض مونځ وشو؟ شوافع وايي جائز دي دا زمونږ دليل دى احناف وايي دلته ابوبكر رضي الله عنه نه ؤ بلكې دغه كس په خپله امام ؤ د

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۸۱ رقم الحديث ۵٦٤

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۴۲۷ رقم الحديث ۲۲۰ وأحمد في المسند ۳/۵

هغه نه مونځ پاتې شوی وو. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي اختلاف نه د وتلو صورت دا دی. دويم صورت کې اختلاف دی خو بنه دا ده چې دې صورت باندې حديث حمل کړی شي کوم کې چې اختلاف نه وي بلکې اتفاق وي دا د هغه وخت خبره ده کوم وخت کې چې دوه ځلې فرض جائز وو. (المرقات ۳/۲۲۵).

**د دوهمې جمعې يو څه تفصيل:** **فصل معه:** دويم جماعت باره کې علماء فرمايي که د لارې يا بازار جومات وي دې د پاره مقرر امام نه وو متعدد جماعت يا دويم جماعت جائز دی. که امام راتب او متعين موجود وي او د جماعت سره يې مونځ ورکړو بيا يو څو کسان راغلل يو ځای شو او ضرورت سره موضع اول باندې دويم جماعت د پاره ودريدل ټولو فقهاو په نزد بالاتفاق مکروه دي که ضرورت هم نه وي او موضع اول کې دويم جماعت هم نه وي ګنه هم نه وي او خلک مقامي وي نو په دې صورت کې اختلاف دی. (المرقات ۳/۲۲۵).

**د فقهاو اختلاف:** جمهور فقهاء وايي چې په آخري صورت کې هم جماعت ثاني مکروه دی امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او صاحبين فرمايي دا بلا کراهت جائز دی.

**دلائل:** جمهور وايي دغه شان د دويم جماعت عادت جوړول د جمعې د غرض د پاره مفوت دی، ځکه چې جماعت کې ټول را جمع کيدل د اسلام اتحاد او شوکت مظاهره وشي همدارنګه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فوت شوي مونځ قضاء کور کې کړې ده جومات کې جماعت سره نه دی کړی.

**جواب:** د زير بحث حديث نه جمهور دا جواب ورکوي چې د جواز او عدم جواز بحث فرائضو کې دی او د زير بحث حديث تعلق د فرائضو سره نه بلکې دا د متنفل جماعت وو، ځکه چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرض مونځ کړی وو. (المرقات ۳/۲۲۵).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

### د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرض وفات او د مونځ مکمل نقشه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ |
| عبيد الله بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شوم او هغې ته مې وويل |
| أَلَا تُحَدِّثِينِي عَنْ مَرَضِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَتْ بَلَى |
| آيا ته به ما ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بيمارۍ حال ذکر نه کړې؟ عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل: ولې نه، |
| ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : « أَصَلَّى النَّاسُ ؟ » قُلْنَا لَا |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير بيمار شو تپوس يې وکړو آيا خلکو مونځ کړی دی مونږ وويل تر اوسه يې نه دی کړی |

يَا رَسُولَ اللهِ وَ هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ فَقَالَ : « ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ » قَالَتْ

يارسول الله ستاسو انتظار کوي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل زما دپاره په لګن کې اوبه کيږدئ عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي

فَفَعَلْنَا فَاغْتَسَلَ فَذَهَبَ لِيَنُوءَ

مونږ په لګن کې اوبه کيخودې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غسل وکړو (او اراده يې وکړه) چې او دريږي (خو د

فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَصَلَّى النَّاسُ ؟ » قُلْنَا

کمزورۍ د وجې نه ) بې هوشه شو کله چې هوش کې راغی وې فرمايل خلکو مونځ کړی دی مونږ ووېل

لَا هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : « ضَعُوا

تر اوسه يې نه دی کړی خلک ستاسو په انتظار کې دي يارسول الله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کيږدئ

لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ » قَالَتْ فَفَعَلَ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ

ماته اوبه په لګن کې عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي هغه غسل کول او غوښتل يې چې ودريږي خو بې هوشه شو

ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ : « أَصَلَّى النَّاسُ ؟ » قُلْنَا لَا هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ

کله چې هوش کې راغی بيا يې تپوس وکړو خلکو مونځ کړی مونږ عرض وکړو نه خلک ستاسو په انتظار کې

يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ : « ضَعُوا لِي مَاءً فِي الْمِخْضَبِ » فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ

دي يارسول الله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل لګن کې اوبه کيږدئ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کيناستو غسل يې وکړو

ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغْمِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ : « أَصَلَّى النَّاسُ » . قُلْنَا

او پاڅيدل يې غوښتل خو بې هوشه شو کله چې هوش کې راغی وې فرمايل خلکو مونځ کړی مونږ عرض وکړو

لَا هُمْ يَنْتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ وَالنَّاسُ عُكُوفٌ فِي الْمَسْجِدِ يَنْتَظِرُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

نه ستاسو په انتظار دي يارسول الله او خلک ناست دي په جومات کې او انتظار کوي د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ . فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ بِأَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ

د ماسخوتن مونځ د پاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وليږلو چې خلکو ته مونځ ور کړي

فَأَتَاهُ الرَّسُولُ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ

قاصد د هغه خواته راغی او وې ويل چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دی ستا د پاره چې خلکو ته مونځ ور کړه

فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ وَ كَانَ رَجُلًا رَقِيقًا يَا عُمَرُ صَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَ لَهُ

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نرم زړه والا ؤ نو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې ووېل اې عمره! ته مونځ ورکړه خلکو ته نو ووېل ده ته

عُمَرُ أَنْتَ أَحَقُّ بِذَلِكَ فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ تِلْكَ الْأَيَّامَ

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د دې زيات اهل يې نو مونځ وکړو ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې ورځو کې (يعنې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مرض

ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَجَدَ فِيْ

وفات په ورځو کې ۱۷ مونځونه خلکو ته کړي وو) کله چې (يوورځ) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وموندو په خپل

نَفْسِهِ خِفَّةً وَ خَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ

مرض کې څه کم والى نو د دوو کسانو په تعاون باندې چې يو کس ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ؤ د ماسپښين مونځ

وَ أَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فَلَمَّا رَآهُ أَبُو بَكْرٍ

د پاره مسجد ته راغلو ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته مونځ ورکولو ده چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د راتلو آواز واورېدو

ذَهَبَ لِيَتَأَخَّرَ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِأَنْ لَا يَتَأَخَّرَ

نو د وروسته کيدو اراده يې وکړه خو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اشارې په ذريعه د وروسته کيدو نه منع کړو

قَالَ : « أَجْلِسَانِي إِلَى جَنْبِهِ » فَأَجْلَسَاهُ

اودې دواړو ته يې وفرمايل چې ما د ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته کينوئ نو هغوي نبي عَلَيْهِ السَّلَام کينولو

إِلَى جَنْبِ أَبِي بَكْرٍ وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَاعِد . قَالَ عُبَيْدُ اللهِ :

د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (په ناسته باندې) مونځ کولو . عبيدالله وايي چې : زه د

فَدَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ لَهُ أَلَا أَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا

عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته لاړم او هغه ته مې ووېل آيا زه تا ته هغه حديث ذکر نه کړم کوم چې ما د

حَدَّثَتْنِي بِهِ عَائِشَةُ عَنْ مَرَضِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ قَالَ هَاتِ

عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرض په باره کې اورېدلى وو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي هو

فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَدِيثَهَا فَمَا

بيان يې کړه ما هغه مخې ته د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث بيان کړو خو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې خبرو کې د

| |
|---|
| أَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا غَيْرَ أَنَّهُ قَالَ أَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِيْ كَانَ |
| يوې خبرې نه هم انکار ونه کړو دا يې وويل چې آيا تا ته عائشې رضي الله عنها د هغه کس نوم ذکر کړو چې د |
| مَعَ الْعَبَّاسِ قلت لَا قَالَ هُوَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ .(متفق عليه)[1]. |
| ابن عباس رضي الله عنه سره وو ما وويل نه حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل هغه علي رضي الله عنه وو. |

## سورة فاتحه نه لوستلو سره ثواب کم ملاويږي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: «مَنْ أَدْرَكَ الرَّكْعَةَ فَقَدْ أَدْرَكَ السَّجْدَةَ وَمَنْ فَاتَتْهُ |
| دابوهريره رضي الله عنه روايت دی وايي: چاچې رکوع ومونده ده ته پوره رکعت ملاو شو او د چانه چې پاتې |
| قِرَاءَةُ أُمِّ الْقُرْآنِ فَقَدْ فَاتَهُ خَيْرٌ كَثِيْرٌ». (رَوَاهُ مَالِك)[2]. |
| شوه لوستل د سورة فاتحې نو هغه د ډېر ثواب نه (محروم) پاتې شو. |

**توضيح: فاتته ام القرآن:** ائمه احناف وايي دد دې حديث مطلب هغه دی کوم چې **فصلاته خداج** مطلب دی يعنې مونځ ناقص دی ثواب کم ملاويږي دې نه معلومه شوه چې امام پسې فاتحه فرض نه ده فرض مطلق قرآن لوستل دي فاتحه لوستل منفرد دپاره واجب ده او امام نه وروسته دا ذمه واري نه پاتې کېږي.

## د امام نه مخکې سجدې ته تلل ډېره لويه ګناه ده

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَ عنهُ قَالَ : الَّذِي يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَ يَخْفِضُهُ |
| دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې کوم کس چې خپل سر د امام نه مخکې اوچت کړي يا ښکته |
| قَبْلَ الْإِمَامِ فَإِنَّمَا ناصيته بيد الشَّيْطَان ". [3]. |
| کړي د هغه تندې د شيطان په لاس کې وي. |

**توضيح: ناصيته:** يعنې دده تندی د شيطان په لاس کې دی هغه چې څنګه غواړي حرکت ورکولی شي دا تسلط يا حقيقة دی واقعي شيطان په لاس دده د تندي په ويختو باندې پروت دی يا مجازا دی يعنې شيطان ده ته په خپلې مرضۍ سره حرکت ورکوي.(المرقات ۳/۲۳۰).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۲/۲ رقم الحديث ۲۸۷، ومسلم في صحيحه ۳۱۱/۱ رقم الحديث : ۹۰/۴۱۸، والنسائي في السنن ۱۰۱/۲ رقم الحديث ۸۳٤.

(۲) أخرجه مالک في الموطأ ۱۱/۱ رقم الحديث : ۱۸ من کتاب وقوت الصلاة.

(۳) أخرجه مالک في الموطأ ۹۲/۱ رقم الحديث : ۵۷ من کتاب وقوت الصلاة.

# بَابُ مَنْ صَلّٰى صَلَاةً مَرَّتَيْنِ :
# د يو مونځ دوه ځلې کولو بيان

دې باب کې دوه مسئلې دي اول دا چې يو کس کور کې فرض وکړل او جومات ته راغی ويې کتل جماعت ولاړ دی دا کس دې جماعت کې مونځ کولی شي او که نه دويمه مسئله دا ده دې کس چې کوم مونځ کور کې کړی دی آيا دغه مونځ فرضو کې شمار کېږي يا هغه فرض کې شمار کېږي کوم چې ده په جومات کې جماعت سره وکړو ددې بيان په آحاديثو کې را روان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه ځلې مونځ ولې کړی؟

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثُمَّ |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونځ کولو بيا به |
| يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ .(متفق عليه)[1]. |
| خپل قوم ته راغی هغوي ته به يې مونځ ورکولو. |

**توضيح:** حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه ځلې مونځ کړی وو د ماسخوتن مونځ يې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره کړی وو بيا يې خپل قوم ته هم د ماسخوتن مونځ ورکړو دې حديث سره ملا و حديث کې تصريح ده دويم مونځ دې د پاره نفل جوړ شو. ددېنه نه معلومه شوه حضرت معاذ متنفل وو او قوم مفترض دی مسئله کې د جواز او عدم جواز سخت اختلاف دی خو ددې تفصيل مخکې په **باب القرآة في الصلوة** کې د حديث نمبر(۱۰) په ضمن کې تير شو.(المرقات ۳/۲۳۱).

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ |
| جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د ماسخوتن مونځ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره کولو بيا به |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۹۲/۲، رقم الحديث ۷۰۰، ومسلم في الصحيح ۳۳۹/۱ رقم الحديث:۱۸۸-۴۶۵، وأبو داود ۵۰۰/۱ رقم الحديث ۷۹۰، والنسائي ۱۷۲/۲، رقم الحديث ۹۹۷.

يَرْجِعُ إِلَى قَوْمِهِ فَيُصَلِّي بِهِمُ الْعِشَاءَ وَهِيَ لَهُ نَافِلَةٌ. (رواه البخاري)[١].

خپل قوم ته راتلو او دوي ته به يې د ماسخوتن مونځ ورکولو او دا د ده د پاره نفل وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## په کور کې مونځ وکړي او بيا جماعت ومومي نو څه به کوي؟

﴿٣﴾ عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّتَهُ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ

يزيد بن اسود رضي الله عنه وايي زه د حضور صلى الله عليه وسلم سره حج کې شريک وم نو ما مونځ وکړو د نبي عليه السلام

صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ وَانْحَرَفَ فَإِذَا هُوَ بِرَجُلَيْنِ

سره په مسجد خيف کې د سحر مونځ کلمچې حضور صلى الله عليه وسلم مونځ نه فارغ شو څه وينې چې دوه کسان

فِي آخِرِ الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّيَا مَعَهُ قَالَ:

د جومات په کونج کې ناست دي دوي د حضور صلى الله عليه وسلم سره مونځ نه وُکړی نبي عليه السلام وفرمايل

« عَلَيَّ بِهِمَا » فَجِيءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا

دوي زما خواته راوله دواړه يې د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر کړل چې د ولو غوښه يې رپيده

فَقَالَ: « مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا ؟ » . فَقَالَا:

حضور صلى الله عليه وسلم ترې تپوس وکړو تاسو زمونږ سره مونځ نه کولو نه څه شيز منع کړي وئ هغوي وويل

يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّا كُنَّا قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا. قَالَ: « فَلَا تَفْعَلَا

يارسول الله مونږ خپل ځای کې يعنې خپل کور کې مونځ کړې ؤ نبي عليه السلام وفرمايل داسې بيا مه کوئ

إِذَا صَلَّيْتُمَا فِي رِحَالِكُمَا ثُمَّ أَتَيْتُمَا مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا

کله چې تاسو کور کې مونځ وکړئ او هغه جومات ته راشئ چيرته چې جماعت کېږي نو مونځ کوئ د

مَعَهُمْ فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ »[٢].

دخلکو سره دا مونځ به ستاسو د پاره نفل شي.

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ١٩٢/٢، رقم الحديث: ٧٠١، ومسلم في الصحيح ٣٤٠/١ رقم الحديث: ١٨٠-٤٦٥

(٢) أخرجه أبو داود في السنن ٣٨٦/١ رقم الحديث ٥٧٥، وأخرجه الترمذي في السنن ٤٢٤/١، رقم الحديث: ٢١٩.

**توضیح: فانها لکم نافلة**: اولني مسئله: که یو کس کور کې مونځ وکړو او جماعت یې جومات کې اومنډو هغه دې بغیر د سوچ نه جماعت کې شامل شي او که څه وکړي دې کې اختلاف دی.
**د فقهاو اختلاف**: امام شافعي او احمدبن حنبل رَحِمَهُمَااللّٰهُ په نزد باندې پنځه مونځونو کې شاملیدی شي دا دده نفل مونځ دی سحر، ماسپخین، ماښام او ماسخوتن کې دا کس د نفلو په غرض شاملیدی شي.
امام مالک رَحِمَهُاللّٰهُ وایي داسې کس ماښام مونځ کې د نفلو په غرض نه شي شاملیدی او باقي کې شي.
ائمه احناف وایي داسې کس نفلو په غرض سره صرف د ماسپخین او ماسخوتن مونځونو کې شاملیدی شي باقي سحر، مازیګر او ماښام کې نه شي شاملیدی.(المرقات ۳/۲۳۱).
**دلائل**: د شوافعو او حنابلو دلیل د زیر بحث یزید بن اسود حدیث دی دې کې تصریح ده چې د منی مسجد خیف کې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سحر مونځ کې دوه کسانو ته جماعت کې د شریک کیدو تعلیم ورکړو او ویې فرمایل دا دویم مونځ چې جماعت سره وکړئ نو دا ستاسو د پاره نفل دی خپل مدعا باندې واضح دی دا حدیث. (المرقات ۳/۲۳۱).

د امام مالک رَحِمَهُاللّٰهُ د دلیل بعضې روایاتو کې **الا المغرب** الفاظ دي موطا مالک کې دي چې ددې نه علاوه نور مونځونو کې عام اجازت د روایاتو نه استدلال کوي. (المرقات ۳/۲۳۱).
ائمه احناف فرمایي چې د سحر او مازیګر مونځ نه بعد نفل کول د متواترو احادیثو په رڼا کې منع دي دې ممانعت کې څه شبه یا ابهام نشته او ممانعت عام دی لهذا کور کې د سحر او مازیګر مونځ کولو نه

بعد نفل کولو سره د عامو متواترو احادیثو نه مخالفت لازمیږي او ماښام کې یو **الاالمغرب** استثنی ده دې نه ممانعت ثابت دی دویمه وجه دا ده څوک چې ماښام نفل کوي یا امام سره سلام واړوي نو درې رکعاته به شي او درې نفل اسلام کې معروف نه دي او که دا کس ورسره یو رکعت بل وکړي څلور رکعاته نفل به جوړ شي لکه شوافع فرمایي دې نه د امام مخالفت لازم راځي دا منع دی دې عمومي استدلال نه علاوه احناف بعضې احادیثو او آثارو نه هم استدلال کړی دی، مثلا ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اثر

پخپله مشکوة کې دې باب آخره کې حدیث نمبر(۹) کې راځي الفاظ یې دا دي: (**من صلى المغرب والصبح ثم ادركهما مع الامام فلا يعد لهما**) (**رواه مالک**) بعضې علماو د امام مالک مسلک هم دا ښودلی دی د سحر او ماښام دواړو کې شاملیدل صحیح نه دي.
**اول جواب**: شوافعو او حنابلو چې د کوم روایت نه استدلال کړی دی ددې یو جواب دا دی ډیر ممکن دی دا د هغه وخت خبره ده چې یو وخت کې دوه ځلې فرض کول جائز وو. (المرقات ۳/۲۳۳).
**دویم جواب**: دا ډیر ممکن دی دا جواز هغه زمانې سره متعلق دی چې سحر او مازیګر نه پس د نفل کولو د ممانعت حکم نه ؤ. (المرقات ۳/۲۳۳).

**دریم جواب**: دلته د مبیح او محرم مسئله ده او چې مقابله یې راشي نو ترجیح محرم له ده، نو احناف محرم له ترجیح ورکوي.

**دویمه مسئله**: فرض کوونکي کس د جماعت سره هم مونځ اوکړو، نو مخکې **مونځ به فرض شمارل کېږي** او که دویم مونځ فرض کې شمار کېږي دې کې د شوافعو حضراتو **یو قول دی** تعین نه بغیر یو فرض دی او دویم نفل دی. دویم قول دا دی دواړه فرض شمارل کېږي. دریم قول ړومبی مونځ به فرض شي او دویم به نفل جوړ شي دا د شوافعو مختار قول دی ائمه احناف فرمایي ړومبی به فرض شي او دویم به نفل شي لکه د شوافعو مختار قول دی د احنافو په دلیل او تائید کې هغه ټول روایات دي هغې کې دویم مونځ صراحت سره نفل ذکر کړی دی.

**فانها لک نافلة**: دې کس ته د جماعت ثواب ملاو شو او نفل به هم ملاو شي فرض مخکې شوي دي. داسې دا مسئله مغیباتو سره تعلق ساتي چې آخرت کې به څه کېږي، ځکه د الله تعالی مشیئت ته پرېښودل پکار دي ابن عمر رضی الله عنه حدیث نمبر (۷) کې راغلي دي د هغوی نه چا تپوس وکړو زه کوم مونځ فرض جوړ کړم هغه ورته جواب کې وویل دا ستا کار نه دی دا د الله تعالی کار دی چې کوم فرض کوي او کوم نفل جوړوي. **ترعد**: د رعد نه د ریبدو په معنی دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ :

## د مونځ کولو والا مسلمان وي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ بُسْرِ بْنِ مِحْجَنٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُذِّنَ بِالصَّلَاةِ |
| بسر بن محجن خپل پلار نه روایت کوي هغه یو مجلس کې حضور ﷺ سره ؤ د مونځ د پاره آذان وشو |
| فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَصَلَّى وَ رَجَعَ وَ مِحْجَنٌ فِي مَجْلِسِهِ |
| حضور ﷺ مونځ د پاره او درېدو مونځ کولو نه چې فارغ شو کوري محجن په خپل ځای باندې ناست |
| فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا مَنَعَكَ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ النَّاسِ؟ أَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ ؟ |
| دی حضور ﷺ ترې تپوس وکړو خلکو سره مونځ کولو نه څه څیز منع کړې یې ته مسلمان نه یې |
| فَقَالَ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَكِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي أَهْلِي فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : |
| هغه وویل یا رسول الله! زه مسلمان یم خو ما کور کې مونځ کړی ؤ، حضور ﷺ ورته وفرمایل: |
| « إِذَا جِئْتَ الْمَسْجِدَ وَ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ |
| کله چې ته راشي جومات ته او مونځ دې (په خپل کور کې) کړې وي او په مسجد کې جمعه ولاړه وي نو |

فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَ إِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ »[1].

د خلکو سره (دوباره) مونځ کوه اګر چې تا مونځ کړی وي.

**توضیح**: **الست برجل مسلم**: یعنې ټول خلک د جماعت سره مونځ کوي او ته وروستو ناست یې او مونځ نه کوې آیا ته مسلمان نه یې دا طریقه خو د مسلمانانو نه ده. (المرقات ۳/۲۳۵).

دې جملې نه هر مسلمان ته سوچ کول په کار دي چې مونځ نه کول د کافرو طریقه ده مسلمان هغه وي چې مونځ کوي صحابه هم دغه کس ته مسلمان نه وایي څوک چې مونځ پرېږدي.

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَسَدِ بْنِ خُزَيْمَةَ أَنَّهُ سَأَلَ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ قَالَ: |
| دقبیلې د اسد ابن خزیمه د یو کس په باره کې مروي دي ده ابوایوب انصاري نه تپوس وکړو وې فرمایل |
| يُصَلِّي أَحَدُنَا فِي مَنْزِلِهِ الصَّلَاةَ ثُمَّ يَأْتِي الْمَسْجِدَ وَ تُقَامُ الصَّلَاةُ فَأُصَلِّي مَعَهُمْ |
| مونږ نه چې څوک مونځ وکړي بیا جومات ته راشي او هلته مونځ کېږي که زه د دوي سره دوباره مونځ کوم |
| فَأَجِدُ فِي نَفْسِي شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ: |
| (خو زه زړه کې یو څیز محسوس کوم دوباره مونځ زما د پاره بهتر دی او که نه) انصاري رضی الله عنه وفرمایل |
| سَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «فَذٰلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ» (رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُد)[2]. |
| ما د حضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل دا دده د پاره جمعه کې نصیبه ده. |

**توضیح**: **سهم جمع**: سهم نصیب او حصې ته ویل کېږي او (جمع) جماعت کې مونځ کولو ته ویل کېږي مطلب دا چې یو کس کور کې مونځ وکړو بیا مسجد ته راغی او ورته ولاړ جماعت ملاو شو دغه کس ته دې جماعت کې شاملېدل په کار دي فرض ثواب ورته مخکې کولو کې ملاو شو دې مونځ سره به ده ته دې کې د جماعت فضیلت او سعادت حاصل شي (المرقات ۳/۲۳۶).

خو یاد لرئ چې دا د ماسپخین او ماسخوتن مونځ کې کېږي، څنګه چې د احنافو او مالکیو مسلک دی د شوافعو او حنابلو په نزد باندې دا حدیث مطلق دی ټولو مونځونو ته شامل دی، لکه ددې حدیث تقاضا ده تفصیل یې مخکې تیر شوی دی.

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۲/۱۱۲، رقم الحديث ۷۵۷، ومالك في الموطأ ۱/۱۳۲ رقم الحديث ۸ من باب صلاة الجماعة.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۸۸ رقم الحديث ۵۷۸

﴿۶﴾ وَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: . جِئْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ

یزید بن عامر رضي الله عنه راوي دی وايي چې زه د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او نبي عليه السلام

فِي الصَّلَاةِ فَجَلَسْتُ وَلَمْ أَدْخُلْ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُولُ اللهِ

دغه وخت کې مونځ کولو زه کیناستم او خلکو سره جماعت کې شامل نه شوم کله چې فارغ شو رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآنِي جَالِسًا فَقَالَ: «أَلَمْ تُسْلِمْ يَا يَزِيدُ؟» قُلْتُ:

صلى الله عليه وسلم د مونځ نه او زه يې ناست وليدم نو وې فرمايل آيا ته مسلمان نه يئ اى يزيده! ما ورته وويل

بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ! قَدْ أَسْلَمْتُ. قَالَ: «وَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَدْخُلَ

ولې نه يا رسول الله! بیشکه زه مسلمان يم نو نبي عليه السلام وفرمایل: ته کوم څيز منع کړې يې د شريک کيدو

مَعَ النَّاسِ فِي صَلَاتِهِمْ؟» قَالَ: إِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي مَنْزِلِي أَحْسَبُ أَنْ قَدْ صَلَّيْتُمْ.

نه د مسلمانانو سره په مونځ کې ما وويل ما خپل کور کې مونځ کړی زما دا خيال وُ چې تاسو به هم مونځ نه

فَقَالَ: «إِذَا جِئْتَ الصَّلَاةَ فَوَجَدْتَ النَّاسَ

فارغ شوي يئ، نو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل ~~چې تاسو~~ کله مونځ ته راشئ او خلک مونځ کې وموميځ

فَصَلِّ مَعَهُمْ وَ إِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ تَكُنْ

نو تاسو هم د هغوي سره مونځ کې شريک شئ اگر چې تا (مخکې دا) مونځ کړی هم وي او دا (دوهم ځل

لَكَ نَافِلَةً وَ هٰذِهِ مَكْتُوبَةٌ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

مونځ کول) به ستا د پاره نفل شي او هغه به (اولني مونځ) فرض ادا شي.

## د حضرت ابن عمر رضي الله عنه فيصله

﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ: إِنِّي أُصَلِّي فِي بَيْتِي ثُمَّ أُدْرِكُ الصَّلَاةَ فِي

ابن عمر رضي الله عنه راوي دی هغه نه چا تپوس وکړو چې زه خپل کور کې مونځ وکړم بيا زه بيا موزم مونځ په

الْمَسْجِدِ مَعَ الْإِمَامِ أَفَأُصَلِّي مَعَهُ؟ قَالَ لَهُ: نَعَمْ قَالَ الرَّجُلُ:

جومات کې د امام سره آيا زه هم دې امام پسې مونځ وکړم؟ ابن عمر رضي الله عنه وويل آو بيا دغه کس تپوس وکړو

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۳۸۸ رقم الحديث ۵۷۷

أَيَّتهما أجعل صَلَاتي ؟ قَالَ عُمَرَ : وَ ذَلِكَ إِلَيْكَ ؟ إِنَّمَا ذَلِكَ إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ
خپل مونځ څنګه وګرځوم؟ ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل آيا دا ستا کار دی دا خو د الله تعالی په اختيار کې دی
يَجْعَلُ أَيَّتَهُمَا شَاءَ . (رَوَاهُ مَالِكٌ)[1].
هغه چې څنګه وغواړي ستاسو (فرض) مونځ به وګرځوي.

## يو مونځ دوباره کول منسوخ او ممنوع دي

﴿۸﴾ وَ عَنْ سُلَيْمَانَ مَوْلَى مَيْمُونَةَ قَالَ : أَتَيْنَا ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبَلَاطِ
د ميمونې آزاد غلام سليمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي مونږ د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ خواته په مقام بلاط کې راغلو خلکو
وَ هُمْ يُصَلُّونَ . فَقُلْتُ : أَلَا تُصَلِّي مَعَهُمْ ؟
دغه وخت کې مونځ کولو ما ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه تپوس وکړو آيا تاسو د خلکو سره مونځ نه کوئ ابن عمر
فَقَالَ : قَدْ صَلَّيْتُ وَ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « لَا
رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل ما مونځ کړی دی او ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل يې: تاسو مه
تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ »[2].
کوئ يو مونځ په يو ورځ کې دوه ځلې.

**توضيح: البلاط:** په مدينه منوره کې د مسجد نبوي نه بهر عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ يو ځای جوړ کړی دی چې خلک د دنيا خبرې دلته کوي چې مسجد کې يې نه کوي دې ته بلاط ويل کيږي. (المرقات ۳/۲۳۸).

**الصلوة:** ددې جملې مطلب دا دی که يو کس مخکې فرض کړي دي او بيا جماعت کې يې دوباره کوي دا منع او منسوخ دي د اسلام په شروع کې داسې کيدل بيا ممانعت راغی.

ددې حديث مطلب دا نه دی چې يو کس د جماعت د ثواب د حصول په غرض سره جماعت کې شامل شو نفل کول غواړي او دا منع کولی شي هغه د احاديثو په رڼا سره جائز دي چې وخت د مونځ کولو د پاره مناسب وي. (المرقات ۳/۲۳۸).

---

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱۳۳/۱ رقم الحديث ۹ من کتاب صلاة الجماعة.
(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۳۸۹/۱ رقم الحديث ۵۷۹

## په کومو وختونو کې دوباره مونځ کول ممنوع دي

﴿۹﴾ وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يَقُولُ: مَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ أَوِ الصُّبْحَ ثُمَّ أَدْرَكَهُمَا مَعَ الْإِمَامِ فَلَا يَعُدْ لَهُمَا. (رَوَاهُ مَالِك)[1].

نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي چا چې د سحر او يا ماښام مونځ وکړو بيا يې دا مونځونه د امام سره او موندلو دا دې دوباره نه کوي.

**توضيح**: دا حديث د مالکيو او حنفيو دواړو دليل دی څه وختونه داسې دی چې هغې کې د فرضو نه پس نفل جائز نه دي احنافو د ماز يګرنه پس وخت هم په دې کې شمار کړی دي، ځکه چې احاديثو کې دغه وخت کې د مونځ کولو ممانعت ذکر دی. (المرقات ۲۳۸-۳/۲۳۹).



(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱/۱۳۳ رقم الحديث : ۱۲ من کتاب صلاة الجماعة

# بَابُ السُّنَنِ وفضائلها:
## د سنتو د فضیلت بیان

دین اسلام کې یو فرض مونځ دی چې تعریف یې دا دی : **ما ثبت بدلیل قطعي لا شبهة فیه**، دویم واجب مونځ دی تعریف یې دا دی: **ما ثبت بدلیل قطعي فیه شبهة**، دریم سنت مونځ دی د سنت تعریف دا دی:
**ما واظب علیه النبي ﷺ وترکه مرة او مرتین.**

اوس سنت په دوه قسمه دي: یو سنت مؤکده دویم سنت زائد دی دلته د دواړو قسمونو بیان دی دا خبره یاد ساتئ سنت، تطوع، نفل، مستحب، الفاظ مترادفه دي یو د بل پـ ی استعمالیږي، فرض مونځ لوی عبادت دی دې سره د مطلق مونځ هم لوی شان دی که سنت وي نفل وي او که مستحب وي فرائضو کې که کمی راشي یا ددې کولو نه مخکې سړی سست وي ددې نقص پوره کولو او بدن کې چست والی پیدا کولو د پاره سنت او نوافل کول په کار دي، سنن مؤکدو ته رواتب هم وئیلی کیږي دا هغه سنت دي چې دې باندې حضور ﷺ مداومت کړی دی سنن غیر مؤکدو ته غیر رواتب وئیلی کیږي دا هغه دي چې دې باندې حضور ﷺ مداومت نه وي اختیار کړی سنن مؤکده دولس دي او د سنن غیر مؤکدو تحدید نشته دومره خبره ده چې د مازیګر نه مخکې څلور رکعاته دي او ماسخوتن نه مخکې څلور رکعاته دي، د سنتو په کولو کې عرب سُستي کوي او اکثر یې پریږدي چې د افسوس مقام دی. (المرقات ۳/۲۴۰).

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:
## په دولس رکعاتو سنت کولو باندې جنت کې محل ملاویږي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً |
| ام حبیبه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ فرمايي څوک چې ورځ کې دولس رکعاته مونځ وکړي |
| بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ : أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَ رَكْعَتَيْنِ |
| ده د پاره په جنت کې کور جوړ شي. څلور رکعت ماسپخین نه مخکې دوه رکعات ددې نه پس دوه رکعاته |
| بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بعد العشاء وَرَكْعَتَيْنِ قبل صَلَاةِ الْفَجْرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ |
| د ماښام (فرضونه) پس دوه رکعاته ماسخوتن نه پس او دوه رکعاته د سحر مونځ نه پس او د مسلم روایت الفاظ |

أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلّٰهِ كُلَّ يَوْمٍ
دادي چې ام حبیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې یو مسلمان مونځ کوي هره ورځ
ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ إِلَّا بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ أَوْ
دولس رکعته نفل په غیر د فرضو نه نو الله تعالی به ده ته په جنت کې کور جوړوي یا یې دا وفرمایل د ده د
إِلَّا بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ». (۱)
پاره جنت کې کور جوړولی شي.

**توضیح: ثنتي عشرة رکعة:** یعني (۲۴) ګینټو کې دولس رکعاته سنت وکړي ده د پاره جنت کې محل تیاریږي هغه دولس رکعاته داسې دي: ماسپخین نه مخکې څلور رکعاته او بعد کې دوه رکعاته، د مابنام نه پس دوه رکعاته، ماسخوتن نه پس دوه رکعاته، د سحر مونځ نه مخکې دوه رکعاته دي. زیر بحث حدیث کې داسې ترتیب دی نورو روایاتو کې دې ترتیب کې ماسپخین نه مخکې سنتو کې معمولي فرق دی ددې وجې نه فقهاو کې اختلاف دی. (المرقات ۳/۲۳۹).

**د فقهاو اختلاف:** فرض مونځونو نه مخکې او وروسته چې کوم سنت دي دې کې د فقهاو په نزد دوه مسئلو کې اختلاف دی. آیا دې سنتو کې څه تحدید او تعین شته او که نه ددې رکعاتو نه محدود دي یا نه. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دې کې د دوو یا د څلورو تحدید نشته کوم کس چې څومره کوي کولی شي. تعداد بهر حال افضل دی ددې ذکر احادیثو کې راغلی، زیر بحث حدیث کې دي، جمهور فرمایي چې ددې سنتو تعداد محدود او متعین دی.

**دویمه اختلافي مسئله:** ددې سنتو تعداد څومره دی امام شافعي او احمد فرمایي د ورځ او د شپې د سنتو تعداد لس دی ماسپخین مونځ نه مخکې څلور نه دي بلکې دوه دي. ائمه احناف فرمایي ورځ او شپه کې ددغه سنتو تعداد دولس دی، ماسپخین نه مخکې څلور رکعاته دي دوه نه دي.

**دلائل:** د شوافعو او حنابلو دلیل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی دې سره دویم حدیث دی دې کې الفاظ دادي: (**صلی النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رکعتین قبل الظهر**) ائمه احناف زیر بحث حدیث د ام حبیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه استدلال کوي دې کې اربعا قبل الظهر صریح الفاظ دي دغه شان حدیث نمبر (۴) کې هم د څلورو الفاظ موجود دي، دغه شان حدیث نمبر (۹) کې څلور ذکر دي بیا حدیث نمبر (۱۰) کې څلور ذکر

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۰۳ رقم الحديث ۱۰۳-۷۲۸، وأبو داود ۲/۴۲ رقم الحديث: ۱۲۵۰، والنسائي ۳/۲۶۰، رقم الحديث: ۱۷۹۶

دي، دغه شان حديث نمبر (۱۱) او حديث نمبر (۱۹) کې هم ددې ثبوت ملاويږي.

**جواب:** شوافع او حنابله چې د ابن عمر رضي الله عنه روايت نه استدلال کوي ددې جواب دا دی هغه د تحية المسجد د دوه رکعتونو ذکر دی، د ماسپخين څلور رکعتونو بيان نه دی چې ټولو رواياتو سره موافق او مطابق شي.

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَ |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې ما د حضور صلى الله عليه وسلم سره ماسپخين نه مخکې دوه رکعاته او |
| رَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي بَيْتِهِ وَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ |
| دې نه پس دوه رکعاته کړي دي او دوه رکعته پس د ماخام نه په خپل کور کې او دوه رکعته پس د ماخوستن |
| فِي بَيْتِهِ قَالَ: وَ حَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ |
| نه په خپل کور کې کړي دي، ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې حفصې رضي الله عنها ماته بيان کړل چې رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ حِينَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ ". (متفق عليه)[1] |
| چې حضور صلى الله عليه وسلم دوه سپک رکعاته د سحر راختو په وخت کې هم کول. |

**توضيح: وحدثتني حفصة:** حضرت ابن عمر رضي الله عنه د سحر مونځ نه مخکې د دوه رکعتونو ذکر د حضرت حفصې رضي الله عنها په حوالې سره وکړو دې وجه دا ده چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خپله حضور صلى الله عليه وسلم په جومات کې په دوه رکعتونو باندې نه وو ليدلی، ځکه د حفصې رضي الله عنها په حوالې سره يې تذکره وکړه او حضرت حفصه رضي الله عنها حضور صلى الله عليه وسلم په دوه رکعاته سنتو باندې کور کې ليدلی وو، ځکه هغې بيان وکړه. (المرقات ۳/۲۴۱).

## د جُمعې سنت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَا يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ حَتَّى |
| ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم د جمعې نه پس بل مونځ نه کولو تر دې چې |
| يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْته. (متفق عليه)[2]. |
| واپس به يې (کور ته) تشريف راوړو او کور کې يې دوه رکعاته کول. |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۴۲۵، رقم الحديث: ۹۳۷، ومسلم في الصحيح ۱/۵۰۴ رقم الحديث: ۱۰۴-۷۲۹.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲، رقم الحديث: ۹۳۷، ومسلم في الصحيح ۲/۶۰۰ رقم الحديث: ۷۱-۸۸۲.

**توضیح**: رکعتین: دې حدیث کې دا مذکور دي چې د حضور ﷺ معمول دا وو چې حضور ﷺ به د جمعې مونځ نه پس دوه رکعته کور کې کول، دې حدیث کې دې مسئلې نه یې بحث و نه کړو چې د جمعې نه مخکې څو رکعاته دي، ځکه دې اجمالي روایت نه یو مسلک نه ثابت کېږي، څنګه چې یې شوافع ثابت کوي د جمعې د سنتو بحث دې باب حدیث نمبر (۸) په ضمن کې راتلونکی دی. (المرقات ۳/۲۴۲).

## د حضور ﷺ د نوافلو مکمل نقشه

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تَطَوُّعِهِ |
| عبدالله بن شقیق رضي الله عنه وایي ما د عائشې رضي الله عنها نه د حضور ﷺ د نفلو باره کې تپوس وکړو |
| فَقَالَتْ : كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا ثُمَّ يَخْرُجُ |
| هغې وویل حضور ﷺ زما په کور کې د ماسپخین څلور رکعاته کول بیا به یې (جومات) ته تللو . |
| فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ ثُمَّ يَدْخُلُ . فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ |
| خلکو سره به یې د ماسپخین فرض مونځ کولو بیا به یې کور ته تشریف راوړو او دوه رکعته مونځ به یې کولو |
| وَ كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيصَلي رَكْعَتَيْنِ |
| او د ماښام مونځ به یې خلکو سره کولو او بیا به یې تشریف راوړو دوه رکعته مونځ به یې وکړو همدا رنګې |
| وَ يُصلي بِالنَّاسِ الْعِشَاءَ وَ يَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ |
| د ماسخوتن مونځ به یې خلکو سره وکړو او بیا به یې زما کور ته تشریف راوړو دوه رکعته مونځ به یې وکړو |
| وَ كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ فِيهِنَّ الْوَتْرُ وَ كَانَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا |
| او شپه کې د تهجد مونځ به یې کله نهه رکعته کول دې کې وتر به هم شامل وو او د شپې ناوخته پورې به ولاړ |
| وَ لَيْلًا طَوِيلًا قَاعِدًا وَ كَانَ إِذَا قَرَأَ وَ هُوَ قَائِمٌ رَكَعَ وَ سَجَدَ |
| وو او په ناسته باندې به یې ډیر وخت مونځ کولو کوم وخت چې یې په ولاړه مونځ کولو نو رکوع او سجده |
| وَ هُوَ قَائِم وَ إِذا قَرَأَ قَاعِدًا رَكَعَ وَ سَجَدَ وَ هُوَ قَاعِدٌ وَ كَانَ إِذَا |
| به یې هم په ولاړه کوله او چې کله په ناسته مونځ کولو نو رکوع او سجده به یې هم په ناسته کوله چې کله به |

طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

د سحر وخت شو نو دوه رکعته سنت به يې کول.

وَ زَادَ أَبُودَاوُدَ: ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الْفَجْرِ.[2]

ابوداود مزید دا الفاظ نقل کړي دي بیا به حضور ﷺ جومات ته تشریف وړلو او هلته به يې خلکو سره د سحر فرض مونځ اداء کولو.

**توضیح: ثم یدخل**: دې حدیث کې واضح بیان دی چې حضور ﷺ د سنتو د پاره کور ته په اهتمام سره راتللو دې نه دا واضحه شوه چې افضل دا دی چې سنت کور کې اوشي اګر چې نوافل مسجد کې هم جائز دي او حضور ﷺ نه ثابت دي، خو کور کې نوافل کولو سره یوه فائده دا هم ده چې د حضور ﷺ په سنت باندې به عمل راشي. دویمه فائده دا ده چې کور کې به د عبادت سره برکت راشي. دریمه فائده دا ده چې ماشومانو او زنانو کې به د مونځ کولو رغبت پیدا شي او کور کې د مونځ ماحول جوړ شي. (المرقات ۳/۲۴۲).

**تسعة رکعات**: دلته د نهه(۹) رکعتونو تذکره ده د احنافو په نزد باندې شپږ رکعاته تهجد دي او درې رکعاته وتر دي د حضور ﷺ د شپې مونځ کې په تعداد د رکعاتو کې مختلف روایات دي یو کې شپږ رکعاته دی او دغه شان نهه، او د لسو تذکره هم ده او د یولسو تذکره هم ده دې کې څه منافات نشته، ځکه چې حضور ﷺ مختلف وختونو کې مختلف انداز سره تهجد کړي دي. (المرقات ۳/۲۴۲).

**رکع وسجد وهو قائم**: د حضور ﷺ د تهجدو کولو درې طریقې وې: (۱) مونځ به يې مکمل په ولاړه کولو (۲) مونځ به يې مکمل په ناسته کولو (۳) قرآت به يې په ناسته کولو بیا به ودریدو او رکوع ته به لاړو او بیا به سجدې ته تللو. زیر بحث حدیث کې ددې دریم صورت د عکس نفی ده دا اصل کې څلورم صورت دی یعني حضور ﷺ داسې مونځ نه کولو چې قرآت په ولاړه او سجده يې په ناسته کړې وې او یا معمولي بنکته کیدو سره يې رکوع کړې وې ددې صورت نفې دې حدیث کې مقصوده ده. (المرقات ۳/۲۴۲).

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۰۴ رقم الحديث.۱۰۵-۷۳۰

(۲) أخرجه أبو داؤد ۲/۴۳ رقم الحديث :۱۲۵۱

## د سحر د سنتو تاکید او فضیلت

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په نوافلو کولو کې يو باندې هم داسې محافظت او مداومت نه کولو

أَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلَى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. (متفق عليه)[1].

لکه څنګه چې يې د سحر دوه رکعاتو سنتو باندې مداومت کولو.

﴿۶﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رَكْعَتَا الْفَجْرِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د سحر دوه رکعاته سنت دا بهتر دی د دنيا او د

فِيهَا». (رَوَاهُ مُسلم)[2].

هغه څه نه چې په دنيا کې دي.

## د ماښام فرض مونځ نه مخکې د دوه رکعتونو نفلو حکم

﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ

عبد الله ابن مغفل راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي د ماښام فرض مونځ نه مخکې دوه رکعته

قَالَ فِي الثَّالِثَةِ: «لِمَنْ

کوئ (حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا الفاظ دوه ځلې وفرمايل او بيا) يې په دريم ځل دا خبره وکړه چې څوک مره مو

شَاءَ». كَرَاهِيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سنة. (متفق عليه)[3].

خوښه وي کوئ يې دو چې د بد ګڼلو د دې خبرې چې و به ګرځوي خلک دا يو سنت.

**توضيح: صلوا:** يعني ماښام آذان نه پس فرضو نه مخکې دوه رکعاته کوئ خو ضروري نه دی چې هر يو کس دې داسې کوي ماښام فرضو نه مخکې دوه رکعاته کولو او نه کولو باره کې درې قسمه روايات موجود دي: (۱) اول هغه روايات دي چې هغې کې د کولو بيان دی. (۲) دويم هغه روايات دي چې هغې کې د نه کولو بيان دی. (۳) دريم هغه روايات دي چې دواړو کې اختيار دی دې وجې نه فقهاو کې

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۵۰۱/۱ رقم الحديث ۹۵-۷۲٤

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۷۵/۱ رقم الحديث ٤۱۶، وأحمد في المسند ۵۰/۶

(۳) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۱۰/۲، رقم الحديث ۶۲۷، ومسلم في الصحيح ۵۷۳/۱ رقم الحديث: ۳۰٤-۸۳۸، وأبو داود ۵۹/۲ رقم الحديث ۱۲۸۱.

معمولي اختلاف دی. (المرقات ۳/۲۴۵).

**د فقهاو اختلاف**: د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې دا دوه رکعاته مستحب دي خو موجوده عرب يې د فرضو په شان ضروري ګڼي.

د جمهورو په نزد باندې دا دوه رکعاته په درجه د استحباب کې نه دي. بلکې صرف اباحت دی او دې شرط سره دا کول مباح دي چې د ماښام فوت کيدو ويره هم نه وي او چې تاخير په کې هم نه راځي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه صحابه ددې نه منع کړي دي او نه يې ورته حکم وکړی. بلکې صحابو ته اختيار وو. دلته د استحباب دليل هم موجود نه دی ددې مسئلې تفصيل باب فضل الاذان حديث نمبر (۹) لاندې تير شوی دی. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي خو روايات ددې دوو رکعتونو متعلق وارد دي، لهذا دا دوه رکعاته مستحب دي، لکه چې د احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اسحاق بن راهويه مسلک دی فرمايي : **والاصح مستحب**. (مرقات ج۳ ص ۱۱۲) (المرقات ۳/۲۴۵).

بهتر دا دي کوم ځای کې د کولو موقع ملاويږي کولی شئ او د نفلو ثواب به وي کوم ځای کې چې موقع نه ملاويږي نو د موقعې جوړيدو ضرورت نشته لکه هندوستان او پاکستان کې نه کېږي سلفي عرب دا د واجب يا فرضو په درجه کې اخستي، حالانکې حالانکه هغوی د سنت مؤکدو پرواه نه کوي.

**۱۲ جمادی الاولی ۱٤۱۰ھ**

## د جمعې مونځ نه مخکې او وروسته څومره رکعاته سنت دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او وي دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي تاسو کې چې څوک مونځ کوونکي وي |
| بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] وَ فِي أُخْرَى لَهُ |
| د جمعې په ورځ د مونځ نه پس هغه ته په کار دي چې څلور رکعاته دې وکړي. د مسلم په يو بل روايت کې |
| قَالَ : « إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ |
| دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل تاسو کې چې څوک د جمعې مونځ وکړي هغه ته په کار دي چې ددې نه |
| فَلْيُصَلِّ بَعْدَهَا أَرْبعاً ». |
| پس څلور رکعاته سنت وکړي. |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۲/۶۰۰ رقم الحديث ۷۰-۸۸۱، وأبو داود ۱/۱۷۳

**توضیح: مصلیاً بعد الجمعة:** دلته دوه مسائل دي دواړو کې د فقهاو اختلاف دی یوه مسئله دا چې د جمعې مونځ نه مخکې څو رکعاته سنت دي؟ او دویمه مسئله دا ده دې نه پس د سنتو تعداد څومره دی؟.

**د فقهاو اختلاف:** د علامه ابن قیم او د اهل ظواهرو په نزد د جمعې نه مخکې څلور رکعاته کول بدعت دی. ابن تیمیه رحمه الله د دې مسئلې په حمایت کې سخت حکم چلولی دی. (المرقات ۳/۲۴۶).
څلور ائمه او ټول فقهاء کرام وایي چې څنګه سنن بعد الجمعة څلور رکعاته ثابت دي دغه شان قبل الجمعة څلور رکعاته هم ثابت دي. (المرقات ۳/۲۴۶).

**دلائل:** اهل ظواهر غیر مقلدین او علامه ابن قیم او ابن تیمیه خپل استدلال کې فرمایي چې د حضور ﷺ په وخت کې د جمعې د پاره آذان کیدو او هغه آذان هغه وخت کیدو چې د حضور ﷺ خطبه شروع کیده او خطبې نه مخکې څلورو رکعاتو سنتو کولو د پاره وخت نه وو. څنګه به یې کوی یا چې خطبه ختمه شي دغه وخت هم د سنت کولو نه دی چې د څلور رکعاتو د پاره وخت نه وي نو کول هم ثابت نه دي چې ثابت نه دي، نو بدعت دی.

د جمهورو د پاره دلائل شته: (۱) اولني دلیل یې د حدیث حضرت ابوهریره رضي الله عنه دلیل دی چې امام طحاوي رحمه الله په مشکل الآثار کې نقل کړی دی چې د دې الفاظ دا دي: **من کان منکم مصلیاً فلیصل قبلها اربعاً و بعدها اربعاً.** (۲) دویم دلیل د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حدیث دی ابن ماجه نقل کړی دی الفاظ یې دا دي: (**قال کان النبي ﷺ یرکع قبل الجمعة اربع رکعات لا یفصل بینهن بشيء**) دا دواړه روایات سنن قبل الجمعة باندې ښکاره دلیل دی. (۳) دغه شان کومو روایاتو کې چې قبل الزوال څلور رکعاته لوستلو ذکر دی هغه هم دلیل د جمهورو دی، ځکه چې هغه هم سنن قبل الجمعة ته شامل دي دغه شان ماسپخین مونځ نه مخکې څلور رکعاته سنت ذکر دي دې نه هم جمهور استدلال کوي، ځکه چې د جمعې مونځ د ماسپخین بدل دی. او د دې قائم مقام دی کله چې ماسپخین مونځ نه مخکې د څلورو رکعتونو واضح ثبوت دی د جمعې نه مخکې هم د څلورو رکعتونو سنت ثبوت ملاو شو، ځکه چې د دواړو وخت یو دی دغه شان د ابن مسعود رضي الله عنه او د عمران بن حصین رضي الله عنه نه آثار منقول دي دې کې د څلور رکعتونو ثبوت دی او ترمذی کې نقل کړي دي. (المرقات ۳/۲۴۶).

**خلاصه:** کله چې څلورو سننو قبل الجمعة باندې احادیث موجود دي نو تعامل د صحابو او آثار د دوي هم موجود دي او د فقهاو دې باندې اتفاق هم موجود دی بیا دې ته بدعت ویل مناسب نه دي.

**جواب:** د اهل ظواهرو او د دوي د موافقینو حضراتو د دلیل نه جواب دا دی چې حضور ﷺ د کور نه مسجد ته بعد الزوال تشریف راوړو بیا منبر باندې کیناستو سره آذان به کیدو نو بعد الزوال کور نه راوتل او منبر باندې کیناستلو په منځ کې ضرور وقفه وي چې څلور رکعاته په کې وکړي خاصکر کله

چې صحابه وختي جمعې د پاره مسجد کې جمع کيدل او تيار به ناست وو وروستو مشاغل ډير شو.
حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې جمعې د پاره يو بل آذان هم شروع شو نن سبا ورته آذان اول ويل کيږي. فقهاو ددې نه پس اخيستل او خرڅول منع فرمايلي دي نن سبا غير مقلدين دې آذان ته هم بدعت وايي الله تعالى دې دوي ته هدايت وکړي.

**محاکمه او فيصله**: بعد اللُّتَيَّا والتي: لهذا که يو کس نه د جمعې نه مخکې څلور رکعاته سنت پاتې شو جمعې مونځ نه پس کولو اعاده نشته.

**د جمعې مونځ نه پس د سنتو تعداد**: اوس دا مسئله تيره شوه چې سنن بعد الجمعة تعداد څومره دي آيا څلور رکعاته دي يا شپږ دې کې فقهاء احناف خپل منځ کې اختلاف دی.

**د فقهاو اختلاف**: امام صاحب او امام محمد رحمهما الله په نزد باندې د جمعې نه پس څلور رکعاته سنت دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ يو قول هم داسې دی. د ابويوسف رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د جمعې نه پس شپږ رکعاته سنت دي دوه يو سلام سره دي او څلور بل سلام سره دي.

**دلائل**: د طرفينو دليل دا زير بحث حديث دی چې خپلې مدعی باندې واضح دليل دی هغې کې **فليصل اربعاً** الفاظ دي ددې حديث يو بل روايت کې داسې الفاظ دي: **اذا صلى احدكم الجمعة فليصل بعدها أربعًا**.
د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ دليل د صحابه کرامو هغه ټول آثار دي چې شپږ رکعتونو ذکر په کې راغلی دی او د صحابه کرامو په دې باندې عمل وو، ابن ابی شيبه خپلو سندونو سره بيان کړي دي او وايي چې د حضرت علي او د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا روايت کې دوه دي، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت کې څلور ذکر دي، د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت کې شپږ ذکر دي عبد الرحمن سلمی سنن بعد الجمعة په باره کې وايي: (**علمنا ابن مسعود ان نصلي بعد الجمعة اربعاً فلما قدم علي ابن ابي طالب علمنا ستا**)

**د رواياتو تطبيق**: کومو کې چې بعد الجمعة دوه رکعاته وي هغه ادنی سنتو باندې محمول دی کومو آحاديثو کې چې څلور ذکر دي هغه کمال سنت باندې محمول دی يعنې رومبی دوه بيا څلورنو کمال شپږ پورې ورسيدو مثلاً يو کس يو سلام سره دوه رکعاته سنت وکړل نو دوه رکعاته سنتو والا حديث باندې عمل اوشو بيا يې څلور وکړل نو څلورو والا حديث باندې عمل راغی او چا چې د شپږو قول کړی دی دا مجموعه شپږ هم دي، لهذا آحاديثو مينځ کې تعارض هم نشته او د آحاديثو د آثارو سره هم تعارض نشته دا اعداد دي دا هم دي هغه هم دي يو کې د بل نفې موجود نه ده.
امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ څلورو ته ترجيح ورکړې ده او امام ابويوسف رَحِمَهُ اللَّهُ شپږو ته ترجيح ورکړې ده، عام مشائخ احناف شپږ رکعتونو والا ته ترجيح ورکوي او دا د احنافو په نزد باندې معمول به دی په دې خو څلورو نه پس دوه سنت زوائد دي. اوس که شپږ رکعاته دي، نو فرضو نه پس

دوه به مقدم وي او څلور. د احنافو محققین علماو خیال دا دی چې دوه مقدم کړی شي د متقدمینو خیال دا دی چې څلور مقدم کړی شي، دا اولی او غیر اولی خبره ده جائز دواړه دي.

امام ابویوسف رحمه الله څلور مقدم کولو والا قول راجح ګرځولی دی، ځکه چې یو حدیث کې راغلي چې یو فرض مونځ نه پس ددې په صورت مونځ مناسب نه وي حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کې دي فرمایي: (ان عمر کان یکره ان یصلی بعده صلوة الجمعة مثلها) (کذا في الطحاوی)

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

## د ماسپښین د سنتو فضیلت:

| |
|---|
| ﴿۹﴾ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ قَالَتْ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : « مَنْ |
| ام حبیبه وایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا فرمان اوریدلی ؤ چې فرمایل یې کوم یو کس چې د |
| حَافَظَ عَلَى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَ أَرْبَعٍ بَعْدَهَا |
| ماسپخین د فرضونه مخکې څلور رکعاته او ددې نه پس د څلورو رکعاتو حفاظت کوي (یعنې هغه په |
| حَرَّمَهُ اللهُ عَلَى النَّارِ » . (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه). (نسائي)[1]. |
| پابندی سره کوي) نو الله تعالی به په ده باندې د دوزخ اور حرام کړي (داسې چې هغه به مطلقاً دوزخ ته نه غورځیږي یا دا چې دا به په دوزخ کې همیشه طور باندې نه وي. |

**توضیح:** وأربع بعدها د ماسپخین د مونځ نه وروسته عامو روایاتو کې د دوه رکعتو ذکر راغلی دی لیکن دلته دې روایات کې د څلورو بیان راغلی دی او بیا دلته دې کې دوه احتمالات دی یو دا چې دا څلور دد دوسنتونو نه علاوه دي، ظاهره ده چې حدیث نه ثابته شوې ده چې دا دوه رکعاته د دوه سنت مؤکده نه علاوه دي او داد مستحب او د نفلو په درجه کې دي او دویم احتمال دا دی چې د ماسپخین نه پس دوه رکعاته سنت همدې څلورو رکعاتو کې شامل دي د ملا علي قاري رحمه الله د کلام نه معلومه شوې ده چې په دې څلورو رکعاتو کې د ماسپښین دوه سنته هم شامل دی دوه نفل او دوه سنت دي.

بهر حال بهتره داده چې دا څلور رکعته دی چې په دوه سلامونو سره ادا شي. (المرقات ۳/۲۴۷).

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « أَرْبَعٌ قَبْلَ |
| ابو ایوب انصاري رضی الله عنه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې هغه څلور رکعته مخکې |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۵۲ رقم الحديث : ۱۲۶۹ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۹۲، رقم الحديث :۴۲۷.

الظُّهْرِ لَيْسَ فِيهِنَّ تَسْلِيمٌ
دماسپخین نه چې په مینځ کې سلام نه اړولی کېږي (یعني دهغه څلورو رکعاتو په کولو کې غوره داده چې
تُفَتَّحُ لَهُنَّ أَبْوَابُ السَّمَاءِ ».[1]
څلور رکعاته دې پوره کړی شي او په آخره کې دې سلام واړوي) نو دهغه دپاره دآسمان دروازې خلاصیږي.

**توضیح: ليس فيهن تسليم** ، یعني د ماسپښین مونځ نه مخکې څلور رکعته په یو سلام اړولو سره دومره غټ فضیلت نه دی چې د اسمان دروازې او دده قبولیت او رحمت دروازې خلاصیږي دلته هم دا احتمال دی چې ددې نه سنت مؤکده څلور رکعته مراد دی یا د زوال وخت کې څلور رکعته نوافل دي صحیح داده چې ددې نه زوال شمس وخت کې څلور رکعته نفل مراد دي د زوال شمس د وخت د څلورو رکعاتو نه فضیلت په راتلونکو روایاتو کې هم ثابت شوی دی لهذا زیر بحث روایت په همدې باندې حمل کول ډیر مناسب دي .(المرقات ۳/۲۶۵).

## دزوال په وخت کې د څلورو رکعاتو نفلو کولو فضیلت :

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي أَرْبَعًا بَعْدَ أَنْ تَزُولَ الشَّمْسُ
اوعبدالله بن سائب رضي الله عنه وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به مونځ كولو څلور ركعته پس د نمر پريوتو نه
قَبْلَ الظُّهْرِ وَ قَالَ : « إِنَّهَا سَاعَةٌ
پس او د ماسپښین د مونځ نه مخکې او فرمایل به یې داداسې وخت دی چې دې کې دنیکو اعمالو بره تلو
تُفْتَحُ فِيهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ فَأُحِبُّ أَنْ يَصْعَدَ لِيْ فِيهَا عَمَلٌ صَالِحٌ ».[2]
دپاره د آسمان دروازې خلاصیږي لهذا زما داخوښه ده چې په دې وخت کې زما نیک اعمال بره لاړ شي.

## د ماز یگر د مونځ نه مخکې د څلورو رکعتو نفلو فضیلت :

﴿۱۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « رَحِمَ اللهُ
ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي چې الله تعالى رحمت وروي په

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۵۳ رقم الحديث ۱۲۷۰.
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳٤۲ رقم الحديث :٤۷۸.

امْرَءًا صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا». [1]

هغه کس باندې رحمت ورورې چې د مازیګر د فرضو نه مخکې څلور رکعته مونځ وکړي.

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ

حضرت علي رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مازيګر د مونځ نه مخکې څلور رکعته مونځ کولو

يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ

او فرق به يې کولو په مينځ د دې کې په سلام ليږلو سره په مقربو فرشتو او د دوي نه پس چې کوم مسلمانان

وَالْمُؤْمِنِينَ ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) [2].

او مؤمنان وو په هغوي باندې.

**توضيح:** **التسليم على الملائكة**، د دې سلام نه مراد د التحيات او تشهد ويل دي مطلب دا دی چې څلور رکعاته به يې په يو سلام سره کول په مينځ کې به يې قعده اولی وه د مازيګر مونځ نه مخکې په دې سنن زوائدو کې دوه قسمه روايات دي او ځينو کې د څلور رکعاتو ذکر دی او ځينو کې د دوو رکعتو ذکر دی دواړه جائز دی د مونځ کوونکي خپل سهولت سره د دې تعلق دی. (المرقات ۳/۲۴۹).

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ. [3]

حضرت علي رضي الله عنه وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مازيګر د مونځ نه مخکې دوه رکعته مونځ کولو.

## د ماښام نه پس شپږ رکعتو کولو سره د دولس کالو عبادت ثواب ملاوېږي:

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي چې کوم يو کس د ماښام مونځ وکړي

سِتَّ رَكَعَاتٍ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوءٍ

او شپږ رکعته نفل داسې وکړي چې د دې په مينځ کې څه غلطې خبرې ونه کړي نو د دې رکعتو ثواب به د ده

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۵۳ رقم الحديث ۱۲۷۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۹۵، رقم الحديث: ۴۳۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۴۹۳، رقم الحديث ۵۹۸.

(۳) أخرجه أبو داود في السنن رقم الحديث ۱۲۷۲.

| |
|---|
| عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : |
| دپاره ددولسو کالو عبادت ثواب برابرشي ، امام ترمذي رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ دا حديث نقل کړی او ويلي يې دي چې |
| هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عمر بن أَبِي خَثْعَمٍ وَ سَمِعْتُ |
| دا حديث غريب دی ځکه چې مونږ دا حديث په غير د عمر بن خثعم د سند نه بل سند سره نه پيژنو او ما دا اوريدلي |
| مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ : هُوَ مُنكر الحَدِيث وَ ضَعَّفَهُ جِداً. (ترمذي)[1]. |
| د محمد بن اسماعيل بخاري نه دا به يې ويل چې دا عمر ابن خثعم منكر الحديث دی او كمزوری يې گرځولی. |

**توضيح** : **سنتي عشرة سنة** ، يعنې چې کوم کس د ماښام مونځ وکړو او بيا يې ددې نه پس شپږ رکعته مونځ وکړو نو دې کس ته د دولسو کالو عبادت برابر ثواب ملاويږي خو ددې شرط دا دی چې د فرضو او نفلو په مينځ کې څه فضول خبرې يې نه وي کړې په دې شپږو رکعاتو کې فرضو نه پس دوه رکعاته سنت مواکده هم شامل دی عالمان ليکي چې اول دې سنت وکړي او بيا دې ددې نه پس څلور رکعاته په دوو سلامونو سره يا د يو سلام سره وکړي نو دا ثواب به ورته حاصل شي حضرت ابن عباس رَضِيَ‌ٱللَّهُ‌عَنْهُ د روايات نه معلومه شوه چې ددې مونځ نوم صلوة اوابين دی دا صورت د ټولو نه آسان دی ، دويم صورت دا دی چې شل رکعته صلوة اوابين وکړي. (المرقات ۲۴۹-۳/۲۵۰).

بهر حال په تير شوي حديث کې چې کوم ثواب ذکر راغلي وو نو دا د همدغه شپږو رکعتونو فضيلت دی. دا حديث امام ترمذي ډير زيات کمزوری ګڼلی ليکن علماو ليکلي دي چې په فضائلو د اعمالو کې دا کمزوري روايت هم قبول شوی دی خو شرط په کې دا دی چې ددې په مقابله کې يو صحيح حديث هم نه وي يا د شريعت د څه قاعدې سره ددې تعارض نه وي همدا رنګې دا حديث ابن خزيمه په خپل صحيح کې په قوي سند ـ ه نقل کړی دی او ابن ماجه هم نقل کړی دی او بعضې علماو هم په دې عمل کړې دی.

## د اوابينو انتهائي تعداد شل رکعته دی :

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «مَنْ صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ |
| او عائشه رَضِيَ‌ٱللَّهُ‌عَنْهَا راويه ده وايي چې نبي کريم صَلَّى‌ٱللَّهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې کوم کس وکړو پس د ماښام |
| عِشْرِينَ رَكْعَةً بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[2]. |
| مونځ نه شل رکعته صلوة اوابين نو الله تعالی به د هغه د پاره په جنت کې کور جوړ کړي. |

(١) أخرجه الترمذي في السنن ٢٩٩/٢، رقم الحديث ٤٣٥، وأخرجه ابن ماجه في سننه ٤٣٧/١ رقم الحديث ١٣٧٣

(٢) أخرجه الترمذي في السنن ٢٩٩/٢، رقم الحديث :٤٣٥، وأخرجه ابن ماجه في سننه ٤٣٧/١ رقم الحديث: ١٣٧٣.

**توضیح** : دا حدیث هم کمزوری دی خو په فضائل اعمالو کې ددې قبولیت راغلی دی همدارنګې د سلف صالحینو په دې باندې عمل دی د صلوة اوابینو په تعداد کې مختلف روایات راغلي دي چې د هغې نه اندازه کیږي چې د اوابینو تعداد کم از کم دوه رکعته دی او زیات یې شپږ رکعته دی او انتهائي شل رکعته دي چې چا څومره وکړل هغومره ثواب به ورته ملاویږي.

## د ماخوستن سنت :

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْهَا قَالَتْ : مَا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْعِشَاءَ قَطُّ |
| او عائشه رضي الله عنها وايي چې کله به هم رسول الله صلی الله علیه وسلم په جومات کې د ماخوستن فرض مونځ وکړو |
| فَدَخَلَ عَلَيَّ إِلَّا صَلَّى أَرْبَعَ رَكْعَاتٍ أَوْ سِتَّ رَكْعَاتٍ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| نو زما خواته به راتلو نو دا سنت څلور یا شپږ رکعته به یې ضرور کول. |

**توضیح** : **او ست رکعات**: د ماخوستن د مونځ نه پس دوه رکعته سنت مؤکده دی چې د هغې ذکر مشهورو روایاتو کې راغلی دی، څه روایاتو کې د څلورو رکعتو ذکر راغلی دی او تیر شوي روایاتو کې شپږ رکعاته ذکر شوي دي او کوم ځای کې چې د څلورو ذکر راغلی دی نو په دې کې دوه سنت مؤکده دي او دوه نفل او چې کوم ځای کې د شپږو ذکر دی نو هلته دوه سنت مؤکده دي او څلور نفل دي او چې چا څومره وکړل نو هغه هومره ثواب به ورته ملاویږي، تیر شوي حدیث کې او لفظ یا د شک د پاره دی او یا د تنویع د پاره دی. (المرقات ۳/۲۵۱).

## د سحر د مونځ نه مخکې او د ماښام د مونځ نه پس د سنتو فضیلت :

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « إِدْبَارَ النُّجُومِ |
| او ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي (تسبیح) ادبار النجوم |
| الرَّكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ وَ إِدْبَارَ السُّجُودِ |
| دوه رکعته دی د سحر نه مخکې (یعنې د سهر دوه رکعته سنت) مراد دي او (تسبیح) ادبار السجود د |
| الرَّكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2]. |
| ماښامي نه پس دوه رکعته (یعنې د ماښامي سنت) مراد دي. |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۷۱/۲ رقم الحديث :۱۳۰۳.
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۶۶/۵، رقم الحديث :۳۲۷۵.

**توضيح**: **ادبار**: وروسته كيدونكي او لري كيدونكي او تلونكي ته وايي قرآن كريم كې په سورة طور كې يو آيت دى (سورة طور آيت: ۴۹) دلته د ستورو د تلو ذكر دى دا په وخت د راختو د سهر كې لهذا ادبار النجوم د ستورو د تلو نه پس د مونځ نه د سحر دوه ركعته سنت مراد دي، همدارنګې په قرآن كريم كې سورة (ق) كې هم يو آيت دى: ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ﴾ (سورة ق آيت: ۴۰) د سجود نه مراد فرض مونځ دى چې ددې فرض كول او تلو او ددې نه پس پاكي بيانولو نه مراد د ماښامي دوه ركعته سنت مؤكده دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ عَنْ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُول: "أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ |
| عمر فاروق رضي الله عنه وايي چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه دا فرمان اوريدلى دى چې څلور ركعته مونځ |
| قَبْلَ الظُّهْرِ بَعْدَ الزَّوَالِ تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِي صَلَاةِ السَّحَرِ. |
| مخكې د ماسپښين نه او پس د زوال نه (ثواب او فضيلت كې) د تهجد د وخت څلور ركعته مونځ كولو برابر |
| وَمَا مِنْ شَيْءٍ إِلَّا وَ هُوَ يُسَبِّحُ اللهَ تِلْكَ السَّاعَةَ |
| دي او دغه وخت (يعني د ماسپښين نه مخكې دلمر د زوال نه پس) ټول څيزونه د الله تعالى تسبيح او پاكي |
| ثُمَّ قَرَأَ: ﴿ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَ الشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلّٰهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ ﴾ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان) (النحل آيت: ۸۴)[1] |
| بيانوي بيا يې دا آيت وفرمايلو: ﴿يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلّٰهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ﴾ |

### د مازيګر د مونځ نه پس د دوه ركعاته كولو حكم:

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا تَرَكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ عِنْدِي قط |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه وه پريښي دوه ركعته پس د مازيګر نه كله هم چې د |
| ما سره (يعني زما په كور كې) ؤ، |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۷۹، رقم الحديث: ۳۱۲۸.

وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ قَالَتْ: وَالَّذِي ذَهَبَ بِهِ مَا تَرَكَهُمَا حَتَّى لَقِيَ اللهَ.[1]

**توضیح**: **بعد العصر**: د عصر نه پس نبي کریم ﷺ دوه رکعاته مونځ کړی دی، دی کښې هیڅ شک نشته خو داد نبي کریم ﷺ خصوصیت دی د دې کول صرف نبي کریم ﷺ ته جائز وو د بل چا د پاره نه دا حکم دی او نه چا ته جائز دي ځکه چې د مازیګر نه پس نفل مونځ نه په احادیثو کښې ممانعت راغلی دی صحابو حضراتو ته په دې کښې شک شوی چې د ممانعت باوجود پیغمبر ﷺ دا دوه رکعاته په خپله ولې کول چنانچه ام سلمه رضی الله عنها د حضرت محمد ﷺ نه په دې انداز کښې سوال وکړو چې ای د الله رسوله! تا خو ددې وخت د نفلو نه منع فرمایلې وه نو بیا یې تاسو ولې کوئ؟ نبي کریم ﷺ جواب کښې ورته وفرمایل: چې یو پېره د ماسپښین نه پس دوه رکعته د مشغولتیا د وجې نه پاتې شوي وو نو ما د مازیګر نه پس وکړل مګر چې نبي کریم ﷺ به کله هم یو عمل په څه وخت کښې وکړو نو هغه به په هغې باندې دوام کولو ددې د پاره چې الله تعالی ته به دا عمل خوښ راتلو دا معامله ده د مازیګر نه پس د دوه رکعتو نفلو سره او شوه چې په شروع کښې د یو ضرورت په وجه کړی شوې وو بیا په اختیار سره شروع شول داد امت کار نه دی داد نبي کریم ﷺ خصوصیت دی ددې نه د عربو سلفیانو ته تنبیه ده چې نبي کریم ﷺ د سنتو څومره اهتمام فرمایلې او دا خلک څنګه طریقې سره د سنت ضائع کوي. (المرقات ۳/۲۵۳).

۱۳ جمادي الاول ۱۴۱۰ھ

## د ماښام د آذان نه پس دوه رکعاته نفلو کولو حکم:

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْعَصْرِ |
| مختار بن فلفل وایي چې ما یو ورځ د انس رضی الله عنه د مازیګر نه پس د نفل مونځ کولو په باره کښې تپوس وکړو |
| فَقَالَ: كَانَ عُمَرُ |
| نو هغوي رضی الله عنه وفرمایل چې د دې معاملې په باره کښې د عمر فاروق رضی الله عنه دومره سخته رویه وه چې د |
| يَضْرِبُ الْأَيْدِيَ عَلَى صَلَاةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ |
| مازیګر نه پس نفل مونځ نیت تړلو والاس به یې وهلو (یعني دومره په سختۍ سره به یې په دغه وخت کښې |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۶٤،رقم الحديث ۵۹۱، ومسلم في الصحيح ۱/۵۷۲ رقم الحديث:۲۹۹-۸۳۵، وأبو داود ۲/۵۸ رقم الحديث :۱۲۷۹، والنسائي ۱/۲۸۰، رقم الحديث: ۵۷٤ .

وَ كُنَّا نُصَلِّيْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ قَبْلَ

منع كوله )او مونږ به د نبي عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ په زمانه كې دوه ركعته مونځ كولو پس د نمر د ډوبيدو د لمر نه مخكې

صَلَاةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْتُ لَهُ : أَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّيْهِمَا ؟

د مانبام نه (ددې په اوريدو سره) ما دانس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تپوس وكړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به هم دا دوه ركعاته كول

قَالَ : كَانَ يَرَانَا نُصَلِّيْهِمَا فَلَمْ يَأْمُرْنَا

نو هغوي وفرمايل : چې مونږ به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مونځ ليدلو خو مونږ ته يې نه ددې د كولو حكم كولو او

وَ لَمْ يَنْهَنَا . (رَوَاهُ مُسلم)[1].

نه يې مونږ ددې د كولو نه منع كولو .

**توضيح** : كه د مانبام په مونځ كې وروستوالى راځي نو بيا دا دوه ركعاته كول مناسب نه دي اګر چې د خلفاء راشديو معمول د نه كولو وو او چې وروستوالى په كې نه وي او د علاقې د خلكو د پاره باعث د تشويش او التباس نه وي او چې وخت وي نو بيا كول په كار دي په حديثو كې اختيار دى نو په اختيار كې څه زبردستي نشته چې څوك يې كوي نو ثواب به ورته ملا ويږي چې چا ونه كړل نو مجرم نه دى دا مسئله مخكې په تفصيل سره بيان شوې ده . ( المرقات ۳/۲۵۴).

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كُنَّا بِالْمَدِيْنَةِ فَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ |
| او انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې مونږ په مدينه منوره كې وو په دغه وخت كې داحال وو چې مؤذن به د مانبام آذان |
| اِبْتَدَرُوا السَّوَارِيَ فَرَكَعُوا رَكْعَتَيْنِ حَتّٰى |
| كولو نو (بعضې صحابه يا تابعين) به د مسجد كې ستنو طرف ته تلل او دوه ركعته مونځ به يې كولو تر دې |
| إِنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيْبَ لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ |
| چې كوم مسافر كس به جماعت ته راتلو نو اكثرو خلكو به (چې يو اځې يو اځې) دوه ركعته مونځ كولو |
| فَيَحْسَبُ أَنَّ الصَّلَاةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُصَلِّيْهِمَا . (رَوَاهُ مُسلم)[2]. |
| وليدل نو ليدونكو به دا ګومان كولو چې مونځ شوى دى (او اوس خلك سنت كوي). |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۷۳ رقم الحديث ۳۰۲ – ۸۳۶

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۷۳ رقم الحديث ۳۰۳ – ۸۳۷

جلد 2 43

﴿۲۳﴾ وَ عَنْ مرثد بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ : أَتَيْتُ عُقْبَةَ الْجُهَنِيَّ

مرثد بن عبد الله وايي چې زه د حضرت عقبة بن جهنی رضي الله عنه (صحابي) په خدمت کې حاضر شوم او

فَقُلْتُ : أَلَا أُعَجِّبُكَ مِنْ أَبِي تَمِيمٍ

ده نه مې تپوس وکړو چې زه تا ته د ابو تميم (تابعي) يو عجيبه انګيز کار نه وايم هغه دا چې ابو تميمي د

يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ ؟ فَقَالَ عُقْبَةُ : إِنَّا كُنَّا

ماښام مونځ نه مخکې دوه رکعته مونځ نفل وکړل ، عقبه رضي الله عنه وفرمايل چې دا مونځ خو مونږه (په

نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . قُلْتُ :

مونږه کې بعضې صحابو کله کله) د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې هم کول چې کله ما تپوس وکړو

فَمَا يَمْنَعُكَ الْآنَ ؟ قَالَ : الشغل . ( رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ )[1].

چې بيا دې مونځ کولو نه تاسو څه منع کړئ ؟ نو ويې فرمايل چې د دنيا مشغولتيا .

## نفل مونځ کول په کور کې افضل دي :

﴿۲٤﴾ وَعَنْ كَعْب بن عجرة قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى مَسْجِدَ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ

کعب بن عجرة وايي چې يو ورځ نبي کريم صلی الله علیه وسلم راغی مسجد د بني عبد الاشهل ته او هلته يې د

فَصَلَّى فِيهِ الْمَغْرِبَ فَلَمَّا قَضَوْا صَلَاتَهُمْ

ماښامي فرض او سنت مونځ وکړونو چې کله بعضې خلکو خپل فرض مونځ وکړونو نبي کريم صلی الله علیه وسلم

رَآهُمْ يُسَبِّحُونَ بَعْدَهَا

وليدل چې هغوي فرض مونځ کولو نه پس نفل مونځ (يعني د ماښامي سنت) يې هم هلته وکړل ، نبي

فَقَالَ: «هَذِهِ صَلَاةُ الْبُيُوتِ» .

عليه الصلاة والسلام چې وليدل نو وي فرمايل : (چې دا د ماښامي سنت يا مطلقا نفل مونځ) کور د پاره دی .

وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ وَالنَّسَائِيِّ قَامَ نَاسٌ يَتَنَفَّلُونَ فَقَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم: عَلَيْكُمْ بِهَذِهِ الصَّلَاةِ فِي الْبُيُوت.[2]

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۹/۳،رقم الحديث :۱۱۸٤، اخرجه أحمد في المسند ١٥٥/٤.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ٦٩/۲ رقم الحديث ۱۳۰۰ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۵۰۰/۲، رقم الحديث ٦٠٣، وأخرجه ابن ماجه في المسند ٤٢٧/٥.

**توضيح : هذه صلوة البيوت** : يعني نفل او سنت داسې مونځونه دي چې په کور کې کول افضل او بهتر دي اگر چې په جمات کې کول جائز دي نبي کريم ﷺ په جمات کې د مابنامي مونځ کړی او بيا يې سنت هم په جمات کې کړي دي لکه څنگه چې راتلونکي حديث (۲۵) کې راځي ، ځينو علماو ليکلي چې کور ته تلو کې د چا د څه مشغولتيا د وجې يا د هيريدو خطره وي نو بيا دې جمات کې وکړي او که داسې صورت ورته نه وي نو بيا دې کور کې کولو کې ډيرې فائدې دي يوه فائده داده چې بچو ته به د مونځ شوق پيدا شي دوی ته به د مونځ عملي نقشه معلومه شي د مونځ سره په کور کې برکت راځي رحمت خداوندي نازليږي جمات د پاره به ځای جوړ شي او د هر وخت د مونځ کولو موقع به ملاؤ شي او د تلو نه لويه فائده دا چې د نبي عليه الصلاة والسلام په استحبابي فرمان باندې به عمل وشي . ( المرقات ۳/۲۵۶ ) .

## د سنتو نه پس اجتماعي دعاء ثابت نه ده :

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ دومره اوږد قرائت نه دی کړي په دوه رکعتو سنتو |
| بَعْدَ الْمَغْرِبِ حَتَّى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| کې پس د مابنام فرض مونځ نه تر دې چې د جماعت خلک خپل خپل مونځ نه فارغ شي او لاړ شي . |

**توضيح : حتى يتفرق اهل المسجد** : د دې حديث شريف نه ډيرې خبرې ثابتې شوي دي يو دا چې نبي کريم ﷺ نه سنت کول جمعې سره ثابت دي او دا جائز دي بيا د دې علت معلومولو څه ضرورت نشته چې د څه مجبوری د وجې نه يې په جمات کې سنت کړي دي د دې حديث نه دويمه دا خبره ثابته شوه چې د مابنامي په مونځ کې کله کله اوږد قرائت هم جائز دی د دې حديث نه دريمه خبره دا ثابته شوه چې پيغمبر عليه الصلاة والسلام به کله کله د مابنامي سنت په جماعت کې کول او قرائت به دومره اوچت وو چې د محلي خلک به د کورونو نه جمات ته تلل ، د دې نه صفا معلومه شوه چې د سنتو نه پس په هيئت اجتماعيه سره د بالالتزام دعا کول بدعت دی ځکه چې دا نا ممکنه او نامعقوله خبره ده چې خلک دې راجمع کړی شوی وي او د دعاء د پاره دې د کورونو نه واپس جمات ته راشي او د سنتو نه پس دعاء غواړي، تير شوی حديث د يو حق پرست سړي د پاره پوره هدايت دی . (المرقات ۳/۲۵۶).

مفتي الهند مفتي محمد كفايت الله په خپل کتاب **النفاس فرعي** کې پس د سنتونو متعلق ډير عمده تحقيق کړی دی او د جمع التزامي صورت يې بدعت ليکلی دی او په دې باندې يې د مختلفو ملکونو د

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۷۰ رقم الحديث : ۱۳۰۱.

سلو علماو دستخط کړی دی، بهر حال عام حدیث نه ثابته ده چې سنت په کورونو کې کول افضل دي د قرآن او حدیث د پوهي د پاره د مفسرینو او محدثینو او د فقهاو د تصریحاتو او د تشریحاتو ضرورت دی دیو جدید دور خواهش پرست سړی بې ځایه تاویلات او تشریحات کافي نه دي. علماو لیکلي دي:
**الاستدلال بالعمومات عند وجود السنة المخصوصة باطل**. یعنې کله چې د نبي کریم ﷺ خاص مسنونه طریقه موجود وي نو د دعاء د فضائلو د عمومي نصوصو نه استدلال کول باطل دي مثلا چې یو کس ووایي چې د دعاء لوي فضیلت دی لهذا د راجمع کیدو په طریقه سنتو پسې دعا دا باطله طریقه ده خو کله د څه وخت یا د څه خاص نه لاندې اګر چې یو کس د دعاء درخواست او یا طلب وکړو او مسلمانیې په کې غواړي نو دا یو نادر صورت او جدا څیز دی باقي دې نور الایضاح چې څه بیان کړي نو هغه د ادعیه **بعد الفرائض** او د **اذکار بعد الفرائض**و بیان دی ددې نه د سنتو نه پس د دعاء ثابتول د انصاف نه خلاف دی د تیر شوې حدیث هیرول نه دي په کار چې په هغې کې دا بیان دی چې نبي کریم ﷺ سنت به دومره اوږده شول چې محلي والا به کورونو ته به تلل چې کله به ټول خلک کورونو ته لاړو نو د سنتو نه پس به دعا کله او څنګه وشوه.

## د فرضو نه پس متصل د سنت کولو وجه:

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْ مَكْحُولٍ يَبْلُغُ بِهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « مَنْ |
| او مکحول (تابعي) دا روایت رسول الله ﷺ ته رسوي چې نبي علیه السلام وفرمایل چې کوم کس د |
| صَلَّى بَعْدَ الْمَغْرِبِ قَبْلَ أَنْ يَتَكَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ وَ فِي رِوَايَةٍ أَرْبَعَ |
| مابنام فرض یا سنت مؤکده مونځ وکړي او د دنیاوي خبرو نه اول دوه رکعته او یو روایت کې څلور رکعته |
| رَكَعَاتٍ رُفِعَتْ صَلَاتُهُ فِي عِلِّيِّينَ مُرْسلا. |
| مونځ وکړي نو دده مونځ علیین ته رسولی شي. |
| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ حُذَيْفَةَ نَحْوَهُ وَ زَادَ فَكَانَ |
| او حذیفه رضی الله عنه نه هم داسې (یعنې برنی حدیث) مروي دی لیکن دې روایت کې دا الفاظ هم دی چې |
| يَقُولُ : « عَجِّلُوا الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فَإِنَّهُمَا |
| نبي علیه السلام به فرمایل چې تاسو خلک د مابنام نه پس دوه رکعته سنت زر کوئ ځکه چې دا دواړه رکعته |
| تُرْفَعَانِ مَعَ الْمَكْتُوبَةِ» رَوَاهُمَا رَزِينٌ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ الزِّيَادَةَ عَنْهُ نَحْوَهَا فِي شُعَبِ الْإِيمَان. |
| د فرضو سره بره علیین ته ځي دا دواړه روایته رزین نقل کړي دي او بیهقي د حذیفه زائد الفاظ په شعب |

الايمان كې دغه شان نقل كړي دي .

**توضيح** : بره حديث كې چې كوم د عليين ذكر راغلى دى نو معلومول په كار دي چې عليين د اوه آسمانونو نه بره د يو مقام نوم دى هغې كې د مسلمانانو روحونه وي او د دوي هميشه اعمال هلته رسي او ليكلى شي .د تير شوي حديث مطلب دا دى چې فرشتې كله فرائض وړي نو د دې سره سنت او نوافل هم وړي لهذا تاسو د فرضو نه پس زر سنت كوئ ناوخته كوئ يې مه ځكه چې فرشتې دواړه قسمه اعمال بره وړي نو د فرضو په تكميل سره سنت كول په كار دي .لهذا دا د دې سره كول په كار دي احنافو د داسې قسم رواياتو نه د سنت په زر كولو باندې استدلال كړى دى، ليكن دومره زر به يې نه كوئ چې سلام واړوئ او ودريږئ حالانكه دا ناجائز او منع دي حضور اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخكې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يو كس كينولو او ورته يې وويل چې داد اهل كتابو طريقه ده لهذا مسلمانانو ته په كار دي چې د فرضو نه پس څه ذكر وكړي او سنت دې ادا كړي د څه وروسته والي نه پس .(المرقات ۳/۲۵۷).

## د سنتو او فرضو نه پس څومره فاصله په كار ده :

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ قَالَ : إِنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ |
| د عمرو بن عطاء (تابعي) نه نقل شوي چې هغوي (يعني عمرو) د حضرت نافع ابن جبير (تابعي) د |
| أَرْسَلَهُ إِلَى السَّائِبِ يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ رَآهُ مِنْهُ |
| سائب(صحابي) خواته بوتلو چې دده نه د هغه څيزونو پوښتنه وكړي چې كوم ليدلي وو دهغوي په مينځ كې معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (او ددې نه يې هغوي منع كړي وو چنانچه عمرو سائب خوا ته لاړو او د هغه نه يې د |
| مُعَاوِيَةُ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ : نَعَمْ صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ فِي |
| هغه څيز تفصيل معلوم كړو )نو هغوي ورته وويل چې آو ما يو ځل د معاويه سره د جمعې مونځ وكړو په |
| الْمَقْصُورَةِ فَلَمَّا سَلَّمَ الْإِمَامُ قُمْتُ فِي مَقَامِي فَصَلَّيْتُ |
| مقصوره كې نو چې كله امام سلام واړولو نو زه هغه ځاى كې چې كوم ځاى كې د جمعې فرض مونځ شوى وو اودريدم او د فرضو او د سنتو په مينځ كې مې د سره فاصله ونه كړه او د جمعې د وخت سنت مې وكړل |
| فَلَمَّا دَخَلَ أَرْسَلَ إِلَيَّ فَقَالَ : |
| كله چې معاويه د مونځ نه فارغه شو او خپل ځاى ته لاړو نو ما پسې يې يو كس راوليږلو او دا يې وويل چې اوس تا څه كړي نو كړي دي دې آئنده داسې مه كوه يعنې چې كوم ځاى كې دې فرض مونځ وكړو نو |
| لَا تَعُدْ لِمَا فَعَلْتَ إِذَا صَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ |
| په دغه ځاى كې امتياز پيدا كړه بغير د نفلو مونځ مه كوه چنانچه چې كله ته د جمعه مونځ كوي نو د جمعه |

فَلَا تَصِلْهَا بِصَلَاةٍ حَتّٰى تَكَلَّمَ

فرض مونځ د نورو نفلو يا قضاء مونځ سره مه يو ځاى کوه مګر په هغه وخت کې چې ته څه خبرې ونه کړې

أَوْ تَخْرُجَ فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَمَرَنَا بِذٰلِكَ أَنْ لَا نُوصِلَ

يا د جمات نه ونه وځې نو بيا نبي عليه الصلاة والسلام مونږ ته د يوې خبرې حکم راکړى چې مونږ نه يو ځاى کوو

بِصَلَاةٍ حَتّٰى نَتَكَلَّمَ أَوْ نَخْرُجَ . (رَوَاهُ مُسلم)[1].

يو مونځ د دويم مونځ سره تر څو چې په مينځ کې يې څه خبرې نه وي کړې يا د جمات نه، نه وې وتلى.

**توضيح : في المقصورة :** حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه چې کله شهيدان کړى شو او حضرت معاويه رضي الله عنه باندې د قاتلانه حملې خطره زياته شوه نو حضرت معاويه رضي الله عنه جماعت ته لاړو او د مونځ کولو په وخت کې يې څه احتياط وکړو او د هغوى نه پس خلفاو هم احتياط وکړو ددې احتياط صورت دا وو چې د خليفه د پاره به په جماعت کې يو خاص کړى شوى ځاى متعين کيدو چې هغې ته به عوام خلک نه راتلل دا د هغه خاص ځاى نوم مقصوره وو څنګه چې نن سبا په حرمين شريفين کې د آذان خانې سره ځاى وي . ( المرقات ۳/۲۵۸ ).

**اذا صليت الجمعة :** دلته د جمعې قيد اتفاقي دى دا حکم صرف د جمعې سره خاص نه دى بلکې د هر يو مونځ سره خاص دى چې د هغې نه پس سنت وي ددې حديث نه معلومه شوه چې د فرض مونځ او سنت په مينځ کې فاصله کول مناسب دي بالکل اتصال مناسب نه دى ليکن انفصال کې اعتدال وي بالکل منفصل نه وي بيا دا حکم د سنت مؤکده او غير مؤکده ټولو د پاره دى بيا ددې فاصلې صورت اذکار او ادعيه هم دي ځاى بدلول هم دي کور ته تلل هم دي خبرې کول هم دي په صف کې مخکې وروسته کيدل هم دي دې ټولو صورتونو طرف ته اشاره يې **حتى تکلم او تخرج** سره کړې ده بعضې علماء وايي چې اذکارو او ادعيو سره څه فاصله نه راځي بلکې خبرې کول دي يا ځاى بدلول په کار دي .

## د جمعې مونځ نه پس شپږ رکعته مونځ کول ثابت دي :

﴿۲۹﴾ وَ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ : كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلَّى الْجُمُعَةَ بِمَكَّةَ

او عطاء وايي چې کله عمر رضي الله عنه په مکه کې د جمعې مونځ وکړونو چې کوم ځاى کې به يې فرض مونځ

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۶۰۱/۲ رقم الحديث : ۷۳-۸۸۳، وأبو داود في السنن ۶۷۲/۱ رقم الحديث : ۱۱۲۹ .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَقَدَّمَ | فَصَلَّى | رَكْعَتَيْنِ | ثُمَّ | يَتَقَدَّمُ | فَيُصَلِّي أَرْبَعًا |

كولو دهغې نه به اخواشو او دوه ركعته به يې وكړل او ددې نه پس به يا اخوا شو او څلور ركعته مونځ به يې وكړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ إِذَا | كَانَ | بِالْمَدِينَةِ | صَلَّى | الْجُمُعَةَ |

اوچې كله به تاسو مدينه كې وي نو دا به د هغوى معمول وه چې د جمعې فرض مونځ به يې وكړو او خپل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | رَجَعَ | إِلَى | بَيْتِهِ | فَصَلَّى | رَكْعَتَيْنِ | وَ لَمْ يُصَلِّ | فِي | الْمَسْجِدِ |

ځاى ته به يې تشريف يوړو او په كوركې به يې دوه ركعته مونځ وكړو په جمات كې به يې د فرضونه علاوه

فَقِيلَ لَهُ.

نور څه مونځ نه كولو چې كله ددوي نه ددې كوركې د كولو او په جمات كې د نه كولو د سبب تپوس وكړو

فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُه (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

نو وى ويل: چې ددې وجې نه چې نبي كريم ﷺ به داسې كول.

وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: (رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ صَلَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صلى بعد ذَلِك أَرْبعا).

**توضيح**: اربعا، يعني حضرت ابن عمر رضي الله عنه به چې كله په مدينه منوره كې د جمعې مونځ كولو نو ددې نه پس به يا كور ته لاړو او دوه ركعته سنت به يې وكړل او چې كله به په مكه مكرمه كې وو نو د جمعې د فرضو نه پس به د صف نه مخكې شو او دوه ركعته سنت به يې وكړل او بيا به خپلې خيمې ته لاړو نو څلور ركعته به يې سيوا وكړل چا ترې تپوس وكړو نو هغوى جواب وركړو چې د حضور كريم ﷺ دا معمول وو. علماو د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ددې عمل په باره كې ليكلي دي چې په مدينه كې هغوى كور جمات سره نزدې وو نو هغوى به كور كې سنت كول او په مكه كې به هغه مسافر وو نو ځكه به هغه په جماعت كې نفل كول او بيا دا چې په مكه مكرمه كې ډير زيات فضيلت وو ددې وجې نه ددوو سره يې څلور زيات يو ځاى كړل او كول به يې ددې نه د جمعې نه پس شپږ ركعاته ثابت دي او دا د امام ابويوسف رحمه الله مسلک دى او په دې باندې د احنافو فتوى ده. (المرقات ۳/۲۵۹).



---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۶۷۲ رقم الحديث: ۱۱۲۹، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۹۹، رقم الحديث: ۵۲۲.

۱٤ جمادی الاولی ۱٤۱۰هـ

# بَاب صَلَاة اللَّيْل:

## د شپې مونځ يعنې د تهجدو بيان:

قال الله تعالى: ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَّكَ عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا﴾ (اسرائيل: ۷۹).

د شپې د مونځ په باره کې د نبي کريم ﷺ مختلفې طريقې دي کله به يې ډير اوږد کولو کله به يې مختصر کولو کله به نبي کريم ﷺ ډير رکعتونه کول او کله به يې په کمو رکعتونو باندې اکتفاء کوله لهذا په دې کې وسعت دی چې کوم کس څنګه طريقې سره وکړل کومه طريقه چې يې خپله کړه د نبي کريم ﷺ د متابعت او د سنتو په اندازه ثواب به ورته ملاويږي. د نبي کريم ﷺ نه د ډيرو نه ډير ديارلس رکعاته ثابت دي دوه رکعته صلوة تحيه او دري وتر او اته رکعته تهجد اګر چې نبي کريم ﷺ نهه رکعته کړي نو دري وتر او دوه تحيه او څلور تهجد به يې کولو کومو رواياتو کې چې د يوولسو ذکر راغلی دی نو دري وتر او اته تهجد کيدی شي او چې دوه رکعته تحية الوضوء حساب شي نو يا به شپږ تهجد جوړ شي دا اختلاف دی د شپو د اوږديدو او د لنډيدو په وجه هم کيدی شي او د سترې والې او د آرام د وجې نه هم کيدې شي يا د کمزورۍ او د وترو اطلاق هم په صلاة الليل باندې کيږي ددې وجې نه طاقت د وجې نه هم ددې ذکر په دې رواياتو کې راغلي، دغه شان د شپې مونځ په حوالې سره د سهر دوه سنتو باندې هم د صلوة الليل اطلاق شوی دی دا اصطلاحي لفظ د تهجدو د پاره استعمال کيږي او يو د ودريدل د روژې قيام الليل دا الفاظ د تراويحو دپاره استعماليږي د تهجد د مونځ ډير فضيلت دی دا د صلحاو او اتقياو علامت دی او په دې کې ډير برکت دی چا د تهجد والو په باره کې ډير خه ويلي دي:

الليل للعاشقين ستر يا ليت اوقاتها تدوم

# اَلْفَصْل الْأَوَّل:

## د ماخوستن او د سهر په مينځ کې يوولس رکعاته:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې: نبي عليه الصلاة والسلام به اکثر مونځ کولو د ماسخوتن مونځ نه د فارغيدو نه تر |
| الْفَجْرِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُسَلِّمُ مِنْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَ يُوتِرُ |
| سهر مونځ پورې يوولس رکعته هر دوهم رکعات باندې به يې سلام اړولو او بيا به يې وتر کول په آخر کې په |

| |
|---|
| بِوَاحِدَةٍ فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذَلِكَ قَدْرَ مَا يَقْرَأُ أَحَدُكُمْ خَمْسِينَ آيَةً قَبْلَ |
| يو ركعت سره او په دې ركعت كې به يې دومره اوږده سجده وكړه چې يو كس به پنځوس آيتونه ويل مخكې |
| أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَ تَبَيَّنَ لَهُ الْفَجْرُ |
| د سرا وچتولو نه بيا به چې مؤذن آذان د سحرو كړو نو غلى كيدلو به او چې سحر به را وختو يعني رڼا به ولګيده |
| قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ ثُمَّ اضْطَجَعَ |
| نو هغه به او دريدلو دوه سپك ركعاته يعني د سحر سنت به يې وكړل او بيا به دد دې نه پس لږ وخت د پاره |
| عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ حَتَّى يَأْتِيهِ الْمُؤَذِّنُ لِلْإِقَامَةِ |
| به خپل ښي طرف باندې سملاستو تر دې چې مؤذن به راغلو هغوي خواته د تكبير د پاره (يعني د تكبير |
| فَيَخْرُجُ . (متفق عليه) [1]. |
| ويلو اجازت حاصلولو د پاره) نو نبي كريم ﷺ به مونځ د پاره مسجد ته تللو. |

**توضيح : يوتر بواحدة** ، ايتار د طاق په معنى باندې دى يعني جفت شفعه به هغوى يو ركعت سره طاق جوړ كړو وترو كې اختلاف را روان دى دلته يو ركعت وتر مراد نه دى بلكه طاق جوړيدو معنى سره دى . (المرقات ۳/۲۶۰).

**فيسجد السجدة** : يعني وترو كې چې كله تاسو سجدې له لاړ شئ دومره پورې سجده كوئ څومره ساعت كې چې سړى پنځوس آيتونه ويلى شي ظاهر د حديث نه دلته معلوميږي چې حضور ﷺ به د تهجدو د مونځ سجدې داسې اوږدې كولې ، دلته دا هم احتمال دى چې سجدو كې دا اوږدوالى صرف د وترو سره خاص دى . (المرقات ۳/۲۶۰).

**ثم اضطجع**، اضطجاع په طرف څملاستو ته ويلى شي حضور ﷺ به د حضرت عائشې رضي الله عنها په حجره كې ټوله شپه تهجد كول او د سحر وخت كې مختصر دوه ركعاته د سحر سنت كولو نه پس ستړي والى ختمولو د پاره ملا نيغوله دې د پاره به په طرف څملاستو ، غير مقلدين دې اضطجاع ته سنت وايي بلكې بعضې ورته واجب وايي ، حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه دې ته بدعت ويلى دى او

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲،رقم الحديث ۹۹۴، ومسلم في الصحيح ۱/ ۵۰۸ رقم الحديث ۱۲۲-۷۳۶، وأبو داود ۲/ ۴۸ رقم الحديث :۱۴۴۷، والنسائي ۳/ ۲۴۲، رقم الحديث. ۱۷۲۶ .

داسې کولو والا به يې په کاڼو باندې ويشتلو او ددې نه به يې منع کولو (مصنف عبدالرزاق) (المرقات ۳/۲۶۰).

بعضې علماو دا اضطجاع مباح ګرځولې، بعضې وايي دا اضطجاع هغه کس د پاره ده چې ټوله شپه تهجد کولو باندې ستړی شي د دمه کيدو د پاره داسې کوي جائز دي صحيح او راجح دا دی، چې اضطجاع د هغه چا د پاره ده څوک چې د شپې ډيره حصه د تهجد و مونځ کې تيروي ستړي وي او کور کې د استراحت د پاره څملي دا مباح او جائز دي حضور ﷺ د متابعت اراده هم وکړي او ثواب هم ملاو شي.

حضرت ابن عمر رضي الله عنه دې اضطجاع ته بدعت ويلي دي مثلاً يو کس د شپې تهجد مونځ هم ونه کړي ستړي والی هم نه وي يا د سحر سنت هم کور کې ونه کړي جمات کې يې وکړي او کور کې د دمې په ځای جمات کې دمه وکړي نو دا جمات کې خوب بغير د ستړي والې دی حالانکې په دې کې دا کس د ثواب نيت هم کوي ددې بدعت کيدو کې څه شک دي غير مقلدين حضرات چې مسجد ته راشي د سحر سنت نه پس ملاسته کوي او د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه روايت نمبر ۱۹ نه استدلال کوي دې کې د امر صيغه ده حالانکه علامه ابن تيميه رحمه الله دې روايت ته باطل ويلی دی (کما في زاد المعاد ج ۱ ص ۸۲)

بهرحال د احنافو نه شيخ عبد الحق رحمه الله دې دمې ته مستحب ويلی دی د شرائطو په رڼا کې يې ويلي دي د غير مقلدينو په نزد دې امر عادي ته واجب ويل ډيره لرې خبره ده همدا رنګې دا حضرات څومره چې ددې التزام کوي دا هم مناسب نه ده دا خلک کلک اوده کيږي او بغير اودس نه مونځ کوي د حضور ﷺ په خوب باندې قياس کول جائز نه دي همدا رنګه دا حضرات په خوب کې خڼ خڼ او ازونه کوي اوده نه شي او يا بغير د اودس نه مونځ کوي، د پيغمبر ﷺ په خوب باندې قياس کول جائز نه دي، ځکه چې د حضور ﷺ خوب ناقض الوضوء نه دی باقي د حضور ﷺ استغفار تعليم د امت د پاره وو يا درجات اوچتيدو د پاره وو يا خلاف اولی د ازالې د پاره وو يا عبوديت ښکاره کيدو د پاره وو. (اشعة اللمعات ۱/۵۴۳).

## د سحر د سنتو نه پس حضور ﷺ کله هم په طرف باندې نه دی اوده شوی:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ به کله د سحر سنت وکړل نو که زه به ويخه وم نو ماسره به |

| |
|---|
| حَدَّثَنِيْ وَ إِلَّا اضْطَجَعَ . ( رَوَاهُ مُسْلِم )[1]. |
| يې خبرې کولې او چې زه به اوده شوم نو حضور ﷺ به هم څملاستو. |

**توضيح** :والا فاضطجع : يعني که عائشه رضي الله عنها به ويده وه نو حضور ﷺ به په خپله آرام د پاره په طرف باندې څملاستو که عائشه رضي الله عنها به ويخه وه نو حضور ﷺ به د طرف د څملاستو په ځای خبرې کولې ، دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې حضور ﷺ کله کله د سنتو نه پس طرف باندې څملاستو ، د حضور ﷺ دې باندې التزام او دوام نه وو ، دويمه خبره دا معلومه شوه چې د سحر د سنتو نه پس خبرې جائز وې خو دې د پاره دوه شرطونه دي : يو شرط دا چې بالکل د دنيا خبرې نه وي ځکه چې د دنياوي خبرو سره ثواب ختميږي ، دويم شرط دا دی چې که د خبرو ضرورت وي او سړی هغې ته محتاج وي جائز دي بغير د ضرورت نه دنيوي خبرې کولو سره ثواب ختميږي لکه څنګه چې فقهاؤ ليکلي دي . (المرقات ۳/۲۶۲).

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ اضْطَجَعَ عَلَى |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې نبي کريم ﷺ به کله د سحر دوه رکعاته سنت وکړل نو څملاستو به په |
| شِقِّهِ الْأَيْمَن ". (متفق عليه)[2]. |
| خپل ښي طرف باندې. |

## د درې رکعاتو وترو ثبوت :

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنْهَا الْوِتْرُ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ به د شپې ديارلس رکعته مونځ کولو ، په دې کې به وتر |
| وَ رَكْعَتَا الْفَجْرِ . (رَوَاهُ مُسْلِم)[3]. |
| (درې رکعته) د سحر سنت دوه رکعته هم شامل وو . |

**توضيح** : **منها الوتر** : دلته د ديارلس رکعتو ذکر دی دې کې دوه رکعته د سحر سنت دي او درې وتر دي وترو سره دلته د درې لفظ موجود نه دی خو دريم روايت کې **ثلاث** لفظ موجود دی ، مسلم روايت کې

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۵۱۱/۱ رقم الحديث ۱۳۳ ۷۴۳، وأبو داود ۱۸/۲ رقم الحديث ۱۲۶۳.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۴۳/۳،رقم الحديث ۱۱۶۰، وابن ماجة ۳۷۸/۱، رقم الحديث. ۱۱۹۹. مسند أحمد ۱۷۳/۲

(۳) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۰/۳،رقم الحديث ۱۱۴۰، ومسلم في الصحيح ۵۱۰/۱ رقم الحديث:۱۲۷-۷۳۸

دي : ثم اوتر بثلاث ، شمائل ترمذي کې دي : ثم يصلي ثلاثاً ، لهذا دا حديث د درې رکعاتو وترو د ثبوت د پاره کافي دی هسې هم د ټولو علماو په نزد درې رکعته وتر افضل دي. (المرقات۳/۲۶۳) .
دلته اته رکعت تهجد دي دوه رکعاته د سحر سنت دي او درې رکعاته وتر دي ټول یوولس رکعاته شو .

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِاللَّيْلِ. |
| مسروق وايي ما د حضور ﷺ د شپې مونځ په باره کې د عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو( چې |
| فَقَالَتْ : سَبْعٌ |
| څو مره رکعته به يې کول) عائشې رضي الله عنها راته وفرمايل کله به حضور ﷺ اوه رکعته کول او |
| وَ تِسْعٌ وَ إِحْدٰى عَشَرَ رَكْعَةً سِوٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. (۱). |
| کله نهه او کله يوولس رکعته کول علاوه د سحر د سنتو نه . |

## د تهجدو نه مخکې دوه رکعاته نفل کول په کار دي :

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ لِيُصَلِّيَ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ به کله شپه کې مونځ کولو د پاره او دريد و د خپل مونځ شروع |
| بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ. (رَوَاهُ مُسلم)(۲). |
| به يې په سپکو دوه رکعاتو سره کوله . |

**توضيح** : **افتتح** : يعني تهجد و نه مخکې به حضور ﷺ دوه سپک رکعتونه کول دې کې دا فائده ده چې سرې د خوب اثراتو نه پاک شي او چست شي بيا د تهجد و مونځ کوي ، دويمه فائده داده چې د **تحية الوضوء** او **تحية المسجد** حق ادا کيږي .(المرقات ۳/۲۶۴).

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ |
| ابو هريره رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ فرمايي کله چې راپاڅي يو کس په تاسو کې د |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۰/۲،رقم الحديث :۱۱۳۹.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۳۲/۱ رقم الحديث . ۱۹۷- ۷۶۷.

اللَّيْلِ فَلْيَفْتَحِ الصَّلَاةَ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

خوب نه د شپې مونځ د پاره هغه ته په کار دي چې هغه د خپل مونځ شروع په سپکو دوه رکعتونو سره وکړي

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تهجدو مکمل نقشه :

﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ لَيْلَةً وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما د خپلې ترور میمونې سره شپه تیره کړه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم ورسره وو څه

فَتَحَدَّثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَهْلِهِ سَاعَةً ثُمَّ رَقَدَ فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ أَوْ بَعْضُهُ

شپه تیره وپورې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپلې ښځې سره خبرې وکړې بیا اوده شو کله چې دریمه حصه یا کمه حصه

قَعَدَ فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ فَقَرَأَ:

د شپې باقي پاتې شوه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاڅیدو او کیناستو آسمان طرف ته یې وکتل دا دعا یې وویله

﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضِ وَ اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَ النَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾

د آسمان او د ځمکې پیدا کیدو کې او د ورځې او شپې اختلاف کې بیشک عقل مندو د پاره نښې دي

حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الْقِرْبَةِ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوره سورت ولوستلو بیا پاڅیدو او مشک خواته لاړو او د هغې خوله یې خلاصه کړه

ثُمَّ صَبَّ فِي الْجَفْنَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوءًا حَسَنًا بَيْنَ الْوُضُوءَيْنِ لَمْ يُكْثِرْ

او پیالې کې یې اوبه واچولې بیا ښه او درمیانه اودس یې وکړو (یعنې ډیرې اوبه یې استعمال نه کړې

چې حد د اسراف ته ورسي ، او نه دومره کمې اوبه چې اندامونه پرې لامده نه شي بلکې درمیانه درجه

وَ قَدْ أَبْلَغَ فَقَامَ

اودس یې وکړو) بلکې اوبه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعضاو ته ورسیدې بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودریدو

فَصَلَّى فَقُمْتُ وَ تَوَضَّأْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ

او مونځ یې وکړو زه هم پاڅیدم ما هم داسې اودس وکړو او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چپ طرف ته اودریدم

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۳۲/۱ رقم الحديث : ۱۹۸ - ۷۶۸.

فَأَخَذَ بِأُذُنِي فَأَدَارَنِي عَنْ يَمِينِهِ

حضور ﷺ زما غوږ ونیولو خپل چپ طرف نه يې ښي طرف ته راوا ړولم کله چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَتَتَامَّتْ صَلَاتُهُ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ

دیارلس رکعته پوره شو څملاستو چونکې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ داوده کیدو وخت کې خراټې کولو نو لهذا اوده شو

وَ كَانَ إِذَا نَامَ نَفَخَ فَآذَنَهُ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ

او خراټې يې شروع کړو دې وخت کې بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی او د مونځ د وخت د شروع کیدو (او د جمعې د

فَصَلَّى وَ لَمْ يَتَوَضَّأْ

ﷺ تیاریدو) اطلاع يې ورکړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بغیر داودس نه (سنت) مونځ وکړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

وَ كَانَ فِي دُعَائِهِ : « اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِي قَلْبِي نُورًا وَ فِي بَصَرِي نُورًا

به د فرضو او سنتو په مينځ کې دا دعاء کوله: ای الله! واچوئ زما په زړه کې نور، زما په سترګو کې نور،

وَ فِي سَمْعِي نُورًا وَ عَنْ يَمِينِي نُورًا وَ عَنْ يَسَارِي نُورًا وَ فَوْقِي نُورًا وَ تَحْتِي نُورًا وَ

زما په غوږونو کې نور او زما ښي طرف ته نور، او زما ګس طرف ته نور او زما بره نور او زما ښکته نور او زما

أَمَامِي نُورًا وَ خَلْفِي نُورًا وَ اجْعَلْ لِي نُورًا » . وَ زَادَ بَعْضُهُمْ : « وَ فِي لِسَانِي

مخې ته نور او زما وروستو نور او را کړې ماته رڼا، بعضې راویانو دا الفاظ زیات کړي: او زما په ژبه کې

نُورًا » . وَ ذَكَرَ : " وَ عَصَبِي وَ لَحْمِي وَ دَمِي . وَ شَعْرِي

رڼا پیدا کړه، بعضې راویانو دا الفاظ نقل کړي: او زما په اعصابو، زما په غوښه، زما په وینې، زما په ویښتو

وَ بَشَرِي ) . وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُمَا : « وَ اجْعَلْ فِي نَفْسِي

او زما په بدن کې نور پیدا کړي او د بخاري او مسلم یو روایت کې دا الفاظ هم دي: ای الله! زما په نفس کې هم

نُورًا وَ أَعْظِمْ لِي نُورًا » . وَ فِي أُخْرَى لِمُسْلِمٍ : « اللَّهُمَّ أَعْطِنِي نُورًا »[1].

نور پیدا کړه او زما دپاره په نور کې او چتوالي راوله، د مسلم دویم روایت کې دي: ای الله! ماته را کړه نور.

**توضیح:** حضرت میمونه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ترور ده، ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نابالغ ماشوم دی خو د حضور ﷺ حرکاتو، سکناتو او عباداتو يې داسې نقشه اخیستې ده لوي لوي علماء او

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۱/۱۱۶، رقم الحديث: ۶۳۱۶، ومسلم في الصحيح ۱/۵۲۶ رقم الحديث: ۱۸۱-۷۶۳.

عقلاء يې په حيرت کې اچولې دي چې نه په هغه اودس کې اسراف وو نه کمي او نه نقصان وو او اودس مکمل هم وو چې ټولو اعضاو پورې يې اوبه ورسولې. (المرقات ۳۹/۲۶۵).

**نفخ**: مضبوط کس چې کله اوده کيږي بنه ساه اخلي دې ته نفخ ويلی شي حضور ﷺ داسې خرار نه کولو څنګه چې نن سبا خلک يې کوي، دې نقشې نه پس ابن عباس رضي الله عنه د حضور ﷺ دعاء مکمل نقشه په الفاظو سره پيش کړې ده، دلته حضور ﷺ خپل ځان د پاره او خپل اعضاو د پاره د نورانيت دعاء غوښتلې ده دې کې: أعطني نورا الفاظو په شان هر ځای کې د نور اضافت خپل طرف ته فرمايلي. ددې نه معلومه شوه چې د حضور ﷺ ذات ځانله او نور جدا څيز دی ګينې اضافت د شئ الی نفسه ته لازم راځي يعنې ترجمه به يې داسې شي: ای الله رڼا ته رڼا عطاء کړه. رڼا کې دننه رڼا واچوې. حضور ﷺ انسان او بشر دی او رڼا د هدايت نه منور دی داد اهل حقو عقيده ده کوم چې د قرآن او احاديثو مطابق ده.

**محمد بشر ليس کالبشر و ياقوت حجر ليس کالحجر**

## دوترو درې رکعاته:

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهُ : أَنَّهُ رَقَدَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دابن عباس رضي الله عنه باره کې منقول دي چې دا (يو شپه) د حضور ﷺ سره اوده شو نبي عليه السلام |
| فَاسْتَيْقَظَ فَتَسَوَّكَ وَ تَوَضَّأَ وَ هُوَ يَقُوْلُ : ﴿ إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمَاوَاتِ |
| د شپې راپاڅيدو مسواک يې وکړو او اودس يې وکړو، بيا يې دا آيت ولوستو: ﴿إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمَاوَاتِ |
| وَ الْأَرْضِ . . . ﴾ حَتّٰى خَتَمَ السُّوْرَةَ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ |
| وَالْأَرْضِ﴾ آخر د سورة پورې، دې نه پس حضور ﷺ اودريدو دوه رکعته مونځ يې وکړو دې |
| أَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ |
| کې قيام رکوع سجده اوږده وکړل بيا فارغ شو او ويده شو او خراټې به يې کولو درې ځلې يې داسې وکړل |
| (يعنې دوه رکعته به يې په ذکرشوې طريقې سره کول بيا به اوده کيدو، بيا به پاڅيدو او دوه رکعته مونځ |
| سِتَّ رَكَعَاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ يَسْتَاكُ |
| به يې وکړو او اوده به شو) دغه شان نبي عليه السلام شپږ رکعته وکړل دريو ځلو کې هر ځل به يې مسواک هم |

| |
|---|
| وَ يَتَوَضَّأُ وَ يَقْرَأُ هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ. (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| کولو او اودس به يې هم کولو او دا آيتونه به يې هم لوستل بيا نبي عليه السلام آخر کې درې رکعته وتر وکړل. |

**توضيح**: **ثم اوتر بثلاث**: دا حديث واضح دليل دی چې وتر درې رکعته دي، غير مقلدينو حضراتو ته سوچ په کار دی چې د احاديثو نه څومره جدا او لرې دي داد مسلم روايت دی دې کې تصريح موجود ده:

**ثم اوتر بثلاث**، يعني حضور صلى الله عليه وسلم بيا درې رکعته وتر وکړل، د حديث ظاهري الفاظ ښايي چې مينځ کې هيڅ سلام نه وو. (المرقات ۳/۲۶۹).

## حضور صلى الله عليه وسلم درې رکعاته وتر کړې دي:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ أَنَّهُ قَالَ: لَأَرْمُقَنَّ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّيْلَةَ |
| زيد بن خالد جهني وايي چې (يو ځل ما اراده وکړه چې) زه به نن شپه د حضور صلى الله عليه وسلم مونځ ته ګورم |
| فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ |
| (ما وکتل) اول حضور صلى الله عليه وسلم دوه سپک رکعتونه وکړل بيا دوه رکعاته يې اوږده وکړل بيا حضور |
| طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَ هُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ |
| صلى الله عليه وسلم دوه رکعاته وکړل د هغه دوو رکعتونه کم وو کوم چې نبي عليه السلام دې نه مخکې کړي وو بيا |
| صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَ هُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ |
| حضور صلى الله عليه وسلم دوه رکعاته وکړل چې د مخکنيو دواړو رکعتونو نه کم وو حضور صلى الله عليه وسلم دوه |
| صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَ هُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا [ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ |
| رکعاته وکړل چې د مخکنيو دواړو رکعتونو نه کم وو بيا حضور صلى الله عليه وسلم دوه رکعاته وکړل چې د |
| وَ هُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ] ثُمَّ أَوْتَرَ فَذَلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2]. |
| مخکنيو دواړو رکعاتونو نه واړه وو بيا حضور صلى الله عليه وسلم وتر وکړل دا ټول ديارلس رکعاته شو. |
| **قوله**: ثُمَّ صلى رَكْعَتَيْنِ وَ هُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ هَكَذَا فِي صَحِيح |
| او د زيد دا قول چې دوه رکعاته يې وکړل چې د اولنيو دوه رکعتونه کم ؤ، څلور ځل دغه شان په صحيح |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۳۰ رقم الحديث: ۱۹۱-۷۶۳.

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۳۱ رقم الحديث: ۱۹۵-۷۶۵، وأبو داود ۲/۹۹ رقم الحديث: ۱۳۶۶.

| |
|---|
| مُسْلِمٍ و أفراده مِنْ كتاب الحميدِي و موطأ مَالك وَ سنَن أبي دَاوُد و جامع الأُصُول. |
| مسلم کې صرف د حميدي په کتاب کې او مؤطامالک ،سنن ابي داؤد او جامع الاصول ټولو کې دي . |

**توضيح** : **ثم اوتر** : دا حديث هم په دې باندې دلالت کوي چې وتر درې رکعته دي ، دې حديث کې د دوه دوه رکعاتو پنځه ځلې ذکر راغلی دی ، مشکوة اصل نسخه کې دي چې دا لس رکعاته جوړېږي يا چونکه د وترو ذکر دی نو دې کې د درې رکعاتو ذکر نشته خو نتيجه کې چې کوم ديارلس رکعتو مجموعه ده دې نه په واضح طور سره دا ثابتيږي چې وتر درې رکعات دي او داد ټولو فقهاو په نزد افضل هم دي او کومو نسخو کې چې د رکعتينو ذکر شپږ ځلې راغلی دی نو دولس رکعته ثابتيږي او يو رکعت وتر وو ، خو احناف دې صورت کې رکعتين خفيفتين اصل شمار کې نه دي راوستې لهذا وتر درې رکعته ثابتيږي .( المرقات ۳/۲۶۹).

**طويلتين** درې ځلې تکرار د مبالغې د پاره دی خفيف رکعتين نه پس نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اوږد رکعات کړي دي .

## نفل مونځ په ناسته باندې کول :

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : لَمَّا بَدَّنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي : حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د عمر آخري حصې ته ورسيدو او ( د بوډا والي د |
| وَ ثَقُلَ كَانَ أَكْثَرُ صَلَاتِهِ جَالِسًا .(متفق عليه)[1]. |
| وجې نه ) بدن مبارک يې دروند شوی وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اکثر نفل په ناسته باندې کول . |

## په تهجدو کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم سورتونه لوستل :

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: لَقَدْ عَرَفْتُ النَّظَائِرَ الَّتِي كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرِنُ |
| ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي زه پيژنم هغه سورتونه کوم چې يو شان دي او نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به جمع کول ، |
| بَيْنَهُنَّ فَذَكَرَ عِشْرِينَ سُورَةً مِنْ أَوَّلِ الْمُفَصَّلِ عَلَى تَأْلِيفِ ابْنِ مَسْعُودٍ |
| نو ذکر يې کړل شل سورتونه د اول مفصلو نه په ترتيب د عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| سُورَتَيْنِ فِي رَكْعَةٍ آخِرُهُنَّ ( حٰمٓ الدُّخَانُ ) |
| دغه سورتونه دا سې جمع کول يو يو رکعات کې دوه دوه سورتونه لوستل ،آخر کې دوه سورتونه حم الدخان |

و (عَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ). (متفق عليه)[1]

او عم يتساءلون دي.

**توضيح**: **النظائر**: داد نظير جمع ده يو شان سورتونه مراد دي يعني هغه سورتونه كوم چې طوالت او اختصار كې يو شان دي.(المرقات ۳/۲۷۲).

**على تاليف ابن مسعود**: د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مصحف كې چې كوم ترتيب دى دا هغه طرف ته اشاره ده كوم چې مصحف عثماني ترتيب نه لرې مختلف دى خو علماء ليكي چې هغه ترتيب باندې قرآن لوستل لازم دي كوم ترتيب چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قائم كړى دى، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترتيب كې د شلو سورتونو ترتيب داسې وو لكه څنګه چې ابوداود كې ذكر دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به يو ركعت كې دوه دوه سورتونه داسې يو ځاى كول او لوستل به يې، مثلاً سورة رحمان او سورة نجم يو ركعت كې سورة قمر او سورة الحاقة يو ركعت كې سورة معارج او سورة نازعات يو ركعت كې سورة مطففين او سورة عبس يو ركعت كې سورة نبأ او سورة مرسلات يو ركعت كې او سورة دخان او سورة تكوير يو ركعت كې دې مذكوره حديث كې دغه ترتيب طرف ته اجمالي اشاره ده.(المرقات ۳/۲۷۲).

د علماو اجماعي فيصله ده نن سبا قرآن دغه ترتيب باندې لوستلى كيږي څنګه چې موجود دى ترتيب نزولي او ترتيب مصحفي كې فرق دى دا فرق ترتيب او تقديم او تاخير فرق دى قرآن كريم كې د كم او زيات فرق نه دى قرآن د الله تعالى په حفاظت سره محفوظ دى.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

### د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د اوږد مونځ ذكر

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ حُذَيْفَةَ: أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ |
| د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره كې منقول دي چې هغه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په شپه كې مونځ كولو باندې ليدلې |
| وَ كَانَ يَقُولُ: «الله أكبر» ثَلَاثًا «ذُو الْمَلَكُوتِ وَ الْجَبَرُوتِ |
| (دهغه بيان دى) چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ځلې الله اكبر ويلو سره دا وويل (الله تعالى د ملك، غلبې |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۵۵، رقم الحديث ۷۷۵، ومسلم في الصحيح ۱/۵۶۵ رقم الحديث: ۲۷۹-۷۱۲.

وَ الْكِبْرِيَاءِ وَ الْعَظَمَةِ » ثُمَّ

د لوی والي او د بزرګی مالک دی ) دې نه پس حضور ﷺ سبحانک اللهم ولوستلو بیا یې د

اسْتَفْتَحَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ ثُمَّ رَكَعَ فَكَانَ رُكُوعُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ

سورة بقرة تلاوت شروع کړو، دې نه پس یې رکوع وکړه د حضور ﷺ رکوع د قیام برابر وه او

فَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ : « سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ » ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَكَانَ قِيَامُهُ

ویل به یې په رکوع سبحان ربي العظيم بیا یې د رکوع نه سرا وچت کړو او د نبي عليه السلام قومه تقریبا د

نَحْوًا مِنْ رُكُوعِهِ يَقُولُ : « لِرَبِّيَ الْحَمْدُ » ثُمَّ سَجَدَ فَكَانَ سُجُودُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ

رکوع برابر وه او نبي عليه السلام به وویل : لربي الحمد بیا یې سجده وکړه او د سجدې مقدار د قومې برابر وو

فَكَانَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ: «سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى» ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ وَكَانَ يَقْعُدُ فِيمَا بَيْنَ

او سجده کې به یې ویل سبحان ربي الاعلی بیا یې د سجدې نه سرا وچت کړو او کیناستو به په مینځ د

السَّجْدَتَيْنِ نَحْوًا مِنْ سُجُودِهِ وَ كَانَ يَقُولُ : « رَبِّ اغْفِرْ لِي رَبِّ اغْفِرْ لِي »

دواړو سجدو کې د خپل سجدې برابر او دا یې وویل: ای الله !زما مغفرت وکړې ای الله !زما مغفرت وکړې

فَصَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ قَرَأَ فِيهِنَّ ( الْبَقَرَةَ وَ آلَ

نو وي کړل څلور رکعاته دغه شان چې لوستل به یې په دغه (څلورو رکعاتو کې) سورة بقرة او سورة آل

عِمْرَانَ وَ النِّسَاءَ وَ الْمَائِدَةَ أَوِ الأَنْعَامَ ) شَكَّ شُعْبَةُ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

عمران، نساء، او مائده یا سورة انعام، شعبه ته شک واقع شو (چې سورة مائده وه او که سورة انعام)

﴿١٤﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «مَنْ قَامَ

عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه روایت دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي: څوک چې قیام وکړي

بِعَشْرِ آيَاتٍ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِينَ وَ مَنْ قَامَ بِمِائَةِ آيَةٍ

په لسو آیتونو سره هغه به په غافلینو کې نه شمارل کیږي او څوک چې په سلو آیتونو سره قیام وکړي نو

---

(١) أخرجه أبو داود في السنن ٥٤٤/١ رقم الحديث ٨٧٤

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كُتِبَ | مِنَ | الْقَانِتِيْنَ | وَ | مَنْ | قَامَ | بِأَلْفِ | آيَةٍ كُتِبَ |

وبه لیکلی شي نوم دده په فرمانبردارو کې او څوک چې په زرو آیتونو سره قیام وکړي نو وبه لیکلي شي

مِنَ الْمُقَنْطِرِيْنَ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].

نوم دده په ډیرثواب کولو والا کې.

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِاللَّيْلِ

ابوهریره رضي الله عنه وايي: د شپې مونځ کې د حضور صلی الله علیه وسلم قرائت مختلف دی کله حضور صلی الله علیه وسلم

يَرْفَعُ طَوْرًا وَ يَخْفِضُ طَوْرًا. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2].

اوچت آواز سره تلاوت فرمایلو کله په مزه او ټیټ آواز سره.

﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى قَدْرِ مَا

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې: نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په دومره آواز سره تلاوت کولو چې

يَسْمَعُهُ مَنْ فِي الْحُجْرَةِ وَ هُوَ فِي الْبَيْتِ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[3].

حضور صلی الله علیه وسلم به د حجرې دننه تلاوت کولو نو بهر صحن کې به کس تلاوت آوریدو.

## د مونځ په قرائت کې برابري په کار ده:

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ

ابو قتاده رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم د شپې بهر راووتو یو دم د ابوبکر رضي الله عنه په خوا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُصَلِّي | يَخْفِضُ | مِنْ | صَوْتِهِ | وَ | مَرَّ | بِعُمَرَ | وَ هُوَ يُصَلِّي |

کې تیر شو چې په مزه آواز سره یې لوستل کول بیا حضور صلی الله علیه وسلم د عمر رضي الله عنه په خوا تیر شو چې

رَافِعًا صَوْتَهُ قَالَ: فَلَمَّا اجْتَمَعَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

په اوچت آواز سره یې لوستل کول ابو قتادة وايي کله چې دواړه سحر د نبي علیه السلام په خدمت کې حاضر شو

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۱۸/۲ رقم الحديث: ۱۳۹۸

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۸۱/۲ رقم الحديث: ۱۳۲۸.

(۳) أخرجه أبو داود في السنن ۸۱/۲ رقم الحديث. ۱۳۲۷.

قَالَ : « يَا أَبَا بَكْرٍ ! مَرَرْتُ بِكَ وَ أَنْتَ تُصَلِّي تَخْفِضُ صَوْتَكَ »

حضور ﷺ وفرمایل: ابوبکره! مونږ ستا په خوا باندې تیرشو په مزه آواز سره لوستل دې کول.

قَالَ : قَدْ أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ يَا رَسُولَ اللهِ

ابوبکر رضي الله عنه وویل ای د الله رسوله! ما چې چا سره مناجات کوه هغه ته مې اورولو (یعنې زه د خپل پروردګار په مناجات کې مشغول وم او هغه داوریدلو د پاره داوچت آواز محتاج نه دی هغه هرخنګه اوري)

وَ قَالَ لِعُمَرَ : « مَرَرْتُ بِكَ وَ أَنْتَ تُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَكَ »

بیا نبي علیه السلام عمر رضي الله عنه ته وفرمایل: عمره! مونږ ستا په خوا هم تیرشوتا په مونځ کې په تیزه باندې

فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ أُوقِظُ الْوَسْنَانَ وَ أَطْرُدُ الشَّيْطَانَ

لوستل کول عمر رضي الله عنه وویل: یا رسول الله! اوده خلک مې راپاڅول او شیطان مې تختولو حضور

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « يَا أَبَا بَكْرٍ ! ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا »

ﷺ دواړو خبرې واوریدې او ابوبکر رضي الله عنه ته یې وفرمایل: ابوبکره! ته خپل آواز لږ نور اوچت

وَقَالَ لِعُمَرَ: «اخْفِضْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا» . (رَوَاهُ أَبُودَاوُد، وروى التِّرْمِذِيّ ، نَحوه)[1].

کړه او حضرت عمر رضي الله عنه ته یې وفرمایل: ته خپل آواز لږ ښکته کړه.

## حضور ﷺ به یو آیت لوستلو کې ټوله شپه په ولاړه تیروله:

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتَّى أَصْبَحَ بِآيَةٍ

ابوذر رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور ﷺ (یو شپه د تهجد و په مونځ کې) ترسحرپورې ولاړ وو

وَ الْآيَةُ : ﴿ إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَ إِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ

او دا آیت یې لوستلو: که ته هغوي ته عذاب ورکړي ستاسو بندګان دي او که بخښنه ورته وکړې ته ډیر

الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾[2].

غالب او حکمت والا یې.

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۸۱/۲ رقم الحديث ۱۳۲۹، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۰۹/۲، رقم الحديث : ۴۴۷.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۱۷۷/۲ رقم الحديث ۱۰۱۰، وابن ماجه في السنن ۴۲۹/۱ رقم الحديث : ۱۳۵۰، واحمد في المسند ۱۴۹/۵.

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ

ابو هريره رضي الله عنه راوي دي وايي چې سرور کائنات صلی الله علیه وسلم فرمايل: کله چې تاسو وکړي يو کس په

رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيَضْطَجِعْ عَلَى يَمِينِهِ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُد).[1]

تاسو کې دوه رکعته سنت د سحر هغه ته په کار دي چې خپل ښي طرف باندې څملي.

**توضيح**: ددې حديث تشريح مخکې تيره شوې ده غير مقلدين حضرات دې ملاستې ته واجب يا سنت مؤکده وايي، جمهور فقهاء ورته مباح او مستحب وايي او که غلو په کې وشي نو بدعت ترې جوړيږي. (المرقات ۳/۲۸۰).

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

### يو نيک عمل باندې دوام ښه کار دی:

﴿۲۰﴾ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: أَيُّ الْعَمَلِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

مسروق وايي ما د حضرت عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو د حضور صلی الله علیه وسلم په نزد خوښ څيز څه دی؟

قَالَتْ: الدَّائِمُ. قُلْتُ: فَأَيَّ حِينٍ كَانَ يَقُومُ مِنَ اللَّيْلِ؟

هغې وفرمايل: دائمي عمل، ما بيا ترې تپوس وکړو چې څه وخت به پاڅيدو نبي عليه السلام د شپې د تهجد و

قَالَتْ: كَانَ يَقُومُ إِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ. (متفق عليه)[2]

مونځ کولو د پاره؟ دوی فرمايل: حضور صلی الله علیه وسلم هغه وخت اودريدو کله چې د چرګ آواز اوريدو.

**توضيح**: الصارخ: دې نه مراد د چرګ د سحر آذان دی دده د آذان درې مرحلې دي: د شپې په مينځ کې آذان کوي، يا ددې نه لږ ساعت پس اذان کوي، او يا د شپې آخري حصه کې کوي، د چرګ معمول يو وې کينته مخکې وروستو کيدې شي خو د چرګ د سحر وخت يو وي خو شرط دا دی چې چرګ د قارم نه وي هغه ته معلومه نه وي چې د آذان وخت څه دی او نه د قارمي چرګې د هګۍ نه بچی ويستلی شي ددې وجه داده چې مخلوق ددې په پيدا کيدو کې يې مداخلت کړی دی نو دا چرګ د غه شان ليوني او جاهل راووتو. (المرقات ۳/۲۸۰).

---

(۱) أرجه أبو داود في السنن ۲/۴۷، رقم الحديث: ۱۲۶۱، و الترمذي ۲/۲۸۱، رقم الحديث: ۴۲۰.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۳/۱۶، رقم الحديث: ۱۱۳۲، ومسلم في الصحيح ۱/۵۱۱، رقم الحديث: (۱۳۱-۷۴۱)، وأبو داود ۲/۷۷ رقم الحديث: ۱۳۱۷، والنسائي ۳/۲۰۸، رقم الحديث: ۱۶۱۶

## عبادت کې برابر والی محبوب دی :

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَا كُنَّا نَشَاءُ أَنْ نَرَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اللَّيْلِ مُصَلِّيًا

انس رضي الله عنه راوي دی، وايي چې که مونږ غوښتل چې حضور صلى الله عليه وسلم د شپې په مونځ باندې وويىنو

إِلَّا رَأَيْنَاهُ وَلَا نَشَاءُ أَنْ نَرَاهُ نَائِمًا

نو نبي عليه السلام به مو مونځ کولو باندې ليدلو او که دامو غوښتل چې حضور صلى الله عليه وسلم په اودو وويىنو

إِلَّا رَأَيْنَاهُ. (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1].

نو حضور صلى الله عليه وسلم به مو په اودو وليدلو .

## په تهجدو کې د حضور صلى الله عليه وسلم معمول :

﴿۲۲﴾ وَعَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حميد بن عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه وايي : د حضور صلى الله عليه وسلم يو صحابي بيان وکړه چې يو ځل زه د

قُلْتُ وَأَنَا فِي سَفَرٍ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَاللهِ لَأَرْقُبَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ

حضور صلى الله عليه وسلم سره سفر کې وم نو ما ووی ويل په الله قسم د حضور صلى الله عليه وسلم به زه د مونځ وخت کې څارم

حَتّٰى أَرٰى فِعْلَهُ فَلَمَّا صَلَّى صَلَاةَ الْعِشَاءِ وَهِيَ الْعَتَمَةُ

چې د نبي عليه السلام فعال وينم کله چې نبي عليه السلام د ماسخوتن مونځ چې د ې ته عتمه هم ويلی کيږي وکړو

اضْطَجَعَ هَوِيًّا مِنَ اللَّيْلِ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَنَظَرَ فِي الْأُفُقِ فَقَالَ

نو لږ ځنلا شتو لږ ساعت يې آرام وکړو بيا نبي عليه السلام بيدار شو او آسمان طرف ته يې نظر وکړو د آيتونو يې تلاوت

﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ حَتّٰى بَلَغَ إِلٰى ﴿إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ ثُمَّ

﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ تر ﴿إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ پورې چې دې ځای ته ورسيد و [illegible]

أَهْوٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى فِرَاشِهِ فَاسْتَلَّ مِنْهُ سِوَاكًا ثُمَّ أَفْرَغَ فِي قَدَحٍ مِنْ إِدَاوَةٍ

نبي عليه السلام بستره ته متوجه شو او مسواک يې را وويستو د ې نه پس يې د يو مشک نه چې نبي عليه السلام

[illegible]

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۲/۲، رقم الحديث : ۱۱۴۱. [illegible]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عِنْدَهُ | مَاءٌ | فَاسْتَنَّ | ثُمَّ | قَامَ | فَصَلَّى |
| سره پروت وو پیالي کي يې او به راوویستي بيا د مسواک وهلو نه پس اودرېد و او نبي عَلَیْهِ السَّلَام مونځ وکړو | | | | | |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | قُلْتُ : | قَدْ | صَلَّى | قَدْرَ | مَا | نَامَ | ثُمَّ | اضْطَجَعَ | حَتَّى |
| ما وویل څومره ساعت چې اوده وو هغه وخت په اندازه يې مونځ وکړو بيا نبي عَلَیْهِ السَّلَام اوده شو ما څپل زړه | | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْتُ | قَدْ | نَامَ | قَدْرَ | مَا | صَلَّى | ثُمَّ | اسْتَيْقَظَ |
| کي وویل څومره ساعت يې چې مونځ وکړو دومره وخت به اوده کیږي بيا نبي عَلَیْهِ السَّلَام راپاڅېدو او څه | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَفَعَلَ | كَمَا | فَعَلَ | أَوَّلَ | مَرَّةٍ | وَ | قَالَ | مِثْلَ | مَا | قَالَ |
| چې يې مخکې کړي وو هغه يې اوس بيا وکړل يعني مسواک وغيره او څومره مونځ يې چې مخکې کړی وو | | | | | | | | | |

| |
|---|
| فَفَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَبْلَ الْفَجْرِ. (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1]. |
| هغو مره يې اوس بيا وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سحر مونځ نه مخکې دغه شان درې ځلې وفرمايل. |

**توضيح**: دې حديث کې څه مشکل الفاظ دي په دې پوهيدل ضروري دي.

**لارقبن**: د نصر ينصر نه د انتظار او نګراني په معنی سره دی مراد کتل دي، لارمقن الفاظ تير شوي دي. **العتمة**: د ماسخوتن زوړ نوم دی (المرقات ۳/۲۸۱).

**هويا**: ای حیناً طويلا يعني ډير وخت پورې، اهوی مائل کيدل، لاس اوګدول او يو څيز لره حاصلول. (المرقات ۳/۲۸۱).

**فاستل**: استلال يو څيز راويستو ته ويلې کيږي دلته مسواک راويستل مراد دی. (المرقات ۳/۲۸۲).

**اداوة** د څرمني لوښي ته ويل کيږي لکه مشک، (المرقات ۳/۲۸۲).

**فاستن**: د استنان نه دی او استنان غاښ ته ويلې کيږي، او استنان دغه غاښونو باندې مسواک وهلو ته ويلې کيږي، (المرقات ۳/۲۸۲).

دې حديث نه معلومه شوه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل اعمال او بدن باندې څومره قابو وه چې پاڅيدل غوښتل نو پاڅيدو به او چې کله به يې غوښتل چې اوده شي نو اوده به شو. چا رښتيا ويلي دي:

يبيت يجافي جنبه عن فراشه ۞ اذا استثقلت بالمشركين المضاجع

---

[1] أخرجه النسائي في السنن ۳/۲۱۲، رقم الحديث: ۱۶۲۶.

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُمَلَّكٍ أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ |
| يعلى بن مملک باره کې منقول دي چې ده تپوس وکړو دام سلمه چې دنبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام بي بي ده دنبي |
| قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ صَلَاتِهِ ؟ فَقَالَتْ : وَمَا لَكُمْ |
| عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام دقرائت او مونځ باره کې هغې وويل څه حاصليږي تاسو ته دنبي عَلَيْهِ السَّلَام دقرائت بيانولو |
| وَ صَلَاتُهُ ؟ كَانَ |
| او مونځ کولو نه (يعني ستاسې دومره طاقت چرته دی چې دنبي عَلَيْهِ السَّلَام دمونځ برابر قرائت وکړي) نبي |
| يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى حَتَّى |
| عَلَيْهِ السَّلَام به مونځ کولو بيا چې څومره ناوخته پورې مونځ کولو دهغه وخت په اندازه به ويده کيدو تردې |
| يُصْبِحَ ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً |
| چې سحر شي دې نه پس ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرائت بيان کړو تردې چې هغې بنه واضح |
| حَرْفًا حَرْفًا)(۱) |
| کړو او يو يو حرف قرائت يې بيان کړو . |



(۱) أخرجه أبو داود ۱۵۴/۲ رقم الحديث .۱۴۶۶، والنسائي ۲۱۴/۳، رقم الحديث.۱۶۲۹ ، والترمذي ۱۶۷/۵ رقم الحديث : ۲۹۲۳

۱۵ جمادی الاولی ۱٤۱۰ھ

# بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ:

## د تهجدو په وخت کې دعاګانې:

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې: حضور صلی الله علیه وسلم کله د شپې تهجد کولو د پاره اودريدو دا

قَالَ: «اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ

دعاء به يې لوستله: ای الله! ستا د پاره تعریفونه دي، ته د آسمانونو او ځمکو او درولو والايې او هغه څيز

فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَ

کوم چې د دوي په مینځ کې دی او ټول تعریفونه ستا د پاره دي، ته رڼا کوونکي د آسمان او د ځمکې او د

مَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ مَلِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

هغه څه يې چې د دوي په مینځ کې دي، او ټول تعریفونه ستا د پاره دي ته بادشاه يې د آسمان او د ځمکې

وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ الْحَقُّ

او د هغه څه چې د دوي په مینځ کې دي او ټول تعریفونه ستا د پاره دي، ته په حقه يې، ستا وعده حقه ده

وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ وَقَوْلُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّونَ حَقٌّ وَمُحَمَّدٌ

ستا ملاقات حق دی، ستا کلام حق دی، جنت حق دی، دوزخ حق دی، ټول پیغمبران په حقه دي، محمد

حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ اللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ

صلی الله علیه وسلم حق دی او قیامت حق دی، ای ربه! زه ستا تابعدار يم، ما ستا ټول احکامات قبول کړي دي

وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ وَبِكَ

ماتا باندې ایمان راوړ او تا باندې مې اعتماد او یقین دی ستا طرف ته ما رجوع وکړه ستا په مدد باندې

خَاصَمْتُ وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْ لِيْ مَا

(د دين) د دښمنانو سره جنګ کوم او ستا خوا ته مې فریاد راوړی دی بس ته زما هغه ګناهونه معاف کړې

قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ

کوم چې ما مخکې کړي، او هغه ګناهونه هم کوم چې ما نه وروستو کيږي هغه ګناهونه هم چې ما په پټه او

وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ الْمُقَدِّمُ

په ښکاره بندې کړي وي او کومې چې زما غلطۍ دي هغه ته زما نه ښه پېژنې او ته مخکې کولو والا يې

وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ». (متفق عليه)[1].

او وروستو کولو والا يې ته معبود يې ستا نه سوا بل معبود نشته.

**توضيح**: **يتهجد**: دا جمله حال واقع ده د حديث ظاهري الفاظ نه او صاحب مشكوة كې د دغه شان عنوان کيخودل معلوم دي د راتلونکي حديث دعاګانې د مونځ د ننه دعاګانې نه دي بلکې د تهجدو د شروع کيدو وخت کې دعاګانې دي او دا احتمال هم دي حضور ﷺ د تهجدو وخت کې دا دعاګانې ويلې وې. (المرقات ۳/۲۸۴).

﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ

عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ به چې کله شپه کې اودريدو تو مونځ شروع کيدو وخت

فَقَالَ: «اللَّهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

کې به يې دا دعا لوستله: اې الله! اې رب د جبرائيل، ميکائيل، اسرافيل، اې د آسمانونو او زمکو پيدا کولو

عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا

والا او اې پټ او ښکاره معلومولو والا ته به فيصلې کوې د خپلو بندګانو په مينځ کې په هغه څيز کې چې

كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ

هغوي اختلاف کوي فيصلې به کوي اې الله زما رهنمائي وکړه په هغه حق کار کې چې کوم اختلاف کړی

إِنَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

شوی دی څنګه چې ته غواړې نيغه لار ښودلو والا ته يې.

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳، رقم الحديث ۱۱۲۰، ومسلم في الصحيح ۵۳۲/۱.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۳۴/۱ رقم الحديث [illegible]

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ |
| عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي څوک چې د شپې ويخ شي نو |
| فَقَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ |
| دا تسبيح دې وايي: الله نه سوا بل معبود نشته هغه يو اځې دی، هغه سره شريک نشته هغه د پاره بادشاهي ده |
| وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَسُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| هغه د پاره ټول تعريفونه دي هغه هر څيز باندې قادر دی او پاک دی ټول تعريفونه الله د پاره دي او هغه نه |
| وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ ثُمَّ |
| سوا بل معبود نشته الله ډير لوي دی ګناهونو نه بچ کيدل او د عبادت طاقت د الله په مدد سره دی او دې نه پس |
| قَالَ: رَبِّ اغْفِرْ لِي أَوْ قَالَ: |
| دا ووايي: ای زما ربه ما معاف کړې، يا يې دا وفرمايل يا يې دعاء وکړه (يعنې راوي ته شک واقع شو |
| چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام خاص طور باندې د رب اغفرلي لوستل فرمايلي يا يې دا وفرمايل چې کومه دعاء غواړي |
| ثُمَّ دَعَا اسْتُجِيبَ لَهُ فَإِنْ تَوَضَّأَ وَصَلَّى قُبِلَتْ صَلَاتُهُ" (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| لوله يې) دده دعاء به قبليږي يا که اودس وکړي او مونځ وکړي د هغه مونځ به قبليږي. |

**توضيح: تعارّ من الليل**: خوب نه پاڅيدلو او بيداريدلو ته تعارّ ويلی کيږي بعضو ليکلي دي چې خوب کې ځن ځن ته تعارّ ويلی کيږي، ابن ملک ليکي: خوب نه چې کس بيداريږي دده د خولې نه بې اختياره آواز وځي دې ته تعارّ ويلی کيږي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا خبره خوښوله کله چې آواز ووځي بهتره داده چې ذکر الله سره ووځي او سرې مذکوره دعاء ووايي دا دعاء په خپله نيکي او مقصود ده که چا ددې دعاء نه پس اودس وکړو او مونځ يې وکړو مونځ به يې قبول کيږي، دې نه معلومه شوه چې دا ټولې دعاګانې د تهجد و نه مخکې لوستل کيږي. (المرقات ۳/۲۸۸).

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۲۹، رقم الحديث: ۱۱۵٤، وأبو داود ۵/۳۰۵ رقم الحديث: ۵۰٦۰.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ:

عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم به کله د شپې بيداريدو نو دا دعاء به يې لوستله: اى الله

«لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ أَسْتَغْفِرُكَ

ستا نه سوا بل معبود نشته ته پاک يې، اى الله! ستا تعريف سره تسبيح کوم زه ستا نه بخښنه غواړم د وجې

لِذَنْبِي وَ أَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي

د ګناه زما نه او ستا د رحمت طلب ګاريم، اى الله! زما علم کې زياتى وکړى او مه کږوه زړه زما پس د هدايت

وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1].

موندلو نه او خپل خوا نه زما د پاره رحمت عطاء کړي يېشک ته بخښونکى يې.

﴿٥﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَبِيتُ عَلَى

معاذ بن جبل رضي الله عنه راوي دى وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: کوم مسلمان چې اوده کيږي په حالت

ذِكْرٍ طَاهِرًا فَيَتَعَارُّ مِنَ اللَّيْلِ فَيَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ إِيَّاهُ». (رَوَاهُ أَحمد، وَأَبُو دَاوُد)[2].

د ذکر الله کولو سره او د شپې د بيداريدو نه پس د الله نه د نيکئ دعاء وغواړي الله تعالى ورته نيکي ورکوي.

﴿٦﴾ وَ عَنْ شَرِيقٍ الْهَوْزَنِيِّ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَسَأَلْتُهَا:

حضرت شريق الهوزني وايي: زه د عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر شوم او هغې نه مې تپوس وکړو

بِمَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَفْتَتِحُ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَتْ:

چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې د بيداريدو نه پس کوم څيز نه شروع کوله؟ عائشې رضي الله عنها فرمايي:

سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَحَدٌ قَبْلَكَ كَانَ إِذَا

تاسو ما نه د هغه څيز تپوس وکړو چې د تاسو نه مخکې چا هم تپوس نه وو کړى حضور صلى الله عليه وسلم به چې کله

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۰۶ رقم الحديث ۵۰۶۱.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۵/۳۲۲ رقم الحديث ۵۰۸۵.

هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ عَشْرًا وَ حَمِدَ اللهَ عَشْرًا وَ قَالَ : « سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ عَشْرًا »
د شپې بیدارېدو نو اول به یې الله اکبر لس ځلې ، الحمد لله لس ځلې ، سبحان الله و بحمده لس ځلې ،
وَ قَالَ : « سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ » عَشْرًا وَ اسْتَغْفَرَ اللهَ عَشْرًا وَ هَلَّلَ عَشْرًا
سبحان الملک القدوس لس ځلې ویل ، لس ځلې به یې استغفار ویلو ، لا اله الا الله لس ځلې ویل
ثُمَّ قَالَ : « اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا وَ ضِيقِ
او لس ځلې به یې دا ویل : ای الله ! زه پناه غواړم په تاسره د تنګستیا او سختیو د دنیا نه او د تنګستیا د
يَوْمِ الْقِيَامَةِ » عَشْرًا ثُمَّ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1].
ورځې د قیامت نه ، بیا به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تهجدو مونځ شروع کولو .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۷﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ ثُمَّ يَقُولُ :
ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام د شپې مونځ د پاره او درېدو الله اکبر ویلو سره به یې دا ویل
« سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ وَ تَبَارَكَ اسْمُكَ وَ تَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ
ای الله! ته پاک یې مونږ ستا حمد بیانوو ستا نوم برکت والا دی ستا بزرګي اوچته ده ، او د ستا نه غیر بل
غَيْرُكَ » ثُمَّ يَقُولُ : « اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا » ثُمَّ يَقُولُ : « أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ
معبود نشته بیا یې الله اکبر کبیرا او ویل او دا دعا به یې ویله: زه پناه غواړم دا وریدونکي الله او پوهېدونکي
مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ) وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ
الله سره د شیطان مردود نه د هغه وسوسې نه او د تکبر نه او د هغه د لوي شعر نه د لو نه. او زیات کړي ابو داؤد په
بَعْدَ قَوْلِهِ : « غَيْرُكَ » ثُمَّ يَقُولُ : « لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ » ثَلَاثًا وَ فِي آخِرِ
خپل روایت کې د ولا اله غیرک نه پس دا الفاظ: بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا اله الا الله درې ځلې وویله او آخر

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۳۲۲/۵ رقم الحديث ۵۰۸۵

الحَدِيث : ثُمَّ يَقْرَأُ.[1]

دحديث الفاظ دادي بيابه يې وويلو يعني اعوذبالله السميع العليم الخ لوستلو نه پس قرائت كولو.

﴿۸﴾وَعَن رَبِيْعَةَ بْنِ كَعْبِ الْأَسْلَمِيِّ قَالَ كُنْتُ أَبِيتُ عِنْدَ حُجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنْتُ

ربيعة بن كعب اسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي: مادحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دحجرې سره خواته شپه تيره كړه مابه د نبي

أَسْمَعُهُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَقُول : « سُبْحَانَ

عَلَيْهِ السَّلَام آوازاوريد وحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې كله مونځ دپاره اودريد وډيروخته پورې به يې ويل چې پاک

رَبِّ الْعَالَمِيْنَ » اَلْهَوِيَّ ثُمَّ يَقُولُ : « سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهِ » الْهَوِيَّ .

دى الله چې دټول عالم پروردګاردی ، بيا تر ډيره پورې به يې ويل : پاک دی الله زه دده دتعريف سره پاكي

رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوُهُ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

بيانوم. ترمذي هم داسې روايت نقل كړې دى او ويل به يې چې دا حديث حسن صحيح دى.

**توضيح : الهوى** : ناوخته پورې دلوستلو او ويلو په معنى دى مخكې تير شوى دى .(المرقات۳/۲۹۲)



(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۴۹۰، رقم الحديث ۷۷۵، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۹، رقم الحديث ۲۴۲، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲٦٤ رقم الحديث ۸۰٤

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٤٤٨، رقم الحديث ۳٤١٦

# بَابُ التَّحْرِيضِ عَلَى قِيَامِ اللَّيْلِ:

## تهجدو باندې دراپارولو بيان:

تحريض راپارولو، رغبت او ترغيب ورکولو په معنی دی دا څومره ابواب چې دي او يا تير شوي دي دې ټولو کې د تهجد و حوالې سره احاديث مذکور دي صرف عنوانا توکې بدلوالی دی البته زير بحث عنوان کې تهجد نه کولو او ټوله شپه خوب کولو والا د پاره وعيدات هم دي. (المرقات ۳/۲۹۴).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### د شيطان انسان سره لوبې:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: " يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې حضور صلی الله عليه وسلم فرمايي: درې غوټې ورکوي شيطان په |
| قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ يَضْرِبُ عَلَى كُلِّ عُقْدَةٍ: عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ |
| سر څټ ديو کس باندې چې کله د شپې اوده کيږي هرې غوټې سره دا وايي او وهي يې او س ډيره شپه پاتې |
| فَارْقُدْ. فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَإِنْ تَوَضَّأَ |
| ده اوده شه که څوک ويخ شي او الله تعالی يادوي يوه غوټه خلاصيږي بيا چې هغه اودس وکړي نو دويمه |
| انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَإِنْ صَلَّى انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَأَصْبَحَ نَشِيطًا |
| غوټه خلاصه شي او دې نه پس چې مونځ وکړي نو دريمه غوټه خلاصه شي داسې کس سحر کړي صفا |
| طَيِّبَ النَّفْسِ وَإِلَّا أَصْبَحَ خَبِيثَ النَّفْسِ كَسْلَانَ ". (متفق عليه)[1]. |
| او پاک نفس ګيني داسې طريقې چې نه کوي نو سست او پليت نفس سبا کړي. |

**توضيح: قافية رأس**: د سر څټ او وروستو حصې ته **قافية** ويلی کيږي شيطان دې کې درې غوټې وهي چې دا کس د سحر پورې غافل او اوده وي او نه د شپې مونځ وکړي او نه د سحر يوې يوې غوټې باندې شيطان منتر وايي ددې الفاظ داسې دي: **عليک ليل طويل فارقد** يعنې اوږده شپه پاتې ده نه اوده شه

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۴/۳، رقم الحديث ۱۱۴۲، ومسلم في الصحيح ۵۳۸/۱ رقم الحديث ۲۰۷-۷۷۶، وأبو داود ۷۲/۲ رقم الحديث ۱۳۰۶

دې جملې ترکیب کې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ مختلف اقوال ذکر کړي دي آسان ترکیب يې دادی : **عليک** خبر مقدم او **ليل طويل** مبتدا مؤخر ده عبارت داسې دی :**ليل طويل باقٍ عليک فارقده** .(المرقات ۲۹۴-۳/۲۹۵).

**نشيطاً** : يعنې عبادت د پاره چالاکه شي ګويا **طيب النفس** ددې تفسير دی . (المرقات ۳/۲۹۵).

**خبيث النفس** : بدحاله او د ناراسته په معنی سره دی ګويا کسلان ددې تفسير دی ، د بعضې شارحينو خيال دی چې د شيطان لوبې د انسان سره په حقيقت باندې محمول نه دي بلکې دا يو تشبيهي کلام دی مراد ناراسته کول دي او عبادت نه غافله کول دي خو د بعضې شارحينو خيال دادی چې دا کلام په حقيقت باندې محمول دی او شيطان خبيث واقعي د انسان سره داسې لوبې کوي ځکه هر مسلمان د پاره په کار دي چې د شيطان نه د بچ کيدو د پاره ښځه وخته مونځ پابندې وکړي چې د الله تعالی په لاس کې محفوظ شي . (المرقات ۳/۲۹۵).

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير والي د عبادت :

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ : قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتَّى تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ |
| مغيره وايي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د شپې دومره اندازه قيام وکړو چې ورم به راغې دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپو |
| فَقِيلَ لَهُ : لِمَ تَصْنَعُ هٰذَا وَ قَدْ غُفِرَ لَكَ |
| مبارکو باندې دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه تپوس وکړی شو تاسو دومره عبادت ولې کوئ تاسو ته خو الله تعالی معاف |
| مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ ؟ قَالَ : « أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا».(متفق عليه)[1] |
| کړي مخکې او وروستي ټول ګناهونه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل :آيا زه دالله تعالی شکرګزار بنده جوړ نه شم . |

**توضيح** : **تورمت قدماه** : يعنې د کثرت قيام الليل د وجې نه خپې وپړسيدې ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وفرمايل : تاسو دومره محنت ولې کوئ ستاسو خو واړه او لوي ګناهونه معاف دي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : آيا زه د الله تعالی شکر ګزار بنده جوړ نه شم ،(المرقات ۳/۲۹۶).

علامه بوصيري رَحِمَهُ اللهُ قصيده برده کې فرمايي :

ظلمت سنة من احياء الظلام الى ۞ ان اشتكت قدماه الضر من ورم

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۸۴/۸،رقم الحديث ۴۸۳۶ ، والنسائي ۱۹/۳، رقم الحديث ۱۶۴۴

**د عبادت اختونکی**: حضرت علي رضي الله عنه د عبادت او عبادت کوونکي درې قسمه ذکر کړي دي: (۱) چا چې د جنت او نعمتونو د تمنا او طلب د پاره عبادت کړی وي داد عبادت خرڅوونکی دی، (۲) کومو خلکو چې د دوزخ د ویرې عبادت وکړو داد غلامانو عبادت دی، (۳) کومو خلکو چې د الله د نعمتونو شکر ادا کولو د وجې عبادت وکړو داد ازادو خلکو عبادت دی دا عبادت اعلی او افضل دی (المرقات ۲۹۶-۳/۲۹۷).

**و قد غفر لک**: یعنې الله تعالی ستا ټول ګناهونه معاف کړې دي. (المرقات ۲۹۶-۳/۲۹۷).

دلته دا سوال دی چې حضور صلی الله علیه وسلم طرف ته د ذنب دا نسبت څنګه دی حضور صلی الله علیه وسلم خو معصوم دی. ددې جواب دادی چې دا فرضي کلام دی که فرض کړی شي که څه ګناه وشي هغه هم الله تعالی معاف کړې ده. دویم جواب دادی چې ددې ذنب نه مراد زلات او لغزشونه دي کوم چې د صغائرو په درجه کې دي. دریم جواب دادی چې د حضور صلی الله علیه وسلم نه کوم امور خلاف اولی شوي وي هغه مراد دي هغه اګر چې څه ګناه نه ده خو د حضور صلی الله علیه وسلم د اوچت رفعت او شان د وجې نه ورته ګناه ویلې شوې ده ځکه چې دا یوه قاعده ده: حسنات الابرار سئیات المقربین.

## شیطان د مونځ نه کوونکي په غوږ کې واړه بول کوي:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقِيلَ لَهُ |
| ابن مسعود رضي الله عنه وایي د نبي علیه الصلاة والسلام مخ ته: یو کس ذکر وشو د نبي علیه السلام نه تپوس وکړی شو |
| مَا زَالَ نَائِمًا حَتَّى أَصْبَحَ مَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ قَالَ: « ذٰلِكَ رَجُلٌ |
| دغه کس د سحر پورې اوده وي مونځ د پاره نه پاڅي، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دا داسې کس دی |
| بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنِهِ» أَوْ قَالَ: « فِي أُذُنَيْهِ ». (متفق علیه)[1]. |
| چې دده په غوږ کې یا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په دواړو غوږونو کې شیطان واړه بول کوي. |

**توضیح: في اذنه**: د شپې ددې عبادت نه مراد د تهجد و مونځ کیدی شي او که سحر مونځ هم کیدی شي، یعنې د تهجد و مونځ خو لرې خبره ده دا کس د سحر مونځ د پاره هم نه پاڅي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ددې کس په غوږونو کې ابلیس مردود ورې بولې کوي، (المرقات ۳/۲۹۷).
اوس دا بولې حقیقتا هم کیدی شي چې واقعي شیطان راشي نو غوږ کې ورو کی اودس ماتی وکړي یا

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۸/۳، رقم الحديث ۱۱۴۴، ومسلم في الصحيح ۵۳۷/۱ رقم الحديث: ۲۰۵-۷۷۴.

دا يو تشبيهي کلام دی ددې نه مراد دادی چې شيطان دا کس ذليل او رسوا کړي داد شيطان واړه بول دي خو اولنی معنی واضحه ده.

## فيشن کوونکي زنانه به د قيامت په ورځ باندې بربنډې وي:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَيْلَةً فَزِعًا يَقُوْلُ: |
| ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې يوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې ويريدلو حالت کې راپاڅيد ودايې وويل |
| « سُبْحَانَ اللهِ مَاذَا أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْخَزَائِنِ ؟ وَ مَا ذَا أُنْزِلَ مِنَ الْفِتَنِ ؟ مَنْ |
| سبحان الله! نن شپه څومره اندازې خزانې رابنکته شوې دی او څومره فتنې نازلې شوې دي څوک شته دی |
| يُوقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ » يُرِيدُ أَزْوَاجَهُ « لِكَيْ يُصَلِّينَ ؟ رُبَّ |
| چې حجرو والا راپاڅوي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مراد ازواج مطهرات دي چې هغوي مونځونه وکړي اکثر |
| كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الْآخِرَةِ » (رواه البُخَارِيّ)[1]. |
| زنانو دنيا کې کپړې اچولې وي خو آخرت کې بربنډې وي. |

**توضيح**: عارية: يعنې فيشن کوونکي زنانه په دنيا کې قسم قسم لباس اچولی وي او د قيامت په ورځ باندې به په بربنډ حالت کې وي او دوي به په آخرت کې د ښه اعمالو نه خالي وي او د بربنډ مطلب هم دا شو چې نيک اعمالو نه به خالي وي، ددې حديث دويم مطلب دادی چې ډيرو زنانو ته به په دنيا کې د کپړو والا ويلی کيږي خو د آخرت په اعتبار سره به بربنډې وې ځکه چې ددوي کپړې به دومره باريکې وې چې د کپړو په حکم کې به نه وي، بهرحال ښځو ته په کار دی چې دوي دې د دنيا فاني ښائستونو پسې لاړې نه شي او خپل آخرت دې خراب نه کړي. (المرقات ۳/۲۹۸).

## د الله تعالى د رحمت د نازليدو وخت:

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ |
| ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي راکوزيږي پروردګار زمونږ هره شپه د |
| إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ يَقُولُ: مَنْ يَدْعُونِي |
| دنيا آسمان ته په هغه وخت کې چې پاتې وي د شپې آخري حصه او فرمايي څوک شته ما ته آواز وکړي |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳/۱۰، رقم الحديث ۱۱۲۶، والترمذي ۴/۲۲۴، رقم الحديث ۲۱۹۶.

| |
|---|
| فَأَسْتَجِيبَ لَهُ ؟ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ ؟ مَنْ |
| او زه دده قبولیت وکړم؟ او څوک شته چې د مانه سوال وکړي زه دده سوال پوره کړم؟ او څوک شته ما نه د |
| يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ ؟ (متفق عليه). وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ : ثُمَّ يَبْسُطُ يَدَيْهِ وَ يَقُولُ: |
| مغفرت طلب ګاروي زه يې وبخښم؟د مسلم يو روايت کې دا الفاظ دي دواړه لاسونه خلاص کړي وايي |
| «مَنْ يُقْرِضُ غَيْرَ عَدُومٍ وَلَا ظَلُومٍ ؟ حَتَّى يَنْفَجِرَ الْفَجْرُ». (بخاري،مسلم)[1]. |
| څوک شته چې هغه چاته قرض ورکړي چې نه فقير دی او نه ظلم کوونکی او د سحر پورې دغه شان فرمايي. |

**توضيح** : **ينزل ربنا** : دا الفاظ د متشابهاتو د قبيلې نه دي ددې آسان مفهوم دادی : ما يليق بشانه يعنې الله تعالى د خپل شان لائق او مناسب نازليږي دغه شان الله تعالى تشريف راوړي ، بعضې شارحينو دا تاويل کړی دی د الله تعالى رحمت نازليږي بهر حال دا تاويل دی او تاويل تاويل وي دا نزول د شپې مختلفو وختونو کې وي کله نصف الليل کله د شپې آخره حصه کې دې رواياتو کې هيڅ تعارض نشته . (المرقات ۲۹۸-۳/۲۹۹).

خلاصه دا چې د متقدمينو په نزد د دنيا اسمان ته نزول بلا کيف دی څنګه چې وي زمونږ پرې ايمان دی محققين علماو دا نزول تدلی په معنی سره اخستی دی يعنې مخلوق کې چې کوم څيز د الله تعالى د رحمت مظهر جوړ شي متاخرين مضاف مقدر ګڼي داسې تاويل يې کړی دی : **ينزل رحمة ربنا ويقول بواسطة الملک** ، شيخ الاسلام ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ داسې مواضعو کې لږ جدا لار اختيار کړې ده خو دا دده شذوذ دي نه به يې خپلوو او نه به فتوی لګوو . (المرقات ۳/۲۹۹).

**من يدعوني** : يعنې خپلو مشکلاتو کې ما ته څوک آواز کوي ، (المرقات ۳/۳۰۱).

**من يسألني** : سوال کولو والا په معنی سره دی يو څيز طلب کول مراد دي (المرقات ۳/۳۰۱).

**من يقرض** يعنې مالي او بدني عبادت په ذريعې سره د الله نه ثواب او بدلې حاصلولو والا څوک دی ، (المرقات ۳/۳۰۲).

**غير عدوم** : يعنې داسې رب ته قرضې ورکړئ چې نه فقير وي نه عاجز وي نه د چا په حق باندې ظلم کولو والا وي او نه د چا حق وهلو والا وي مطلب دا شو کوم کس [illegible] نيک عمل کوي الله تعالى غني [illegible] آخرت کې [illegible] دغه کس ته [illegible] (۳/۳۰[illegible]

## هره شپه کي د قبوليت يو وخت وي :

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ : « إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً |
| جابر رضي الله عنه وايي ما د حضور صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي فرمايل يې : چې په شپه کې يو دا سې ساعت |
| لَا يُوَافِقُهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ |
| دی چې دغه وخت مسلمان و مومي او په دغه ساعت کې د الله تعالى نه د دنيا او آخرت د کاميابی سوال کوي |
| إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ وَ ذٰلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ » . (رَوَاهُ مُسْلِم)[1]. |
| الله تعالى دغه ضرور پوره کوي دا ساعت هره شپه راځي . |

**توضيح** : دا ساعت غير معين دی چې مسلمان د ټولې شپې قدر وکړي . (المرقات ۳/۳۰۲).

هر شب شب قدر است اگر قدر می دانی

بعضي علماو د شپې نصف ښودلی دی دغه وخت د قبوليت دی خو اولنی وجه ډيره بهتره ده ساعة الجمعة او ليلة القدر په شان دا وخت هم پټ دی . (المرقات ۳۰۲-۳/۳۰۳).

## د داؤد عليه السلام روژې او مونځ محبوب تر عمل دی :

| |
|---|
| ﴿٧﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «أَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللهِ |
| عبد الله بن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي محبوب مونځ الله تعالى ته په |
| صَلَاةُ دَاوُدَ وَ أَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللهِ صِيَامُ دَاوُدَ |
| ټولو مونځونو کې د داؤد عليه السلام مونځ دی او په ټولو روژو کې يې د داؤد عليه السلام روژې ډيرې خوښې دي |
| كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَ يَقُومُ ثُلُثَهُ |
| (د ده د مونځ کيفيت داؤ چې) هغه به نيمه شپه اوده کيدو او دريمه حصه کې به يې قيام کولو او بيا د شپې |
| وَيَنَامُ سُدُسَهُ وَيَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا».(متفق عليه)[2] |
| شپږمه حصه کې اوده کيدو . او يو ورځ به يې روژه نيوله او يو ورځ به يې افطار کولو . |

**توضيح** : يعني د حضرت داؤد عليه السلام مونځ او روژې د الله تعالى په نزد ډيرې خوښې دي ځکه که هر

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۲۱/۱ رقم الحديث . ۱۶۶-۷۵۷.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۶/۳،رقم الحديث :۱۱۳۱.

... طريقه اختيار كړي چې نيمې شپې پورې ملاست وي بيا يو د حصه كې قيام وكړي او بيا ... مه حصه كې اوده شي دغه شان جسماني تكليف كم وي او عبادت ډيروي (المرقات ۳/۳۰۳)

## د شپې عبادت كې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عادت:

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ تَعْنِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنَامُ أَوَّلَ اللَّيْلِ وَيُحْيِي آخِرَهُ

عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې اوله حصه كې آرام كولو او د شپې آخري حصه يې ژوندى.

ثُمَّ إِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى أَهْلِهِ قَضَى حَاجَتَهُ ثُمَّ يَنَامُ

ساتله بيا كه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپلې بي بي ته ضرورت ؤ خپل ضرورت به يې پوره كولو او آرام به يې كولو

فَإِنْ كَانَ عِنْدَ النِّدَاءِ الْأَوَّلِ جُنُبًا وَثَبَ فَأَفَاضَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ كه به چيرې د سحر د اولني آذان په وخت كې ناپاكۍ په حالت كې وو پاڅيدو به او اوچولي

عَلَيْهِ الْمَاءَ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ جُنُبًا تَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ

به يې او به په خپل بدن باندې او كه د ناپاكۍ په صورت كې به نه ؤ د مونځ د پاره به يې اودس وكړو بيا به

صَلَّى رَكْعَتَيْنِ". (متفق عليه)[1].

يې د سحر سنت دوه ركعاته كول.

**توضيح: يُحْيِي آخره**: شب بيداري ته يې ژوندى شپه ويلې ده. (المرقات ۳/۳۰۴).

**حاجته**: ددې نه مراد جماع ده. (المرقات ۳/۳۰۴).

**النداء الاول**: يو آذان د سحر دى او يو د سحر د پاره اقامت دى **نداء اول** نه مراد اقامت په مقابله كې آذان دى. (المرقات ۳/۳۰۴).

**وثب**: دا په اصل كې ټوپ وهلو ته ويلى كيږي دلته د غسل د پاره په چستۍ سره پاڅيدل مراد دي دا روايت د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه دى. (المرقات ۳/۳۰۴).

**قالت كان** نه پس راوي د **كان** اسم راويستلو سره تفسير كړى دى چې **قالت** مقوله د **ينام** ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳/۳۲، رقم الحديث ۱۱۴۶، ومسلم في الصحيح ۱/۵۱۰ رقم الحديث ۱۲۹-۷۳۹.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

### د تهجد فضيلت:

﴿۹﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَيْكُمْ بِقِيَامِ اللَّيْلِ فَإِنَّهُ دَأْبُ
ابو امامه رضي الله عنه راوي دی وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: قيام ليل ضروري وګڼئ دا طريقه
الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ وَ هُوَ قُرْبَةٌ لَكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ وَ مَكْفَرَةٌ لِلسَّيِّئَاتِ
تاسو نه مخکې د نيکانو خلکو هم وه او بيا قيام الليل ستاسو رب ته د نزديکت او د ګناه نه د لرې والي سبب
وَ مَنْهَاةٌ عَنِ الْإِثْمِ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].
دی، همدا رنګې دا چې تاسو د ګناه نه بچ کيدو والا يې.

### درې قسمه خلک خوش قسمته دي:

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: "ثَلَاثَةٌ
ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دی وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: درې سړي دا سې دي چې
يَضْحَكُ اللهُ إِلَيْهِمْ.
د دوي طرف ته الله خندا کوي (يعنې د دوي نه ډيرزيات خوشحاله وي د دوي طرف ته د خپل رحمت په نظر
الرَّجُلُ إِذَا قَامَ بِاللَّيْلِ يُصَلِّي وَ الْقَوْمُ إِذَا
ګوري)(۱) هغه کس چې د شپې د تهجد و مونځ د پاره او دريږي (۲) هغه خلک چې د مونځ کولو د پاره خپل
صَفُّوا فِي الصَّلَاةِ وَالْقَوْمُ إِذَا صَفُّوا فِي قِتَالِ الْعَدُوِّ. (رَوَاهُ فِي شَرْحِ السنة)[2].
صفونه نيغ کړي. (۳) هغه خلک چې د ښمن سره د جنګ کولو د پاره صفونه نيغوي.

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَمْرِو بن عبسة قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الرَّبُّ مِنَ الْعَبْدِ
عمرو بن عبسه راوي دی وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: رب د خپل بنده سره ډيرزيات نژدې د

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ٥/٥١٦ رقم الحديث ٣٥٤٩.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ١/٧٣ رقم الحديث: ٢٠٠.

فِي جَوْفِ اللَّيْلِ الْآخِرِ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَكُونَ مِمَّنْ يَذْكُرُ اللهَ فِي تِلْكَ السَّاعَةِ فَكُنْ».

شپې آخره حصه کې وي که تاسو هم دې وخت کې د الله تعالی ذکر کولو والا کې کیدلی شې نو ضرور شه (یعنې د دې خبرې کوشش وکړئ تاسو هم په دې خوش نصیبه مسلمانانو کې شئ چې د غه وخت کې د خپل

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.[1]

رب په ذکر کې مشغول وي) امام ترمذي ویلي دا حدیث حسن او صحیح دی او د سند د وجې غریب دی.

## د تهجدو د مونځ د پاره ښځه او خاوند یو بل پاڅولی شي:

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «رَحِمَ اللهُ رَجُلًا

ابو هریره رضی الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي: الله تعالی رحمت نازلوي په هغه کس

قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَ أَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ فَإِنْ أَبَتْ

باندې چې د شپې پاڅي او مونځ کوي او خپله ښځه هم پاڅوي چې هغه مونځ وکړي او که پانه څي نو بیا ورته

نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ . رَحِمَ اللهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ

مخ باندې اوبه واچوي او الله تعالی دې په داسې زنانه رحمت نازل کړي چې د شپې پاڅي او د الله عبادت

وَ أَيْقَظَتْ زَوْجَهَا فَصَلَّى فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ».[2]

وکړي او خاوند پاڅوي چې هغه هم مونځ وکړي او که خاوند پانه څي نو هغه له خوله کې اوبه واچوي.

**توضیح**: نضحت قطري ورکولو په معنی سره دی یعنې ښځه او خاوند څنګه د ژوند نورو شعبو کې د یو بل امداد کوي هغوي ته په کار دي چې عبادت کې هم د یو بل مدد وکړي او د خوب نه دې د پاڅیدو هر کوشش وکړي دا تعلیم د مدارسو د طلباو د پاره هم نافع دی او مختلفو سفرونو کې چې دوستان او ملګري وي هغوي د پاره هم مفید دي. (المرقات ۳/۳۰۸).

## د دعاء د قبولیت وخت:

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : قِيلَ : يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ

ابو امامه رضی الله عنه وایي د حضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړی شو ای د الله رسوله! کوم وخت دعاء ډیره

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۳۲ رقم الحديث ۳۵۷۹ ، وابن ماجه ۱/۴۳۱ رقم الحديث : ۱۳۶۴.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۴۶ رقم الحديث ۱۳۵۰

أَسْمَعُ ؟ قَالَ : « جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ» . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].

زياته مقبوله وي؟حضور ﷺ ورته وفرمايل: د شپې آخري حصه کې او د فرض مونځونو نه پس.

## نیک عمل څه ته وايي؟

﴿١٤﴾ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا

ابو مالک اشعري رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ فرمايي جنت کې داسې بالاخانې دي

يُرَى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا وَ بَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا أَعَدَّهَا اللهُ

چې دهغې بهرڅيزونه ددننه نه اودننه څيزونه يې بهرنه ښکاري اودا بالاخانې جوړې کړې الله تعالی دهغه

لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ وَ أَطْعَمَ الطَّعَامَ وَ تَابَعَ الصِّيَامَ وَ

خلکو د پاره چې نورو خلکو سره نرمې خبرې کوي او خوراک ورکوي پرله پسې نفلي روژې نيسي او د

صَلَّى بِاللَّيْلِ وَ النَّاسُ نِيَامٌ» . (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الإِيمَان). وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ

شپې داسې وخت کې مونځ کوي چې خلک ويده وي، اوترمذي داسې روايت دحضرت علي رضي الله عنه نه نقل

وَ فِي رِوَايَتِهِ : « لِمَنْ أَطَابَ الْكَلَامَ ».[2]

کړې خودې روايت کې لمن الان الكلام په ځای لمن اطاب الكلام الفاظ دي اوددواړو معنی يوه ده.

**توضيح** : يعنې په شيش محل بالاخانو کې به وي. (المرقات ۳/۳۰۸).

**الان** : د نرم کيدو په معنی سره دی مراد په ښه طريقې سره ملاويدل يعنې نرمې خبرې کول، غريبو ته روټی ورکول، مسلسل روژې نيول، د خوب په وخت کې تهجد مونځ کول، يعنې داسې اخلاق والا ته به داسې جنت ملاويږي، دې حديث کې د نيکو اعمالو ښودنه شوې ده نن سبا خلک خپل ځان نه عمل جوړ کړي په هغې باندې محنت وکړي هغه مستند اعمال نه دي مذکوره اعمال مستند دي. (المرق ۳/۳۰۸).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۹۲، رقم الحديث ۳۴۹۹.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۵/۳۴۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د تهجدو پرېښودو مخالفت:

﴿۱۵﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا عَبْدَ اللهِ

عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه او ي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم ماته وفرمايل: ای عبد الله!

لَا تَكُنْ مِثْلَ فُلَانٍ كَانَ يَقُومُ مِنَ اللَّيْلِ فَتَرَكَ قِيَامَ اللَّيْلِ».(۱)

د فلانکي په شان کيږه مه چې د شپې به يې قيام کولو بيا يې د شپې قيام پرېښودو.

**توضيح**: د صحابه کرامو په وخت کې يو کس ؤ چې تهجد گزار ؤ بيا يې تهجد پرېښودل دې سره حضور صلی الله علیه وسلم عمرو بن العاص رضي الله عنه ته وفرمايل: دغه کس په شان مه کيږه، اول يې تهجد کول، د جنت اعلی درجې يې حاصلولې خو بيا يې تهجد پرېښودل د اوچت والي نه ښکته راغی راپريوتو، ته داسې مه کوه. (المرقات ۳/۳۰۸).

## د الله تعالی مخلوق ته د تکليف ورکولو والا انسان دعاء نه قبليږي:

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صلی الله علیه وسلم يَقُولُ: "كَانَ لِدَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ

عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه وايي چې ما د حضور صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې د داؤد عليه السلام د

مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ يُوقِظُ فِيهَا أَهْلَهُ يَقُولُ: يَا آلَ دَاوُدَ! قُومُوا

پاره د شپې يو وخت وو چې هغه وخت کې يې خپل اهل عيال پاڅول او فرمايل به يې: ای آل داؤد! پاڅئ

فَصَلُّوا فَإِنَّ هٰذِهِ سَاعَةٌ يَسْتَجِيبُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيهَا الدُّعَاءَ إِلَّا لِسَاحِرٍ أَوْ عَشَّارٍ".(۲)

او مونځ وکړئ ځکه چې دا داسې وخت دی دې کې الله تعالی دعاء قبلوي په غير د جادوگر او عشار نه.

**توضيح**: عشار، د دې نه مراد څوکيدار او محصول وصول کولو والا هغه کس دی چې تول ټيکس باندې ناجائز طريقې سره خلکو ته تکليف ورکوي، او عشار چونکه عمومي طور باندې په عُشر باندې مقرر وي او عشر د مال لسمه حصه وي ځکه ورته عشار ويلی شي اگر چې هغه عُشر نه اخلي بلکې د دې نه کم يا زيات هم اخلي محصول چنگي نه علاوه د دې وعيد کې هغه ټولې حکومتي ادارې داخل دي چې غلط بِل جوړ کړي بجلې، او به او يا ټيلفون بلونو کې اخوا ديخوا کوي د پټواري ټوله محکمه دې کې اخته ده

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳/۳۷، رقم الحديث ۱۱۵۲، والنسائي ۳/۲۵۳، رقم الحديث: ۱۷۶۳

(۲) أخرجه احمد في المسند ۴/۲۲.

دې مبارک د قبولیت د دعاء په وخت کې دا دوه بدبخته هم د معافۍ او استغفار قابل نه وو . دې حدیث نه مسلمانانو ته دا تعلیم ملاویږي چې د الله مخلوق ته تکلیف ورکول لوي جرم دی (المرقات ۳/۳۱۱)

**لساحر** : ساحر جادوګر ته ویلی کیږي دا هم لوي بد بخته دی او دا ددې قابل نه دی چې دده مغفرت وشي بلکې په دې مبارکه میاشت د رمضان او د قبولیت په ساعت کې ده د ځان د پاره بنه دعاګانې وغوښتې مګر هغه قبولې نه شوې بلکې مردود او واپس شوې . (المرقات ۳/۳۱۱).

## د تهجدو فضیلت :

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ |
| ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې اضل مونځ پس د |
| الْمَفْرُوضَةِ صَلَاةٌ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ» . (۱) |
| فرض مونځونو نه هغه د شپې مونځ دی . |

**توضیح** : افضل الصلوة : د بعضې علماو خیال دی چې سنن رواتبو نه تهجد افضل دي او د بعضې علماو خیال دی چې سنن رواتب افضل دي ، جنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ نه چا دده د وفات نه پس تپوس وکړو په خوب کې چې رب درسره څه معامله وکړه هغه جواب کې وفرمایل : **طاحت العبادات وفنيت الإشارات وما نفعنا الا ركيعات صليتها في جوف الليل** ، یعنې عبادات ټول ختم شو تصوف د ټولې اشارې بې فائدې شوې ما ته صرف یو څو رکعاتو فائده راکړه چې کوم ما د شپې په مینځ کې کړې دي . (المرقات ۳/۳۱۱).

## د تهجدو مونځ انسان د بدۍ نه منع کوي :

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : جَاءَ رجل إِلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ : |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې یو کس د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او وي ویل |
| إِنَّ فُلَانًا يُصَلِّي بِاللَّيْلِ فَإِذَا أَصْبَحَ سَرَقَ فَقَالَ : إِنَّهُ |
| فلانکی خو د شپې مونځ کوي خو سحر بیا غلا کوي . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل : نزدې ده چې دده مونځ به |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۸۲۱/۲ رقم الحديث ۲۰۲ ۱۱۶۳، وأبو داود ۸۱۱/۲ رقم الحديث ۲٤۲۹

سَيَنْهَاهُ مَا تَقُولُ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الإِيمَانِ)[1].

دا انسان دې څيز نه منع کړي کوم چې تاسو وايي.

**توضيح**: د مونځ خاصيت دا دی چې انسان د بې حيائي او د بدئ نه منع کوي لکه څنګه چې انسان د مونځ د پاره اودريږي او غلط حرکات نه کوي د مونځ په حالت کې چې دا کس وي د هر قسم بدئ نه مامون او محفوظ وي.

## د خپل کور والو سره د تهجدو د مونځ فضيلت:

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

ابو سعيد خدري رضي الله عنه او ابو هريره رضي الله عنه راويان دي وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: څوک

«إِذَا أَيْقَظَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّيَا أَوْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ جَمِيعًا كُتِبَا

چې د شپې خپله ښځه راپاڅوي او دواړه مونځ وکړي او يا هر يو دوه رکعاته ځان له وکړي نو وبه ليکلي شي

فِي الذَّاكِرِينَ وَالذَّاكِرَاتِ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد، وَابْن مَاجَه)[2].

په ذکر کوونکو سړو کې او ذکر کوونکو زنانو کې.

## په امت کې د اوچتې مرتبې والا خلک کوم يو دي:

﴿۲۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَشْرَافُ أُمَّتِي

ابن عباس رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: زما د امت اشراف يعنې د اوچتې

حَمَلَةُ الْقُرْآنِ وَأَصْحَابُ اللَّيْلِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الإِيمَانِ)[3].

مرتبې والا خلک قرآن اوچتونکي او شپې (پاڅيدونکي) والا دي.

**توضيح**: **حملة القرآن**: يعنې قرآن يادو باندې لوستونکي يا ناظره باندې او حفظ تجويد او تفسير او ترتيب قائمولو والا ټول حملة القرآن مصداق کې داخل دي، علماء کرام چې خپل علم باندې عمل کولو والا دي دا د دې حديث واضح مصداق دی. (المرقات ۳/۳۱۳).

---

(۱) أخرجه احمد في المسند ۴۴۷/۲، والبيهقي في شعب الايمان ۱۷۴/۳ رقم الحديث ۳۲۶۱

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۷۳/۲ رقم الحديث ۱۳۰۹، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۴۲۳/۱ رقم الحديث ۱۳۳۵.

(۳) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۹۵۶/۲ رقم الحديث ۲۷۰۳.

## په تهجدو کولو کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عادت:

﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ أَبَاهُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ مَا
ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وایي د هغه پلار عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په شپه کې مونځ کولو څومره به

شَاءَ اللهُ حَتَّى إِذَا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ أَيْقَظَ أَهْلَهُ لِلصَّلَاةِ يَقُولُ لَهُمْ : الصَّلَاةُ
چې الله تعالی غوښتلو او د شپې آخري حصه کې به يې خپله بي بي هم راپاڅوله او ورته ويل به يې چې مونځ

ثُمَّ يَتْلُو هٰذِهِ الْآيَةَ : ﴿ وَ أْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ
وکړه بيا به يې دا آيت ولوستلو: او اې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! خپل متعليقينو ته هم د مونځ حکم ورکوه او په

وَ اصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَ الْعَاقِبَةُ
خپله هم په دې باندې کلک شه مونږ د ستا نه رزق نه غواړو، رزق خو مونږ تاسو ته درکوو، او ښه انجام

لِلتَّقْوَى ﴾. (رَوَاهُ مَالِك)[1].
د آخرت خو د ښو خلکو د پاره دی.



(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱ / ۱۱۹ رقم الحديث ۵ من كتاب صلاة الليل

# بَابُ الْقَصْدِ فِي الْعَمَلِ:

## په اعمالو کې د میانه روۍ بیان:

اسلام يو معتدل مذهب دی چې برابر والي باندې قائم دی څنګه چې دنيوي امورو کې افراط او تفريط او نقصان دی دغه شان ديني معاملاتو کې هم شته دی يو خو يې دې احاديثو کې مسلمانانو ته اعمالو، افعالو او اقوالو کې د میانه روۍ تعلیم وښودلو شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ لمعات کې ليکي: **القصد** په حقيقت کې نيغې لارې پابندۍ تللو ته وايي (اشعة اللمعات ۲/۵۶۳)

لکه د الله تعالى دا قول: ﴿ وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ﴾ (سورة النحل آيت: ۹)

بيا دا لفظ ټولو امورو کې د میانه روۍ په معنی سره استعمال کړه دې معنی سره دا حديث دی **القصد القصد** يعني ټولو امورو کې ميانه روي اختيار کړي که هغه قول وي يا فعل وي هره معامله کې ميانه روۍ اختيار کړي، يو حديث کې راځي: **عليكم هديًا قصدًا اى طريقًا معتدلًا** يو حديث کې **ما عال من اقتصد** يعني کوم کس چې د اسراف او کنجوسۍ نه بچ شو او ميانه روي يې اختيار کړه هغه به کله هم محتاجه کيږي نه.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ:

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ |
| انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مياشتې په اکثرو ورځو کې (نفلي) روژې نه نيولې |
| حَتّٰى نَظُنَّ أَنْ لَا يَصُومَ مِنْهُ وَ يَصُومُ |
| تردې چې مونږ به ګمان کولو چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ روژې نه نيسي او نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ به روژې نيولې |
| حَتّٰى نَظُنَّ أَنْ لَا يُفْطِرَ مِنْهُ شَيْئًا وَ كَانَ |
| تردې چې مونږ به ګمان کولو چې اوس به دا سې يو ورځ هم بغير د روژې نه وي او که حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| لَا تَشَاءُ أَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا إِلَّا رَأَيْتَهُ وَلَا نَائِمًا |
| به مود شپې مونځ باندې ليدل وغوښتل نو مونځ کولو باندې به يې هم ليدلو او که د شپې خوب باندې به |

إِلَّا رَأَيْتَهُ . ( رَوَاهُ البُخَارِيّ )[1].

مو ليدل هم وغو ښتل نو په خوب باندې به مو هم ليدلو.

## هميشه عمل محبوب تر وي:

﴿٢﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « أَحَبُّ الأَعْمَالِ إِلَى اللهِ

عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دالله تعالى په نزد محبوب او خوښ عمل

أَدْوَمُهَا وَ إِنْ قَلَّ » . (متفق عليه) .[2]

هغه دى چې هميشه كولى شي كه هغه لږ ولې نه وي.

**توضيح: ادومها**: د دوام يوه فائده دا هم ده چې عبادت د انسان يو داسې عادت جوړ شي چې پرېښودل يې طبعي شكل باندې گران شي دويمه فائده يې داده چې دفتر اعمال كې د دغه كس د دغه عمل درجې له حاضرې وي، دريم دا چې ملا اعلى كې چې په كومه لار باندې دا عمل ځي هغه ځايونه په دغه عمل باندې گواه جوړ شي. (المرقات ٣/٣١٥).

علامه مظهري رحمه الله وايي: اهل تصوف دا حديث راخيستى او د خپلو اورادو او وظيفو پابندي كوي

و ان قل مطلب دا دى چې كه دغه عمل لږ ولې نه وي دوام سره يې مرتبه اوچته شوه (المرقات ٣/٣١٦).

دا د دوام عمل نتيجه ده چې يو څاڅكي هغه څه وكړه چې لوي سيلاب ونه كړې شو. نو معلومه شوه چې دائمي عمل با اثر او محبوب وي.

## د طاقت لرلو په دائره كې عمل كول په كار دي:

﴿٣﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خُذُوا مِنَ الأَعْمَالِ مَا تُطِيقُونَ

عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل تاسو دومره عمل كوئ څومره چې يې طاقت لرلى

فَإِنَّ اللهَ لَا يَمَلُّ حَتَّى تَمَلُّوا » . (متفق عليه)[3].

شئ ځكه چې الله تنگي نه كوي تر دې چې تاسو يې په خپله تنگي وكړئ يعنې تنگ راشئ او عبادت پرېږدئ

**توضيح: لا يمل: مل يمل سمع يسمع** نه د ستړيو الي او زړه تنگ كيدو په معنى سره راځي.

---

(١) أخرجه البخاري ٣/٢٢ رقم الحديث ١١٤١

(٢) أخرجه البخاري في الصحيح ١١/٢٩٤،رقم الحديث ٦٤٦٢، ومسلم في الصحيح ١/٥٤١ رقم الحديث ٢١٨ ٧٨٣

(٣) أخرجه البخاري في الصحيح ٤/٢١٣،رقم الحديث ١٩٧٠، ومسلم في الصحيح ١/٥٤٠ رقم الحديث ٢١٥-٧٨٢.

د حديث مطلب دادی تاسو ځان له نفلي عبادت کې دومره اندازه مقرر کړئ چې تاسو يې کولی شئ داسې نه چې نن سل رکعاته وکړې او سبا دوه رکعاته، حاصل دا چې الله تعالی ثواب ورکولو کې تنګي نه کوي نه الله ستړی کيږي تاسو ستړي کيږي نو خپل وس مطابق عمل کوئ.

دې نه فرائض او واجبات مراد نه دي هغه خو به په هر حال کې کوئ دلته نوافل، مستحبات او اوراد او وظائف مراد دي او تهجد، تلاوت نفلي رژوې وغيره وغيره.

## تر څو پورې چې چست وې عبادت کوه:

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " لِيُصَلِّ أَحَدُكُمْ

انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي تاسو ته په کار دي چې هغه وخته پورې مونځ

نَشَاطَهُ وَ إِذَا فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ ). (متفق عليه) [1].

کوئ تر څو پورې چې زړه مو خوشحاله وي او چې کله طبيعت مو سُست شي نو کيني.

**توضيح**: فتر: نصر ينصر نه فتور ستړي کيدو په معنی راځي، نشاط د چست او سکون په معنی دی. (المرقات ۳/۳۱۶).

مطلب دا چې کله نفلي عبادت کې زړه لګي فرصت حاصليږي اطمينان او سکون برقرار وي نو عبادت کول په کار دي خو چې بدن کې سستوالی او ملال راشي بيا ارام کول په کار دي چې وروسته وخت کې بيا عبادت د پاره چستي پيدا شي او که په حالت د سستوالی کې عبادت وشو نو عبادت به ناقص وي او داسې عبادت به بوج جوړ شي دا ځان له ګناه ده بهتره داده چې څه وخت د پاره يې پريږدي بيا يې شروع کړي نه داسې چې بالکل يې پريږدي.

## د خوب ورتلو وخت کې مونځ کول نه دي په کار:

﴿٥﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّي

عائشه رضي الله عنها راويه ده وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: چا ته چې د مونځ حالت کې خوب ورشي

فَلْيَرْقُدْ حَتَّى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا صَلَّى وَ هُوَ نَاعِسٌ

هغه ته په کار دي چې اوده شي تر دې چې خوب يې ختم شي ځوک چې د خوب په حالت کې مونځ کوي د

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳٦۰۳، رقم الحديث ۱۱۵۰، ومسلم في الصحيح ۵٤۱/۱ رقم الحديث: ۲۱۹-۷۸٤، وأبو داود ۷۵/۲ رقم الحديث ۱۳۱۲، والنسائي ۳ ۲۱۸، رقم الحديث ۱٦۳٤

| |
|---|
| لَا يَدْرِي لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ |
| خوب د غلبې د وجې نه پته نه لګي چې څه وايي کيدی شي هغه د مغفرت طلب ګار وي او ددې په ځای |
| فَيَسُبُّ نَفْسَهُ». (متفق عليه)[1]. |
| بد دعاء د ځان د پاره وځي . |

**توضيح :** **نعس:** د نصر ينصر او فتح يفتح نه د خوب په معنی سره راځي اسم فاعل يې ناعس راځي .

**فيسب نفسه** کنځل کولو نه مراد خپل ځان ته بد ويل يا بد دعاء کول مراد دي مطلب دادی چې د خوب او اوپرکالۍ حالت کې زړه او دماغ نه حاضرېږي ژبه هم قابو کې نه وي او دغه صورت کې د خولې نه کنځل هم وځي او هغه بد عاء هم کيدی شي مثلاً خوب حالت کې **اللهم اغفرلي** په ځای **اللهم اغفر لي** وځي اولنۍ ترجمه داده ای الله ما معاف کړې ، دويمه ترجمه داده ای الله ما خاوره سره يو ځای کړې . (المرقات ۳/۳۱۷).

راقم الحروف ته خپله تجربه ده چې د خوب په حالت کې انسان د يو حالت نه بل حالت ته څنګه اوړي يو ځل د اعتکاف په دوران کې د خوب په حالت کې مې خپل ځان ته کنځل وکړل کله چې راويښ شوم نو خپل ځان ته خندا راغله ، د نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمان رښتيني دی او مونږ به صرف دا وو ايو چې : صدق رسول الله صلی الله عليه وسلم .

## دين آسان مذهب دی دا په عمل سره مه سختوه :

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «إِنَّ الدِّينَ يُسْرٌ وَ لَنْ يُشَادَّ |
| ابو هريرة رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله عليه وسلم فرمايي بيشکه دين آسان دی او سختي نه |
| الدِّينَ أَحَدٌ إِلَّا غَلَبَهُ فَسَدِّدُوا وَ قَارِبُوا، وَ أَبْشِرُوا |
| کوي په دين کې مګر دين په ده غالب راځي لهذا خپل دين باندې ميانه روی سره عمل کوئ او خوشحاله |
| وَ اسْتَعِينُوا بِالْغَدْوَةِ وَ الرَّوْحَةِ وَ شَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ» . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[2]. |
| اوسئ او سحر او مابنام وخت کې همدارنګې څه د شپې آخره حصه کې هم د الله تعالی نه مدد غواړئ . |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۵۴۲/۱ رقم الحديث ۲۲۲-۷۸۶، وأبو داود ۷۴/۲ رقم الحديث :۱۳۱۰.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۹۳/۱،رقم الحديث :۳۹.

**توضیح** : **الدین یسر** : یعنې دین آسان مذهب دی ددې فطري او طبعي قواعد د انساني مزاج او دده د فطرت سره عین مطابق دي د قیامت پورې داسې انسان نشته چې صحیح سالم وي او دا ووایي چې د اسلام فلانکی قاعده او حکم زما د تخلیق منافي دی الله تعالی د انسانانو معاشرې او ټول محنت او ترقی ته وکتل د هغې مطابق یې د اسلام قواعد وضع کړل ، لهذا د انسان ذهني ، فکري او عملي قوتونه په لوې سکون او انتهائي آساني سره د دین اسلام قواعد همنوا جوړیدې شي ، جهاد درواخله کله چې د جهاد په صف کې د مجاهدینو سره جنګ ته لاړ شي نو په جنګ کې سر غوڅول سخت معلومیږي لیکن چې که چیرته د انسان طبیعت د خارجي پابندیو نه آزاد پرېښودلې شي نو دغه انسان **فزت ورب الکعبة** مسته نعره کړي او مرګ ته داسې غاړه ورکوي چې لکه یو څوک چې خپل یو محبوب ته غاړه ورکوي که چیرته یو کس په پابندیو ، سهولتونو او راحتونو کې مصروف کړي نو ظاهره ده چې دده د پاره دین سخت نه دی بلکه دا د دین د پاره سخت شو ، دلته بیا د خلکو دا خبره په ذهن کې راځي چې وایي چې دین آسان دی خو علماو دا مشکل کړې دی چې ددوي دا وینا غلطه ده دین آسان دی مګر دا خلک د دین د پاره ګران شوې دي . (المرقات ۳/۳۱۸).

هم الزام ان کو دیتے تھے قصور اپنا نکل آیا

ددې تشریح نه دا خبره واضحه کیږي چې خلک د دین د آسانه کیدو مفهوم دین پرېښودل بیانوي وایي چې ګیره لنډوه دین آسان دی ، مونځ مه کوه دین آسان دی ، روژه مه نیسه دین آسان دی ، زکوة او حج ته چهوټې ورکړه دین آسان دی ، شراب څکه ، زنا کوه دین آسان دی ، د حلالو او حرامو تمیز مه کوه دین آسان دی . د اسلام په حمایت کې د یوې ګوتې د غوڅولو په اندازه قرباني ورنه کړې دین آسان دی ، جهاد نه انکار او د جهاد سره د زړه نه نفرت ساته دین آسان دی ، د بې پردګۍ او بې حیائۍ بازار ګرم وساته دین آسان دی یاد لرئ چې د دین د آساني دا مفهوم نه دی بلکې دا د دین د پرېښودو مفهوم دی .

ددې حدیث نه د حضور صلى الله عليه وسلم عیسایانو ، یهودیانو او هندوانو مشرانو په شان بې ځایه تشدد کولو باندې رد دی لکه راهب د پاره واده کول حرام دي ، ښځو سره یو ځای کیدل حرام دی خوږ خوراک حرام دی ، د شپې آرام کول حرام او منع دي یعنې مختلفو طریقو سره به یې د شپې خوب تختولو ، دې پاره کې حضور صلى الله عليه وسلم فرمایي چې دین آسان دی ګرانوي یې مه . (المرقات ۳/۳۱۸).

دغه شان د یخنۍ موسم کې یو هندو نهر ته لاړو واوره یې اخوا کړه غسل یې وکړو هلته بیا په یو کاڼي کیناستو او عبادت یې کولو دې سره ډیر کسان ضائع شول دا بې ځایه سختي اسلام کې نشته ، یهودیانو ته او ګورئ دوي باندې وازګه خوړل حرام دي ، د اوښ غوښه خوړل حرام دي د جومات نه علاوه بل ځای کې مونځ کول جائز نه دي مسجد کې هم د جماعت نه علاوه جائز نه دی د شپې ګناه به یې سحر په دروازو لیکلې شوې وه چې فلانکي نه فلانکۍ ګناه شوې ده که د هغوی په کپړو به ګندګي

ولګیده نو هغه به یې د کېږې په ښکولو لرې کوله، دا ټولې سختیانې دین اسلام کې نشته حکه دین چې آسان دین د خپل بد اعمالو د وجې نه سختوئ مه دې حدیث نه دې هغه مسلمان هم تعلیم واخلې چې غیر ثابت شده اعمال په خپل ځان لازموي یا مستحبات واجبوي.

**ولن یشاد الدین:** یاء باندې ضمه او دال باندې شد دی مشادّة باب **مفاعله** نه یو بل باندې غالب کیدلو په معنی سره دی. (المرقات ۳/۳۱۸).

**احد:** د **یشاد** فاعل دی **الدین** مفعول به دی اصل عبارت و لن یشاد احد الدین یعنې دین عمل سره څوک مغلوب کولی نه شي بلکې دین ده باندې دغه مقابله کې غالب راځي او هغه به مغلوب شي او د دین اعمال به پرېږدي دا خواهش به کوئ چې سل په سلو په دیني اعمالو باندې عمل راشي (المرقات ۳/۳۱۸).

**فسددوا** یعنې سیده لار باندې بغیر د افراط تفریط نه پاک او قائم اوسئ. (المرقات ۳/۳۱۸).

**ای الزموا الطریقة المستقیمة و القصد في العمل** (اشعة اللمعات ۱/۵۶۵).

**وقاربوا:** یعنې په صحیح لاره باندې قائم کیدل او الله تعالی طرف ته د نزدې کیدو کوشش کول. (المرقات ۳/۳۱۸).

**وابشروا:** یعنې هغه بشارت واوره او خوشحاله شه چې الله تعالی په لږ عمل باندې ډیر ثواب درکوي. (المرقات ۳/۳۱۸).

**الغدوة** یعنې ټول وختونه د اعمالو د پاره مه استعمالوه بلکې خپل چست والي وختونو کې د الله تعالی قرب حاصل کړه (المرقات ۳/۳۱۸).

د نشاط هغه درې وختونه د سحر وخت یا د ماښام وختونه یا د شپې آخره حصه ده.

## که د شپې عبادت (وظیفه) پاتې شي دور ځې یې پوره کړه:

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ |
| عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي عَلَیْهِ السَّلَام فرمايي: څوک چې او ده شو په شپه کې د خپلې وظیفې د پوره |
| أَوْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ فَقَرَأَهُ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَ صَلَاةِ الظُّهْرِ |
| کولو نه بغیر یا د وظیفې څه حصه ترې پاتې شوه او بیا ده دا وظیفه د سحر او د ماسپښین مونځ مینځ کې و کړه |

| |
|---|
| كُتِبَ لَهُ كَأَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ» . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| ده د پاره به دغه لیکلی شي ګویا چې ده د شپې لوستلې ده. |

**توضیح** : مطلب دادی که یو کس نه څه عادتي وظیفه د شپې نه پاتې شو هغه د ورځې د سحر مونځ د وخت نه تر زوال شمس پورې ادا کولی شي دغه وخت کې دا وظیفه وکړه دا داسې شوه چې د شپې يې وکړله. (المرقات ۳/۳۱۹).

دلته د شپې ذکر ځکه دی اکثر اوراد او وظائف د شپې کیږي که د چا د ورځې وظیفه مثلاً تلاوت یا مونځ ذکر پاتې شو د شپې یې کولی شي ځکه چې ورځ او شپه د یو بل قائمقام دي.

## د مجبورۍ او معذورۍ حالت کې په ملاسته مونځ کولو حکم:

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «صَلِّ قَائِمًا |
| عمران بن حصین رضي الله عنه اوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي مونځ په ولاړه کوه او د (څه عذر |
| فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ » . (رَوَاهُ البُخَارِيّ)[2]. |
| په وجه په ولاړې) قادر نه وې په ناسته يې کوه او که په دې هم قادر نه وې نو بیا په طرف باندې مونځ کوه. |

**توضیح** : فعلی جنب ، دلته دا بنايي که یو کس فرض مونځ په ولاړه نه شي کولی اسلام سهولت ورکوي چې په ناسته دې مونځ وکړي که په ناسته هم مشکل وي بیا دې په ملاسته باندې اشارې سره مونځ وکړي ، احناف د ملاستې داسې طریقه بنايي مریض به نیغ څملي او خپې به قبلې طرف ته کړي او د ولو لاندې به تکیه کیږدي قبلې طرف ته به اشاره کوي، شوافع حضرات فرمايي : مریض به یو طرف باندې څملي او مخ به قبلې طرف ته کړي او اشارې سره دې مونځ کوي ، زیر بحث حدیث کې د جنب لفظ راغلی دی (یعنې جانب او طرف) احناف د دار قطني روایت نه استدلال کوي هغې کې سیده څملاستو ثبوت شته ، احناف عقلي دلیل هم ورکوي سیده څملاستو سره مخامخ قبله هم دي ځکه چې قبله آسمان پورې ده او طرف سره چې کومه اشاره کیږي هغه خپو ته وي .(المرقات ۳/۳۲۰).

د حضرت عمران بن حصین روایت کې طرف لفظ ذکر کیدی شي دلته بله مجبوري وي یا بیان جواز د پاره وي که سر سره مریض اشاره نه شي کولی بیا دې مونځ وروستو کړي الله تعالی به يې معاف کړي خو سترګو سره دې اشاره نه کوي په سترګو سره اشاري باندې مونځ نه کیږي .

---

(۱) أخرجه مسلم ۵۱۵/۱ رقم الحديث:۱۴۲-۷۴۷، وأبو داود ۷۶/۲ رقم الحديث ۱۳۱۳، والنسائي ۲۵۹/۳، رقم الحديث:۱۷۹۰.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۸۷/۲،رقم الحديث : ۱۱۱۷.

## بغیر عذر په ناسته مونځ کولو باندې نیم ثواب ملاویږي :

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهُ أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ |
| عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی فرمایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دهغه د مونځ په باره تپوس وشو |
| قَاعِدًا . قَالَ : « إِنْ صَلَّى |
| چې په ولاړ د طاقت لرلو باوجود هم نفل په ناسته باندې کوي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : که مونځ یې |
| قَائِمًا فَهُوَ أَفْضَلُ وَ مَنْ صَلَّى قَاعِدًا فَلَهُ |
| په ولاړه وکړو نو دا بهتر دی لیکن کوم کس چې (نفل) مونځ (په غیر د عذر نه) په ناسته باندې وکړي نو |
| نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ وَمَنْ صَلَّى نَائِمًا فَلَهُ نصف أجل الْقَاعِدِ» . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| دې کس ته به د ولاړ کس په نسبت نیم ثواب ملاویږي . |

**توضیح : فله نصف اجر القاعد:** ولاړه باندې مونځ کولو والا افضل او اعلی دی که یو کس مریض وي او په ناسته باندې یې مونځ وکړو ده ته به د ولاړ کس په نسبت نیم ثواب ورکولی شي او که په ملاسته یې مونځ وکړو ده ته به د ناست کس په مقابله کې نیم ثواب ورکولی شي .

**سوال :** اعتراض دا دی که مونځ کوونکي دغه کس د فرض مونځ والا مریض تسلیم کړي د ېته د عذر د وجې نه د ناستې په حالت کې پوره ثواب ورکول په کار دي ځکه چې دده نه قیام ساقط شو دلته ده ته نیم ثواب دې ورکولی شي که دا کس تندرست وي او په ناسته مونځ وکړي دا د سره جائز نه دی ثواب لرې خبره ده خو که دغه کس روغ متنفل تسلیم کړي د حدیث شروع حصه خو صحیح ده لیکن د دې آخري حصه معارضه جوړیږي ځکه چې د متنفل مونځ په ناسته جائز دی خو د ملاستې په صورت کې صرف حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ په نزد جائز دی او ده ته نیم ثواب ورکولی شي او د فقهاو په نزد دده مونځ جائز نه دی .

**جواب :** شارحینو دد ې اعتراض ډیر جوابونه کړي دي لیکن د ټولو نه ښه هغه دی کوم چه علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ او ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي او شاه صاحب کشمیري هم خوښ کړی دی هغوي فرمایي دد ې حدیث مصداق داسې مفترض او معذور کس دی چې ده ته شریعت د ناستې او ملاستې اجازت ورکړی وې خو که هغه محنت او مشقت برداشت کړه په ولاړه یې مونځ وکړو نو دا افضل او اعلی شو او که په ناسته یې مونځ وکړي نیم ثواب ورته ملاویږي د قیام نه کولو د وجې نه اګر چې نورو خلکو په اعتبار سره ده ته پوره ثواب ملاویږي ځکه چې معذور دی که دغه کس دومره معذور دي چې شریعت ورته د

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۵۸۶/۲،رقم الحدیث : ۱۱۱۶.

ملاسته احار ے ورکړی دی خو هغه محنت او د مشقت د وجې نه په ناسته مونځ وکړي ده ته به اعلی او به ثواب ملاوېږي او که په ملاسته يې وکړو ده ته به د ناستې مونځ په اعتبار سره نيم ثواب ورکولی شي اګر چې د خلکو په اعتبار سره ورته پوره ثواب ملاوېږي.

ـير بحث حديث د عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سختې مجبورۍ او د بيمارۍ حالت دی او هغه د فرضو په باره کې تپوس کولو لهذا دا حديث هغه معترض باره کې دی متنفل باره کې نه دی البته د ملاستې صورت نه علاوه احناف او جمهور فقهاء متنفل باره کې داسې فتوی ورکوي چې ده ته به د نيم ثواب ملاوېږي. (المرقات ۳/۳۲۰).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

## د شپې په اودس کې د څملاستو فضيلت:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ |
| ابو امامة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه اورېدلي دي چې څوک راشي خپلې بسترې ته |
| طَاهِرًا وَ ذَكَرَ اللهَ حَتَّى يُدْرِكَهُ النُّعَاسُ |
| (او په اودس يا تيميم سره يې پاکي حاصله کړې وي) او خوب راتلو پورې په ذکر الله کې مشغول وي او |
| لَمْ يَتَقَلَّبْ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ |
| د شپې چې کوم وخت کې داهم په دې حالت سره طرف بدلوي چې الله تعالی نه د دنيا او آخرت د نيکۍ سوال |
| إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ ». (ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِي كِتَابِ الْأَذْكَارِ بِرِوَايَةِ ابْنِ السُّنِّي)[1]. |
| کوي الله تعالی به ورته ضرور نيکي ورکوي دا حديث نووي کتاب الاذکار کې ابن السنی روايت سره نقل دی |

**توضيح**: مطلب دا دی يو کس چې د شپې په اودس کې څملي چې د شپې کومه حصه کې راپاڅي يا طرف بدلوي الله تعالی نه دعاء غواړي الله تعالی به دده سوال قبلوي که دغه سوال د دنيا متعلق وي او که د آخرت متعلق وي. (المرقات ۳/۳۲۲).

## دوه قسمه خلکو نه الله تعالی ډېر زيات خوشحاله وي:

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَجِبَ رَبُّنَا مِنْ رَجُلَيْنِ |
| عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي زمارب د دوه کسانو نه ډېر خوشحاله وي |

(۱) أخرجه ابن السني في اليوم والليلة ص ۲۳۱، رقم الحديث: ۷۲۲.

رَجُلٌ ثَارَ عَنْ وِطَائِهِ وَلِحَافِهِ مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ فَيَقُولُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ :

يو هغه کس چې د شپې د مېنځ نه او ګرمې بسترې نه او خپلې محبوبې ښځې نه پاڅي الله تعالی خپلو فرښتو ته وايي

انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي ثَارَ عَنْ فِرَاشِهِ وَ وِطَائِهِ

زما بنده ته وګورئ زما سره د څیزونو د شوق نه او زما سره د څیزونو نه ویریدو د وجې نه خپل نرم بسترې او

مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِي وَرَجُلٌ غَزَا فِي سَبِيلِ اللهِ

خپلې خوبې ښځې نه خپل مونځ د پاره پاڅیدو. دويم هغه کس دی چې د الله تعالی په لاره کې جهاد وکړي

فَانْهَزَمَ مَعَ أَصْحَابِهِ فَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فِي الِانْهِزَامِ وَمَا لَهُ فِي الرُّجُوعِ

خپل ملګري تري وتختيدل خو چې کله ورته د تختيد و سزا او واپس د راتللو ثواب رایاد شو نو جنګ هغه

فَرَجَعَ حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ فَيَقُولُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ : انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي

وخته پورې وو تر دې چې شهيد شو الله تعالی خپلو فرښتو ته فرمايي زما بنده طرف ته وګورئ زما سره

رَجَعَ رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِي حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ ". (رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ)[1].

څیزونو د شوق نه او زما سره د څیزونو د ويرې نه واپس راغلو تر دې چې خپل ځان يې هم ورکړو.

**توضیح**: د دې حديث خلاصه او مطلب دا دی چې الله د وه قسمه خلکو نه ډير خوشحاله وي: يو هغه کس چې د شپې د تهجد و مونځ د پاره خپله نرمه او ګرمه بستره او خپل اهل وعيال پرېږدي او مونځ ته پاڅي الله تعالی فرښتو ته فرمايي تاسو ويل چې انسان څه له پيدا کوې نن څنګه زما د خوشحالولو او د جنت د حاصلولو او د دوزخ نه د بچ کيدو د پاره پاڅي ، دغه شان غازي د الله تعالی د ويرې نه د ميدان نه وتختي او ميدان کې جنګ کوي تر دې چې شهيد شي الله تعالی فرښتو ته فرمايي زما د رضا او جنت د حصول او دوزخ نه د بچ کيدو د پاره يې ځان قربان کړو ( تاسو ويل چې انسان مه پيدا کوه ) . (المرقات ۳/۳۲۷).

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

﴿۱۲﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: حُدِّثْتُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

عبد الله بن عمرو رضي الله عنه راوي دی وايي چې ما ته دا حديث بيان شوی دی حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي

(۱) أخرجه احمد في المسند ۴۱۶، والبغوي في شرح السنة ۴۲/۴ رقم الحديث : ۹۳۰

« صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلَاةِ » قَالَ :

بغیر عذره ناسته باندې نفل مونځ کولو والا د ولاړې مونځ کولو په مقابله کې نیم دی ، عبدالله وایي زه

فَأَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي جَالِسًا

د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، حضور ﷺ دغه وخت په ناسته باندې مونځ کولو

فَوَضَعْتُ يَدِي عَلَى رَأسه فَقَالَ : « مَا لَكَ يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرٍو ؟ » قُلْتُ :

ما د نبي عليه السلام سر مبارک باندې لاس کیښودو وي فرمایل: عبدالله بن عمرو څه خبره ده ؟ ما تپوس وکړو

حُدِّثْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَنَّكَ قُلْتَ : « صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا عَلَى نِصْفِ الصَّلَاةِ »

ای د الله رسوله! ما ته داویلی شوي دي چې نبي عليه السلام فرمایلي دي په ناسته مونځ کولو والا ثواب نیم دی

وَ أَنْتَ تُصَلِّي قَاعِدًا قَالَ : « أَجَلْ وَ لَكِنِّي لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ » . (رَوَاهُ مُسْلِم)[1].

او تاسو په خپله په ناسته مونځ کوئ حضور ﷺ فرمایي چې داسې ده خو زه ستاسو په شان نه یم .

**توضیح : فوضعت یدي علی رأسه :** د اهل عربو عادت دادی د تعجب او محبت د وجې نه هغه وخت لاس کیږدي چې کله نا اشنا کار ووینی دا د دوي یو محبت دی کوم چې د ادب بالکل منافي نه دي .حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه حضور ﷺ سره داسې معامله وکړه هغه د حضور ﷺ سره محبت وو ده ته دې باندې حیران شو چې حضور ﷺ په ناسته باندې مونځ کوي او دې ته حضور ﷺ ناقص ویلی دی او د نیم ثواب حکم یې پرې هم لګولی دی نو دا په دې ناقص عمل باندې عمل کوي . (المرقات ۳/۳۲۶).

**لکني لست:** یعنې زه ستاسو په شان نه یم ، ما ته هر حالت کې ثواب پوره ملاویږي که په ناسته باندې وي یا ولاړه وي ، دې حدیث نه واضحه شوه دا تقسیم د نفل مونځ متعلق دی که بغیر عذر نه په ناسته باندې وکړي نیم ثواب به ورته ملاویږي . (المرقات ۳/۳۲۷).

## د مسلمانانو د پاره مونځ د راحت او سکون ذریعه ده :

﴿۱۳﴾ وَعَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ قَالَ : قَالَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ : لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ

سالم بن ابي الجعد رضي الله عنه وایي د خزاعه قبیلې یو کس وویل کاش! چې ما مونځ کولی او راحت مې موندی

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۸۷/۲،رقم الحديث ۱۱۱۷، ومسلم في الصحيح ۵۰۷/۱ رقم الحديث:۱۲۰-۷۳۵.

| |
|---|
| فَكَأَنَّهُمْ عَابُوْا ذٰلِكَ عَلَيْهِ فَقَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| کله چې خلکو دده وينا خوښه نه کړه هغه وويل ماد حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| يَقُوْلُ : « أَقِمِ الصَّلَاةَ يَا بِلَالُ أَرِحْنَا بِهَا » . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| فرمايلي دي بلال د مونځ د پاره تکبير کوه چې په دې سره راحت حاصل کړو . |

**توضيح : فأسترحت :** مطلب دادی يو خزاعي کس په خپله هم صحابي دی او د صحابو مخې ته وايي کاش چې ما مونځ کولی او راحت راته ملاويدی ، صحابه کرامو او تابعينو دده خبره ناخوښه کړه ځکه چې ددې مفهوم خو دا هم اخستلی شي چې مونځ يو بوج دی او لويه ذمه داري ده زه په جلتۍ سره مونځ کوم ددې د پاره چې ما ته سکون ملاو شي دا کس پوهه شو چې خلکو ته دې لفظ کې غلط فهمي شوې ده ځکه مې په دليل کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمان پيش کړو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل : ای بلاله ! د مونځ د پاره تکبير ووايه او مونږ ته په دې سره راحت ورسوه .

اصل حقيقت دادی چې د **فأسترحت** ، د مفهوم دوه احتماله دي : يو دادی چې مونځ يو ذمه داري او بوج دی چې مونږ يې وکړو چې سر نه مو بوج کوز شي دې مفهوم کې بې ادبي او د مونځ نه جدا والی دی ددې وجې نه خلکو ته دا خبره خوښه نه شوه ، دويم احتمال دادی چې مونځ مو کړی وی د مونځ په ذريعې سره سکون ملاويږي الله سره خبرې او د مناجات شرف حاصليږي دې نه بغير خفګان وي او غم او پريشاني وي ددې معنی په اعتبار سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل : اقامت وکړه ارحنا بها ، يعني د مونځ په ذريعې سره مونږ ته راحت راورسوه ددې صحابي خزاعي مطلب هم دا وو ځکه يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام نه استدلال وکړو .د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دويم حديث کې تصريح ده فرمايي : **و جعلت قرة عيني في الصلوة** ، د نيکو خلکو په کلام کې چې کله دوه احتماله وي نو په ښه احتمال باندې حمل کول په کار دي، (المرقات ۳/۳۲۶). يو چا ښه ويلي دي:

کار پاکان بر قياس خود مگير ٭ گرچه آيد در نوشتن شير و شير

يعنې د نيکانو خلکو کار او کلام په خپل ځان مه قياس کوه فرق ډير دی ځکه چې د شير او شير ليکلو کې يو شان دی خو د يو معنی پئ او د بل معنی شير ( زمري ) دی دې کې لوي فرق دی .



(۱) أخرجه أبو داود في السنن ٥/٢٦٢ ،رقم الحديث ١٩٨٥.

۱۶ جمادی الاولی ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْوِتْرِ:

قال الله تعالی: ﴿وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ، وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ﴾. (سورة الفجر آیت: ۲-۳)

**دوتر لغوي معنی**: وتر يتر وترا بالفتح و الكسر جفت طاق كولو په معنی سره دی دغه شان باب افعال نه ايتار يو څيز طاق جوړيدو په معنی دی وتر هر هغه مونځ ته ويلی شي چې دري ركعته وي خو د فقهاو اصطلاح كې وتر هغه خاص مونځ ته ويلی شوې چې د ماسخوتن مونځ پسې فورا كيږي ، دې باب كې ددې وتر بيان دی ددې متعلق احاديث دي ، داسې د وترو اطلاق په تهجدو باندې هم كيږي او مطلق صلوة الليل باندې هم اطلاق كيږي خو دلته د هغه معروف وترو بيان دی كوم وتر الليل يعنې د شپې وتر په نوم سره مشهور دی وتر النهار يعنې د ورځې وتر اطلاق په مابنام مونځ باندې دی .

## اَلْفَصْلُ الأَوَّل:

### د وترو دوجوب او تعداد ركعاتونو بيان :

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله عليه وسلم فرمايي : د شپې مونځ دوه دوه ركعته دي او |
| فَإِذَا خَشِيَ أَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلَّى رَكْعَةً وَاحِدَةً تُوتِرُ لَهُ مَا قَدْ صَلَّى» (بخاري، مسلم)[1] |
| كه چا ته د شپې تيريدو ويره وي يو ركعت وكړه دا (يو ركعت) به اولني شوی مونځ طاق كړي . |

**توضيح**: **توتر له ما قد صلی**: د وتر په مباحثو كې په ډيرو ځايونو كې د فقهاو اختلاف دی دلته يې د دوه لويو مسائلو متعلق بحث كړی دی اولنی بحث دې كې دی چې آيا وتر واجب دي او كه سنت او دويم بحث د وترو د ركعتونو په تعداد كې دی.

**اول بحث: دوترو حيثيت**: د وتر واجب كيدو او سنت كيدو كې د فقهاو اختلاف دی :

**د فقهاو اختلاف**: امام مالك ، مام شافعي او امام احمد بن حنبل او صاحبين رحمهم الله فرمايي وتر سنت دي واجب نه دي ، امام صاحب رحمه الله فرمايي وتر واجب دي او د فرضو او سنتو په مينځ كې يو درجه ده

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۴۷۷/۲، رقم الحديث : ۹۹۰، ومسلم في الصحيح ۵۱۶/۱ رقم الحديث: ۱٤۵-۷٤۹، وأبو داود ۸۰/۲ رقم الحديث: ۱۳۳٦.

دي نه واجب وئلي كيږي، عملاً د فرضو په شان دي او اعتقاداً واجب دي (المرقات ۳/۲۳۶).
او بيو دا درجه امام صاحب متعارف كړه، ځكه چې اثبات د احكامو د پاره دلائل څلور دي دي نه ثابت احكامات هم څلور قسمونو باندې كيدل په كار دي: (۱) قطعي الثبوت قطعي الدلالة. (۲) قطعي الثبوت ظني الدلالة، (۳) ظني الثبوت قطعي الدلالة، (۴) ظني الثبوت ظني الدلالة. دې دلائلو نه فرائض، واجبات. سنن مؤكده او سنن زوائد. مستحبات ثابت دي لهذا د فرضو سره يو درجه د وجوب هم ده عملا د فرضو په شان دي خو اعتقادًا فرض نه دي بلكه واجب دي. د دې منكر كافر نه وي گمراه وي. جمهور هم د وترو د هغه درجه مني خو په ژبه د واجب اعلان نه كوني خو دغه حضرات وتر د سنتو نه اهم گنړي او د فرضو نه كم درجه كې يې مني، امام صاحب رحمه الله دې ته واجب وايي خو جمهور د دې تصريح نه كوي.

**د جمهورو دلائل**: جمهور د وترو په سنتيت باندې لاندې دلائل پيش كوي: (۱) د حضرت علي رضي الله عنه فرمان دي: د هغه نه د وترو د حيثيت په باره كې تپوس وشو هغه وفرمايل: **الوتر ليس بحتم كصلوتكم المكتوبة ولكن سن رسول الله صلى الله عليه وسلم** (ترمذي ج۱ ص ۱۰۳)
(۲) د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت دی: مشكوة ص ۱۱۲ باندې مذكور دی، او د دې باب حديث نمبر ۲۳ دی الفاظ يې دادي: **عن مالك بلغه ان رجلا سأل ابن عمر عن الوتر أواجب هو فقال عبدالله قد اوتر رسول الله صلى الله عليه وسلم واوتر المسلمون**. ابن عمر رضي الله عنه د واجب لفظ نه دی استعمال كړی. (المرقات ۳/۳۵۱).
(۳) د طلحة بن عبيد الله حديث دی د دې كې يو اعرابي د حضور صلى الله عليه وسلم نه د پنځه مونځونو نه علاوه د يو مونځ تپوس وكړو: **هل عليّ غيرهن**، د دې جواب كې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل: **لا، الا ان تطوع (رواه مسلم)**
د دې نه معلومه شوه چې د پنځه فرائضو نه علاوه مونځ ضروري او واجب نه دی بلكې ټول تطوع او نفل دي.
(۴) جمهورو د عقلي دليل نه هم استدلال كړی دی او ثابته شوه چې څه علامات داسې دي، دې نه معلوميږي چې وتر سنت دي واجب نه دي دې د پاره مستقل وخت نشته بلكې د ماسخوتن تابع دي، دويم دا چې د دې د پاره آذان او اقامت نشته دا ټول علامات په دې باندې دلالت كوي چې وتر سنت دي واجب نه دي.

**د امام ابو حنيفه رحمه الله دلائل**: امام ابو حنيفه رحمه الله د وجوب وتر قول كې ځان له نه دی بلكې حضرت ابن مسعود، حضرت حذيفه، ابراهيم نخعي، يوسف بن خالد سمتي، سحنون، سعيد بن مسيب،

ابوعبیده بن عبدالله بن مسعود ضحاک، مجاهد او حسن بصري رَحِمَهُمُ اللهُ داسې د اکابر جماعت هم د وترو د وجوب قائل دي.

**دلائل**: (۱) د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ اولني دلیل د حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی د دې الفاظ دادي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي درې ځلې: **الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا** الخ (ابوداؤد). (المرقات ۳/۳۵۰).

**دلته حق په معنی د واجب دي** او فلیس منا وعید د سخت وجوب دلیل دی.

(۲) دویم دلیل: مشکوة ص ۱۱۳ باندې د حضرت ابوایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث نمبر ۱۲ دی، د دې الفاظ دادي: **الوتر حق علی کل مسلم** (ابوداؤد) (المرقات ۳/۴۳۶).

(۳) مشکوة ص ۱۱۲ باندې د حضرت خارجه بن حذافه حدیث نمبر ۱۴ دی د دې ځه الفاظ دادي:

**قال خرج علینا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وقال ان الله امدکم بصلاة هي خیرلکم من حمر النعم الوتر** (ترمذي، ابوداؤد). (المرقات ۳/۳۳۹).

وجوب د وترو د پاره د دې حدیث نه د استدلال طریقه دا ده چې د دې حدیث کې د **امدکم** الفاظو مطلب دادی چې الله تعالی تاسو ته مزید یو مونځ درکړی دی ستاسو مزید امداد یې کړی دی، د مزید او مزید علیه قاعده داده چې د مزید د پاره ضروري ده چې د مزید علیه انصرام او انقطاع او اختتام به کیږي تر څو مزید علیه محدود او متعین نه وي او انتهاء ته نه وي رسیدلی، دې باندې مزید د زائد کیدو تصور نه شي کیدی، اوس دا کتل دي چې مزید علیه دلته سنن او نوافل راختلی شي دا صحیح نه ده ځکه نوافلو د پاره حد نشته دی چې دې باندې د نوافلو انقطاع راشي او وتر دې باندې سوا کړي، د دې نه معلومه شوه چې امدکم لفظ دا وایي چې مزید علیه سنن نوافل نه دي بلکې فرائض دي او فرائضو باندې الله یو مزید مونځ عطاء کړو او وی فرمایل چې هغه واجب دي او هغه وتر دي.

(۴) د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څلورم دلیل د دې باب حدیث نمبر ۱۴ دی د دې کې **فأوتروا یا اهل القرآن** الفاظ دي د دې کې د امر صیغه ده د وجوب دلیل دی. (المرقات ۳/۳۳۹).

(۵) د دې باب حدیث نمبر ۱۵ دی د دې کې **من نام عن وتره فلیصل اذا اصبح** الفاظ دي د دې نه معلومه شوه که وتر قضاء شي د دې کول ضروري دي دا هم د وجوب دلیل دی. (المرقات ۳/۳۴۱).

(٦) امام مالک او احمد رَحِمَهُ اللهُ تارک وتر باره کې فرمایي: یعزر تارک الوتر ولا تقبل له شهادة ابدا، دا فتوی هم د دې خبرې دلیل دی د دوي په نزد هم وتر واجب دي صرف نوم کې یې فرق دی، دا حضرات د واجب په ځای ورته سنت وایي او امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ ورته د واجب نوم اخستی دی.

**جواب**: جمهورو د حضرت علي رضي الله عنه د روايت نه استدلا کړې دې د دې جواب دا دې چې مونږ هم وايو وتر فرض نه دي او د دوي مطلب هم دا دې چې وتر فرض نه دي بلکې واجب دي حتم لفظ د فرضو د پاره استعمال دې. جمهورو د ابن عمر رضي الله عنه د روايت نه استدلال کړې دې جواب دا دې د انصاف تقاضا هم داده چې دا روايت د جمهورو دليل نه شي جوړيدې ځکه چې سائل بار بار سوال کړې دې ايا وتر فرض دي او که واجب؟ جواب کې ابن عمر رضي الله عنه نه د سنت لفظ ويلې دې نه د فرض او نه د واجب بلکې هغه د سنت اطلاق نه د بچ کيدو کوشش کړې او د فرض اطلاق هم نه کوي هغه وخته پورې چې د وترو رتبه نه ده ظاهره شوې هغه وخت دليل ظني الثبوت قطعي الدلالة يا قطعي الثبوت ظني الدلالة نه وو د واجب درجه نه وه دا درجه وروستو ښکاره شوه.

باقي واقعه د اعرابي چې شروع کې وه د وترو حکم لا نه وو راغلې دې کې د عيدينو د مونځ حکم هم نه وو حالانکه جمهور د عيدينو وجوب مني باقي د دوي د استدلال چې د وترو د پاره وخت نشته اذان او اقامت نشته د دې جواب دا دې د ماسخوتن وخت د وترو وخت دې او وتر د ماسخوتن تابع دي ځان له د اقامت او اذان ضرورت نشته او دا هم ضروري نه ده چې د کوم مونځ د پاره آذان او اقامت نه وي هغه به سنت وي او عيدينو د پاره هم آذان او اقامت نشته حالانکه هغه واجب دي.

**دويم بحث د وترو د رکعاتونو تعداد**: صل رکعة واحدة، د وترو په مسئله کې دويم لوي اختلاف د دې د رکعتونو تعداد کې دې چې وتر يو رکعت دې يا درې دي پا ينځه دي يا څومره دي روایاتو کې د ډيرو اقوالو د وجې نه د فقهاو په مينځ کې اختلاف پيدا شوی دی.

**د فقهاو اختلاف**: د امام مالک رحمه الله په نزد وتر درې رکعته دي خو په دوه سلامو سره او دا سلام د سجده سهوې سلام په شان قاطع صلوة نه دې، د امام احمد رحمه الله په نزد حقيقةً او اصلاً وتر يو رکعت دې خو دې نه مخکې دوه رکعته شفعه لازم ده يعنې وتر به هله ادا کيږي چې د دې نه مخکې دوه رکعته شفعه وي چې يو رکعت د دې د پاره مؤثر جوړ شي، د امام شافعي رحمه الله په نزد وتر يو رکعت هم جائز دې ادنی درجه ده او درې هم جائز دي چې افضل درجه ده او ۵، ۷، ۹، ۱۱ رکعته هم په يو سلام سره جائز دي. (المرقات ۳۴۰-۳/۳۴۱).

د امام صاحب رحمه الله په نزد صلوة وتر يو مخصوص مونځ نه دی هغه درې رکعته دي د درېو نه کم وتر نه دي او نه ډير دي. (المرقات ۳/۳۴۱).

خلاصه دا چې د امام مالک، امام احمد بن حنبل رحمهما الله مسلک د مآل په اعتبار سره په عملي طور باندې، د احنافو د مسلک پشان دی، دا اختلاف کوم واضح اختلاف نه دی، اصل اختلاف امام شافعي رحمه الله سره پاتې شو د هغې بيان کول په کار دي.

**دلائل** : د يو رکعت وترو د ثبوت د پاره امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مشکوة ص ١١٣ باندې د نافع روايت نمبر ٢٥ نه استدلال کړی دی ، دې کې **اوتر بواحدة** الفاظ راغلي ، (المرقات ٣/٣٤١).

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دويم دليل مشکوة ص ١١٢ باندې د حضرت ابن عباسؓ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نمبر ٢٥ دی ، دې کې حضرت معاويه رضی الله عنه د يو رکعت وترو تذکره چې کله د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخې ته راغله ، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل : هغه صحابي رسول هم دی او فقيه هم دی ځکه چې دا په خپل حال باندې پريږده . (المرقات ٣/٣٥٠).

د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دريم دليل مشکوة ص ١١٢ باندې د حضرت ابو ايوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نمبر ١٣ دی دې نه مخکې حضرت عبد الله بن ابي قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نمبر ١١ هم دی د دې دواړو رواياتو نه شوافع يو نه واخله ديارلس پورې وتر ثابتوي . (المرقات ٣/٢٣٦).

(١) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ درې رکعاته وترو اثبات د پاره مشکوة ص ١٠٦ باندې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث نه استدلال کړی دی چې الفاظ يې دادي : **وعنها قالت کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يصلي من الليل ثلث عشرة رکعة منها الوتر ورکعتا الفجر.**

(٢) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مشکوة ص ١٠٦ باندې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه استدلال کړی دی ، دې کې واضح دا الفاظ دي : **ثم اوتر بثلاث** ، او دا روايت مسلم کې هم دی .

(٣) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ابواب الوتر فصل ثاني کې د عبد العزيز بن جريج حديث نمبر ١٦ نه استدلال کړی دی کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه تپوس وشو ، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم سورتونه وترو کې لوستل ؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دوام طرف ته اشاره کولو سره وفرمايل : حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اولنې رکعت کې سورة اعلى لوسته ، دويم رکعت کې سورة کافرون ، دريم رکعت کې يې سورة اخلاص او معوذتين ويل دا واضح دليل دی چې وتر درې رکعاته دي په يو سلام سره .

(٤) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت نه استدلال کړی دی الفاظ يې دادی : **کان رسول الله يقرأ في الوتر بسبح اسم ربک الاعلى و قل يا ايها الکافرون وقل هو الله** (ترمذي ، نسائي) (المرقات ٣/٣٤١).

(٥) علامه ابن الهمام فتح القدير کې د حاکم په حواله سره يو روايت نقل کړی دی الفاظ يې دادي :
**عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قالت کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوتر بثلاث لا يسلم الا في آخرهن .**

(٦) دار قطني د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو روايت نقل کړی دی فرمايي : **وتر الليل ثلاث کوتر النهار صلوة المغرب** . دا روايت موقوف هم دی او مرفوع هم دی ، که موقوف وي نو موقوف هم داسې

سمعي مسائلو کې د مرفوع په حکم کې وي.
(۷) حافظ ابن عبد البر تمهيد کې صحيح سند سره د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه مرفوع حديث داسې نقل کړی: ان رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن البتيراء ان يصلي الرجل واحدة (نصب الراية)
امام محمد رحمه الله مؤطا کې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا اثر نقل کړی دی: ما اجزأت ركعة قط،
طحاوي کې د ابو خالد رحمه الله نه دا نقل دي هغه فرمايي: ما د ابو العاليه رحمه الله نه د وترو باره کې تپوس وکړو هغه وفرمايل: مونږ ته صحابو ښودلي دي وتر د مابنام د مونځ په شان دي يو د ورځې وتر دي يو د شپې وتر دي.
(۸) امام ابو حنيفه رحمه الله يو مضبوط دليل مشكوة ص ۱۱۳ باندې د حضرت علي رضي الله عنه حديث نمبر ۲۴ دی الفاظ يې دادي: وعن علي قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يوتر بثلاث يقرأ فيهن بتسع سور من المفصل يقرأ في كل ركعة بثلاث سور اخرهن قل هو الله احد.
په دې حديث کې بالکل تصريح موجود ده چې وتر دري رکعاته دي او په هر رکعت کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم دري دري سورتونه لوستلي دي چې مجموعه يې نهه سورتونه مکمل کيږي. (المرقات ۳/۳۴۱).
**جواب**: چيرته چې اوتر بواحدة لفظ راغلی دی نو اوتر طاق جوړېدو په معنی سره دی شفعي سره يو رکعت يو ځای کيدو سره وتر جوړ کړل يا د يو رکعت ذکر چرته هم نشته، يعنې صلى بواحدة الفاظ نه بلکې اوتر بواحدة الفاظ دي او کومو رواياتو کې چې پنځه، اوه، نهه، يولس رکعاته ذکر دي هلته وتر دري دي باقي د تهجدو مونځ مراد دی.
د وترو اطلاق په تهجدو هم کيږي لتوتر ما قد صلى، مندرجه بالا تحقيق د پاره دليل دی. د حضرت معاويه رضي الله عنه د روايت جواب ورکولو ضرورت نشته په خپله ابن عباس رضي الله عنه د معاويه رضي الله عنه عمل ناقابل عمل ګرځولی او خلک يې ترې منع کړې وو دا د دې خبرې دليل دی چې هغه وخت کې يو رکعت وتر تصور نه وو دغه وجه ده چې حسن بصري رحمه الله فرمايي: دري رکعته وترو باندې د صحابو اجماع ده، احتياط هم په دې کې دی چې دري رکعته وشي يو رکعت په دريو کې دننه دی او دري په يو کې دننه نه وي.
فقهاو دري رکعته وتر افضل ګرځولی دي دغه اتفاقي افضل صورت باندې اتفاق کول په کار دي دا خبره ثابته ده چې حضور صلى الله عليه وسلم يو رکعت کولو نه منع فرمائلې غير مقلدينو ته په کار دي چې د فقهاو متفقه فيصلې ته احترام وکړي د يو رکعت وتر ضد دې پرېږدي.

## وتر جوړیدو د پاره یو رکعت وي:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « اَلْوِتْرُ رَكْعَةٌ |
| د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : وتر یو رکعت دی او د |
| مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ » . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| شپې په آخري حصه کې وتر (کول افضل) دي. |

**توضیح : الوتر رکعة :** ددې مطلب دا دی چې دوه رکعته مخکې شوې دي چې یو رکعت یې بل ورسره یو ځای کړو اوس درې رکعته وتر جوړ شو ، ظاهري الفاظو نه اخوا ددې د تاویل ضرورت ځکه راغی چې دې تولو روایتو کې تطبیق به وشي ، روایاتو کې درې رکعته وتر ښکاره ذکر دي د وتر مستحب وخت د شپې آخره حصه ده . (المرقات ۳/۳۲۸).

## د حضرت عائشي رضي الله عنها د روایت مطلب:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً |
| دعائشي رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم به د شپې دیارلس رکعته کول ، دې کې |
| يُوتِرُ مِنْ ذَلِكَ بِخَمْسٍ لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ إِلَّا فِي آخِرِهَا ".(متفق علیه)[2] |
| به یې پنځه رکعات وتر کول او دې کې سوا د آخري رکعت نه یو کې هم نه کیناستو . |

**توضیح : یوتر من ذلک بخمس :** ددې دا مطلب نه دی چې حضور صلی الله علیه وسلم پنځه رکعته وتر کړي دي مطلب دا دی چې حضور صلی الله علیه وسلم دیارلس رکعاته داسې انداز کې کړي دي چې هره شفعه باندې تشهد وو بیا به سلام وو بیا به حضور صلی الله علیه وسلم څه استراحت کولو خو اخري پنځه رکعاته کې درې وتر وو ، دې کې شفعه کولو نه پس حضور صلی الله علیه وسلم استراحت نه کولو بلکې سلام نه پس بغیر توقف حضور صلی الله علیه وسلم درې رکعته وتر کول .(المرقات ۳/۳۲۹).

البته وترو نه پس دوه رکعته په ناسته باندې کول ، بیا استراحت کولو ، خلاصه دا چې دې حدیث کې صرف د آخري شفعه د تهجد او وترو نقشه ښودلې ، دې نه پس دوه رکعته نفل په ناسته کول او استراحت

---

۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۵۱۸/۱ رقم الحديث ۱۵۳-۷۵۲

۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۰/۳،رقم الحديث ۱۱۴، ومسلم في الصحيح ۵۰۸/۱ رقم الحديث:۱۲۳-۷۳۷، وأبو داود ۷۵/۲ رقم حديث :۱۳۳۸.

طرف ته اشاره شوې ده دا ددې روايت داسې مطلب دی چې د احنافو مسلک موافق دی د احنافو په نزد وتر پنځه نه بلکې درې رکعاته دي.

شوافع حضرات ددې مطلب دا اخلي چې حضور صلی الله علیه وسلم آخر کې پنځه رکعاته وتر کول دې کې يو سلام او يوه اخري قعده وه خبره ختمه، دې کې نور هم ډير تاويلات دي والله اعلم بحقيقة الحال. (المرقات۳/۳۲۹).

## د حضور صلی الله علیه وسلم دوترو او تهجدو پوره نقشه:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ قَالَ انْطَلَقْتُ إِلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ |
| سعدبن هشام رضی الله عنه وايي زه د حضرت عائشې رضی الله عنها په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړو |
| أَنْبِئِينِي عَنْ خُلُقِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَتْ: أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ |
| چې ما ته د حضور صلی الله علیه وسلم د خلق باره کې ووايه عائشه رضی الله عنها فرمايي تا قرآن نه دی لوستلی؟ |
| قُلْتُ: بَلَى. قَالَتْ: فَإِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ. قُلْتُ: |
| ما عرض وکړو ولې نه ويلی مې دی وی فرمايل: د حضور صلی الله علیه وسلم اخلاق قرآن دی ما بيا عرض وکړو |
| يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَنْبِئِينِي عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَتْ: كُنَّا نُعِدُّ لَهُ |
| ای عايشې رضی الله عنها! د نبي علیه السلام وترو باره کې څه ووايه؟ وې فرمايل: ما به انتظام کړې وو د نبي |
| سِوَاكَهُ وَ طَهُورَهُ فَيَبْعَثُهُ اللّٰهُ مَا شَاءَ أَنْ يَبْعَثَهُ مِنَ اللَّيْلِ |
| علیه السلام دپاره مسواک او داودس داوبو کله چې نبي علیه السلام الله تعالی دشپې پاڅول غوښتل پاڅوو به يې |
| فَيَتَسَوَّكُ وَ يَتَوَضَّأُ وَ يُصَلِّي تِسْعَ رَكَعَاتٍ لَا يَجْلِسُ فِيهَا |
| نبي علیه السلام به مسواک وکړو بيا اودس او نهه رکعته مونځ به يې وکړو چې نه به کيناستو په بل رکعت کې |
| إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ فَيَذْكُرُ اللّٰهَ وَ يَحْمَدُهُ وَ |
| په غير داتم رکعت نه چې اتم رکعت به يې وکړو کيناستو به، د الله ذکر به يې کولو تعريف به يې کولو او |
| يَدْعُوهُ ثُمَّ يَنْهَضُ وَلَا يُسَلِّمُ فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ ثُمَّ |
| دعا به يې غوښتله بيا د سلام اړولو نه بغير به نهم رکعت ته پاڅيد و بيا به يې نهم رکعت پوره وکړو بيا به |
| يَقْعُدُ فَيَذْكُرُ اللّٰهَ وَ يَحْمَدُهُ وَ يَدْعُوهُ ثُمَّ |
| کيناستو تشهد کې دالله ذکر به يې کولو د هغه تعريف به يې بيانولو او الله نه به يې دعاء غوښتله دا به يې |

| |
|---|
| يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَمَا يُسَلِّمُ وَ هُوَ قَاعِدٌ فَتِلْكَ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً |
| مونږ، ته په تيزآواز او رولو سره سلام گرځولو دې نه پس به يې په ناسته دوه رکعته کول نو دا يولس رکعته شو |
| يَا بُنَيَّ فَلَمَّا أَسَنَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَخَذَ اللَّحْمَ |
| اى زما زويه، کله چې د حضور صلى الله عليه وسلم عمر زيات شو او ډېر عمر د وجې نه په بدن غوښه زياته شوه |
| أَوْتَرَ بِسَبْعٍ وَ صَنَعَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِثْلَ صَنِيعِهِ فِي الْأُولَى فَتِلْكَ تِسْعٌ يَا بُنَيَّ وَ كَانَ |
| او ه رکعته سره د وترو به يې کول او دوه رکعته په ناسته وکړل اى زما بچيه دا نهه رکعاته شو، او وو به |
| نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً أَحَبَّ أَنْ يُدَاوِمَ عَلَيْهَا |
| نبي عليه السلام چې کله به يې يو مونځ کولو دا خبره به يې خوښوله چې هميشه والې وکړې شي په دې باندې |
| وَ كَانَ إِذَا غَلَبَهُ نَوْمٌ أَوْ وَجَعٌ عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ |
| او چې کله به غالب شو په نبي عليه السلام باندې خوب يا بل داسې تکليف چې دهغې د وجې د شپې او دريدل |
| صَلَّى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً وَلَا أَعْلَمُ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ممکن نه وو نو نبي عليه السلام به د ورځې او له حصه کې دولس رکعاته کول زه نه پوهيدم چې نبي عليه السلام |
| قَرَأَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ فِي لَيْلَةٍ وَلَا صَلَّى لَيْلَةً إِلَى الصُّبْحِ وَلَا صَامَ |
| کله هم په يو شپه کې ټول قرآن لوستلى دى او نه يې ټوله مونځ کړې دى تر سحره پورې او نه يې روژې |
| شَهْرًا كَامِلًا غَيْرَ رَمَضَانَ. (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| نيولې پوره مياشت په غير د مياشت د رمضان نه. |

**توضيح: الا في الثامنة**: دا روايت هم د شوافعو مستدل دى چې په يو سلام سره اته رکعاته جائز دي. (المرقات ۳/۳۳۰).

**غير رمضان**: حضور صلى الله عليه وسلم د روژې مياشتې نه علاوه پوره مياشت روژې نه دي نيولې، دې حديث او د حضرت عائشې رضي الله عنها په حديث کې تعارض دى دې کې مذکور دى چې حضور صلى الله عليه وسلم به د شعبان ټولې روژې نيولې، د دې په جواب کې هم د حضرت عائشې رضي الله عنها يو حديث دى، حضور صلى الله عليه وسلم به اکثر او غالب شعبان روژو سره تيرولو **فللاکثر حکم الکل**، تعارض پاتې

(۱) أخرجه مسلم ۵۱۲/۱ رقم الحديث ۱۳۹-۷۴۶

نه شو .

**دوترو نه پس د دوه رکعتو نفل** : **ثم يصلي ركعتين وهو قاعد** : دې کې بحث تیر شوی دی د وترو نه پس دوه رکعاته څنګه دي یو حدیث کې ښکاره حکم دی خپل وتر مونځ د شپې اخري مونځ جوړ کړه دې نه معلومه شوه چې د وترو نه پس بل مونځ نشته دی حدیث کې مذکور دي چې حضور ﷺ د وترو نه پس دوه رکعته په ناسته کړي دي ، امام مالک رحمه الله د وترو نه پس دوه رکعته نفل کولو والا حدیث نه دی قبول کړی ، (المرقات ۳/۳۳۱).

حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي نه يې په خپله کوم او نه ترې څوک منع کوم ، جمهور فقهاء وايي دې نه انکار نه شي کولی دا دوه رکعاته نفل ثابت دي ، روایاتو کې چې کوم تعارض دی داسې يې ختموئ دواړه طريقې جائز دي کول هم جائز او نه کول هم جائز دي ، حدیث کې د امر صیغه ده دا حکم استحبابي دي وجوبي نه دی تعارض نشته ، بعضې علماو دا تطبيق کړي ماسخوتن وخت کې که وتر وکړي دا دوه رکعات د ولاړې په ځای په ناسته وکړه ګیني مه يې کوه ، دې سره هم تعارض لرې کيږي ، خلاصه دا چې دا خبره ډيره واضحه ده دې دوه نفلو په باره کې خبره هله ده چې وتر ماسخوتن وخت کې وکړي که د شپې آخره حصه کې وتر وي بیا وتر آخري مونځ دی .

## وتر د شپې آخره حصه کې کول په کار دي :

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اجْعَلُوا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا»[1] |
| ابن عمر رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ فرمايي: خپل د شپې آخري مونځ وتر جوړ کړئ. |
| ﴿۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « بَادِرُوا الصُّبْحَ |
| ابن عمر رضي الله عنه روايت کړې د نبي کريم ﷺ نه چې فرمايي : جلتئ کوئ د سحر د آثارو ښکاره |
| بِالْوِتْرِ» . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2]. |
| کيدو سره په وتر کولو باندې . |

## ددیني طلباو د پاره دوترو حکم :

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « مَنْ خَافَ |
| جابر رضي الله عنه راوي دی وايي چې : حضور ﷺ فرمايي : کوم کس ته چې ددې خبرې ويره وي |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۴۸۸/۲،رقم الحديث :۹۹۸، ومسلم في الصحيح ۵۱۷/۱ رقم الحديث ۱۵۱-۷۵۱

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۵۱۷/۱ رقم الحديث ۱۴۹-۷۵۰

| | |
|---|---|
| أَنْ لَا يَقُومَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ أَوَّلَهُ وَ مَنْ طَمِعَ | |
| چې د شپې آخره کې نه پاڅم هغه له په کار دي چې د شپې په شروع کې وتر وکړي او د چا چې امید وي | |
| أَنْ يَقُومَ آخِرَهُ فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ فَإِنَّ صَلَاةَ آخِرِ اللَّيْلِ | |
| د پاڅیدو د شپې په آخره حصه کې هغه دې د شپې آخره کې وتر وکړي ځکه چې مونځ د آخرې حصې د شپې | |
| مَشْهُودَةٌ وَ ذٰلِكَ أَفْضَلُ » . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. | |
| مشهود (يعني دې وخت کې د رحمت فرښتې ،بركات او انوارات نازليږي) دي او دا افضل دی . | |

**توضیح**: آخر الليل: د شپې آخره حصه کې پاڅيدل رياضت او عبادت دی خيته خالي وي عبادت په آسانه کيږي بلکې زړه يې لګي د الله تعالى د انواراتو او برکاتو نزول کيږي ځکه ارشاد دی که امید يې وې چې آخري حصه د شپه کې پاڅيدی شي نو وتر مؤخر کړه چې د شپې آخرې حصې فضائل حاصل شي د چا علمي کار وي طالب علم وې مطالعې او تکرار کې مشغول وي هغه دې ماسخوتن وخت کې وتر وکړي او اوده دې شي لکه داسې راتلونکي د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت مطلب هم دادی.

شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي : که طالب علم د ماسخوتن وتر وکړه هغې نه پس يې دوه رکعاته نفل وکړل ده ته ثواب حاصل شو . (اشعة اللمعات ۵۷۲، المرقات ۳/۲۳۳).

## حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د درې خبرو وصيت کړی دی :

| | |
|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مِنْ كُلِّ اللَّيْلِ أَوْتَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ | |
| عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې هره حصه کې وتر کړي دي يعني د شپې په شروع کې | |
| وَ أَوْسَطِهِ وَ آخِرِهِ وَ انْتَهَى وِتْرُهُ إِلَى السَّحَرِ . (مُتفق عليه)[2]. | |
| د شپې مينځ او د شپې آخري حصه کې هم خو د عُمر په آخري وخت کې د سحر وخت ورله مقرر کړی وو . | |
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : أَوْصَانِي خَلِيلِي بِثَلَاثٍ : صِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ | |
| ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي زما ملګري (نبي عَلَيْهِ السَّلَام) ماته د درې خبرو وصيت کړی: درې روژې نيول په هره | |

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۵۲۰ رقم الحديث:۱۶۲-۷۵۵

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲/۴۸۶،رقم الحديث : ۹۹۶، ومسلم في الصحيح ۱/۵۱۲ رقم الحديث:۱۳۷-۷۴۵.

شَهْرٍ وَ رَكْعَتَيِ الضُّحٰى وَ أَنْ أُوْتِرَ قَبْلَ أَنْ أَنَامَ .(متفق عليه)[1].

میاشت کې، دویم دوه رکعته د ځابنت مونځ کول، او دریم دا چې د اودو کیدو نه مخکې وتر کول.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

## په شرعي آسانتیاو باندې شکر ادا کول په کار دي:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَن غُضَيْف بن الْحَارِث قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: أَرَأَيْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| غضیف بن حارث رضي الله عنه روایت کوي چې ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم |
| كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ أَمْ فِي آخِرِهِ ؟ قَالَتْ : |
| به غسل جنابت د شپې شروع کې کولو یا آخره حصه کې؟ عائشې رضي الله عنها وفرمایل کله به نبي عليه السلام د |
| رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي آخِرِهِ قُلْتُ : اللهُ أَكْبَرُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ |
| شپې شروع حصه کې غسل کولو او کله آخره حصه کې ما وویل الله ډیر لوی دی ټول تعریفونه هغه الله لره |
| جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً قُلْتُ : كَانَ يُوتِرُ أَوَّلَ اللَّيْلِ أَمْ |
| دي چې دیني امورو کې یې آسانتیا او ستې پیدا یې تپوس وکړو نبي عليه السلام وتر د شپې شروع کې کول یا |
| فِيْ آخِرِهِ ؟ قَالَتْ : رُبَّمَا أَوْتَرَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ وَ رُبَّمَا أَوْتَرَ فِي آخِرِهِ |
| آخره حصه کې؟ عائشې رضي الله عنها وفرمایل: کله به یې شروع کې کول او کله د شپې آخره حصه کې کول، |
| قُلْتُ : اللهُ أَكْبَرُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً قُلْتُ : |
| ما وویل الله ډیر لوی دی ټول تعریفونه الله د پاره دي چې دیني امورو کې یې آسانتیا او ستې پیدا یې تپوس |
| كَانَ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَخْفُتُ ؟ قَالَتْ : رُبَّمَا جَهَرَ بِهِ وَ رُبَّمَا خَفَتَ |
| وکړو قرائت به یې په مزه کولو یا تیز آواز باندې وي ویل کله به یې په تیز آواز قرائت کولو او کله په مزه آواز باندې |
| قُلْتُ : اللهُ أَكْبَرُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي لِلْأَمْرِ سَعَةً .(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ) وَرَوَى ابْنُ مَاجَةَ |
| ما وویل الله ډیر لوی دی ټول تعریفونه الله د پاره دي چې دیني اموریې آسان کړي (ابن ماجه د دې حرف |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۶/۳، رقم الحديث ۱۱۷۸، ومسلم في الصحيح ۴۹۹/۱ رقم الحديث ۸۵-۷۲۱، وأبو داود ۱۳۸/۲ رقم الحديث ۱۴۳۲، والنسائي ۲۲۹/۳، رقم الحديث ۱۲۷۷ ، والترمذي ۱۳۳/۳ رقم الحديث ۷۶۰

## الْفَصْلُ الْأَخِيرُ . (۱)

آخري فقره نقل کړې ده).

## د تهجد او وترو مونځونو د رکعتونو تعداد :

﴿۱۱﴾ وَعَن عبد الله بن أبي قيس قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِكَمْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عبد الله بن ابي قيس رضي الله عنه وايي : ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو چې حضور صلى الله عليه وسلم څو

يُوتِرُ ؟ قَالَتْ : كَانَ يُوتِرُ بِأَرْبَعٍ وَ ثَلَاثٍ وَ سِتٍّ وَ ثَلَاثٍ

رکعاته وترکول؟عائشه رضي الله عنها وايي: حضور صلى الله عليه وسلم به کله څلور او درې او کله شپږ او درې رکعاته

وَ ثَمَانٍ وَ ثَلَاثٍ وَ عَشْرٍ وَ ثَلَاثٍ وَ لَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ

کله اته او درې رکعاته او کله لس او درې رکعاته وترکول او رسول الله صلى الله عليه وسلم به وتر نه کول کم د اوو

وَلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاث عشرَة. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)(۲).

رکعتونو نه او نه زيات د ديارلسو رکعتونو نه .

**توضيح : بأربع و ثلاث:** حضرت عائشه رضي الله عنها پوره احتياط سره د تهجد و رکعتونو ځانله ذکر کړي دي او د وترو رکعتونو ذکر جدا فرمايي : حضور صلى الله عليه وسلم څلور رکعاته تهجد او درې رکعاته وتر کول ددې مجموعه اوه رکعاته ده ، کله شپږ او درې وتر دا نهه رکعاته شو ، کله اته رکعاته او درې وتر دا يولس رکعاته شو ، کله لس رکعاته او درې وتر دا ټول ديارلس رکعاته شو ، حضرت عائشې رضي الله عنها چې کوم اهتمام سره درې وتر جدا ذکر کړي دا ددې خبرې دليل دی چې وتر درې رکعاته دي . (المرقات ۳/۳۳۵).

آخر کې حضرت عائشې رضي الله عنها د حضور صلى الله عليه وسلم عام عادت بيان کړی دی ، عمومي طور باندې حضور صلى الله عليه وسلم اوو نه کم او د ديارلسو نه ډير وتر يعنې تهجد او وتر دواړه نه کول دلته د وترو اطلاق په تهجد و باندې هم دی او دا حصر د عمومي حالاتو په اعتبار سره دی ګينې پنځه او پنځلس رکعاته هم ثابت دي خو دغه معمول کم وو.

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۵۳/۱ رقم الحديث : ۲۲۶ .

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۹۷/۲ رقم الحديث :۱۳۶۲ .

## دوتر مونځ واجب دی:

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ |
| ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: وتر هر مسلمان باندې حق دی |
| فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ وَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ |
| لهذا څوک چې وتر پنځه رکعاته کول غواړي پنځه رکعته دې وکړي او څوک چې درې رکعته کول غواړي |
| فَلْيَفْعَلْ وَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ».[1] |
| درې رکعته دې وکړي څوک چې يو رکعت کول غواړي يو رکعت دې وکړي. |

**توضیح: الوتر حق**: دې حديث نه د وترو وجوب واضح معلوم دی بيا: وترو درې. پنځه او يو رکعت ذکر دي. (المرقات ۳/۳۳۶).

سفيان ثوري پنځه رکعاته واخيستل دلته شوافعو يو رکعت واخسته او احنفو درې رکعات واخيستل دغه شان حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو قول هم امت لاندې نه دی غورځولی.

## وترو ته ترغيب او دهغې فضيلت:

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: الله تعالی وتر دی وتر خوښوي |
| فَأَوْتِرُوا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ».[2] |
| لهذا ای اهل قرآن وتر کوئ. |

**توضیح: ان الله وتر**: يعني الله تعالی خپل ذات کې او خپلو صفاتو کې يو دی څوک مثل او شريک او نظير نه لري، الله تعالی خپلو افعالو کې هم يو دی څوک مددګار يې نشته، طاق عدد خوښوي او وتر هم طاق دي ځکه الله تعالی وتر خوښوي او ددې کولو والا ته ډير زيات ثواب ورکوي اهل القرآن نه مراد اهل توحيد او اهل ايمان مسلمانان دي. (المرقات ۳۳۶-۳/۳۳۸).

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۳۲/۲ رقم الحديث :۱۴۲۲

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۱۴/۱۱،رقم الحديث . ۶۴۱۰، ومسلم في الصحيح ۲۰۲۶/۴ رقم الحديث:۵-۲۶۸۸، وأبو داود ۱۲۷/۲ رقم الحديث :۱۴۱۶.

## دوترو وجوب او ددې وخت او فضيلت :

| |
|---|
| ﴿١٤﴾ وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَقَالَ: |
| خارجه بن حذافه رضي الله عنه وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم زمونږ خوا ته تشريف راوړو او وي فرمايل : |
| " إِنَّ اللهَ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ : الْوِتْرُ |
| الله تعالى ستاسو يو مونځ سره امداد کړی دی دا ستاسو د پاره د سرو اوښانو نه بهتر دی او هغه وتر دي |
| جَعَلَهُ اللهُ لَكُمْ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى أَنْ يَطْلُعَ الْفَجْرُ ".[1] |
| او ستاسو د پاره دا مونځ د ماسخوتن نه پس د سحر وتلو پورې ددې په مينځ کې مقرر دی. |

**توضيح : حمر النعم** : عربو ته سره اوښان ډير خوښ او عمده لګي او د عربو مالونو کې تولو نه ډير قيمتي دي ځکه حضور صلى الله عليه وسلم وترو ته ترغيب ورکولو سره د اوښانو ذکر وفرمايه ، دې حديث کې دا وښودی شو چې وتر د ماسخوتن تابع دي نو د ماسخوتن نه مخکې نه ادا کيږي.(المرقات۳/۳۳۹)

## دوترو قضاء لازم ده چې دا يې دوجوب دليل دی :

| |
|---|
| ﴿١٥﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : «مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ |
| زيد بن اسلم راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي څوک چې د وترو نه غافله وي او اوده شي |
| فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسلا)[2] |
| هغه ته په کار دي که سحر وي نو او دې کړي ، دا روايت ترمذي په طريقه د ارسال سره نقل کړی دی. |

## د دري رکعاتو وترو ثبوت :

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ قَالَ : سَأَلْنَا عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ |
| عبدالعزيز بن جريج رضي الله عنه وايي مونږ د عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو چې کوم کوم سورتونه لوستل |
| كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ قَالَتْ: كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى بِـ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى |
| حضور صلى الله عليه وسلم په وترو کې ؟ عائشې رضي الله عنها وايي : اولنې رکعت کې سبح اسم ربک الاعلی ، |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۲۸/۲ رقم الحديث ۱٤۱۸ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۱٤/۲، رقم الحديث ۳۵۲۰، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۳٦۹/۱ رقم الحديث. ۱۱٦۸.

۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۳۷/۲ رقم الحديث ۱٤۳۱ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۳۰/۲، رقم الحديث :٤٦٦.

وَفِي الثَّانِيَةِ بِقُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِـ قُلْ هُوَاللهُ أحدوالمعوذتين رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُودَاوُد

دویم رکعت کې قل یاایها الکافرون، دریم رکعت کې قل هوالله احد، او معوذتین لوستل.

وَ رَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى وَرَوَاهُ الأحمد عَنْ أَبِي بْنِ كَعْبٍ وَالدَّارِمِي عَنِ

او دا روایت نسائي دعبدالرحمن بن ابزي رضی الله عنه نه او امام احمد د ابي بن کعب رضی الله عنه نه او دارمي د

ابْنِ عَبَّاسٍ وَ لَمْ يَذْكُرَا وَ الْمُعَوِّذَتَيْنِ[1]

ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړی خو امام دارمي خپل روایت کې لفظ معوذتین نه دي ذکر کړی بلکې هغوي صرف دا نقل کړي چې حضور صلی الله علیه وسلم د وترو دریم رکعات کې صرف **قل هو الله احد** لوستلو.

**توضیح: في الاولى:** دې نه معلومه شوه چې وتر درې رکعاته دي عائشه رضی الله عنها هر درې رکعاتو کې د هر رکعت جدا جدا نوم اخستی او هر رکعت کې لوستلې سورت نوم یې هم ښودلې، او د غه شان تسلسل سره یې د درې رکعاتو بیان وکړو چې وتر درې رکعاته دي او مینځ کې یې سلام نشته او دا د احنافو مسلک دی.

## په وترو کې ویلو والا دعاء قنوت:

﴿۱۷﴾ وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَاتٍ

حسن بن علي رضی الله عنه راوي دی وایي چې حضور صلی الله علیه وسلم ما ته څه کلمات ښودلي وو چې زه یې د

أَقُولُهُنَّ فِي قُنُوتِ الْوَتْرِ: «اللَّهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ

وترو دعاء قنوت کې وایم (ترجمه) ای الله ما ته هدایت وکړه هغه خلکو سره چا ته چې تا هدایت کړی ما

وَ عَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ وَ تَوَلَّنِي

د دنیا او آخرت مصیبتونو نه او آفتونو نه بچ کړې، هغه خلکو سره کوم چې تا بچ کړي دي او ما سره محبت

فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ وَ بَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ وَ

وکړه هغه خلکو سره کوم سره چې ته محبت کوې او څه چې ته ما ته راکړي هغې کې برکت واچوه او ما د

قِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ. فَإِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ

هغه ګناهونو نه بچ کړه کوم چې مقدروي بیشکه ته چې څه غواړي هغه حکم کوې او تا ته څوک حکم نه کوي

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۳۲ رقم الحديث ۱۴۲۳، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۲۶، رقم الحديث ۴۲۳، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۳۷۱ رقم الحديث. ۱۱۷۲

| |
|---|
| إِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ |
| ( یعنې ته حاکم مطلق یې محکوم نه یې او څوک چې ته ملګری) ساتې هغه ذلیل کیږي نه ای زما ربه! |
| تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَ تَعَالَيْتَ » [1]. |
| ته برکت والا یې او ستا ذات اوچت او برتر دی. |

**توضیح**: **في قنوت الوتر** : وترو کې دعا لوستلی کیږي د احنافو په نزد ټول کال کې د ماسخوتن مونځ نه پس وترو کې دعاءٌوي، د شوافعو په نزد نیم رمضان نه پس وي او ټول کال د سحر مونځ کې وي بیا دعاء کې هم اختلاف دی شوافع دغه دعاء لولي، بره حدیث کې مذکور ده، طریقه یې داده چې اخري رکعت د قرائت نه د فارغیدو سره قومه کې لاس اوچت کړي دعاء غواړي خو اوچت آواز سره یې غواړي نن سبا حرمینو کې ټول رمضان کې داسې دعاء کیږي او په اوچت آواز سره حاکمانو او د هغوی اعوانو د پاره دعاء غوښتلی شي دا یو عجیبه صورت دی.(المرقات ۳/۳۴۳).

احناف ټول کال کې جدا جدا او رمضان کې په جماعت سره دوترو په آخري رکعت کې د قرائت فارغیدو سره رکوع ته تللو نه مخکې دواړه لاسونه غوږونو پورې اوچت کړي بیا نوم باندې کیخودلی شي او دادعا په مزه لوستلی کیږي کومه چې مونږ احناف مونځ کې وایو: **اللهم انا نستعينك ونستغفرك ونؤمن بك ونتوكل عليه و نثنى عليك الخير نشكرك ولا نكفرك و نخلع و نترك من يفجرك اللهم اياك نعبد ولك نصلي و نسجد واليك نسعى و نحفد و نرجو رحمتك و نخشى عذابك إن عذابك بالكفار ملحق.(رواه ابوداؤد في مراسيله بتغير يسير) (المرقات ۳/۳۴۳).**

بوداؤد مندرجه بالا دعاء قنوت خپلو مراسیلو کې نقل کړې دی یو دوو الفاظو نه علاوه دا دعاء هلته وجود ده، دا ویل غلط دي چې دا دعاء ثابت نه ده، حرمینو کې کله کله دا دعاء هم ویلي کیږي که وک دا دواړه دعاګانې وترو کې ووایي ډیره بهتر ده بنه الفاظ کمي او زیاتي سره څه فرق نه پریوځي ږ د دنیاوي اغراضو دعاګانې جائز نه دي مخکې د قنوت نازله تفصیل را روان دی.

---

رجه أبو داود في السنن ۱۳۳/۲ رقم الحديث : ۱۱۲۵ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۲۸/۲، رقم الحديث : ۴۶۴، وأخرجه ابن

## وترو کې د حضور صلی الله علیه وسلم دعاء:

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ فِي الْوِتْرِ

ابي بن کعب رضي الله عنه وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم به چې کله د وترو په مونځ کې سلام اړولو نو دا به يې

قَالَ: «سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] وَ النَّسَائِيُّ وَ زَادَ: ثَلَاثَ مَرَّاتٍ

ويل: پاک دی بادشاه نهايت پاک، نسائي دا الفاظ هم نقل کړي چې نبي علیه السلام دا درې ځلې لوستل او

يُطِيلُ فِي آخِرِهِنَّ. وَ فِي رِوَايَةٍ لِلنَّسَائِيِّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى

دريم ځل به يې تيز اواز سره لوستل، نسائي يو روايت د عبد الرحمن بن ابزي رضي الله عنه نه نقل کړی دی

عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ يَقُولُ إِذَا سَلَّمَ: «سُبْحَانَ

دې کې هغه (عبد الرحمن) خپل پلار نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم به کله سلام اړولو نو سبحان

الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ» ثَلَاثًا وَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ بِالثَّالِثَةِ. (نسائي ۳/۲۳۵).

الملک القدوس به يې درې ځلې ويل او دريم ځل به يې په تيز آواز سره ويله.

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي آخِرِ وِتْرِهِ: «اللّٰهُمَّ

حضرت علي رضي الله عنه وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم خپل د وترو مونځ آخره کې دا دعاء لوستله: اى الله!

إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَ بِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ

زه پناه غواړم ستا د خوشحالي په ذريعې سره ستا د غضب نه او ستا د عافيت په ذريعې سره ستا د عذاب نه

وَ أَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي

او زه پناه غواړم ستا د ذات په ذريعې ستا د آثار معافات (يعني ستا د غضب او غصې نه) ما کې طاقت نشته

ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ»[2].

چې ستا تعريف وکړم ځکه چې ستا د تعريف شمار نشته ته داسې يې لکه څنګه چې تا خپل تعريف کړی دی

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۳۷/۲ رقم الحديث: ۱۴۳۰.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۳٤/۲ رقم الحديث. ۱۴۲۷

**توضیح**: عبدالله بن همام رحمه الله فرمايي: دعاء قنوت کې څه خاص دعاء باندې انحصار نه دی کول په کار بلکې مختلفې دعاګانې ويل په کار دي چې زړه او دماغو باندې د دعاګانو اثر پريوځي. لهذا معروف دعاء قنوت خاص معمول نه دی جوړول په کار.

خو د علماو دويمه طبقه دا وايي چې معروف دعاء قنوت معمول جوړول منع نه دي البته دې نه علاوه نورې دعاګانې بطور خاص معمول جوړول منع دي ځکه چې صحابو د معروف دعاء قنوت معمول جوړولو او لوستلو به يې بل کوم خاص معمول يې نه وو جوړ کړی. (المرقات ۳/۳۴۸، ۳/۳۶۰).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث:

### د حضرت معاويه رضي الله عنه يو رکعت وترو باندې د صحابو تعجب:

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قِيلَ لَهُ: هَلْ لَكَ فِي أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ مُعَاوِيَةَ |
| ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دي هغه نه تپوس وکړی شو د امير معاويه رضي الله عنه په باره کې تاسو څه وايي |
| فَإِنَّهُ مَا أَوْتَرَ إِلَّا بِوَاحِدَةٍ قَالَ: أَصَابَ إِنَّهُ فَقِيهٌ وَ فِي رِوَايَةٍ: قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ: |
| چې وتر يو رکعت کوي؟ ابن عباس رضي الله عنه وويل هغه فقيه دی ښه کوي يو بل روايت کې ابن ابي مليکه وايي |
| أَوْتَرَ مُعَاوِيَةُ بَعْدَ الْعِشَاءِ بِرَكْعَةٍ وَ عِنْدَهُ مَوْلًى لِابْنِ عَبَّاسٍ |
| چې معاويه رضي الله عنه ماسخوتن مونځ نه پس وتر يو رکعت وکړو ده سره د ابن عباس رضي الله عنه آزاد کرده غلام |
| فَأَتَى ابْنَ عَبَّاسٍ فَأَخْبَرَهُ |
| هم موجود وو هغه د ابن عباس رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو او ورته يې وويل: ابن عباس رضي الله عنه |
| فَقَالَ: دَعْهُ فَإِنَّهُ قَدْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| وفرمايل: د هغه باره کې څه مه وايه هغه ته د حضور صلی الله علیه وسلم د صحبت شرف حاصل دی. |

**توضیح**: دعه، يعنې امير معاوية رضي الله عنه باندې اعتراض مه کوه د حضور صلی الله علیه وسلم صحابي دی هغه سره به څه وجه وي څه علمي ثبوت به وي څه اجتهادي خبره به وي د صحابي عمل غلط نه شي کيدی هغه نه رب راضي شوی دی دوي باندې اعتراض مه کوه. (المرقات ۳/۳۵۰).

ځکه چې:

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۳/۷ رقم الحديث: ۳۷۶۵.

نه هر جائے مرکب توان تاختن ۞ که جاها سپر باید انداختن
کار پاکان را قیاس از خود مگیر ۞ گرچه آید در نوشتن شیر وشیر
هزار نکته باریک تر ز مو این جاست ۞ نه هر که سر بتراشد قلندری داند

## دوتر نه کولو سخت وعید:

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ |
| بریدة رضي الله عنه وايي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي چې فرمايل يې: وتر حق دي څوک چې وتر نه کوي |
| فَلَيْسَ مِنَّا الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ |
| هغه زمونږ نه، نه دی، وتر حق دي څوک چې وتر ونه کړي هغه زمونږ نه، نه دی وتر حق دي څوک چې وتر ونه |
| فَلَيْسَ مِنَّا». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| کړي هغه زمونږ نه، نه دی. |

**توضيح: فليس منا:** ډيرې جملې دا سې مخکې تيرې شوې دي دلته يو مطلب يا ليکم دد ې مطلب دا نه دی چې دا کس کافر شو، بلکې مطلب يې دا دی چې دا کس د ې خاص مسئله کې وترو کې زمونږ په طريقه باندې نه دی باقي په اسلام باندې ولاړ دی، ليکن په دې شعبه کې د مسلمانانو د طريقې نه اوښتې دي. (المرقات ۳/۳۵۰).

## دوترو قضاء دوترو دوجوب دليل دی:

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ |
| ابو سعيد رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: څوک چې بغير د وتر کولو اوده شي |
| أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَ أَوْ إِذَا اسْتَيْقَظَ».[2] |
| يا کول ترې هير شي کله چې هم ورته ياد شي يا د خوب نه را بيدار شي (ددې قضاء) دې وکړي. |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۲۹ رقم الحديث ۱۴۱۹

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۲/۱۳۷ رقم الحديث ۱۴۳۱، وأخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۳۰، رقم الحديث ۱۶۵.

## دوتر مونځ واجب دی او که سنت؟

﴿۲۳﴾ وَ عَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْوِتْرِ :

دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ باره کې منقول دي چې ده ته دا خبره رسیدلې چې یو کس ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو

أَوَاجِبٌ هُوَ؟ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: قَدْ أَوْتَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَوْتَرَ الْمُسْلِمُونَ .

آیا وتر واجب دي؟ عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: وتر مونځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم کړی او نورو مسلمانانو

فَجَعَلَ الرَّجُلُ يُرَدِّدُ عَلَيْهِ وَ عَبْدُ اللهِ يَقُولُ : أَوْتَرَ

هم کړی دی او دغه کس بار بار دا سوال کوه او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته دغه جواب ورکوه چې وتر مونځ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُونَ. (رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأِ)[1].

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم کړی دی او نورو مسلمانانو هم کړی دی.

## وتر درې رکعاته دي:

﴿۲٤﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِيهِنَّ

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به وتر درې رکعته کول ، دې کې به يې لوستل نبي عَلَيْهِ السَّلَام

بِتِسْعِ سُوَرٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِثَلَاثِ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ: قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2]

مفصل نهه سورتونه هر رکعت کې يې درې درې سورتونه لوستل او آخري سورت کې قل هو الله احد وو.

## دوو رکعتو سره یو رکعت یو ځای کول او سره ودوتر جوړیدو واقعه:

﴿۲۵﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ : كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ بِمَكَّةَ وَ السَّمَاءُ مُغِيمَةٌ فَخَشِيَ الصُّبْحَ

نافع وايي: زه د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مکه کې وم او آسمان کې وریځ وه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ويره د سحر

فَأَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ انْكَشَفَ فَرَأَى أَنَّ عَلَيْهِ لَيْلًا فَشَفَعَ بِوَاحِدَةٍ

کیدو وه هغه یو رکعت وتر وکړل بیا آسمان صفا شو هغه وکتل چې اوس هم شپه ده هغه یو رکعت بل هم وکړو

ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فَلَمَّا خَشِيَ الصُّبْحَ أَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ . (رَوَاهُ مَالِكٌ).

دوه رکعته شو ، دې نه پس دوه دوه رکعت وکړل چې د سحر ويره شوه هغه یو رکعت وتر وکړل.

(۱) أخرجه مالک في الموطأ ۱۲٤/۱ رقم الحديث ۱۷ من كتاب صلاة الليل.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۲۲/۲ رقم الحديث ٤٦٠

## په ناسته مونځ کولو طريقه:

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ : أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي جَالِسًا |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ به (په آخري عمر کې په ورځ يا شپه کې) په ناسته مونځ |
| فَيَقْرَأُ وَ هُوَ جَالِسٌ فَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرُ مَا يَكُونُ ثَلَاثِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ |
| کولو (چې د اوږد قرائت د وجې نه) په ناسته ناسته قرائت کولو چې کله به پاتې شو ديرش يا څلويښت |
| آيَةً قَامَ وَ قَرَأَ وَ هُوَ قَائِمٌ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ يَفْعَلُ |
| آيتونه او دريدو به هغه به يې په ولاړه لوستل بيا به يې رکوع وکړه بيا به يې سجده وکړه او بيا به يې کول |
| فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ.[1] |
| په دوهم رکعت د اولنې رکعت په شان. |

**توضيح**: په دې طريقه باندې نفل کول اتفاقا جائز دي د دې بالعکس جائز نه دی. (المرقات ۳/۳۵۴).
دلته سوال دادی چې د دې حديث باب الوتر سره څه تعلق دی، د دې جواب دادی چې دلته د وترو ذکر اګر چې نشته خو د دوو رکعتونو ذکر دی چې د وترو د پاره مقدمه او تمهيد دی.

## د وترو نه پس دوه رکعته نفل په ناسته کول ثابت دي:

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْوِتْرِ |
| د حضرت ام سلمة رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې: نبي کريم ﷺ به نفل کول پس د وترو نه |
| رَكْعَتَيْنِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَزَادَ ابْنُ مَاجَه: خَفِيفَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ[2]. |
| دوه رکعته. |
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور ﷺ وتر يو رکعت کولو بيا دوه رکعته نفل يې کول، دې کې |
| يَقْرَأُ فِيهِمَا وَ هُوَ جَالِسٌ فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ.[3] |
| حضور ﷺ په ناسته ناسته قرائت فرمايلو چې کله رکوع کول يې غوښتل نو رکوع به يې کوله. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۰۵ رقم الحديث ۱۱۲ ۷۳۱
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۳۵ رقم الحديث ۴۷۱
(۳) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۳۷۷ رقم الحديث ۱۱۹۶

﴿۲۹﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ هٰذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَ ثِقْلٌ

ثوبان د نبي کریم ﷺ نه روایت کړي چې نبي علیه السلام فرمايي: که د شپې بیداریدل مشکل وي

فَإِذَا أَوْتَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ فَإِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ

تاسو کې چې څوک هم وتر وکړي دوه رکعته نفل کوئ که د تهجدو د پاره د شپې پاڅیدې نو بهتر ده که

وَ إِلَّا كَانَتَا لَهُ ». (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ ١٦٠٢).

پانه څیدې نو بیا دا دوه رکعته پوره دي (یعنې ددې دوو رکعتو د وجې ده ته د تهجدو ثواب ملاو شو).

﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ وَهُوَ جَالِسٌ

ابو امامة رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور ﷺ د وترو نه پس دوه رکعته نفل په ناسته کول او

يَقْرَأُ فِيهِمَا ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الأَرْضُ﴾ و ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ (رَوَاهُ أَحْمد)[1].

دې کې یې اذا زلزلت الارض او قل یا ایها الکافرون لوستل.



(۲) أخرجه أحمد في المسند ٥/٢٦٠.

**۱۷ جمادی الاولی ۱٤۱۰هـ**

# بَابُ الْقُنُوتِ:

## د قنوت نازله بيان:

لفظ قنوت په ډيرو معانو باندې راځي د دعاء په معنی، د سکوت په معنی هم راځي، د طاعت په معنی هم مستعمل دی، طول قيام په معنی هم مستعمل دی، دلته د دعا، په معنی ده که ښه دعاء وي يا بده دعاء وي. (المرقات ٣/٣٥٦).

**د قنوت مختلفو احاديثو کې تطبيق**: قنوت په دوه قسمه باندې دی يو قنوت وتر د ماسخوتن نه پس، دويم قنوت نازله دی دواړو بااره کې مختلف آحاديث راغلي، بعضې آحاديثو نه ثابته ده چې د قنوت دعا قبل الرکوع ويلی شوې ده او ځينو کې بعد الرکوع ذکر دی.

بعضې رواياتو کې د سحر مونځ ذکر دی، په بعضو کې د ماسپښين او ماښگر بلکې ټول مونځونو ذکر دی، دې کې د قنوت د عاء لوستلی شوې ده، داسې فصل ثاني اولني حديث نمبر ٣ کې دي. (المرقات ٣/٣٥٨).

**د شوافعو فيصله**: د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد قنوت نازله ټول کال د سحر په مونځ کې هميشه ويل په کار دي، طريقه يې داده چې اخري رکعت کې د رکوع نه پس قومه کې ويل په کار دي دا قنوت وتر دی، البته رمضان کې دا قنوت د روژې آخرې نيمو کې وي.

د شوافعو په نزد په ټولو مونځونو کې قنوت نازله د رکوع نه پس ويل په کار دي، د مالکيو او شوافعو دليل دد باب هغه ټول احاديث دي چې هغې کې بعد الرکوع ذکر موجود دی او د فصل ثاني اولني حديث نمبر ٣ کې ټولو مونځونو کې د قنوت لوستلو بيان دی او شوافع په ټولو مونځونو کې د قنوت قائل دي. (المرقات ٣/٣٦٠).

**د احنافو فيصله**: امام احمد او امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ قنوت نازله او قنوت وتر کې فرق کوي د دوي په نزد قنوت وتر ټول کال دوام سره د ماسخوتن نه پس د وترو آخري رکعت کې د رکوع نه مخکې ويل په کار دي. او قنوت نازله د سحر مونځ کې د رکوع نه پس د څه حادثې، فاجعې د ضرورت مطابق محدود وخت د پاره کول په کار دي.

احنافو داسې طريقه اختيار کړې ده چې دې سره ټولو احاديثو کې آسانه سره تطبيق راځي هغه فرمايي: احاديثو کې چې چرته قنوت قبل الرکوع ذکر دی هلته قنوت وتر بعد العشاء مراد دې باندې د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دلالت کوي.

جلد 2 48

او چيرته چې د قنوت بعد الركوع ذكر راغلي دى هلته قنوت نازله مراد دى تعيين د سحر د تعامل د وجې نه دى كيږي د احنافو په نزد هم قنوت نازله نورو مونځونو پورې عام كولى شي چې كله د حادثې او آفت نوعيت سنگين او سخت شي . ددې تحرير نه پس ددې باب ټول آحاديث په آساني سره په ذهن كې راځي اگر چې بعضې شارحينو دلته ډير د طوالت نه كار اخيستې دى . ( المرقات ٣/٣٦٣ ).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل:

**حضور ﷺ د مسلمانانو قيديانو د پاره د راخلاصيدو ډيرې دعاگانې غوښتې وې:**

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ أَوْ يَدْعُوَ لِأَحَدٍ |
| ابو هريرة رضي الله عنه وايي حضور ﷺ به چې كله چاته بد دعا كوله يا چا د پاره به يې دعاء كولو اراده |
| قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ فَرُبَّمَا قَالَ إِذَا قَالَ : " سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ |
| وكړه نو د ركوع نه پس به يې قنوت لوستلو بعضې وختونو كې به كله نبي عليه السلام سمع الله لمن حمده |
| رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ : اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيد بن الْوَلِيد وَ سَلَمَةَ ابْن هِشَام وَ عَيَّاش |
| ربنا لك الحمد ويله نو دا دعاء به يې ويله : اى الله! نجات وركړې وليد بن وليد ، سلمه بن هشام او عياش |
| بن رَبِيعَةَ اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ |
| بن ابي ربيعه ته او اى الله! قوم مضر باندې سخت عذاب راولې او دغه عذاب د قحط په صورت كې نازل كړه |
| وَ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ " يَجْهَرُ بِذٰلِكَ |
| داسې قحط كوم چې د يوسف عليه السلام قحط په شان وي دا دعاء حضور ﷺ په تيزه باندې كوله |
| وَ كَانَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ : " اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَ فُلَانًا لِأَحْيَاءٍ مِنَ الْعَرَبِ |
| او يو مونځ كې حضور ﷺ عربو د قبيلو د پاره داسې بد دعاء كوله : اللهم العن فلاناً وفلاناً ، |
| حَتَّى أَنْزَلَ اللهُ : ﴿ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ ﴾ الْآيَة . (متفق عليه) [1] |
| بيا الله تعالى دا آيت نازل كړو : ( په دې معامله كې د ستا هيڅ دخل نشته دى ). |

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ١١/١٩٣، رقم الحديث . ٦٣٩٣، ومسلم في الصحيح ١/٤٦٦، رقم الحديث: ٢٩٤-٦٧٥، وأبو داود ٢/١٤٢ رقم للحديث :١٤٤٢، والنسائي ٢/٢٠١، رقم الحديث ١٠٧٤

**توضيح**: **الوليد بن الوليد**: دا صحابي د حضرت خالد رضي الله عنه ورور وو د ده نوم وليد وو او د پلار نوم يې هم وليد دی، جنګ بدر کې مسلمانانو سره قيدي وو د فديې په ذريعې خلاص شو مکې ته رسيدو سره مسلمان شو، کفارو پرې ظلمونه کول، حضور صلی الله عليه وسلم د ده د خلاصيدو د پاره دعاء وکړه د کفارو لاسونو نه خلاص شو او مدينې منورې ته وتختيده.

**سلمة بن هشام**: دا قديم الاسلام صحابي دی د ابوجهل خپل سکه ورور وو ده باندې کفارو هم ظلمونه کول دا هم د قيد نه راخلاص شو او مدينې منورې ته راغی. (المرقات ۳/۳۵۶).

**عياش بن ابي ربيعه**: دا هم قديم الاسلام صحابي وو او د ابوجهل د مور طرف نه اخيافي ورور وو ده حبشې طرف ته هجرت کړی وو بيا يې دويم هجرت مدينې منورې ته وکړو، ابوجهل ورسره دوکه وکړه چې مور دې ذرېسې ډيره خفه ده او هغه وايي چې د ده ملاقات پورې به زه سورې ته نه کينم داد مور د محبت د وجې نه ابوجهل سره لاړو او دې ظالم په جيل کې واچوو او ظلمونه به يې پرې کول د حضور صلی الله عليه وسلم د دعاء د وجې نه د قيد نه آزاد شو او مدينې منورې ته راغلو.

په زير بحث حديث کې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د هغه درې خوش بخته صحابو د خلاصون د پاره مسلسل دعاګانې غوښتې وي. (المرقات ۳/۳۵۶).

او الله تعالی حضور صلی الله عليه وسلم په بد دعاء کې نوم يادولو نه منع کړی وو ځکه چې د بعضو په قسمت کې ايمان ليکلی وي د هغوي د پاره بد دعاء مناسب نه ده.

## د قنوت نازله وخت بعد الركوع دی:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَاصِمِ الْأَحول قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوتِ فِي الصَّلَاةِ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوعِ |
| عاصم احول وايي ما د انس بن مالک نه د دعاء قنوت باره کې تپوس وکړو چې مونځ کې هغه رکوع نه مخکې |
| أَوْ بَعْدَهُ؟ قَالَ: قَبْلَهُ إِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ |
| لوستلی کيږي او که رکوع نه پس؟ انس رضي الله عنه وايي: د رکوع نه مخکې ځکه قنوت لوستلي وو رسول |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَعْدُ الرُّكُوعِ شَهْرًا إِنَّهُ كَانَ بَعَثَ أُنَاسًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ سَبْعُونَ رَجُلًا |
| الله صلی الله عليه وسلم د رکوع نه پس يوه مياشت ځکه نبي عليه السلام يو څو صحابه قراء چې تعداد يې اويا وو |
| فَأُصِيبُوا فَقَنَتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا |
| وليږل هغوي شهيدان کړی شوي وو ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم رکوع نه پس دعا قنوت لوستلو يوه مياشت |

يَدْعُو عَلَيْهِمْ . (متفق عليه)(١)

او د قراو شهید کولو والا د پاره یې بد دعاء کوله.

**توضیح**: **قراء سبعون**: دا اویاء قراء اصحاب صفه نه وو د غریبانو طالب علمانو یو طرف نه علم حدیث او علم التفسیر حاصلولو، دویم طرف نه په یوه جهادي مدرسه کې هر وقت د جهاد د پاره په قطعه منتظره کې ناست وو، او چې کوم ځای کې ضرورت شي نو هلته به جهاد له ځي.

اهل نجد د دوکې په طور باندې هغوی د معلمانو په حیثیت د حضور ﷺ نه وغوښتل او حضور ﷺ ورسره د دین تعلیم او تبلیغ د پاره روان کړل چې کله دا قراء د مکې او عسفان مینځ ته ورسیدل نو د رعل او ذکوان قبیلو پرې د ظلم حمله وکړه او د یو نه سوا ټول یې شهیدان کړل هغه یو هم د زخم په حالت کې راغی حضور ﷺ ته چې پته ولګیده ډیر زیات خفه شو او یوې میاشتې پورې یې د دغه قبیلو د پاره بد دعاء وکړه په قنوت نازله سره، دا واقعه په څلورم هجري کې راغلې وه. (المرقات ۳/۳۵۹).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي:

### قنوت نازله ټولو مونځونو کې هم لوستلی کیږي:

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ شَهْرًا مُتَتَابِعًا فِي الظُّهْرِ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ قنوت لوستلي دی یوه میاشت مسلسل په ماسپښین |
| وَالْعصرِ وَالْمغربِ وَالْعِشَاءِ وَصَلَاةِ الصُّبْحِ إِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» مِنَ الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ |
| مازیګر، ماښام، ماسخوتن او سحر مونځونو کې په آخري رکعت کې د سمع الله لمن حمده ویلو نه پس |
| يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ : عَلَى رِعْلٍ وَ ذَكْوَانَ وَ عُصَيَّةَ وَ يُؤَمِّنُ |
| دې کې نبي علیه الصلاة والسلام د بنو سلیم څو قبیلې، رعل، ذکوان او عصیه ته بد دعاء کړې وه او آمین به |
| مَنْ خَلْفَهُ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)(۱). |
| ویلو هغه خلکو چې وروستو ورپسې ولاړ وو. |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۸۹/۲، رقم الحديث ۱۰۰۲، ومسلم في الصحيح ٤٦٨/۱ رقم الحديث ۳۰۱-۶۷۷، وأبو داود ۱٤۳/۲ رقم الحديث :۱٤٤٤

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۹۰/۲، رقم الحديث ۱۰۰۳، ومسلم في الصحيح ٤٦۸/۱ رقم الحديث ۲۹۹-۲۷۷.

## قنوت نازله د ضرورت د حده پورې دی:

﴿٤﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا
حضرت انس رضي الله عنه راوي دي وايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو میاشت دعاء قنوت ویلې دی

ثُمَّ تَرَكَهُ. (رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ)[1].
بیا حضور صلی الله علیه وسلم قنوت پرېښی دو.

**توضیح**: **ثم ترکه**: دا حدیث د احنافو مضبوط دلیل دی، قنوت نازله یو وختي څیز دی د ضرورت لاندې وي او پس د رکوع نه وي او عامو مونځونو کې هم وي. (المرقات ۳/۳۶۰).
لیکن قنوت وتر مؤقت نه وي بلکې د ماسخوتن نه پس همیشه جاري او ساري وي شوافع او مالکیه فرمايي د سحر مونځ کې قنوت نازله همیشه دپاره دی او نورو مونځونو کې په وقت د ضرورت حادثه کې ویلی کیږي.

## همیشه د پاره قنوت نازله لوستل بدعت دی:

﴿٥﴾ وَ عَنْ أَبِي مَالِك الْأَشْجَعِيِّ قَالَ : قُلْتُ لِأَبِي : يَا أَبَتِ إِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَلْفَ
ابومالک الاشجعي رضي الله عنه وايي ما د خپل پلار نه تپوس وکړو پلاره بې شکه مونځ کړي دي وروسته د

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَبِي بَكْرٍ وَ عُمَرَ وَ عُثْمَانَ وَ عَلِيٍّ هٰهُنَا
رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهم او دلته

بِالْكُوفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ أَكَانُوا يَقْنُتُونَ ؟ قَالَ : أَيْ بُنَيَّ مُحْدَثٌ ".[2]
کوفه کې پنځه کالو پورې آیا دوي به دعاء قنوت لوسته؟ هغه وفرمایل زما زویه! دعاء قنوت بدعت دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د روژې نصف ثاني کې د قنوت ثبوت:

﴿٦﴾ عَنِ الْحَسَنِ : أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ
حسن بصري رحمه الله وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه خلک جمع کړل او ابي بن کعب یې امام جوړ کړو

(١) أخرجه مسلم ١/٤٦٩ رقم الحديث: ٣٠٤-٦٧٧، وأبو داود ٢/١٤٣ رقم الحديث: ١٤٤٥، والنسائي ٢/٢٠٣، رقم الحديث: ١٠٧٩.
(٢) أخرجه الترمذي في السنن ٢/٢٥٢ رقم الحديث: ٤٠٢ والنسائي ٢/٢٠٤ رقم الحديث ١٠٨٠.

فَكَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ لَيْلَةً وَلَا يَقْنُتُ بِهِمْ إِلَّا فِي النِّصْفِ الْبَاقِي

ابي بن كعب رضي الله عنه شل ركعاته تراويح وكړې او هغه به خلكو ته دعاء قنوت نه ويل سوا د نصف ثاني د رمضان

فَإِذَا كَانَتِ الْعَشْرُ الْأَوَاخِرُ تَخَلَّفَ فَصَلَّى فِي بَيْتِهِ

نه نو رو ورځو كې، كله چې به آخري لس ورځې پاتې شوې، ابي بن كعب مسجد ته رانغى خو مونځ يې كور

فَكَانُوا يَقُولُونَ : أَبَقَ أُبَيٌّ.[1]

كې وكړو ، خلكو ويل : ابي وتختيدو.

وَ سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ. فَقَالَ : قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

انس بن مالک نه چا د دعاء قنوت باره كې تپوس وكړو هغه وويل چې دعاء قنوت رسول الله صلى الله عليه وسلم د

بَعْدَ الرُّكُوعِ وَ فِي رِوَايَةٍ : قَبْلَ الرُّكُوعِ وَ بَعْدَهُ . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[2].

ركوع نه پس كړې، يو بل روايت كې دي چې نبي عليه السلام كله د ركوع نه مخكې او كله وروسته كړې دى.

**توضيح : ابق أبي** : يعنې ابي بن ركعب د غلام په شان وتختيدو ، خلكو دا ځكه وويل دوي د حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه غير حاضري خوښه نه كړه كيدى شي هغه ځه مجبور وو چې شرعي طور باندې معذور وو .حضرت ابي بن كعب سيد القراء دى ځكه عمر رضي الله عنه تراويحو د پاره امام جوړ كړو . ( المرقات ۳۶۵-۳/۳۶۶)

دا حديث د شوافعو مستدل دى .

**نصف رمضان** كې دعاء قنوت شوى دى او يو جزء اعتبار سره دا حديث د احنافو هم دليل دى ، احناف په ټولو احاديثو كې د تطبيق قائل دي او دلته **بعد الركوع** او **قبل الركوع** دواړه عملونه وجود ته راغلل.

احناف **قبل الركوع** قنوت د ماسخوتن وترو باندې حمل كوي او **بعد الركوع** يې په قنوت نازله باندې حمل كوي .



---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱۳۶/۲ رقم الحديث : ۱۴۲۹ .

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۳۷٤/۱ رقم الحديث : ۱۱۸۳.

۱۸ جمادي الاولى ۱٤۱۰هـ

# بَاب قيام شهر رَمَضَان:

قيام رمضان نه مراد تراويح دي ، علامه نووي فرمايي: **المراد بقيام رمضان التراويح .**

علامه كرماني رَحِمَهُ اللهُ اتقان كې دې باندې اجماع نقل كړې ده فرمايي : **اتفقوا على ان المراد بقيام رمضان صلوة التراويح (فتح الباري ج ٤ ص ٢١٧) (المرقات ٣/٣٦٧).**

تراويح د ترويحة جمع ده او ترويحه په معنى د راحت دى چونكې څلورو ركعاتو نه پس مونځ گزار استراحت كوي دې ته ځكه تراويح ويل كيږي .

**د قيام رمضان متعلق اولنى بحث** : دې باندې د علماو اتفاق دى او اجماع ده چې **قيام الليل** جدا مونځ دى او قيام شهر رمضان جدا مونځ دى دواړه جدا جدا مونځونه دي د دواړو وختونه جدا جدا دي او د دواړو نومونه هم جدا جدا دي ، قيام الليل د تهجد د پاره استعماليږي ، قيام شهر رمضان د تراويحو د پاره خاص دى دا مناسب نه ده بعضې خلك د تراويحو پټولو د پاره تهجد ورته وايي او يا وايي رمضان او غير رمضان كې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يولس ركعتو نه ډير مونځ د شپې نه دى كړى لهذا د اته ركعتو نه زيات ثابت نه دي كه تراويح ورته وايي او كه تهجد ، قرائن موجود دي چې دا دواړه جدا جدا مونځونه دي يو څه دلائل دا دى :

(۱) ډيرو احاديثو او د فقهاء كرامو او د محدثينو عنواناتو كې د دې مونځ اضافت خاص كړ روژې ته شوى دى لكه **قيام شهر رمضان، سننت لكم قيامه، يرغب في قيام رمضان من قام ايماناواحتساباً** وغيره وغيره دا اضافت د تخصيص فائده وركوي دا عام تهجد نه دي بلكې د تراويحو مونځ دى .

(۲) تهجد او تراويح كې د فرق دويمه قرينه داده چې د دواړو وخت جدا جدا دى تروايح د ماسخوتن نه پس دي او تهجد د شپې آخر يا مينځ كې وي .(۳) دريم فرق دادى چې صلوة الليل كله هم په جماعت سره نه كيږي ،نه يې د دې ترغيب وركړى دى د قيام رمضان جماعت كيږي او د دې ترغيب وركول كيږي .

(۴) تهجد د قرآن نه ثابت دي او تراويح د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنتو نه ثابتې دي لكه : **سننت لكم قيامه** .(۵) د تراويحو نه پس د تهجد مونځ صحابو اهتمام سره كولو كه يو څيز وى نو د تهجد و اهتمام به صحابو ولې كولو .(٦) د امت فقهاء او محدثين قيام الليل ته تهجد او قيام رمضان ته تراويح ويلي دي دواړو كې صفا فرق دى . (المرقات ٣/٣٦٧).

دا شپږ وجوهات دي ، دې سره تراويح او تهجد و كې فرق راځي .

**د قيام رمضان سره متعلق دويم بحث**: د احنافو په نزد تراويح سنت مؤکد دي د حنابلو هم دا مسلک دی. (کذا في المغني لابن قدامه ج ۲ ص ۱٦٦)

د تراويح سنت مؤکده باندې ډير دلائل دي: (۱) حضور ﷺ درې ورځې تروايح د جماعت سره کړې دي خلک چې کله ډير شو حضور ﷺ پريخودې او وجه يې دا بيان کړه ما ته ويره شوه چې دا مونځ په تاسو باندې فرض نه شي، دې نه معلومه شوه چې تراويح سنت مؤکده دي. (۲) حضور ﷺ فرمايي: وسننت لكم قيامه، يعنې قيام رمضان فرض نه دی بلکې روژې الله فرض کړې دي او تراويح زما سنت دي. (۳) حضور ﷺ د تروايح بنياد کيخوده او د عذر د وجې نه يې پرې هميشه والی نه دی کړی خو د حضور ﷺ نه پس صحابه کرامو او خلفاء راشدينو او د امت فقهاو دې باندې مواظبت او هميشه والی وکړو دا د سنت مؤکده د پاره دليل دی. (المرقات ۳/۳٦۸).

**د قيام رمضان سره متعلق دريم بحث: تراويح په جمعې سره بهتر دي او که کور کې ځانله؟**

د جمهورو فقهاو رای داده چې تراويح په جماعت سره يو ځای کول افضل دي، د بعضې علماو او فقهاو رای داده چې تراويح ځان له کور کې کول بهتر دي، د امام مالک او د ابويوسف رَحِمَهُمَا اللهُ يو يو روايت دا سې دی، بيا دغه علماو محاکمه وکړه که جماعت کې شريک نه شي او مونځ گزار د پاره تروايح کې د سستۍ خطره نه وي او دده مسجد ته راتللو د وجې نه جماعت ته نقصان نه رسيدو نو دې کس له مسجد کې يا کور کې کول برابر دي که چا ته خطره وي که مسجد ته رانغلو تراويح به پريښودل شي سُستي به راشي يا ددې وجې نه جماعت ته به نقصان ورسي بيا ده ته جماعت ته حاضريدل افضل دي. د اکثرو احنافو په نزد د تراويح د پاره جماعت کې شامليدل سنت دی. (المرقات ۳/۳٦۹).

بيا د احنافو جمهور علماء تراويح په جمعه کولو ته سنت على الكفايه به وايي مطلب دا چې که ټولې محلې نه د تراويحو جمعه ترک شي ټول گناه گار دي که بعضې کسانو وکړه د نورو ذمه فارغه شوه. حضور ﷺ درې ورځو پورې جماعت قائم کړو بيا يې پريښودو د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وخت کې دننه او بهر فتنې پيدا شوې نو دوي هم جماعت ترتيب قائم کولو د پاره فارغ نه شو. بيا عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمانانو لره په يو امام باندې جماعت سره يو ځای کړل او هغه وخت نه تر ننه پورې هغه سلسله قائم او دائم ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلک شروع کې اته رکعتو باندې جمع کړل بيا دولسو باندې جمع کړل بيا يې شلو باندې ټول يو ځای کړل او تر ننه پورې دغه طريقه چليږي. (المرقات ۳/۳٦۹).

## د تراويح متعلق څلورم بحث د د رکعاتونو تعداد:

د تراويحو د رکعاتونو تعداد کې د علماو په مينځ کې اختلاف دی، چې ددې څو رکعاته دي.

**د فقهاؤ اختلاف** :د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د ټولو فقهاؤ مسلک دادی چې تراویح شل رکعاته دي او وتر دري دد دې نه علاوه دي امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه دې باره کې مختلف اقوال منقول دي یو قول کې دده په نزد تراویح شل رکعاته دي ، دویم قول کې شپږدیرش رکعاته دي یو قول د ۴۱ رکعاتو هم دی ، علامه عیني رَحِمَهُ اللهُ فرمایي : امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه د شپږدیرش رکعاته قول مشهور دی د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد اصل تراویح شل رکعاته دي ، ددینه د زیاتو ذکر هم راغلی دی دا ټول نوافل دي په دغه وخت مکه مکرمه کې د څلورو رکعاتو نه پس د ترویحه په دوران کې خلکو د بیت الله طواف کولو ، تراویح شل رکعاته دي خو مدینه منوره کې د ترویحه په وخت د طواف امکان نه وو نو خلک به ودریدل او مزید څلور رکعاته به یې کول . لهذا څلورو ترویحاتو کې شپاړس رکعاته نفل جوړ شو ، دا یې تراویح کې شمار کړل نو د شپږدیرش قول یې وکړو ګینې اصل تراویح د شلو رکعاتو نه زائد نه دي ، ابن همام حنفي رَحِمَهُ اللهُ لږ ویریدو او وي فرمایل : اته رکعاته سنت دي دولس نفل دي خو د ویرید و ضرورت نشته مورچه مضبوطه ده غیر مقلدین او اهل ظواهر او د نن سبا سهولت پسند مسلمانان د اتو نه زیاتو تراویح ته بدعت وایي .سعودي عرب کې حرمینو شریفینو نه علاوه ښارونو کې اته رکعاته تراویح کولی شي شل رکعاته باندې اجماع ده ، دا تصور نه شي کیدی چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل طرف نه حکم کړی یا العیاذ بالله چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو بدعت ارتکاب کړی ، دې باندې کوم صحابي انکار نه دی کړی ازواج مطهراتو په دې باندې نکیر نه دی کړی دې نه معلومه شوه صحابه دا خبره پیژني چې د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا اقدام د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منشاء عین مطابق دی او ضرور عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو اشاره د دربار نبوت نه موندلې ده .

**د طرفینو دلائل** :غیر مقلدین نن سبا د اته رکعاتو نه زیاتې تراویح بدعت ګڼړي او ناجائز یې ګڼي او د اته رکعاتو اثبات باندې دلائل ذکر کوي :

(۱) مشهور دلیل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حدیث دی دد دې تخریج بخاري وغیره کړی دی حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو سائل په جواب کې فرمایي :**ما کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یزید في رمضان ولا في غیره علی احدی عشرة رکعة** .(المرقات ۳/۳۷۸).

**جواب** : ددې حدیث تعلق د تهجد و سره دی ترو ایحو سره بالکل نه دی د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حدیث کې **ولا في غیره** الفاظ تیز او از سره وایي داد تراویحو خبره نه ده بلکې د تهجد و خبره ده د روژې نه علاوه وختونو کې د تراویحو تصور نه شي کیدی ، د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په نزد د تراویح مونځ صرف اته رکعاته دی یا دې په شلو رکعاتو باندې اعتراض ولې ونه کړو مدینه منوره کې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عامو صحابو د پاره مرجع ده معلومه شوه چې داد تهجد و خبره ده د تراویحو نه ده .

(۲) د غير مقلدينو دويم دليل د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى الفاظ يې دا دي :

**عن جابر بن عبدالله انه عَلَيْهِ السَّلَامُ قام لهم في رمضان فصلى ثمان ركعات واوتر ۃ (ابن حبان)**

ددې نه معلومه شوه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اته ركعاتو جماعت كړى دى .

**جواب**: حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تراويحو ركعاتونو بيانولو اراده نه وه كړې بلكې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جماعت والا ركعاتونو بيان يې كړى دى چې د هغه د جمعې آته ركعاته وو ، دې نه علاوه څه ركعاتونه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څه وجې نه د جماعت نه بغير كړي ، جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اته ركعاتونه علاوه ركعات لره يې موضوع بحث نه ده ګرځولې او دې كې يې نه حصر كړى او نه يې نفې كړې ، دا تاويل او جواب په ظاهره كې كمزورى دى ، خو دا جواب ددې وجې نه مضبوط جوړيږي كه د تراويحو ركعاتونه اته وى نو ټول صحابه به په دې متفق وى او په شل ركعاته باندې به يې هيڅكله اتفاق نه وى كړى حالانكې صحابه كرام بغير د خبرو اترو شل ركعتو لره قبول فرمايلي او دې لره يې خپل معمول ګرځولى ځكه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سنتو باندې د صحابه كرامو نه ډير پوهيدو والا څوک نشته .

(۳) مؤطا امام مالک كې د سائب بن يزيد روايت داسې دى : **مالک عن محمد بن يوسف عن السائب بن يزيد انه قال امر عمر بن الخطاب ابي بن كعب وتميم الدارمي ان يقوما للناس باحدى عشرة ركعة . (المرقات ۳/۳۷۸)**.

ددې روايت جواب دا دى چې ډيره ممكنه ده چې دا د هغه زمانې خبره وي چې د شلو ركعاتو استقرار نه وو د جمهورو په كلام كې دا خبره ملاويږي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اته ركعاتو حكم هم شته او د دولسو هم خو قرار او استقرار شلو ركعاتو باندې دى صحابو شل ركعاته خپل كړې دي او پوره امت هم په دې باندې روان دى .

دې روايت كې ډير زيات اضطراب دى سائب بن يزيد نه صرف محمد بن يوسف داسې نقل كوي د سائب نور شاګردان د يوولسو په ځاى شل ركعاته نقل كوي .

جمهورو سره په شلو ركعاتو باندې ډير دلائل دي، دې باندې د ټول امت اتفاق دى چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تراويحو مونځ كړى دى دې باندې هم اتفاق دى چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه كې صحابو هم تراويح كولې دا هم ثابت دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ورځو پورې تراويح په جماعت سره كړى دي او دې باندې اتفاق هم دى چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عام معمول د تراويح په كور كې د كولو وو ، اوس د تعيين ضرورت دى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كله شل ركعاته تراويح كړې دي يا نه ، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابي بن كعب تراويحو د پاره امام مقرر كړو دې كې د شلو ركعاتو ثبوت شته يا نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې حديث نقل كولو چې د جمهورو اولني دليل دى :

**(۱) عن ابن عباس رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يصلي في رمضان عشرين ركعة في غير جماعة والوتر.(رواه البيهقي في سننه وابن ابي شيبه في مصنفه والطبراني والبغوي .(زجاجة المصابيح ج۱ ص ۳٦٦).**

ددې روايت ټول راويان ثقه دي صرف ابراهيم بن عثمان باندې کلام دی خو د ضعف سره ټولو محدثينو دده توثيق هم کړی دی ، يحيى بن معين په باره کې فرمايي : **شيخ ثقة كبير .**

**د حضرت عمر رضي الله عنه نه د شل رکعاتو تراويحو ثبوت** : (۲) شلو رکعاتو تراويحو په ثبوت باندې د جمهورو دويم دليل په مؤطا امام مالک کې د يزيد بن رومان روايت دی : **مالک عن يزيد بن رومان انه قال كان الناس يقومون في زمن عمر بن الخطاب في رمضان بثلاث و عشرين ركعة (مؤطا مالک)**

دا حديث د بلاغات مالک نه دی اګر چې مرسل دی خو د موصولاتو په حکم کې دی داسې مرسل هم د جمهورو دليل دی .

(۳) د جمهورو دريم دليل د حضرت سائب بن يزيد روايت دی : **عن يزيد بن حفصة عن السائب بن يزيد قال كانوا يقومون على عهد عمر بن الخطاب رضي الله عنه في شهر رمضان بعشرين ركعة وكانوا يقرؤن بالمئين وكانوا يتوكئون على عصيهم في عهد عثمان من شدة القيام (سنن كبرى بيهقي ج ۲ ص ٤٩٦)**

دا روايت بالکل صحيح الاسناد دی .

(۴) د جمهورو څلورم دليل د مصنف ابن ابي شيبه روايت دی : **عن يحيى بن سعيد ان عمر بن الخطاب امر رجلا يصلي بهم عشرين ركعة .(ج ۲ ص ۳۹۳).**

**(۵) عن عمر انه جمع الناس على ابي بن كعب وكان يصلي بهم عشرين ركعة .(بيهقي و ابن ابي شيبة زجاجة ج۱ ص ۳٦٦).**

**(٦) عن السائب بن يزيد قال كنا نقوم في عهد عمر بعشرين ركعة والوتر وفي رواية وعلى عهد عثمان و علي مثله . قال النووي اسناده صحيح (زجاجة المصابيح ج ۱ ص ۳٦٦).**

**(۷) وعن شبرمة وكان من اصحاب علي انه كان يؤمهم في رمضان فيصلي خمس ترويحات . (بيهقي ، زجاجة المصابيح ج۱ ص ۳٦٦).**

(۸) عن ابن ابي عبدالرحمن السلمي ان علياً دعا القراء في رمضان فأمر رجلا ان يصلي بالناس عشرين ركعة وكان علي يوتر بهم . (رواه البيهقي و زجاجة المصابيح ج١ ص ٣٦٦).

قال عطاء ادركت الناس وهم يصلون ثلاثة وعشرين ركعة بالوتر .

مشهور تابعي حضرت نافع فرمايي :لم ادرک الناس الا وهم يصلون تسعاً وثلاثين ويوترون منهاً بثلاث (فتح الباري ج٤ ٢٥٤).

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :و على هذا العمل منذ بضع و مأة سنة (حواله بالا)

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :و رأيت الناس يقومون بالمدينة بتسع وثلاثين ركعة و بمكة بثلاث وعشرين .

د دومره لويو علماو او فقهاو اقوال او د ټول امت اعمال او افعال که د چا د پاره دليل نه جوړيږي د دې مطلب دا شو چې دا تروايح کول پيژني نه ، دې باندې د امت اجماع ده آخر کې دا خبره د تراويحو د پاره فيصله کن دليل دی ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : عليكم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدين ، دا مضبوط او محكم دليل دی د بد قسمتی نه غير مقلدين د صحابو تقليد هم نه كوي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

## په جماعت سره تراويح کول د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت دي :

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ حُجْرَةً فِي الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيرٍ فَصَلَّى |
| زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پوزي نه حجره جوړه کړه او نفل مونځونه |
| فِيهَا لَيَالِيَ حَتَّى اجْتَمَعَ عَلَيْهِ نَاسٌ ثُمَّ فَقَدُوا صَوْتَهُ لَيْلَةً |
| يې کړي په دې کې څو شپې تردې چې خلک جمع شول خلکو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غږ آواز محسوس نه کړو |
| وَ ظَنُّوا أَنَّهُ قَدْ نَامَ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَتَنَحْنَحُ |
| هغوي ګمان وکړو چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ده شو بعضې خلکو غاړه تازه کول شروع کړو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| لِيَخْرُجَ إِلَيْهِمْ . فَقَالَ : مَا زَالَ بِكُمُ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ صَنِيعِكُمْ حَتَّى |
| (راپاڅي) او بهر تشريف راوړي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ستاسو کار زه چې يې وينم برابر روان دی |
| (يعني په جمعې سره د تراويحو کولو شوق او د عبادت په معامله کې ستاسې دا جذبه هميشه پاتې شي) |

خَشِيتُ أَنْ يُكْتَبَ عَلَيْكُمْ وَ لَوْ كُتِبَ عَلَيْكُمْ
بیا یې وفرمایل: ما ته دا ویره ده چې دا مونځ په تاسو فرض نه شي که دا مونځ فرض شي نو تاسو به د دې
مَا قُمْتُمْ بِهِ . فَصَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ فَإِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ
د کولو نه عاجز پاتې شئ نو ای خلکو تاسو خپلو کورونو کې مونځ کوئ د انسان بهترین مونځ هغه دی
فِيْ بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ ). (متفق علیه)[1]
چې خپل کور کې یې کړي وي علاوه د فرض مونځ نه.

## دروژې میاشتو کې د تراویح فضیلت:

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَغِّبُ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ أَنْ
ابو هریرة رضی الله عنه راوي دي وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د قیام رمضان ترغیب ورکولو خو صحابو ته
يَأْمُرَهُمْ فِيهِ بِعَزِيمَةٍ فَيَقُولُ : « مَنْ قَامَ رَمَضَانَ
یې په تاکید سره حکم نه کولو، حضور صلی الله علیه وسلم به فرمایل: کوم کس چې قیام وکړي په رمضان کې په
إِيمَانًا وَ احْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ
صحیح اعتقاد سره د حصول ثواب د پاره اولنې صغیره ګناهونه به یې معاف شي او وفات شو رسول الله
صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ الْأَمْرُ عَلَى ذٰلِكَ
صلی الله علیه وسلم وفات شو او قیام رمضان معامله دغه رنګ وه یعنې د تراویحو د پاره جماعت مقرر نه وو
ثُمَّ كَانَ الْأَمْرُ عَلَى ذٰلِكَ فِيْ خِلَافَةِ
(بلکې چاچې څنګه غوښتل د حصول ثواب د پاره هغه رنګه یې کول) بیا دغه صورت حال وو په خلافت
أَبِي بَكْرٍ وَ صَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلَى ذٰلِكَ » . (رَوَاهُ مُسْلِم).[2]
د ابوبکر صدیق رضی الله عنه کې هم او د عمر رضی الله عنه د خلافت د شروع په وخت کې هم دغه معمول وو (خو بیا

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۲۱۴، رقم الحديث : ۷۳۱، مسلم ۱/۵۳۹،رقم الحديث: ۲۱۳-۷۸۱، أبوداؤد ۲/۱۴۵، رقم الحديث:۱۴۴۷،ترمذي۲/۳۱۲،رقم الحديث: ۴۵۰،نسائي۳/۱۹۷،رقم الحديث: ۱۵۹۹، مؤطا امام مالک ۱/۱۳۰، رقم الحديث : ۴، من كتاب صلاة الجمعة ، مسند أحمد ۵/۱۸۲.

(۲) أخرجه مسلم ۱/۵۲۳،رقم الحديث: ۱۷۴-۷۵۹.

حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د تراويحو مونځ د پاره د جماعت حکم وکړو او التزام یې شروع کړو).

## نفل مونځ په کور کې کول بهتر دي:

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا قَضَى أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ فِي مَسْجِدِهِ |
| جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوي دی وايي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: تاسو کې چې څوک خپل مونځ مسجد کې |
| فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهِ نَصِيبًا مِنْ صَلَاتِهِ فَإِنَّ اللهَ جَاعِلٌ فِي بَيْتِهِ |
| وکړي هغه ته په کار دي چې د مونځ څه حصه کور ته هم وساتي ځکه چې الله تعالی پیدا کوي دده په کور |
| مِنْ صَلَاتِهِ خَيْرًا». (رَوَاهُ مُسلم). (۱) |
| دده د مونځ په وجه خير. |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ:

## حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درويشت، پنځه ويشت، اووه ويشت ورځې تراويح کړی دي:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ صُمْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَمَضَانَ فَلَمْ يَقُمْ بِنَا شَيْئًا مِنَ الشَّهْرِ |
| ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي: مونږ د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روژې نيولې خو قيام يې ونه کړو مونږ ته د مياشتې |
| اکثرو ورځې (يعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د رمضان په شپو کې مونږ سره د فرض مونځ نه علاوه بل مونځ نه دی کړی) |
| حَتَّى بَقِيَ سَبْعٌ فَقَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ |
| تردې چې اووه ورځې باقي پاتې شوي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام زمونږ سره د شپې دريمې حصې پورې قيام وکړو (يعنې |
| فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ |
| مونږ ته يې تراويح وکړي) چې کله شپږ شپې پاتې شوې نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام قيام ونه کړو بيا چې کله پنځه شپې |
| قَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ فَقُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| پاتې شوې نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونږ ته د نيمې شپې پورې قيام وکړو نو ما وويل اې د الله رسوله! کاش چې د |
| لَوْ نَفَّلْتَنَا قِيَامَ هٰذِهِ اللَّيْلَة. قَالَ فَقَالَ: «إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ |
| نن شپې قيام نور رو نه موزيات کړې وې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې کله يو کس (فرض) مونځ امام سره وکړي |

(۱) أخرجه مسلم ۵۳۹/۱، رقم الحديث: ۲۱۰-۷۷۸، ابن ماجه ۴۳۸/۱، رقم الحديث: ۱۳۷۶، مسند أحمد ۱۵/۳.

حَتّٰى يَنْصَرِفَ حُسِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ » . فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ
اوددې نه فارغ شي او واپس ځي دده دپاره دټولې شپې عبادت ثواب ليکلی شي کله چې څلورشپې پاتې
لَمْ يَقُمْ بِنَا حَتّٰى بَقِيَ ثُلُثُ اللَّيْلِ فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ
شوې زمونږ سره يې قيام ونه کړو تردې چې د شپې دريمه حصه پاتې شوه چې درې شپې پاتې شوې
جَمَعَ أَهْلَهُ وَ نِسَاءَهُ وَ النَّاسَ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى
حضور ﷺ خپل کور والا او خپلې زنانه او خلک جمع کړل او مونږ ته يې قيام وکړو تردې چې
خَشِينَا أَنْ يَفُوتَنَا الْفَلَاحُ . قَالَ قُلْتُ : وَمَا الْفَلَاحُ ؟
مونږ ته دا ويره وشوه چې چيرته فلاح رانه فوت نه شي ، راوي وايي : ما تپوس وکړو فلاح څه شی دی ؟
قَالَ : السَّحُورُ . ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ . (رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ).[1]
ابوذر رضي الله عنه وويل: د پيشمنې خوراک بيانبي عليه السلام د مياشتې باقي ورځوکې زمونږ سره قيام ونه کړو
وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ إِلَّا أَنَّ التِّرْمِذِيَّ لَمْ يَذْكُرْ: ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ .(ابن ماجه ١٣٢٧)
ابن ماجه هم دغه شان روايت نقل کړی او ترمذي خپل روايت کې ثم لم يقم بنا بقية الشهر الفاظ ذکر نه دي کړي

## د شعبان د مياشتې د پنځلسمې شپې فضيلت :

﴿٥﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : فَقَدْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَيْلَةً فَإِذَا هُوَ
عائشه رضي الله عنها وايي يو شپه ما حضور ﷺ په بستره باندې ونه موندو يودم څه گورم چې نبي
بِالْبَقِيعِ فَقَالَ " أَكُنْتِ تَخَافِينَ أَنْ يَحِيفَ
عليه السلام بقيع کې موجود دی نبي عليه السلام وفرمايل: آيا تا ته ددې خبرې ويره وه چې په تا باندې به ظلم وکړي
اللّٰهُ عَلَيْكِ وَ رَسُولُهُ ؟ قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللّٰهِ ! إِنِّي ظَنَنْتُ أَنَّكَ أَتَيْتَ بَعْضَ نِسَائِكَ
الله او دهغه رسول ؟ ما وويل يا رسول الله ! ما گمان وکړو چې حضور ﷺ به بلې ښځې خوا ته تلی

---

(١) أخرجه الترمذي ١٦٩/٣، رقم الحديث : ٨٠٦، نسائي ٨٣/٣، رقم الحديث : ١٣٦٤، ابن ماجه ٤٢٠/١، رقم الحديث : ١٣٢٧، دارمي ٤٢/٢، رقم الحديث : ١٧٧٧، مسند أحمد ١٥٩/٥.

فَقَالَ : إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَنْزِلُ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَغْفِرُ

وي حضور ﷺ وفرمايل : الله تعالى نيم شعبان كې د دنيا آسمان ته نزول فرمايي او معاف كوي

لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ غَنَمِ كَلْبٍ ". (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ)(1)

د بنو كلب قبيلې د چيلو كنډك د ويختو نه هم زيات تعداد كې ګناه.

وَ زَادَ رَزِينٌ : « مِمَّنِ اسْتَحَقَّ النَّارَ ».

او رزين رحمه الله دا الفاظ هم را نقل كړي كوم خلك چې د دوزخ مستحق شوې وي هغوي بخښلى شي

وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : سَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَعْنِي الْبُخَارِيَّ يضعف هٰذَا الحَدِيث.

امام ترمذي رحمه الله وايي ماد محمد يعني امام بخاري نه اوريدلي دي چې دا حديث ضعيف دى.

**توضيح : البقيع** : د مدينې منورې مشهورې مقبرې ته جنت البقيع ويلى كيږي او بقيع غرقد هم دى دې ته بقيع هم وائي حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي ما ويل كه د بلې بي بي كور ته ورغلې دى خو په قبرستان كې وو، نو بيا زر زر واپس كور ته راغلو .(المرقات ۳/۳۷۴).

بنو كلب د عربو د مشهورې قبيلې نوم دى چې هلته چيلى ډيرې وي . (المرقات ۳/۳۷۵).

**ينزل** : د الله تعالى لائق شان د دنيا آسمان ته راكوزيږي ،(المرقات ۳/۳۷۵).

**ينزل اى ما يليق بشانه** : ددې تشريح مخكې شوې ده . (المرقات ۳/۳۷۵).

د ماه شعبان پنځلسمې شپې ته شب براءت ويلى كيږي .يعني د ګناهونو نه د خلاصي شپه د شب براءت متعلق دا پيژندل په كار دي چې عوام الناس دې شپه كې د حدود شرعيه نه تجاوز كوي رڼاګانې او رلوي او نور منكرات او بدعات كوي ، بعضې اهل حق اعتدال سره رد وكړو بعضو د رد سره سره ددې شپې د فضيلت نه انكار وكړو د شب براءت فضيلت د احاديثو نه ثابت دى ، لس صحابو ددې حديث تخريج كړى دى اګر چې فني لحاظ سره ضعيف دى خو دا مطلب نه دى چې ناقابل عمل دى د امام احمد بن حنبل رحمه الله قول دى چې مونږ كله احكام د احاديثو نه اخلو نو (تشددنا) مونږ سختي كوو او كله چې د فضائلو احاديث اخلو نو (تسهلنا) مونږ نرمي كوو څه خاص عبادت په دې شپه كې مقرر نه دى او خپل طرف نه تحديد او تعيين هم جائز نه دى خو خير القرون كې صالحينو دې شپه كې اهتمام سره عبادت كولو دې حد پورې يې فضيلت دى.

---

(۱) اخرجه الترمذي ۳/۱۱۵، رقم الحديث : ۷۳۹، ابن ماجه ۱/۴۴۴، رقم الحديث : ۱۳۸۹، مسند احمد ۵/۱۵۹.

**د برات په شپه قبرستان ته تلل**: دې خبرې نه انکار نشته چې حضور ﷺ قبرستان ته شب براءت کې تشریف وړی ددې مطلب دانه دی چې همیشه معمول جوړ شي حضور ﷺ عمر کې یو ځلې تشریف وړی وو یو ځل تللو سره څه نشته خو هر کال شب براءت کول او اهتمام سره کول داد حد شرعي نه تجاوز دی او ناجائز دی.

**د پنځلسم شعبان روژه**: د شب براءت نه په صبا چې د کومې روژې ذکر دی حدیث کې نشته اګر چې ضعیف دی خو په خپله د شعبان روژو ذکر احادیثو کې دی بیا د ایامو بیضو ډیر ترغیب دی. د شب براءت د وجې نه دا روژه نه بلکې د ایام بیض پنځلسم شعبان په خپله مامور به او مرغوب فیه دی. ددې وجې نه دا روژه نیول په کار دي ددواړو ثواب به ان شاء الله ملاو شي او پنځلسم تاریخ د خصوصیت نه به بچ شي.

## د نفل مونځ په کور کې کولو فضیلت:

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَلَاةُ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ أَفْضَلُ مِنْ |
| زید بن ثابت رضي الله عنه راوي دی وایي چې حضور ﷺ فرمایي دسړي مونځ په کور کې بهتر دی د |
| صَلَاتِهِ فِي مَسْجِدِي هٰذَا إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد، وَالتِّرْمِذِيّ). [1] |
| هغه مونځ نه چې هغه زما مسجد کې وشي علاوه د فرض نه. |

**توضیح**: کور کې نفل کولو فضیلت د کور د وجې نه دی مسجد کې د ممانعت د وجې نه نه دی که یو کس سنت او نوافل په مسجد کې کول غواړي بغیر د کراهت جائز دي لیکن په کور کې کول افضل دي. (المرقات ۳۶۷-۳/۳۷۷).

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

## د حضرت عمر رضي الله عنه تراویحو د پاره جمعه مقررول:

| |
|---|
| ﴿٧﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيِّ قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ لَيْلَةً فِي رَمَضَانَ |
| عبدالرحمن بن عبد القاري راوي دي وایي چې د عمربن خطاب رضي الله عنه سره لاړم یو شپه په رمضان کې |
| إِلَى الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ أَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُونَ يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهِ |
| مسجد ته هلته مونږ خه کسان ولیدل چې جدا جدا وو (یعني) چا (دماخوستن مونځ نه پس نفل) یواځې کول |

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/ ۶۳۲، رقم الحديث ۱۰۴۴، و أخرجه الترمذي في السنن ۲/ ۳۱۲، رقم الحديث: ۴۵۰.

وَيُصَلِّي الرَّجُلُ فَيُصَلِّي بِصَلَاتِهِ الرَّهْطُ فَقَالَ عُمَرُ : إِنِّي أَرَى لَوْ جَمَعْتُ هَؤُلَاءِ عَلَى قَارِئٍ وَاحِدٍ

او چا داسې کولو چې څو نور کسان هم ورسره وو نو عمر رضي الله عنه وویل: زه که دوي یو قاري پسې جمع کړم

لَكَانَ أَمْثَلَ ثُمَّ عَزَمَ فَجَمَعَهُمْ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ثُمَّ خَرَجْتُ

نو بهتره به وي هغه ددې اراده وکړه او ټول یې ابي بن کعب پسې جمع کړل عبدالرحمن وايي زه بیا لاړمد

مَعَهُ لَيْلَةً أُخْرَى وَ النَّاسُ يُصَلُّونَ بِصَلَاةِ قَارِئِهِمْ .

عمر رضي الله عنه سره یو شپه مسجد ته نو ټولو د خپل امام (یعني ابي ابن کعب) پسې مونځ کولو (دایې چې

قَالَ عُمَرُ : نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هٰذِهِ وَ الَّتِي تَنَامُونَ عَنْهَا

ولیده) نو عمر رضي الله عنه وویل: دا ښه بدعت دی، او د تهجد و هغه مونځ چې تاسو ترې اوده کیږئ د تراویحو

أَفْضَلُ مِنَ الَّتِي تَقُومُونَ . يُرِيدُ آخِرَ اللَّيْلِ

د هغه مونځ نه بهتر دی چې تاسو یې دا وخت کوئ، ددې نه د عمر رضي الله عنه مراد د شپې آخره حصه ده د غه

وَكَانَ النَّاسُ يقومُونَ أَوله. (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ). [1]

وخت خلکو د تراویحو مونځ اول وخت کې کولو .

**توضیح**: اوزاع: یعنې خلک جدا جدا جماعتونه او ټکړو کې شوې وو چا نفل کول چا سنت او چا تراویح ځان له کولې او چا جماعت سره کولې د اوزاع همدا مطلب دی او د **متفرقون** جملې ګویا د اوزاع تفسیر دی. (المرقات ۳/۳۷۷).

**نعمت البدعة هذه**، دلته بدعت خپل اصطلاحي مفهوم سره نه دی بلکې دلته لغوي معنی سره مستعمل دی او لغت کې بدعت نوي څیز ایجاد په معنی سره دی د حضرت عمر رضي الله عنه مقصد دا دی چې ټول خلک جماعت سره په تراویحو باندې یو ځای کول او شل رکعاته په پابندي سره یو ځای کول څه بهترین نوي انتظام او جدید طرز دی. (المرقات ۳/۳۷۸).

د حضرت عمر رضي الله عنه دې جدید انتظام او جدید تقرر ته جدید ویلې شي د تراویحو اصل جماعت ته نو ایجاد نه وایي، اصل جماعت خو حضور صلی الله علیه وسلم په خپله شروع کړی وو .

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ٤/٢٥٠، رقم الحديث : ٢٠١٠.

دلته د بدعت څو اقسام طرف ته د تقسيم ضرورت نشته ځکه چې دا لفظ په خپل لغوي معنی کې استعمال شوې دی بدعت اصطلاحي شرعي هغه خو په قبيح کې قبيح دی په هغې کې څو څه تقسيم نشته دی ، چې ددې تفصيل په توضيحات اول جلد **باب الاعتصام بالكتاب والسنة** په شروع کې د بدعت متعلق تفصيل شوی دی .

**والتي تنامون عنها افضل من التي تقومون** : دې عبارت کې دوه ځای **التي** لفظ راغلی دی دواړو ځايونو کې چې موصول خپلې صلې سره يو ځای شي صفت دی او ددې موصوف محذوف دی ددې موصوف کې دوه احتماله دي : (١) ددې موصوف **الصلوة** دی يعني **الصلوة التي تنامون عنها** ، مطلب دادی هغه مونځ چې د خوب د وجې نه پاتې شي د هغه مونځ نه افضل دی کوم چې تاسو کوئ ، په دې صورت کې حضرت عمر رضي الله عنه دا ويل غوښتل چې د تهجدو مونځ کوئ دې کې د خوب د وجې نه سُستي مه کوئ ، دغه ستاسو د تراويحو نه افضل دی ، د عمر رضي الله عنه ددې خبرې نه د امسئله هم حل شوه چې تهجد او تراويح ځان له ځانله عبادت دی ، دويم احتمال دادی چې دلته موصوف **الساعة** دی يعني هغه ساعت چې تاسو ويخ يې او د تراويحو مونځ په کې کوئ دغه وخت نه هغه وخت افضل دی چې هغې کې تاسو مونځ نه کوئ بلکې اوده کيږئ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د وروستو وختونو فضيلت ذکر کوي او د تهجدو د پاره ترغيب ورکوي .

## د تراويحو د ابتدائي وخت نقشه :

| |
|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنِ السَّائِبِ بن يزيد قَالَ : أَمَرَ عُمَرُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ وَ تَمِيمًا الدَّارِيَّ أَنْ يَقُومَا لِلنَّاسِ |
| سائب بن يزيد وايي چې عمر رضي الله عنه ابي بن کعب او تميم دارمي ته حکم وکړو چې مونځ ورکړي خلکو ته |
| فِي رَمَضَانَ بِإِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً فَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ بِالْمِئِينَ |
| په روژه کې يولس رکعاته او (په دې وخت کې) امام (په تراويحو کې) هغه سورتونه ويل چې هغې کې د سلو |
| حَتَّى كُنَّا نَعْتَمِدُ عَلَى الْعَصَا مِنْ طُولِ الْقِيَامِ فَمَا كُنَّا نَنْصَرِفُ إِلَّا فِي فُرُوعِ الْفَجْرِ . (رَوَاهُ مَالِكٌ)[1] |
| نه زيات آيتونه وو د قيام د وجې نه مونږ به د کونتې په مدد سره ولاړ وو او پيشمي ته نژدې به فارغيدو . |

**توضيح** : دې حديث نه معلومه شوه چې حضرت عمر رضي الله عنه د تراويحو اته رکعاتو حکم ورکړی وو دې نه غير مقلدين استدلال کوي ددې جواب مخکې شوې دی داد ابتدائي وخت يوه نقشه او مرحله وه

---

(١) أخرجه مالک في الموطا ١/١١٥، رقم الحديث : ٤، من كتاب الصلاة في رمضان.

حضرت عمر رضي الله عنه لا تر دې وخته پورې د شلو رکعاتو اعلان نه وو کړې وروسته هر څه مخې ته راغلل او د صحابه کرامو او د ټول امت اجماع په دې باندې وشوه.

**نعتمن:** نوافلو او سنتو کې د مدد اخيستلو ګنجائش شته که ستړې والې ډير شي نو بيا مدد اخيستل جائز دي.

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ الْأَعْرَجِ قَالَ: مَا أَدْرَكْنَا النَّاسَ إِلَّا وَهُمْ يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ فِي رَمَضَانَ قَالَ: وَكَانَ الْقَارِئُ |
| اعرج تابعي رحمه الله وايي مونږ هميشه خلکو ته کتلې چې روژه کې کفارو باندې لعنت وايي او قاري سورة |
| يَقْرَأُ سُورَةَ الْبَقَرَةِ فِي ثَمَانِ رَكَعَاتٍ وَإِذَا قَامَ بِهَا فِي ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً رَأَى النَّاسُ |
| بقرة اته رکعتونو کې لوستله او چې کله به يې سورة بقره دولسو رکعاتو کې ولوستله نو خلک به پوه شو |
| أَنَّهُ قَدْ خَفَّفَ. (رَوَاهُ مَالِك)[1] |
| چې مونځ يې سپک وکړو. |

## د تراويحو آخري وخت د پيشمني پورې دی:

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ: سَمِعتُ أُبَيًّا يَقُولُ: كُنَّا نَنْصَرِفُ فِي رَمَضَانَ مِنَ الْقِيَامِ |
| عبد الله بن ابي بکر رضي الله عنه وايي ما د ابي بن کعب رضي الله عنه نه اوريدلي چې مونږ به روژه کې د قيام نه فارغه |
| فَنَسْتَعْجِلُ الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ فَوْتِ السَّحُورِ. |
| کيدو نو خادمانو ته به مو په تلوار د طعام راوړلو ويله د دې ويرې نه چې د پيشمني وخت تير نه شي. يو |
| وَفِي أُخْرَى: مَخَافَةَ الْفَجْرِ. (رَوَاهُ مَالِك)[2] |
| بل روايت کې دا الفاظ دي د سحر کيدو د ويرې نه. |

## پنځلسم شعبان کې د لوي لوي تبديليانو فيصلې کيږي:

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «هَل تدرين مَا هَذِهِ اللَّيْلَة؟» يَعْنِي |
| عائشه رضي الله عنها وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل: تاسو ته پته ده چې دې شپه کې څه کيږي يعني |
| لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ قَالَتْ: مَا فِيهَا يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ: « فِيهَا أَنْ يُكْتَبَ كُلُّ |

(۱) أخرجه مالک في الموطا ۱/۱۱۵، رقم الحديث: ٦.

(۲) أخرجه مالک في الموطا ۱/۱۱٦، رقم الحديث: ۷، من کتاب الصلاة في رمضان.

پنځلسمه شپه د شعبان کې ؟ما وویل ای د الله رسوله ! څه کیږي ؟دې شپه کې لیکلي کیږي هرهغه څوک

مَوْلُودٍ مِنْ بَنِي آدَمَ فِي هٰذِهِ السَّنَةِ وَ فِيهَا أَنْ يُكْتَبَ كُلُّ هَالِكٍ مِنْ بَنِي آدَمَ

چې دې کال کې پیدا کیږي د بني آدمو نه او څوک چې بني آدمو کې وفات کیږي دې شپه کې لیکلې کیږي

فِي هٰذِهِ السَّنَةِ وَ فِيهَا تُرْفَعُ أَعْمَالُهُمْ وَ فِيهَا تَنْزِلُ أَرْزَاقُهُمْ » . فَقَالَتْ :

په دې کال کې او په دې شپه کې د خلکو اعمال بره ځي او د بندګانو رزق ښکته راځي عائشې رضي الله عنها وویل

يَا رَسُولَ اللهِ مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا بِرَحْمَةِ اللهِ تَعَالَى ؟ فَقَالَ :

یا رسول الله ! څوک به هم د الله د رحمت نه بغیر جنت ته نه داخلیږي ؟ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

« مَا مِنْ أحد يدخل الْجنَّة إِلَّا برحمة الله تَعَالَى » . ثَلَاثًا . قُلْتُ : وَلَا أَنْتَ

څوک هم د الله تعالی د رحمت نه په غیر جنت ته نه داخلیږي درې ځلې یې دا وفرمایل ما وویل او نه تاسو

يَا رَسُولَ اللهِ ؟ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى هَامَتِهِ فَقَالَ : « وَلَا أَنَا إِلَّا

یا رسول الله ؟ حضور صلی الله علیه وسلم خپل لاس خپل سر باندې کیښودو او وې فرمایل : آو نه زه، خو دا چې

أَنْ يَتَغَمَّدَنِيَ اللهُ بِرَحْمَتِهِ» . يَقُولُهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيرِ).

الله تعالی ما د خپل رحمت په سوري کې واخلي ، دا الفاظ یې هم درې ځلې وفرمایل .

**توضیح : ان یکتب کل مولود :** دا هرڅه تقدیر کې لیکلی شوي دي او په لوح محفوظ کې محفوظ دي خو پنځلسم شعبان کې د دې تجدید کیږي او د ټول کال لوي واقعات جدا لیکلی کیږي دې کې د انسان پیدا ایښت او مرګ لیکلی کیږي ، د انسان رزق لیکلی کیږي ، اعمال په بره ځي . عائشې رضي الله عنها خیال وکړو چې اعمال خو د دخول جنت د پاره علت اصلیه نه دی .(المرقات ۳۸۳-۳/۳۸۴).

د انسان د اعمالو کولو نه مخکې دده په حق کې لیکلی کیږي چې دا اعمال به کوي نو حضرت عائشې رضي الله عنها دا خیال وکړو چې د دخول جنت محض تقدیر الهي سره تعلق لري دی اعمالو ته دلته څه دخل نشته . حضرت عائشې رضي الله عنها د حضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو آیا معامله داسې ده چې هر کس به د الله رحمت سره جنت ته داخلیږي ؟

جواب کې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل : معامله داسې ده یو انسان هم په خپل عمل سره بغیر د الله د رحمت نه ، نه شي داخلیدی درې ځلې یې داسې وویل مطلب دا چې د جنت د پاره اعمال د سبب درجه لري خو د علت په درجه کې نه دي .

## شب براءت کې د کینه ګر او د مشرک مغفرت نه کیږي :

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَيَطَّلِعُ فِي |
| ابوموسی اشعري رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل : الله تعالی متوجه کیږي په |
| لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ فَيَغْفِرُ لِجَمِيعِ خَلْقِهِ إِلَّا لِمُشْرِكٍ أَوْ مُشَاحِنٍ» (رَوَاهُ ابْن مَاجَه). [1] |
| پنځلسم شعبان په شپه باندې دذنیا خلکو ته او د کینه ګر او د مشرک نه علاوه د خلکو مغفرت کوي . |
| وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ وَفِي رِوَايَته: «إِلَّا اثْنَيْنِ مُشَاحِنٍ وَقَاتِل نفس». [2] |

**توضیح** : **ليطلع** ، توجه سره کتلو ته ویلي کیږي ددې نه مراد دنیا آسمان ته نزول دی ددې تذکره په آحادیثو کې مذکور ده ، اطلاع الهي او نزول رباني نه مراد **مایلیق بشاله** دی او بعضو تجلي د انواراتو رباني مراد اخستی دی او دا تاویل دی.

**لمشرک**: د الله تعالی په ذات او د هغه په صفاتو کې د چا شریکولو ته شرک جلي ویلی شي او شرک خفي ریاکارۍ ته ویلی شي. (المرقات ۳/۳۸۶).

**او مشاحن** :باب **مفاعله** نه **مشاحن** کینه کوونکي ته ویلی کیږي باب سمع نه هم کینه ور معنی سره دی ، مسلمان نه علاوه کافر سره کینه ساتل مراد نه دی هغه منع نه دی .

زیر بحث حدیث کې صرف دوه قسم خلک مراد دي بلکې بعضې روایاتو کې قاطع رحم هم شامل دی او د **مسبل ازار** ذکر هم راغلی دی والدینو نه عاق سړي هم دي مسلسل شرابو والا هم شامل دی .(اشعة اللمعات ۱/۵۸۸).

شیخ عبدالحق رحمه الله فرمایي : نوف بکالي نه روایت دی یو ورځ حضرت علي رضي الله عنه نصف شعبان په شپه د کور نه داسې حالت کې راووتلو چې آسمان طرف ته یې مسلسل کتل بیا هغه وفرمایل : حضرت داؤد علیه السلام یو ځل آسمان طرف ته کتل او وي فرمایل : دا هغه ساعت دی چې دې کې څوک څه غواړي الله تعالی یې قبلوي څوک استغفار غواړي معاف کوي یې خو دا چې د غه کس جادوګر ټیکس وصولولو والا او یا عُشر والا یا کاهن وغیره نه وي . (اشعة اللمعات ۱/۵۸۸).

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴۴۵، رقم الحديث : ۱۳۹۰.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۲/۱۷۶.

## د نیمايي شعبان روژه او عبادت:

| |
|---|
| ﴿١٣﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ |
| حضرت علي رضي الله عنه راوي دي وايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كله چې نصف شعبان شپه شي |
| فَقُومُوا لَيْلَهَا وَ صُومُوا يَوْمَهَا فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَنْزِلُ فِيهَا لِغُرُوبِ الشَّمْسِ |
| هغه شپه کې مونځ کوئ او د ورځې په کې روژه نيسئ الله تعالى نزول کوي په دغه شپه د لمر پټيدو وخت |
| إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَقُولُ: أَلَا مِنْ مُسْتَغْفِرٍ فَأَغْفِرَ لَهُ؟ أَلَا مُسْتَرْزِقٌ |
| کې د دنيا آسمان ته او فرمايي خبردار! څوک بخښنې والا شته چې معاف يې کړم خبردار! څوک رزق غوښتلو |
| فَأَرْزُقَهُ؟ أَلَا مُبْتَلًى فَأُعَافِيَهُ؟ أَلَا كَذَا |
| والا شته چې زه ورته رزق ورکړم، خبردار! څوک مصيبت کې شته چې عافيت ورته ورکړم، خبردار! كذا |
| أَلَا كَذَا حَتَّى يطلع الْفجْر". (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه).[1] |
| او كذا تر دې چې سحر راوخيژي. |

**توضيح**: ددې باب په شروع کې د حديث نمبر ۵ پنځم په وضاحت کې د پنځلسم د شعبان د روژې او د نورو اعمالو باره کې هلته ليکل شوې دی، هلته يې وګورئ!



(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ٤٤٤/١، رقم الحديث: ١٣٨٨.

# بَاب صَلَاةِ الضُّحَى:
## د څاښت مونځ بیان:

**صلوة** اضافت **الضحی** طرف ته **في** سره دی **صلوة في الضحی** لکه **صلوة في اللیل** چې راغلی، د ضحی وخت د نمر راختو نه تر زوال پورې دی اکثر محدثین د څاښت مونځ او اشراق یو ګرځوي او فرمايي دا یو مونځ دی فرق اعتباري دې چا چې شروع کې مونځ وکړو دې ته اشراق ویلي کیږي او چا چې ددې نه پس وکړو د څاښت مونځ ورته ویلي کیږي. (المرقات ۳/۳۸۹).

**بعضې اهل لغت** وایي: د ورځې څلورمه حصه تیره شي او زوال وخت نزدې شي هغه وخت څاښت دی او بعضې فرق کوي او دواړه جدا جدا وختونه ګرځوي حافظ جلال الدین سیوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ او صاحب کنزالعمل او امام دارمي د رایو نه معلومیږي چې دا دوه جدا جدا مونځونه دي، عام صوفیاء دا فرمايي او یو څو آحادیثو نه ددې تائید هم کیږي. د صلوة ضحی متعلق صاحب مشکوة ډیر احادیث نقل کړې دي دې نه معلومیږي چې د څاښت مونځ احادیث صحیحه کثیره نه معلوم دی ابن جریر فرمايي د څاښت مونځ احادیث متواتره دي لکه ائمه اربعه د څاښت مونځ باندې متفق دي د اکثر شوافعو په نزد څاښت مونځ سنت دی د حنابلو او حنفیو او مالکیو په نزد د څاښت مونځ مندوب او مستحب دی.

**سوال:** حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د څاښت مونځ ته بدعت ویلی دی ددې وجه څه ده؟

**جواب:** حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مطلق د څاښت نه انکار نه دی کړی او نه مطلق څاښت ته یې بدعت ویلي خو چې کله د خلکو دی حالتو ته یې وکتل چې مساجدو کې او عامو مقاماتو کې ددې د پاره راجمع کیدل او التزام او اهتمام به یې ددې په کولو باندې کوو نو ددې عوارضو د وجې نه یې ورته بدعت ویلي. ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل دي وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ صرف دومره ویلي وو زما په خیال حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صدیق او عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا دې باندې دومره مواظبت او مداومت نه وو کړی.

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیشک دا مونځ کړی دی او ددې ترغیب او فضیلت یې بیان کړی دی خو داسې مداومت یې نه دی کړی ددې نفي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایلې ده.

د څاښت مونځ رکعاتو نه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مختلف دي: دوه هم ثابت دي، څلور هم ثابت دي، شپږ هم ثابت دي، اته هم ثابت دي او د لسو او دولس ثبوت هم شته څوک چې څومره کولی شي مسنون طریقه ادا کیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ:

### حضور ﷺ صلوة الفتح اته رکعاته ادا کړي دي:

﴿۱﴾ عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ

ام هاني رضي الله عنها وايي حضور ﷺ چې کله د مکې مکرمې فتح کيدو په ورځ زما کور ته راغلو نو نبي

فَاغْتَسَلَ وَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ فَلَمْ أَرَ صَلَاةً قَطُّ أَخَفَّ مِنْهَا

عليه السلام غسل وکړو او اته رکعاته مونځ يې وکړو ما د دې نه مخکې د نبي عليه السلام سپک مونځ نه وو ليدلی

غَيْرَ أَنَّهُ يُتِمُّ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ. وَقَالَتْ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: وَذٰلِكَ ضُحًى (متفق عليه). [1]

خو رکوع او سجده به يې پوره کوله، يو بل روايت کې هغه وفرمايل: دا د څابنت مونځ وو.

**توضيح**: ام هانئ دده د نوم آخري حرف همزه دی صرف ياء ته دده دا ددې کنيه ده اصل نوم يې فاخته دی د حضرت علي رضي الله عنه خور ده.

**يوم فتح مكة** حضرت محمد ﷺ د مکې مکرمې د فتح کيدو په ورځ څابنت وخت کې ام هاني کور ته تشريف ويوړو او هلته يې غسل وکړو بيا يې زر زر اته رکعاته وکړل او دا څلور سلامو سره دي

کيدی شي چې دوه سلامو سره يې کړي وي دې ته صلوة الفتح ويلی شي او دا مستحب دي حضور ﷺ د مکې مکرمې د فتح کيدو معروضي احوال په نظر کې نيولو د لاندې زر اته رکعات خفيف وکړل ځکه چې حضور ﷺ ته د مکې مکرمې انتظام سنبالول وو او سجده او رکوع يې صحيح او اطمينان سره وکړل، دې کې تعديل ارکان طرف ته اشاره ده

**و ذلک ضحی**: دا د څابنت مونځ دی يا د څابنت وخت کې بل مونځ وو دواړه احتمال لري. (المرقات ۳/۳۹۰-۳۸۹).

### د څابنت مونځ د رکعتونو تعداد:

﴿۲﴾ وَعَنْ مُعَاذَةَ قَالَتْ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: كَمْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي صَلَاةَ الضُّحَى؟

معاذه رضي الله عنها وايي ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس وکړو حضور ﷺ څو رکعاته څابنت مونځ کولو

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۴۸۴، رقم الحديث: ۳۵۷، مسلم ۱/۴۹۸، رقم الحديث: ۸۲-۳۳۶، أبوداؤد ۲/۶۴، رقم الحديث: ۱۲۹۱، ترمذي ۲/۳۳۸، رقم الحديث. ۴۷۴، نسائي ۱/۲۰۲، رقم الحديث: ۴۱۵، دارمي ۱/۴۰۲، رقم الحديث: ۱۲۹۱.

| |
|---|
| قَالَتْ : أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَ يَزِيدُ مَا شَاءَ اللهُ .[1] |
| هغې وويل: نبي عَلَيْهِ السَّلَام څلور ركعاته كول او دې نه زيات هم څومره چې الله تعالى غوښتلي كړي يې دي |

**توضيح**: **ويزيد ما شاء**: ملا علي قاري رَحِمَهُ الله ايي څاښت مونځ دولس ركعاتو نه زيات هم منقول دى د احاديثو ظاهري الفاظو نه دا معلوميږي چې دې كې حصر نشته ، سعيد بن منصور يو روايت نقل كړى دى چې چا د شيخ اسود نه تپوس وكړو د څاښت څو ركعاته وكړم؟ جواب كې ورته فرمايي : چې څومره غواړي ، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي هغه سل ركعاته څاښت كول (مرقات ج ٣ ص ٩٩). (المرقات ٣/٣٩٠).

## د څاښت مونځ فضيلت:

| |
|---|
| ﴿٣﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنْ أَحَدِكُمْ |
| ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دى وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: په سحر كيدو سره ، ستاسو په ټولو اعضاو |
| صَدَقَةٌ فَكُلُّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةٌ وَ كُلُّ تَحْمِيدَةٍ |
| باندې صدقه لازم ده لهذا هر تسبيح يعني سبحان الله ويل صدقه ده ، هر تحميد يعني الحمد لله ويل |
| صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةٌ وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ |
| صدقه ده ، هر تهليل صدقه ده ، هر تكبير صدقه ده ، د نيكۍ حكم كول صدقه ده ، د بدي نه منع كول صدقه |
| وَيُجْزِئُ مِنْ ذَلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحَى» .[2] |
| ده او ددې ټولو بدله كې د څاښت دوه ركعته كافي دي . |

**توضيح**: **يُصْبِحُ على كل سلامى** . سين باندې ضمه ده او **ميم** باندې فتحه ده دې نه پس الف مقصوره دى **سلامى** په خپله مفرد دى ددې جمع **سلاميات** ده د ګوتو بندونو ته ويل كيږي خو حديث كې مطلق هډوكو باندې ور تحميل شوى دى ، علامه نووي رَحِمَهُ الله فرمايي سلامي عضوې ته ويل كيږي په ګوتو باندې يې هم اطلاق كيږي او هر هغه هډوكي ته ويل كيږي چې پيوند په كې موجود وي او هر هغه هډوكي ته هم ويل كيږي چې هغې باندې سرې تكيه لګوي بهر حال د انساني جسم هډوكو او جوړونو د

---

(١) أخرجه مسلم ٤٩٧/١، رقم الحديث: ٧٩-٧١٩، مسند احمد ١٤٥/٦.

(٢) أخرجه مسلم ٤٩٨/١، رقم الحديث: ٨٤-٧٢٠، مسند احمد ١٧٨/٥.

پاره د حدیث دا لفظ دلته استعمال شوی دی. (المرقات ۳۹۰-۳/۳۹۱).

ددې جملې په ترکیب باندې ځان پوهول ضروري دي علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي دې جمله کې **صدقة** د **یصبح** اسم دی او **علی کل سلامی** خبر دی، اصل عبارت به داسې شي: **یصبح ای یصیر صدقة علی کل سلامی من احدکم**، یعنې د سړي هر جوړ جوړ باندې صدقه لازمه کیږي دا خو مشکل دی ددې وجې نه اسلام وایي چې د انسان معمولې نیکي ولې نه وي ددې صدقې بدل جوړیږي او که څوک د څابښت دوه رکعاته مونځ وکړي د انسان د بدن دهرې عضوې نه دا صدقه بدل جوړیږي. (المرقات ۳/۳۹۰).

## د څابښت بهتر وخت:

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّهُ رَأَى قَوْمًا يُصَلُّونَ مِنَ الضُّحَى |
| د زید بن ارقم باره کې منقول دی چې هغه یو جماعت د څابښت وخت کې مونځ کولو باندې لیدلی وونو |
| فَقَالَ: لَقَدْ عَلِمُوا أَنَّ الصَّلَاةَ فِي غَيْرِ هٰذِهِ السَّاعَةِ أَفْضَلُ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| وي ویل: دا خلک پوهیږي دې وخت نه علاوه بل وخت کې مونځ کول بهتر دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ: « صَلَاةُ الْأَوَّابِينَ حِينَ تَرْمَضُ الْفِصَالُ ». [1] |
| وفرمایل: الله طرف ته کامل توجه والو د مونځ وخت هغه دی چې د اوښانو بچي ګرم شي. |

**توضیح**: حضرت زید بن ارقم چې کوم خلک څابښت باندې لیدلي وو هغوي د څابښت مونځ بهتر وخت کې نه کولو بلکې هغې نه مخکې یې کولو او دوي ته بنه معلومه ده چې دا وخت بهتر نه دی بلکې ددې نه پس څه وخت پس هغه بهتر دی چې نمر ګرم شي او شګه ګرمه شي او چې د اوښانو بچو ښپې په شګه باندې وسوزي. څابښت او اشراق کې دا ترتیب دی چې د اشراق مونځ نمر راختو پسې لږ وخت پس جائز کیږي، او د څابښت مونځ کله چې لمر ګرم شي. (المرقات ۳/۳۹۲).

**ترمض**: د **تحرق** سوزیدو معنی سره دی، **الفصال** او **فصیل** د اوښ بچو ته ویلی کیږي.

**الاوابین**: داد **اوب** نه دی معنی رجوع کول او توبه کول. (المرقات ۳/۳۹۲).

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۵۱۵، رقم الحديث: ۱٤۳-۷٤۸.

## الْفَصْلُ الثَّانِي:

﴿٥﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ وَأَبِي ذَرٍّ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَنِ اللهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى أَنَّهُ قَالَ: يَا

ابو درداء او ابو ذر رضي الله عنهما روايت کوي وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل: الله تعالی فرمايي: ای

ابْنَ آدَمَ ارْكَعْ لِي أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ: أَكْفِكَ

ابن آدم ته د ورځې شروع حصه کې څلور رکعاته خالص زما د پاره کوه زه به ستا کفايت کوي په د غه ورځ د سحر

آخِرَهُ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ عَنْ نُعَيْمِ بْنِ همار الْغَطَفَانِي وأحمد عَنْهُم.[1]

نه تر ماښام پورې. ابو داؤد دارمي د نعيم ابن همار غطفاني نه او امام احمد د دې ټولو نه دا روايت کړی دی.

**توضيح: ارکع:** يعنې ای زما بنده ته د ورځې شروع کې څابنت يا اشراق کې څلور رکعته زما د رضا د پاره کوه زه به پوره ورځ آخري پورې ستا ضروريات او حاجتونه پوره کوم او ستا خفګان او تنګي به لرې کوم خو صرف شرط دا دی چې ته زما په عبادت کې مصروف اوسه زه به ستا کارونه او حاجتونه پوره کوم. (المرقات ۳/۳۹۳).

## په انسان کې درې سوه شپيته جوړونه دي:

﴿٦﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي الْإِنْسَانِ ثَلَاثُمِائَةٍ وَسِتُّونَ مَفْصِلًا

بريده رضي الله عنه وايي ما د حضور صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي چې انسان کې درې سوه شپيته جوړونه دي په

فَعَلَيْهِ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مَفْصِلٍ مِنْهُ بِصَدَقَةٍ» قَالُوا: وَمَنْ يُطِيقُ ذَلِكَ

هر انسان لازم دي چې د خپل هر جوړ بدله کې صدقه وکړي، صحابو وويل: څوک د دې طاقت لرلی شي

يَا نَبِيَّ اللهِ؟ قَالَ: «النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفِنُهَا وَالشَّيْءُ تُنَحِّيهِ عَنِ الطَّرِيقِ

ای د الله رسوله! حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل: مسجد کې خراسکی دفن کول، د لارې نه څيز لرې کول

فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فَرَكْعَتَا الضُّحَى تُجْزِئُكَ».[2]

او که ته دا ونه مومې نو د څابنت دوه رکعته ستا د پاره کافي دي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۴۰، رقم الحديث: ۴۷۵، أخرجه أبوداؤد ۲/۶۳، رقم الحديث: ۱۲۸۹، دارمي ۱/۴۰۱، رقم الحديث: ۱۴۵۱، مسند أحمد ۶/۴۴۰.

(۲) أخرجه أبوداؤد ۵/۴۰۶، رقم الحديث: ۵۲۴۲، مسند احمد ۵/۳۵۹.

**توضیح**: انسان باندې الله تعالی ځومره احسان کړی دی چې ده ته یې درې سوه شپیته جوړونه ورکړي او صحت سره هر یو جوړ په کار دی نو شرعا او عرفا انسان باندې لازم دي چې د هر جوړ بدله کې صدقه ورکړي که دا مشکل وي نو ځاښت یا اشراق دوه رکعاته دې وکړي د صدقې حق به ادا شي. (المرقات ۳/۳۹۴).

**النخاعة**: لاړې او بلغم ته نخاعه ویلي شي چې ددې تفصیل په کتاب الوضوء کې تیر شوی دی. (المرقات ۳/۳۹۴).

**تدفنها**: ازاله کول مقصود دی برابره خبره ده که په دفن کولو سره وي یا کیمنډلو سره وي یا وینځلو سره وي چې په هره طریقه باندې وي. (المرقات ۳/۳۹۴).

**تنحیه** د اخوا کولو په معنی دی یعنې عامو خلکو د تیریدو وي ځای هلته باعث تکلیف څیز وي هغه اخوا کول او که دا هم نه وي نو دوه رکعته ځاښت مونځ کافي دي. (المرقات ۳/۳۹۴).

## د ځاښت دولس رکعاتو باندې جنت کې محل ملاویږي:

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلَّى الضُّحَى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً |
| انس رضي الله عنه راوي دي وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي: څوک چې د ځاښت دولس رکعته کوي |
| بَنَى اللهُ لَهُ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ». (۱) |
| الله تعالی دده د پاره جنت کې د سرو محل جوړوي. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ. |
| او امام ترمذي رحمه الله وايي: دا حدیث غریب دی، مونږ یې د دې سند نه علاوه بل سند سره نه پیژنو. |

## د ځاښت مونځ د پاره په مسجد کې ناسته کول:

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ قَعَدَ فِي |
| معاذ بن انس رضي الله عنه راوي دی وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي څوک چې کینوي په هغه ځای باندې |
| مُصَلَّاهُ حِينَ يَنْصَرِفُ مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى يُسَبِّحَ رَكْعَتَيِ الضُّحَى |
| چې نه یې چې د سحر مونځ کړې وي تر دې چې د ځاښت دوه رکعته وکړي او د دغه دواړو یعنې مونځ د |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۳۳۷/۲، رقم الحديث ۴۷۳، ابن ماجه في السنن ۴۳۹/۱، رقم الحديث: ۱۳۸۰

| |
|---|
| لَا يَقُولُ إِلَّا خَيْرًا غُفِرَ لَهُ خَطَايَاهُ وَ إِنْ كَانَتْ |
| سحر او څاښت په مينځ کې د نيک کلام نه علاوه دويمه خبره نه کوي ټول ګناهونه يې معاف کيږي اګر |
| أَكْثَرَ مِنْ زَبَدِ الْبَحْرِ ».[1] |
| که د سمندر د ځګ برابر ولې نه وي. |

**توضيح: من قعد**، دې حديث شريف کې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ رای داده چې دې کې د ناستې ذکر دی دا بطور تمثيل دی اصل مقصود دادی چې بايد د سحر مونځ نه پس سړی دنيوي کار کې مشغول نه وي بلکې ديني کارونو کې مشغول وي او بيا دوه رکعته وکړي فضول کلام ونه کړي کور کې وي يا بازار کې وي او يا د غه مسجد کې وي کوم ځای کې مونځ وکړي، خلاصه دا چې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ددې ثواب د حصول د پاره يو مجلس کې ناسته ضروري نه ګڼي. (المرقات ۳/۳۹۶).

خو شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: د ثواب د حصول د پاره يې دا شرط لګولی دی چې د سحر مونځ نه پس خپل ځای باندې مسجد کې ناست وي او د اشراق دوه رکعته وکړي دې کې علماء فرمايېد دې دوو رکعتو نه د اشراق دوه رکعته مراد دي د څاښت مونځ دوه رکعته مراد نه دي. (اشعة اللمعات ۱/۵۹۲).

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ:

### د سمندر د ځګ برابر ګناه هم معاف کيږي:

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « مَنْ حَافَظَ عَلَى شُفْعَةِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دي وايي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: څوک چې محافظت وکړي په دوه |
| الضُّحَى غُفِرَتْ لَهُ ذُنُوبُه وَإِن كَانَت مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ». (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ).[2] |
| رکعتو د څاښت باندې دده ټول ګناهونه به معاف شي اګر چې د سمندر د ځګ برابر ولې نه وي. |

**توضيح: ذنوبه**: قاعده داده چې ددې ګناه نه مراد صغائر دي کبائرو د پاره ضروري ده چې سړی توبه وکړي. بعضې علماء وايي چې دا افضليت صغائرو سره کبائرو ته هم شامل دی او حديث کې قيد نشته

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۶۲/۲، رقم الحديث ۱۲۸۷، مسند أحمد ۴۳۹/۳.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۳۴۱/۲، رقم الحديث: ۴۷۶، ابن ماجه في السنن ۴۴۰/۱، رقم الحديث: ۱۳۸۲، مسند أحمد ۴۹۹/۲.

که د څاښت دوه رکعته څوک وکړي او دې سره د کبائرو نه هم توبه وکړي بیا خو شک نشته کبائر به یې هم معاف شي .(المرقات ۳/۳۹۷).

## د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا په نزد د څاښت اهتمام :

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تُصَلِّي الضُّحَى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ تَقُولُ : «لَوْ |
| دعائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روایت دی وایي چې: دې به د څاښت اته رکعاته کول بیا به یې وفرمایل: که چیرته |
| نُشِرَ لِيَ أَبَوَايَ مَا تَرَكْتُهَا » .[۱] |
| ژوندي کړې شي زما د پاره زما پلار او مور بیا به هم مونځ نه پرېږدم . |

**توضیح : نُشِرَ لِي** ، یعنې بفرض محال که زما والدین ژوندي شي خو بیا به هم د سختې خوشحالۍ د وجې نه د څاښت مونځ نه پرېږدم ، یا ما ته اطلاع وشي چې ستا والدین ژوندي شو زر کوه دوي سره ملاقات وکړه او د څاښت مونځ نن پرېږده . (المرقات ۳/۳۹۷).

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله د څاښت مونځ کړی دی او کله یې نه دی کړی :

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى حَتَّى نَقُولَ : |
| ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څاښت مونځ کولو ، مونږ به وویل نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| لَا يَدَعُهَا وَ يَدَعُهَا حَتَّى نَقُولَ : لَا يُصَلِّيهَا .(رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ).[۲] |
| اوس دا مونځ نه پرېږدي او چې کله یې پرېښودو مونږ به وویل چې اوس به دا مونځ چیرته هم ونه کړي . |

**توضیح : لا یدعها** ، یعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله د څاښت مونځ ته متوجه کیدو بیا به داسې ښکاره کیده چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به یې چیرته هم قضاء نه کړي او چې کله په ترک کیدو باندې راغلو داسې به معلومیده ګویا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چرته نه دي کړې . (المرقات ۳/۳۹۹).

د څاښت مونځ شرعي حیثیت مستحب دی کله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړی دی او کله یې نه دی کړی چیرته التزام سره امت باندې فرض نه شي ، اوس مسلمانانو ته په کار دي چې د څاښت اهتما کوي چې الله تعالی رضا شي .نن سبا فرض کیدو خطره هم په کې نشته هغه وخت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وحي راتله او حکم د تبدیل کیدو امکان وو اوس خود امستحب دی او قیامت پورې مستحب دی ، د مستحب

---

(۱) اخرجه مالک في الموطأ ۱۵۳/۱، رقم الحدیث : ۳۰، کتاب قصر الصلاة .

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۳۴۲/۲، رقم الحدیث : ٤٧٧، مسند احمد ۳۶/۳.

مطلب دا نه دي چې تاسو يې پرېږدئ. (المرقات ۳/۳۹۹).

## حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د څاښت مونځ نه کولو:

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ : قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ : تُصَلِّي الضُّحَى ؟ قَالَ : لَا. |
| مورق عجلي وايي ما د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو آيا تاسو د څاښت مونځ کوئ؟ هغوي وويل: نه |
| قُلْتُ : فَعُمَرُ ؟ قَالَ : لَا . قُلْتُ : فَأَبُو بَكْرٍ ؟ |
| ما وويل: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کول؟ هغه وويل هغه هم نه کوه بيا ما تپوس وکړو ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کوه؟ |
| قَالَ : لَا . قُلْتُ : فَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ؟ قَالَ : |
| هغه وويل هغه هم نه کوه، ما بيا تپوس وکړو بنه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کولو؟ هغه وويل: چې زما خيال |
| لَا أَخَالُهُ . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).(۱) |
| دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هم نه کولو. |

**توضيح: قال لا:** تپوس کوونکي چې کله د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس وکړو چې ته د څاښت مونځ کوي هغه جواب ورکړو زه يې نه کوم او حضرت ابوبکر، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هم نه کولو بلکې زما خيال دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم نه دی کړی. (المرقات ۳/۳۹۹).

**سوال:** حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله هم د څاښت مونځ کړی دی او صحابو ته يې هم ترغيب ورکړی دی نو بيا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولې فرمايي: چې چا هم د څاښت مونځ نه دی کړی؟

**جواب:** حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د څاښت مونځ نفي نه کوي، بلکې د حد نه د وتلو نفي يې فرمايلې چې دا خلک د څاښت مونځ تاخير سره کوي خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام داسې تاخير نه کولو تاسو خلک يې مسجد کې کوئ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسجد کې نه دی کړی او نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوام سره کړی دی او تاسو دوام کوئ يا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تداعي سره نه دي کړي تاسو تداعي سره کوئ. (المرقات ۳/۳۹۹).

بهر حال د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت او د هغه په قول کې دا ټول احتمالات موجود دي دې سره د بعضو صوفياء کرامو مريدانو ته تنبيه ورکول کيږي کوم چې د څاښت مونځ له د فرض درجه ورکوي او التزام پرې کوي.

**تمت بالخير**



(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۳/۵۱، رقم الحديث: ۱۱۷۵.

